وَاللهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

## پښتو شرح

# هدایه

د اول ځل لپاره په آسانه معیاري پښتو
د هدایې یوه جامع شرحه

د حدیثونو تخریج
د متن بشپړ اعراب
صرفي تحقیق
د لغاتو حل

پر فقهي او ضروري معلوماتو
مشتمله یوه جامع مقدمه

تعیین د قول راجح
د هرې جملې تر څنګ ژباړه
د عنواناتو اضافه
صورت د مسئلې

دوولسم ټوک

کتاب الجنایات تا باب غصب العبد والمُدبّر...

ژباړه او ترتیب:

مولوی حبیب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربیه

صداقت کتب خانه — کندهار

# فهرس

## فَصْلٌ ........................ ۶۶



## بَابُ الْقِصَاصِ فِيْمَا دُوْنَ النَّفْسِ ........................ ۷۵

# كِتَابُ الْجِنَايَاتِ

(دا) کتاب د "جناياتو" (په بيان کي) دی

**تشريح:** مخکي تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله رهن او د رهن احکام بيان کړل. اوس له دې ځايه جنايات او د هغه سره اړوند احکام او مسائل بيانوي. د بنايه او عنايه د تحقيق مطابق "كتابُ الجنايات" ځکه له "كتابُ الرهن" څخه وروسته بيان کړی سوی دی چي په رهن او حکمِ جنايت دواړو سره حفاظت مقصود وي. يعني لکه څرنګه چي په رهن سره د مال (قرض) حفاظت کيږي همداسي په حکمِ جنايت سره د نفس حفاظت کيږي. خو چونکي مال د نفس د حفاظت وسيله او ذريعه ده. نو ځکه كتابُ الرهن له كتابُ الجنايات څخه مخکي بيان کړی سوی دی.

**د جنايت لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** جِنَايَات جمع د جِنَايَةٌ ده، او جناية مصدر دی کوم چي د اسم مفعول په معنیٰ سره دی. د جنايت لغوي معنیٰ ده: د ګناه کار، جرم او بدکار.

د جنايت شرعي معنیٰ ده: "فِعْلٌ يَحْرُمُ شَرْعًا حَلَّ بِالنُّفُوسِ وَالْأَطْرَافِ" يعني د شريعت په اصطلاح کي جنايت هغه حرام فعل ته وايي چي پر نفس يا اطرافو (اندامونو) واقع سي او پکښې مؤثر سي. نو جنايت على النفس ته قتل وايي او جنايت على الأطراف ته قطع او جرح (غوڅول او زخمي کول) وايي. لذا دا چي په كتاب الجنايات کي له جنايت څخه همدا جنايت (على النفس و على الأطراف مراد دی)، کنې د حج جنايات د سړي د نفس سره متعلق نه دي. خو بيا هم هغوی ته جنايات ويل کيږي.

### د حکم په اعتبار سره د قتل پنځه قسمونه

قَالَ: الْقَتْلُ عَلَى خَمْسَةِ أَوْجُهٍ فرمايي: قتل پر پنځه قسمه دی (۱) عَمْدٌ قتلِ عمد (۲) وَشِبْهُ عَمْدٍ او قتلِ شبه عمد (۳) وَخَطَأٌ او قتلِ خطاء (۴) وَمَا أُجْرِيَ مَجْرَى الْخَطَأِ او هغه قتل کوم چي د قتلِ خطاء قائم مقام وي (۵) وَالْقَتْلُ بِسَبَبٍ .او قتل بالسبب وَالْمُرَادُ بَيَانُ قَتْلٍ تَتَعَلَّقُ بِهِ الْأَحْكَامُ او مراد [د مصنف رَحِمَهُ الله] د هغه قتل بيان دی چي د هغه سره احکام متعلق کيږي.

**اللغات:** ﴿عمد﴾ د ضرب د باب مصدر دی: قصداً کول. (په قصده يو کار کول). ﴿شبه عمد﴾ د قتل عمد سره مشابه. ﴿أُجري مجرى﴾ کله چې دغه دوې صيغې يو ځای سره ذکر سي، نو معنی يې ده: قائم مقام کېدل. يو شي د بل شي پر ځای درېدل. نائب کېدل.

**تشريح:** امام قدوري رَحِمَهُ الله د قتل پنځه قسمونه ذکر کړي دي. حال دا چې د قتل قسمونه له پنځو څخه هم زيات دي، خو د امام قدوري رَحِمَهُ الله مقصد د قتل هماغه قسمونه بيانول دي چې د هغوی سره شرعي احکام متعلق کيږي او چې د هغوی په مرتکب باندې ضمان واجبيږي. او څرنګه چې شرعي احکام د قتل د همدې پنځو قسمونو سره متعلق کيږي، نو ځکه امام قدوري رَحِمَهُ الله د حصر په توګه فرمايلي دي چې د قتل پنځه قسمونه دي: ① قتلِ عمد. ② قتلِ شبه عمد. ③ قتلِ خطاء. ④ هغه قتل کوم چې د قتلِ خطاء قائم مقام وي. ⑤ قتل بالسبب. او د دې ټولو بحث او بيان به په را روانو عبارتونو کې ذکر سي.

## د قتلِ عمد تعريف

قَالَ: فَالْعَمْدُ مَا تَعَمَّدَ ضَرْبَهُ بِسِلَاحٍ فرمايي: نو عمد هغه قتل دی چې [په هغه کې] په وسله سره د مقتول د وهلو قصد سوی وي أَوْ مَا أُجْرِيَ مَجْرَى السِّلَاحِ يا په داسې شي سره [دا قصد سوی وي] کوم چې د وسلې قائم مقام وي كَالْمُحَدَّدِ مِنَ الْخَشَبِ لکه تېره کړی سوی لرګی وَلِيطَةِ الْقَصَبِ د بانس پوستکی وَالْمَرْوَةِ الْمُحَدَّدَةِ او تېره کړی سوې ډبره وَالنَّارِ او اُور لِأَنَّ الْعَمْدَ هُوَ الْقَصْدُ ځکه چې عمد قصد دی [يعني عمد قصد او ارادې ته وايي] وَلَا يُوقَفُ عَلَيْهِ إِلَّا بِدَلِيلِهِ او د قصد [ارادې] اطلاع نه سي کېدلای مګر د هغه په دليل سره [يعني د يو چا په اراده خبرېدل نه سي کيدلای مګر د ارادې په دليل سره] وَهُوَ اسْتِعْمَالُ الْآلَةِ الْقَاتِلَةِ او هغه [دليل] د وژونکي آلې استعمالول دي فَكَانَ مُتَعَمِّدًا فِيهِ عِنْدَ ذٰلِكَ نو په دې وخت کې به قاتل په قتل کې قصد کونکی [قصداً قتلونکی] وي وَمُوجَبُ ذٰلِكَ الْمَأْثَمُ او د قتلِ عمد موجَب ګناه ده لِقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَمَن يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ﴾ [النساء: ۹۳] ځکه الله تعالی فرمايلي دي: او کوم څوک چې قصداً يو مؤمن قتل کړي نو د هغه سزا دوږخ ده وَقَدْ نَطَقَ بِهِ غَيْرُ وَاحِدٍ مِنَ السُّنَّةِ ❶ او په دې هکله له يوه څخه بغير [يعني ډېر] حديثونه ګويا دي [يعني د قتل

❶ تخريج: أخرجه ابوداؤد في كتاب الحدود، باب الحكم فيمن ارتدّ، حديث رقم: ۴۳۵۱. (احسن الهدايه ج:۱۵، ص:۱۴)

د ګناه په هکله ډېر حديثونه وارد دي] وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ إِجْمَاعُ الْأُمَّةِ او پر همدې د اُمت اجماع منعقد سوې ده.

**اللغات:** ﴿سلاح﴾ وسله. ﴿المحدّد﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: تېره کړی سوی. ﴿ليطة﴾ د بانس پوستکی، او هر هغه شی کوم چي کلکوالی او مضبوطتيا لري (معجم الوسيط). ﴿مَرْوَة﴾ يو ډول کلکه سپينه ډېره ده کوم چي د چاړې غوندي وي چي په هغې سره ځاروی ذبح کول کيږي او هغې ته صَفْوَان هم وايي. ﴿مُوجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی (څه چي د يو شي په وجه واجبېدونکي او راتلونکي وي)، حکم، مقتضا، نتيجه. ﴿مأثم﴾ مصدر ميمي دی: ګناه.

**تشريح:** مخکي چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د قتل کوم پنځه قسمونه ذکر کړي دي، له دې ځايه د هغوی تفصيلي تعريفونه او احکام بيانوي، په هغوی کي لومړی قتلِ عمد دی. د قتلِ عمد تعريف امام قدوري رَحِمَهُ الله داسي کړی دی چي که څوک په وسله مثلاً په توره، غشي، ټوپک وغيره سره يا په بل داسي شي سره کوم چي د وسلې قائم مقام وي مثلاً په تېره لرګي، تېره ډېره، اُور وغيره سره قصداً بل څوک ووهي او هغه مړ سي، نو دې ته "قتل عمد" وايي؛ ځکه عمد (قصد) ارادې ته وايي او اراده يو مخفي او پټ شی ده. او په مخفي شيانو خبرېدل د هغوی په دليل سره کېدلای سي. نو دلته به هم د قتلِ عمد د ثابتېدو لپاره د هغه دليل ته رجوع کيږي او دې ته به کتل کيږي چي قاتل تېره آله استعمال کړې ده، که نه؟. نو که هغه په تېره او ځان وژونکې آله سره مقتول وهلی وي، نو هغه به د قتلِ عمد مرتکب وي او د قتلِ عمد احکام به پرې جاري کيږي.

**وموجب ذٰلك إلخ:** له دې ځايه د قتلِ عمد احکام بيان سوي دي، حاصل يې دا دی چي په قتلِ عمد کي پر قاتل ګناه هم لازميږي او قصاص هم لازميږي، د قصاص تفصيل به په را روان عبارت کي ذکر سي. او دليل د دې خبري چي قاتلِ عمد د ګناه مستحق کيږي دا آيت دی ﴿وَمَنْ يَقْتُلْ مُؤْمِنًا مُتَعَمِّدًا فَجَزَاؤُهُ جَهَنَّمُ خَالِدًا فِيهَا وَغَضِبَ اللهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهُ وَأَعَدَّ لَهُ عَذَابًا عَظِيمًا﴾ (يعني څوک چي قصداً يو مسلمان ووژني، نو د هغه سزا دوزخ ده چي همېشه به په هغه کي وي. او پر هغه د الله تعالیٰ غضب او لعنت دی او الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه لپاره سخت ترين عذاب تيار کړی دی).
همدارنګه په احاديثو کي هم د مؤمن قتل لوی جرم او ګناه ګرځول سوې ده. لکه څرنګه چي د ترمذي شريف روايت دی "لَوْ أَنَّ أَهْلَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ اِشْتَرَكُوا فِي دَمِ مُؤْمِنٍ لَأَكَبَّهُمُ اللهُ فِي النَّارِ" (يعني که ټوله مخلوق د يو مسلمان په ناحقه خون کي شرکت وکړي. نو الله تعالیٰ به ټوله دوزخ ته واچوي). همداسي نور احاديث هم نقل سوي دي. (بنايه)

وعليه انعقد إلخ: يعني پر دې خبره (چي د قتلِ عمد موجب ګناه ده) اجماع منعقد سوې ده او له نبوي دور څخه تر ننه ورځې پورې همدا حکم دی. حتیٰ چي د کافرانو په نېز هم هغه انتهايي قبيح او نه بخښل کېدونکی جرم شمېرل سوی دی.

## قتلِ عمد او قصاص

قَالَ: وَالْقَوَدُ فرمايي: او [د قتلِ عمد موجب] قصاص هم دی لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلىٰ﴾ [البقرة: ۱۷۸] ځکه الله تعالىٰ فرمايلي دي: پر تاسي قصاص فرض کړی سوی دی په قتل کړل سوو کسانو کي إِلَّا أَنَّهُ تَقَيَّدَ بِوَصْفِ الْعَمَدِيَّةِ خو دا آيت د عمد والي په وصف سره مقيد دی [يعني هغه کسان چي په قتلِ عمد سره قتل کړل سوي وي] لِقَوْلِهِ [1] عليه السلام: «الْعَمَدُ قَوَدٌ» أَيْ مُوْجَبُهُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي چي "عمد قصاص دی" يعني د قتل عمد موجب قصاص دی وَلِأَنَّ الْجِنَايَةَ بِهَا تَتَكَامَلُ او ځکه چي جنايت د همدې عمديت په وجه کامل کېږي وَحِكْمَةُ الزَّجْرِ عَلَيْهَا تَتَوَفَّرُ او د زجر حکمت په همدې عمديت باندې پوره کېږي وَالْعُقُوبَةُ الْمُتَنَاهِيَةُ لَا شَرْعَ لَهَا دُوْنَ ذٰلِكَ او د آخري درجې عقوبت لپاره له هغه [قصاص] څخه بغير بله شرع [مشروع] نسته [يعني د اعلىٰ درجې سزاء لپاره له قصاص څخه بغير بل شی مشروع نه دی].

**اللغات**: ﴿القَوَد﴾ قصاص. ﴿تتكامل﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: کامل کېدل (بشپړ کېدل). ﴿الجناية﴾ جرم. د ګناه کار. ﴿الزجر﴾ نصر د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي: منع کول (له بد کار [قتل وغيره] څخه راګرځول)، رټل او تنبيه ورکول، سزا ورکول. (حکمت يې دا دی چي خلګو ته عبرت او تنبيه ورکول سي چي دوی له داسي کار [قتل] څخه منع سي). ﴿تتوفر﴾ د تفعل د باب مضارع ده: پوره کېدل. زياتېدل. ﴿العقوبة المتناهية﴾ د آخري درجې سزا.

**تشريح**: په دې عبارت کي د قتلِ عمد دويمه سزا بيان سوې ده. فرمايي چي په قتلِ عمد کي پر قاتل قصاص هم واجبېږي. يعني د قتلِ عمد له دوو سزاګانو څخه يوه سزا د آخرت سره متعلق ده کوم چي په دې آيت ﴿ومن قتل مؤمنًا متعمدًا إلخ﴾ کي ذکر سوې ده. او دويمه سزا به په دنيا کي ورکول کېږي چي هغه ته قصاص وايي او قصاص د قرآنِ کريم په دې آيت ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ إلخ﴾ سره ثابت

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الديات، باب من قتل في عميا بين قوم، حديث رقم: ۴۵۳۹. (احسن الهداية)

سوی دی، د مذکوره آیت ﴿كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ إلخ﴾ له ظاهر څخه خو همدا معلومیږي چې د قصاص حکم عام دی یعني په هر قتل کې قصاص واجب دی، خو دا عام حکم په دې حدیث سره ساقط دی "الْعَمَدُ قَوَدٌ"، یعني قصاص فقط په قتلِ عمد کې واجب دی، له عمد څخه بغیر د قتل په بل صورت کې قصاص واجب نه دی، لهٰذا دا چې مذکوره آیت د عمدیت او تعمّد په وصف سره مقیّد دی.

ولأن الجناية إلخ: او دویم دلیل د دې خبرې چې په آیت کې له قتل څخه مراد قتلِ عمد دی، دا دی چې په دې آیت کې تر ټولو لویه سزا بیان سوې ده (یعني قصاص) کوم چې په کامل جنایت (قتل) کې واجبیږي او جنایت هغه وخت کامل کیږي کله چې عمداً او قصداً وسي، همدارنګه د زجر چې کوم حکمت او نفع ده، هغه هم په هغه وخت کې حاصلیږي کله چې جنایتکاره په جنایت کې تعمّد کړی وي، یا په بله وینا دا چې تر ټولو لوی جرم په دنیا کې قتل کول دي او تر ټولو لویه سزا قصاص دی، نو قصاص به په لوی جنایت کې واجب وي، او قتل هغه وخت لوی جنایت ګرځي کله چې عمداً او قصداً وسي، نو ځکه په مذکوره آیت کې به له قتل څخه قتلِ عمد مراد وي.

## په قتلِ عمد کې د قصاص معافي (بخښنه) یا صلح کول

قَالَ: إِلَّا أَنْ يَعْفُوَ الْأَوْلِيَاءُ أَوْ يُصَالِحُوا فرمايي: مګر دا چې د مقتول ولیان معافي وکړي یا صلح وکړي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چې [د قصاص] حق همدوی لره دی ثُمَّ هُوَ وَاجِبٌ عَيْنًا بیا دا قصاص واجب عین [فرضِ عین] دی وَلَيْسَ لِلْوَلِيِّ أَخْذُ الدِّيَةِ إِلَّا بِرِضَا الْقَاتِلِ [نو د مقتول] ولي لره دا حق نسته چې د قاتل له رضاء څخه بغیر [د قصاص پر ځای] دیت واخلي وَهُوَ أَحَدُ قَوْلَيِ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله له دوو قولونو څخه یو قول دی إِلَّا أَنَّ لَهُ حَقَّ الْعُدُولِ إِلَى الْمَالِ مِنْ غَيْرِ مَرْضَاةِ الْقَاتِلِ خو [د امام شافعي په نیز] د قاتل له رضاء څخه بغیر [د مقتول ولي] لره د مال [دیت] وطرف ته د اوښتلو حق سته [چې د قصاص پر ځای دیت واخلي] لِأَنَّهُ تَعَيَّنَ مَدْفَعًا لِلْهَلَاكِ ځکه چې مال د هلاکت دفع کولو د ذریعې په توګه متعیّن سوی دی فَيَجُوزُ بِدُونِ رِضَاهُ نو ځکه د قاتل له رضاء څخه بغیر به هم دا [مال ته عدول کول] جائز وي وَفِي قَوْلٍ الْوَاجِبُ أَحَدُهُمَا لَا بِعَيْنِهِ او یو قول دا دی: چې له دوی دواړو [قصاص او دیت] څخه یو په نا متعیّنه توګه واجب دی [یعني په متعیّن شکل سره یو واجب نه دی] وَيَتَعَيَّنُ بِاخْتِيَارِهِ او هغه [له قصاص او دیت څخه یو] د ولي په اختیار سره متعیّن کیږي لِأَنَّ حَقَّ

الْعَبْدِ شُرِعَ جَابِرًا ځکه د بنده حق د تلافي کونکي په توګه مشروع سوی دی [چې په هغه سره د نقصان تلافي وسي] وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ نَوْعُ جَبْرٍ او په [قصاص او ديت کي] هر يوه کي [د نقصان] جَبر [تلافي] سته [يعني په هر سره د قتل د نقصان تلافي کيږي] فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه ولي ته به اختيار وي.

**اللغات:** ﴿يعفو﴾ د نصر له بابه د واحد غائب مضارع صيغه ده: معاف کول. بخښل. ﴿يصالحوا﴾ د مفاعلې له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: صلح کول (مراد: د مال په عوض کي د قصاص په پرېښودلو باندي صلح کول). ﴿عدول﴾ د ضرب د باب مصدر دی: عَدَلَ يَعْدِلُ عَدْلًا و عُدُوْلًا: واپس کېدل. مخ ګرځول. اوښتل. ﴿مرضاة﴾ د سمع د باب مصدر ميمي دی: ضاء. خوښي. ﴿جابر﴾ د نصر له بابه فاعل دی: تلافي کونکی (هغه شی چي د نقصان او تاوان پر ځای ودرېږي). د نقصان پوره کونکی. ﴿مَدْفَع﴾ د فتح د باب مصدر ميمي دی (او مُدْفِع يا مُدْفَع نه دی): دفع کول. ليري کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په قتلِ عمد کي پر قاتل قصاص لازم دی او دا قصاص (پر قاتل) فرضِ عين دی يعني چا چي قتل کړی وي صرف له هغه شخصه به قصاص اخيستل کيږي. د هغه له بل چا څخه به قصاص نه اخيستل کيږي. ها! که د مقتول وليان قاتل معاف کړي او له قصاص څخه يې بري کړي، يا د مال په عوض کي د قاتل سره صلح وکړي. نو په دې صورت کي قاتل بچ کېدلای سي او له هغه څخه قصاص ساقطيږي؛ ځکه قصاص د وليانو او وارثانو حق دی چي دوی په هغه کي هر ډول تصرّف کولای سي.

په عبارت کي چي کومه دا جمله ده "إلّا أن يعفوا"، دا خو متفق عليه ده. لېکن د "أو يُصالحوا" والا جمله مختلف فيه ده. نو زموږ په نېز د قتلِ عمد اصل سزا قصاص ده. او که قاتل په صلح او ديت ورکولو راضي نه وي، نو د مقتول وليانو ته دا اختيار نسته چي له قاتل څخه ديت واخلي. همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله يو قول هم دی او امام مالک رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول وضاحت دا دی چي د قتلِ عمد اصل سزا خو قصاص ده لېکن که د مقتول وليان له قاتل څخه ديت اخيستل وغواړي، نو هغو ته د دې پوره اختيار سته برابره ده قاتل په دې راضي وي. که نه وي؛ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دې قول دليل دا دی چي په ديت ورکولو سره د قاتل نفس ژغورل کيږي. او نفس ژغورل حتى الامکان ضروري دي. لهذا کله چي د حق خاوند (ولي) خپله په ديت اخيستلو د او د قاتل په نفس ژغورلو راضي سو. نو ښکاره ده چي اوس به د دې

کار لپاره د قاتل رضاء شرط ونه وي بلکې د هغه له رضاء څخه بغير به هم د مقتول وارثانو ته د ديت اخيستلو اختيار وي؛ ځکه د قصاص په څېر په مال سره هم هلاکت او قتل دفع کيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله بل قول دا دی چې د قتل عمد په سزا کې د قصاص سره ديت هم داخل دی او پر قاتل له همدې دوو څخه يو په غير متعينه توګه واجب دی يعنې يا خو له هغه څخه به قصاص اخيستل کيږي يا به ديت ځنې اخيستل کيږي او له دې دوو څخه د يوه د متعينولو اختيار د مقتول وليانو لره دی؛ ځکه قصاص او ديت د مقتول د وليانو حق دی او دا حق د جابر (تلافي کونکي) په توګه ثابت سوی دی چې په دې سره د قتل د نقصان تلافي وسي، او ښکاره ده چې قصاص او ديت دواړه جابر دي (يعني په دواړو سره د قتل د نقصان تلافي کيږي)، نو ځکه د مقتول وليانو ته به په قصاص او ديت کې د يوه د انتخابولو او متعينولو اختيار وي.

## زموږ دليل او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول جواب

وَلَنَا مَا تَلَوْنَا مِنَ الْكِتَابِ وَرَوَيْنَا مِنَ السُّنَّةِ او زموږ دليل د قرآن کريم هغه آيت دی کوم چې [مخکې] موږ تلاوت کړی او هغه حديث دی کوم چې موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْمَالَ لَا يَصْلُحُ مُوجَبًا او ځکه چې مال [د قتل] د موجب کېدلو صلاحيت نه لري لِعَدَمِ الْمُمَاثَلَةِ د مماثلت د نشتوالي په وجه [چې مال او مقتول انسان يو د بل هيڅ مثل نه دي] وَالْقِصَاصُ يَصْلُحُ او قصاص د دې صلاحيت لري لِلتَّمَاثُلِ د مثل کېدلو په وجه وَفِيهِ مَصْلَحَةُ الْأَحْيَاءِ زَجْرًا وَجَبْرًا او په همدې قصاص کې د ژوندیو مصلحت [ښکېنه] ده د زجر او جبر په اعتبار سره [أی زجرًا للغير عن وقوعه فيه (يعني چې نور خلک له قتل څخه منع سي) وجبرًا للورثة (يعني چې په قصاص سره د مقتول د وارثانو د نقصان تلافي وسي] فَيَتَعَيَّنُ نو ځکه همدا قصاص به متعين وي وَفِي الْخَطَإِ وُجُوبُ الْمَالِ ضَرُورَةَ صَوْنِ الدَّمِ عَنِ الْإِهْدَارِ او په قتل خطاء کې د مال [ديت] واجبېدل د ضرورت پر بناء دي چې وينه له ضايع کېدلو څخه وساتل سي وَلَا يُتَيَقَّنُ بِعَدَمِ قَصْدِ الْوَلِيِّ بَعْدَ أَخْذِ الْمَالِ او له مال [ديت] اخيستلو څخه وروسته د ولي د قصد نه کېدلو يقين نسته [بلکې تر ديت اخيستلو وروسته هم د دې امکان سته چې هغه به د ښمن او غچ اخيستو پر بناء د قاتل د قتل کولو قصد لري] فَلَا يَتَعَيَّنُ مَدْفَعًا لِلْهَلَاكِ نو ځکه مال به د هلاکت دفع کولو لپاره متعين نه وي.

**اللغات**: ﴿موجب﴾ د افعال د باب مفعول دی: مخکې يې معنیٰ ذکر سوه، ﴿مماثلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي مثل کېدل (ورته کېدل)، مشابهت، ﴿صون﴾ د نصر د باب مصدر دی:

ساتل (بچ کول)، ژغورل. ﴿إهدار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کېدل، بې ځايه کول، لغو کول او باطلول. (د چا خون ضايع کېدل چې هيڅ بدل يې نه واخيستل سي). ﴿مدفع﴾ د فتح له بابه مصدر ميمي دی: دفع کول، ليري کول.

**تشريح**: مخکې ذکر سوه چې زموږ په نېز د قتلِ عمد اصل سزا قصاص دی او د ديت پړوا له قصاص ځخه وروسته د قاتل پر رضاء موقوف دی (يعني که قاتل په ديت ورکولو راضي وي، نو بيا ديت ځني اخيستل کېدای سي). د قصاص د اصل کېدلو په هکله دليل دا آيتونه دي: ﴿كُتب عليكم القصاص في القتلى﴾ او ﴿ولكم في القصاص حياة﴾. همدارنګه له دې حديث "العَمَدُ قَوَدٌ" ځخه هم دا فهمول کيږي چې د قتلِ عمد اصلي موجب قصاص دی. پاته سوه د ديت مسئله؟، نو ديت د قصاص اصلي موجب نه دی: ځکه په ديت کې د مقتول وارثانو ته مال ورکول کيږي او په مال او مقتول انسان کې هيڅ مماثلت نسته؛ ځکه انسان مالک دی او مال مملوک (د انسان په ملکيت کې داخل) دی، نو مال د قتلِ عمد سزا نه سي ګرځول کېدای. او پاته سو په قصاص او انسان کې مماثلت سته؛ ځکه د قصاص لغوي معنیٰ ده "يو نفس د بل نفس په عوض کې قربانول". په دې معنیٰ سره د قصاص او مقتول انسان تر مينځ مماثلت سته، نو ځکه عقلاً هم قصاص د قتلِ عمد موجب دی.

او دويم علت او دليل د دې خبري (چې د قتلِ عمد موجب قصاص دی) دا دی چې په قصاص کې زجر هم سته او جبر هم سته، د زجر تعلق د عامو خلګو سره دی ځکه کله چې خلک د مقتول په عوض کې د قاتل قصاصېدل ويني او د دې ننداره وکړي، نو له دې ځخه به عبرت حاصل کړي او له قتل او خون کولو ځخه به منع سي.

او د جبر (تلافی) تعلق د مقتول د وليانو سره دی؛ ځکه کله چې قاتل قصاصاً قتل کړی سي نو د مقتول په وجه چې دوی ته کوم دوک او نقصان رسېدلی دی د هغه تلافي به وسي او دوی به مطمئن او ډاډه سي، نو په دې حواله سره په قصاص کې جبر هم سته او زجر هم سته او په دې هر اعتبار سره قصاص د قتلِ عمد د موجب کېدلو لايق دی. نو ځکه موږ قصاص د قتلِ عمد موجب ګرځولی دی چې د قتلِ عمد سزا همدا قصاص دی.

وفي الخطاء إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې کله ستاسو په نېز په مال او انسان کې هيڅ مماثلت نسته او د همدې (عدمِ مماثلت) په وجه تاسي په قتلِ عمد کې ديت نه دی واجب کړی. نو بيا په قتلِ خطاء کې ځنګه تاسي ديت واجب کړی دی؟. ځکه د عدمِ مماثلت والا ستونزه خو هلته هم سته؟.

د همدې په جواب کې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې په قتلِ خطاء کې موږ چې ديت د قتل موجب ګرځولی دی هغه د ضرورت پر بناء دی؛ ځکه د خطاء په وجه په هغه کې قصاص

واجبول متعذر دي، اوس كه موږ ديت هم واجب نه کړو او په قتلِ خطاء كې قاتل هسې پرېږدو، نو خلک به په قتل كولو كې جرأت كوي او هر قاتل به د قتلِ خطاء په نامه له سزا څخه د بچ كېدلو كوشش كوي او د محترم انسان خون او وينه به ضايع ځي، نو ځكه موږ د هغه د بچ كېدلو په خاطر د ضرورت پر بناء په قتلِ خطاء كې ديت واجب كړى دى، او دا قاعده خو تاسې ته له مخكې څخه هم معلومه ده چې "الضرورات تبيح المحظورات".

ولا يتيقين إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قول جواب وركول سوى دى. حاصل يې دا دى چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وينا چې "مال (ديت) د هلاكت دفع كولو لپاره متعين دى او د قاتل له رضاء څخه بغير هم د مقتول وليانو ته د ديت اخيستلو اختيار سته" موږ نه تسليموو؛ ځكه كله چې له صلح څخه بغير د مقتول ولي له قاتل څخه مال واخلي، نو كېداى سي چې د ولي قصد او اراده به د مخكې په څېر پاته وي چې تر ديت اخيستلو وروسته به هم ولي د خپل خښم او زړه يخولو لپاره قاتل قتل كوي او كوم مال چې ولي اخيستى دى، دا به هغه له هلاكت او قتل څخه نه راوګرځوي. نو ځكه ديت مطلقاً دافعِ هلاكت ګرځول موږ نه تسليموو. (احسن الهدايه)

## په قتلِ عمد كې د كفارې وجوب او د امامانو اختلاف

وَلَا كَفَّارَةَ فِيهِ عِنْدَنَا او په قتلِ عمد كې زموږ په نېز كفاره نسته وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ تَجِبُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز [په هغه كې] كفاره واجب ده لِأَنَّ الْحَاجَةَ إِلَى التَّكْفِيرِ فِي الْعَمْدِ أَمَسُّ مِنْهَا إِلَيْهِ فِي الْخَطَإِ ځكه د قتلِ خطاء په نسبت په قتلِ عمد كې كفاره وركولو ته زيات ضرورت دى فَكَانَ أَدْعَى إِلَى إِيجَابِهَا نو ځكه دا [قتلِ عمد] به د كفارې واجبولو ته زيات بلونكى وي [د كفارې د ايجاب به زيات باعث وي] وَلَنَا: أَنَّهُ كَبِيرَةٌ مَحْضَةٌ او زموږ دليل دا دى: چې قتلِ عمد خالص ګناه كبيره ده وَفِي الْكَفَّارَةِ مَعْنَى الْعِبَادَةِ او په كفاره كې د عبادت معنىٰ سته فَلَا تُنَاطُ بِمِثْلِهَا نو ځكه كفاره به د قتلِ عمد په څېر په خالص كبيره ګناه سره نه متعلق كېږي وَلِأَنَّ الْكَفَّارَةَ مِنَ الْمَقَادِيرِ او ځكه چې كفاره له [شرعي] مقدارونو څخه ده وَتَعَيُّنُهَا فِي الشَّرْعِ لِدَفْعِ الْأَدْنَى او په شريعت كې د هغې متعيّن كېدل د ادنىٰ [ادنىٰ ګناه] دفع كولو لپاره دي فَلَا يُعَيِّنُهَا لِدَفْعِ الْأَعْلَى نو ځكه د اعلىٰ [ګناه] دفع كولو لپاره به يې نه متعيّن كوي وَمِنْ حُكْمِهِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ او د قتلِ عمد له حكم څخه د

میراث محرومتیا [هم] ده [چې قاتل د مقتول مُورث له میراثه محرومیږي] لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «لَا مِيْـرَاثَ لِقَاتِلٍ» ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: چې قاتل لره میراث نشته.

**اللغات**: ﴿تکفیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی. د دې باب یوه معنیٰ ده: کفاره ور کول (کفاره اداء کول). ﴿أَمَسُّ﴾ د سمع له بابه د اسم تفصیل صیغه ده. د دې باب په صله کې چې "إلیٰ" راسي. مست الحاجة إلیٰ کذا. نو معنیٰ یې ده: ضرورت پیدا کېدل. محتاجه کېدل. (المصباح المنیر). ﴿أَدعیٰ﴾ د نصر له بابه د اسم تفضیل صیغه ده: زیات بلونکی. ﴿لا تُناط﴾ د فتح له بابه د نفي مجهول صیغه ده: متعلق کېدل. مُعلق کېدل. مدار کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نیز په قتلِ عمد کې ګناه او قصاص سته (لکه مخکې چې ذکر سوه)، کفاره واجب نه ده. همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله او د امام احمد رَحِمَهُ الله مشهوره روایت دی. په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله. د هغه په نیز په قتلِ عمد کې د ګناه او قصاص سره. سره کفاره هم واجب ده. همدا د امام احمد رَحِمَهُ الله یو روایت دی: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل قیاس دی او هغه دا چې قتلِ خطاء له قتلِ عمد څخه کمتر او لاندې دی، او په قتلِ خطاء کې کفاره واجب ده. نو په قتلِ عمد کې خو به په درجه اولیٰ کفاره واجب وي.

ولنا إلخ: په قتلِ عمد کې د کفارې نه واجبېدلو په هکله زموږ دلیل دا دی چې قتلِ عمد خالص ګناه ده یعني په هغه کې هیڅ ډول هم د اباحت څه شایبه نشته، او کفاره ګناه او جرم ختموي، نو په کفاره کې د عبادتَ معنیٰ راغله، او ښکاره ده چې په کوم څه کې د عبادت معنیٰ او مفهوم وي، دا د هغه شي سبب نه سي جوړېدلای چې هغه خالص جرم او ګناه وي، نو ځکه موږ په قتلِ عمد کې کفاره نه وده واجب کړې.

ولأن الكفارة إلخ: په قتلِ عمد کې د کفارې نه واجبېدلو زموږ دویم دلیل کوم چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دلیل جواب هم دی، دا دی چې د کفاراتو تعیـین د شریعت له طرفه کیږي او شریعت کفاره د هغه ګناه د لیرې کولو لپاره متعیّنه کړې ده کوم چې ادنیٰ ده یعني کومه ګناه چې په قتلِ خطاء سره ثابتیږي، لهذا په خپل رایه او ګومان سره کفاره د هغه ګناه د لیرې کولو لپاره نه سي متعیّنول کېدای کوم چې اعلیٰ ده یعني کومه ګناه چې په قتلِ عمد سره ثابتیږي، نو ځکه په دې حواله سره هم په قتلِ عمد کې کفاره نه واجبیږي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الفرائض، باب رقم:٨، حديث رقم:٢٧٣٥. (احسن الهدايه)

ومن حكمه إلخ: فرمايي د قتلِ عمد يو حكم دا هم دى چي قاتل د خپل مقتول مورث له ميراث څخه محروميږي (يعني كه څوک خپل مورث [پلار وغيره] قتل كړي. نو له ميراثه يې محروم ګرځي) او د هغه محروم كېدل په دې حديث سره ثابت دي " چي د قاتل لپاره ميراث نسته".

## د قتلِ شبه عمد تعريف او تفصيل

قَالَ: وَشِبْهُ الْعَمَدِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ فرمايي: او قتلِ شبه عمد دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا دى أَنْ يَتَعَمَّدَ الضَّرْبَ بِمَا لَيْسَ بِسِلَاحٍ وَلَا مَا أُجْرِيَ مَجْرَى السِّلَاحِ چي قاتل په داسي شي سره د وهلو قصد وكړي كوم چي نه وسله وي او نه د وسلې قائم مقام وي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي او همدا دامام شافعي رَحِمَهُ الله قول [هم] دى إِذَا ضَرَبَهُ بِحَجَرٍ عَظِيْمٍ أَوْ بِخَشَبَةٍ عَظِيْمَةٍ چي كله قاتل په لويه ډبره يا په لوى لرګي سره انسان ووهي فَهُوَ عَمَدٌ نو دا قتلِ عمد دى وَشِبْهُ الْعَمَدِ أَنْ يَتَعَمَّدَ ضَرْبَهُ بِمَا لَا يُقْتَلُ بِهِ غَالِبًا او شبهِ عمد دا دى چي قاتل په داسي شي سره انسان ووهي چي عموماً په هغه سره قتل نه كول كيږي لِأَنَّهُ يَتَقَاصَرُ مَعْنَى الْعَمَدِيَّةِ ځكه چي [په دې صورت كي] د عمد والي معنىٰ قاصره كيږي بِاسْتِعْمَالِ آلَةٍ صَغِيْرَةٍ لَا يُقْتَلُ بِهَا غَالِبًا د داسي كوچنۍ آلې په استعمالولو سره چي عموماً په هغه سره قتل نه كول كيږي لِمَا أَنَّهُ يُقْصَدُ بِهَا غَيْرُهُ كَالتَّأْدِيْبِ وَنَحْوِهِ ځكه په هغه [آلهٔ صغيره] سره له قتل څخه بغير د ادب وركولو او داسي نورو اراده كيږي فَكَانَ شِبْهَ الْعَمَدِ نو ځكه دا به شبهِ عمد وي وَلَا يَتَقَاصَرُ بِاسْتِعْمَالِ آلَةٍ لَا تَلْبَثُ او د عمديت معنىٰ د داسي آلې په استعمال سره نه قاصره كيږي كوم چي ونه دريږي [او له وژلو څخه بغير انسان نه پرېږدي] لِأَنَّهُ لَا يُقْصَدُ بِهِ إِلَّا الْقَتْلُ ځكه چي په هغه سره صرف د قتل اراده كيږي كَالسَّيْفِ لكه توره فَكَانَ عَمَدًا مُوْجِبًا لِلْقَوَدِ نو ځكه دا [قتل بآلةٍ لاتلبث] به قتلِ عمد وي كوم چي د قصاص واجبونكى دى.

**اللغات:** ﴿أُجري مجرى﴾ مخكي ذكر سوه چي كله دغه دوې صيغې يو ځاى سره ذكر سي، نو معنىٰ يې ده: قائم مقام كېدل. ﴿يتقاصر﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: قاصر او ناقص كېدل. كم كېدل. ﴿تأديب﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: ادب وربښوول. سمول (سمي لارې ته راواستل). ﴿لاتلبث﴾ د سمع د باب نفي صيغه ده: درېدل. درنګ كول.

**تشريح**: د قتلِ عمد له بيان څخه تر فراغت وروسته اوس له دې ځايه د قتل دويم قسم يعني قتل شبه عَمَد بيانوي، د قتلِ شبه عمد په تعريف کې د علماؤ اختلاف دی. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د قتلِ شبه عمد تعريف دا دی چې که قاتل قصداً په داسې شي سره مقتول وهلی وي کوم چې نه وسله وي او نه د وسلې قائم مقام وي، مثلاً په لرگي او ډانگ سره يې انسان ووهلی چې د هغه په وجه انسان مړ سو. نو داسې قتل ته "قتلِ شبه عمد" وايي. د صاحبينو او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز که قاتل په لويه ډبره يا لوی لرگي سره انسان ووهلی او هغه مړ سو، نو دا قتلِ عمد دی، او که په يو داسې شي سره يې ووهلی چې په هغه سره عموماً قتل نه کيږي، مثلاً په کوچنی لرگي او لکړه سره يې ووهلی او انسان مړ سو، نو دا قتل "قتلِ شبه عمد" دی؛ ځکه کوچنی لرگی وغيره عموماً د قتلولو لپاره نه استعماليږي. او د کوچنی آلې په ذريعه په قتلولو کې د عمديت په معنیٰ کې هم کمي راځي. همدارنگه دا ډول کوچنی آله عموماً له قتل څخه بغير د نورو مقاصدو مثلاً د انسان د تأديب او سمولو او د معمولي سزاگانو لپاره استعماليږي، نو ځکه په دې حواله سره هم په آلهٔ صغيره سره د وهلو په صورت کې که مضروب کس مړ سي، نو دا قتلِ شبه عمد دی.

**ولايتقاصر الخ**: اوس ذکر سوه چې د آلهٔ صغيره په استعمالولو سره د عُمديت په معنیٰ کې کمي راځي، لېکن که په آلهٔ صغيره سره مسلسل څوک ووهل سي او بيا هغه مړ سي، يا هغه داسې آله وي چې بغير له وژلو انسان نه پرېږدي لکه توره، نو دا قتلِ عمد دی، شبهه عمد نه دی؛ ځکه په داسې آله او وهلو سره د قتل اراده کول کيږي چې مضروب کس قتل سي، او ښکاره ده چې په کومه آله سره د انسان د وژلو اراده وسي، په هغه سره واقع کېدونکی مرگ به صرف د قتلِ عمد په حکم کې داخل وي. (احسن الهدايه)

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله نقلي او عقلي دليل

وَلَهُ قَوْلُهُ ﷺ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی «أَلَا إِنَّ قَتِيلَ خَطَإِ الْعَمَدِ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا خبردار! د خطاء عمد [شبهِ عمد] مقتول د دُرې او لکړې مقتول دی [يعني هغه کس چې په دُرې او لکړې سره قتل کړی سوی وي] وَفِيهِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ» او په هغه کې سل اوښان واجب دي وَلِأَنَّ الْآلَةَ غَيْرُ مَوْضُوعَةٍ لِلْقَتْلِ او ځکه چې دا آله [لکړه وغيره] خو نه د قتل لپاره وضع کړی سوې ده وَلَا مُسْتَعْمَلَةٌ فِيهِ او نه په قتل کې استعمالېدونکې ده إِذْ لَا يُمْكِنُ اِسْتِعْمَالُهَا عَلَى غِرَّةٍ

مَنْ ځکه د دې آلې استعمالول ممکن نه دي د هغه کس په غفلت کي اَلْمَقْصُوْدُ قَتْلُهٗ چې د هغه د قتل اراده سوې وي وَبِهٖ يَحْصُلُ الْقَتْلُ غَالِبًا او عموماً په همدې سره قتل واقع کيږي [أى (بالاستعمال على غِرّة مِن المقصود بالقتل) يحصل القتل غالبا، ولا يحصل ذلك إلا بآلة موضوعة للقتل كالسيف والسكين] فَقَصُرَتِ الْعَمْدِيَّةُ نَظَرًا إِلَى الْآلَةِ نو د آلې وطرف ته په کتولو سره عمديت [عمد کېدل] قاصر سوه فَكَانَ شِبْهُ الْعَمْدِ نو ځکه دا به قتلِ شبه عمد وي [نه قتلِ عمد] كَالْقَتْلِ بِالسَّوْطِ وَالْعَصَا الصَّغِيْرَةِ لکه په دُره او کوچنۍ لکړي سره قتل کول [چې شبهِ عمد دي].

**اللغات**: ﴿قتيل﴾ قتل کړی سوی، مقتل. ﴿غِـرَّة﴾ (بكسر الغين و تشديد الراء): غفلت، نـا خبري. ﴿قصرت﴾ د نصر له بابه د ماضي صيغه ده: قاصر او ناقص کېدل، کوتاه کېدل، کم کېدل.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز قتلِ شبه عمد هغه قتل دی چې په هغه کي قاتل په وسله يا د وسلې په قائم مقام شي سره مقتول وهلی نه وي، بلکي په لرگي، لکړه وغيره سره يې وهلی او وژلی وي، نو په دې هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا حديث دی "أَلَا إِنَّ قتيلَ خطإِ العمدِ قتيلُ السوط والعصا وفيه مائةٌ من الإبل" (يعني د شبه عمد مقتول هغه دی کوم چې په دُره او لکړه سره قتل سوی وي او په هغه کي سل اوښان واجب دي). په دې حديث سره امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې توگه دليل نيسي چې په دې کي مطلق "عصا" ذکر سوې ده (دا پکښي نسته چې هغه به لوی وي يا به کوچنۍ وي)، او "عصا" لرگي او لکړي (ډانګ) دواړو لره شامله ده، برابره ده هغه لوی وي او که کوچني وي، نو په دواړو سره قتل کول قتلِ شبه عمد دي، لهذا د شبهِ عمد په واقع کېدلو د کوچنۍ آلې شرط لگول د حديث پر اطلاق زياتوب کول دي کوم چې صحيح نه دي (لکه څرنگه چې صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د شبهِ عمد په تعريف کي د آلې کوچنۍ کېدل مؤثر منلي دي).

او په مذکوره حديث کي قتلِ شبهِ عمد په "قتل خطاء عمد" سره تعبير سوی دی، ځکه عمد خو په دې وجه ورته ويل سوي دي چې په هغه کي د قاتل قصد او اراده د قتل وي، او خطاء ځکه ورته ويل سوي دي چې قاتل په وسله يا د هغې په قائم مقام شي سره نه دی قتل کړی، نو په دې وجه د شبهِ عمد نوم خطاء عمد هم دی.

ولأن الآلة إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې په لرگي، لکړه وغيره سره قتلول په دې وجه هم شبهِ عمد دي چې لرگی وغيره خو نه د قتل کولو لپاره جوړ سوي دي او نه

هغوی د قتل په نیت استعمالول کیږي. په بله وینا دا چې دا شیان وسله (سلاح) نه ده: ځکه وسله هغه شي ته وایي چې د انسان د غفلت په حالت کې په هغه سره د انسان وژل ممکن وي او چې په هغه سره ناڅاپه وار وسي او وهل سوی کس مړ سي او دا مرګ په یوه یا دوو وارو سره واقع کیږي. حال دا چې په لرګي. ډانګ وغیره سره د غفلت په حالت کې د انسان وژل ممکن نه دي: ځکه یو، دوه واره په لرګي د انسان په وهلو سره مرګ نه واقع کیږي بلکې سمدستي هغه وهل سوی کس له غفلت څخه وځي او د مقابلې او ځان ژغورنې لپاره درېږي. نو ځکه په لرګي وغیره سره چې کوم قتل او مرګ واقع سي. په هغه کې به د عمدیت معنیٰ قاصره وي. او ښکاره ده چې کله د عمدیت په معنیٰ کې قصور او کمي وي، نو په لرګي وغیره سره قتلول به قتل عمد نه وي بلکې شبهه عمد به وي. لکه څرنګه چې په دُره سره قتلول قتل شبه عمد دي، نو همداسي به دا هم شبه عمد وي. (احسن الهدایه)

## د قتل شبه عمد موجب او حکم

قَالَ: وَمُوجَبُ ذٰلِكَ عَلَى الْقَوْلَيْنِ الْإِثْمُ فرمایي: او د دواړو قولونو مطابق د هغه [قتل شبه عمد] موجب ګناه ده لِأَنَّهُ قَتَلَ وَهُوَ قَاصِدٌ فِي الضَّرْبِ ځکه قاتل په داسي حال کي قتل کړی دی چي هغه په وهلو سره [د قتل] اراده کونکی دی وَالْكَفَّارَةُ او [د شبه عمد موجب] کفاره [هم] ده لِشَبَهِهِ بِالْخَطَأِ ځکه چي هغه د قتل خطاء مشابه ده وَالدِّيَةُ مُغَلَّظَةٌ عَلَى الْعَاقِلَةِ او [د شبه عمد موجب] پر عاقله وو دیت مغلظه [هم] دی وَالْأَصْلُ أَنَّ كُلَّ دِيَةٍ وَجَبَتْ بِالْقَتْلِ ابْتِدَاءً او قاعدهٔ کلیه دا ده چي هر هغه دیت کوم چي په قتل سره ابتداءً [سمدستي] واجب سي لَا بِمَعْنًى يَحْدُثُ مِنْ بَعْدِ نه د داسي معنیٰ [سبب] په وجه کوم چي [تر قتل] وروسته پیدا سي [یعني د بعد القتل پیدا کېدونکي سبب په وجه واجب نه سي] فَهِيَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو داسي دیت پر عاقله وو دی اِعْتِبَارًا بِالْخَطَأِ پر قتل خطاء په قیاس کولو سره وَتَجِبُ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ لِقَضِيَّةِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ ؓ او دا دیت په دریو کالو کي واجب دی د عمر بن الخطاب ؓ د فیصلې په وجه [چي عاقله به یې په دریو کالو کي دننه اداء کوي] وَتَجِبُ مُغَلَّظَةً او دا دیت په مغلظه توګه واجب دی وَسَنُبَيِّنُ صِفَةَ التَّغْلِيظِ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او د مغلظه والي صفت [او وضاحت] به موږ ان شاء الله ژر بیان کړو [په کتاب الدیات کي] وَيَتَعَلَّقُ بِهِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ او د هغه [قتل شبه عمد] سره د میراث محرومتیا هم متعلق کیږي لِأَنَّهُ جَزَاءُ الْقَتْلِ ځکه چي دا [د

میراث محرومتیا] د قتل سزا ده وَالشُّبْهَةُ تُؤَثِّرُ فِي سُقُوطِ الْقِصَاصِ دُونَ حِرْمَانِ الْمِيرَاثِ او شبهه [صرف] د قصاص په ساقطېدو کې اثر کوي، نه د میراث په محرومتیا کې وَمَالِكٌ وَإِنْ أَنْكَرَ مَعْرِفَةَ شِبْهِ الْعَمَدِ او امام مالک رَحِمَهُ الله که څه هم د شبه عمد د پېژندني انکار کړی دی [چې قتلِ شبه عمد نشته] فَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا أَسْلَفْنَاهُ خو د هغه په خلاف هغه [حدیث] حجت دی کوم چې مونږ مخکې بیان کړی دی.

**اللغات**: ﴿مُوجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی (څه چې دیو شي په وجه واجبېدونکي او لازمېدونکي وي)، حکم، مقتضا، نتیجه، ﴿دية﴾ خون بها، هغه مال چې قاتل یې د مقتول وارثانو ته ورکوي، ﴿مغلظة﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: سخت، سنګین، ﴿عاقلة﴾ د قاتل متعلقین (اهل دیوان وغیره) او د هغه نژدې قومیان (خاندان والا)، ﴿حرمان﴾ د کرُم د باب مصدر دی: محروم کېدل (محرومېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د قتل شبه عمد موجَب یعني د هغه حکم او سزا په شریعت کې ګناه او کفاره او دیت مغلظه دي، ګناه خو ځکه واجب ده چې په شبه عمد کې هم قاتل د قتل او ضرب قصد کوي او قصداً په ناحقه یو مسلمان قتلول لویه ګناه ده، لکه څنګه چې په آیت کې ذکر سوي دي: ﴿ومن یقتل مؤمنًا متعمدًا فجزاؤه جهنم إلخ﴾.

والكفارة إلخ: او د شبه عمد سره د کفارې د واجبېدلو دلیل دا دی چې د قتل د آلې وطرف ته په کتلو سره شبه عمد د قتلِ خطاء مشابه دی او په قتلِ خطاء کې پر قاتل دیت واجبیږي، نو ځکه په شبه عمد کې به هم پر هغه دیتِ مغلظه واجب وي چې هغه به د قاتل عاقله اداء کوي. (د مغلظه والي وضاحت به څه وروسته وسي).

د دیت واجبېدلو په هکله دلته دا قاعدهٔ کلیه تاسي په یاد لرئ! چې کوم دیت سمدستي د قتل په وجه واجب سي او داسي نه وي چې وروسته د صلح وغیره په نتیجه کې ثابت سي، د هغه اداء کول د قاتل د عاقله وو پر ذمه واجب دي، او څرنګه چې قتلِ شبه عمد د قتلِ خطاء مشابه دی چې په هغه کې سمدستي دیت واجبیږي، نو ځکه په شبهِ عمد سره واجبېدونکی دیت به هم د قاتل د عاقله وو پر ذمه واجب وي او همدا عاقله به هغه اداء کوي.

وتجب في ثلاث إلخ: فرمایي پر عاقله وو چې دا کوم دیت واجب دی، د هغه ادائینه به په درېو کالو کې کیږي چې عاقله به په درېو کالو کې دننه هغه ټوله اداء کوي؛ او د درېو کالو دا موده له حضرت عمر رضي الله عنه څخه نقل سوې ده چې هغه په دومره موده کې د دیت اداء کولو حکم صادر کړی وو.

ويتعلّق به حرمان الميراث إلخ: فرمايي د قتلِ عمد په څېر په قتلِ شبه عمد کي هم قاتل د خپل مقتول مورث له ميراث څخه محروميږي؛ ځکه مخکي زموږ له طرفه ذکر سوی حديث "لا ميراث لقاتل" عام دی او د قتل ټولو قسمونو لره شامل دی.

او هغه حديث کوم چي موږ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په دليل کي ذکر کړی دی يعني "ألاإن قتيل خطإ العمد إلخ" دا د امام مالک رَحِمَهُ الله د هغه قول په خلاف حجت دی چي په هغه کي يې د شبه عمد انکار کړی دی او وېلي يې دي چي زما په نېز د قتل صرف دوه قسمونه دي: ① قتلِ عمد. ② قتلِ خطاء. حال دا چي په مخکيني بيان سره دا څرګنده او ثابته سوه چي قتلِ شبه عمد هم د قتل له اقسامو څخه دی.

په شبه عمد کي له ميراث څخه د قاتل د محرومېدلو عقلي دليل دا دی چي له ميراثه محرومېدل (حرمان ارث) د قتل جزاء او سزا ده، او څرنګه چي په شبهِ عمد کي قتل موجود دی، نو ځکه قاتل به د خپل مقتول مُورث له ميراثه محروميږي..

پاته سو دا سوال چي په شبهِ عمد کي خو شبه موجوده ده، نو ځکه په دې قتل کي وارث يعني قاتل له ميراثه نه محرومېدل پکار دي؟، د دې جواب دا دی چي دلته چي کومه شبه ده هغه صرف له قصاص څخه مانع ده، له حرمان ارث څخه مانع نه ده، نو ځکه په قتلِ شبه عمد کي قصاص ساقط دی لېکن له ميراثه محرومېدل هغسي باقي دي. (احسن الهدايه)

## د قتلِ خطاء د دوو قسمونو تفصيلي بيان

قَالَ: وَالْخَطأُعَلىٰ نَوْعَيْنِ فرمايي: او قتلِ خطاء پر دوه قسمه دی خَطأٌفِي الْقَصْدِ ① [يو قسم] قتلِ خطاء فی القصد دی وَهُوَأَنْ يَرْمِيَ شَخْصًا يَظُنُّهُ صَيْدًا او هغه دا دی چي داسي شخص وويلي چي پر هغه يې د ښکار ګومان وي [يعني د ښکار په ګومان يو شی وويلي] فَإِذَا هُوَ آدَمِيٌّ خو [که ګوري] هغه انسان وي أَوْيَظُنُّهُ حَرْبِيًا يا پر هغه يې د حربي ګومان وي فَإِذَاهُوَمُسْلِمٌ خو هغه مسلمان وي وَخَطأٌ فِي الْفِعْلِ ② او [بل قسم] قتلِ خطاء فی الفعل دی وَهُوَأَنْ يَرْمِيَ غَرَضًا او هغه دا دی چي يو نښان [نښه] وويلي فَيُصِيبَ آدَمِيًا خو هغه [غشی وغيره] پر انسان ولګيږي وَمُوجَبُ ذٰلِكَ الْكَفَّارَةُ وَالدِّيَةُعَلَى الْعَاقِلَةِ او د قتلِ خطاء موجب کفاره او پر عاقلة وو ديت دی لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: ﴿فَتَحْرِيرُ

رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي : [چي د قتلِ خطاء پر قاتل] يوه مؤمنه رقبه آزادول [واجب] دي وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ﴾ [النساء: ۹۲] او [بل] ديت [واجب] دی کوم چي به د مقتول کورنی ته سپارل کيږي وَهِيَ عَلَىٰ عَاقِلَتِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ او دا ديت د قاتل پر عاقله وو په دريو کالو کي [واجب] دی لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَلَا إِثْمَ فِيهِ يَعْنِي فِي الْوَجْهَيْنِ او په قتلِ خطاء کي يعني [د هغه] په دواړو صورتونو [قسمونو] کي ګناه نسته قَالُوْا: الْمُرَادُ إِثْمُ الْقَتْلِ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي : چي مراد د قتل ګناه ده [يعني د قصداً قتل او قصد چي کومه ګناه ده. هغه نسته] فَأَمَّا فِي نَفْسِهٖ فَلَا يَعْرَىٰ عَنِ الْإِثْمِ کوم چي نفسِ قتل دی نو هغه له ګناه څخه خالي نه دی مِنْ حَيْثُ تَرْكُ الْعَزِيْمَةِ د عزيمت پرېښوولو په حيثيت سره [چي هغه په عزيمت عمل نه دی کړی] وَالْمُبَالَغَةِ فِي التَّثَبُّتِ فِي حَالِ الرَّمْيِ او د ويشتلو په حالت کي په ثابت پاتېدلو [احتياط کولو] کي د مبالغې د پرېښوولو په حيثيت سره [چي د غشي ويشتلو په وخت کي چي د کومي درجې احتياط کول پکار دي، هغه يې هم پرې اينبی دی] إِذْ شَرْعُ الْكَفَّارَةِ يُؤْذِنُ بِاعْتِبَارِ هٰذَا الْمَعْنَىٰ ځکه د کفارې مشروعيت د دې معنىٰ [ګناه] د معتبر کېدلو خبر ورکوي وَيُحْرَمُ عَنِ الْمِيْرَاثِ او دا قاتل له ميراثه [هم] محروميږي لِأَنَّ فِيهِ إِثْمًا ځکه چي په دې [قتلِ خطاء] کي ګناه سته فَيَصِحُّ تَعْلِيقُ الْحِرْمَانِ بِهِ نو پر هغه د ميراث محروميتيا مُعلق کول صحيح دي بِخِلَافِ مَا إِذَا تَعَمَّدَ الضَّرْبَ مَوْضِعًا مِنْ جَسَدِهٖ په خلاف د هغه صورت کله چي قاتل د هغه د بدن پر يوه ځای د وهلو [او ويشتلو] اراده وکړي فَأَخْطَأَ فَأَصَابَ مَوْضِعًا آخَرَ لیکن هغه [غشی وغيره] خطا سي او پر بل ځای ولګېږي فَمَاتَ بيا هغه [مضروب کس] مړ سي حَيْثُ يَجِبُ الْقِصَاصُ نو [په دې صورت کي] قصاص واجبيږي لِأَنَّ الْقَتْلَ قَدْ وُجِدَ ځکه چي قتل موجود سو بِالْقَصْدِ إِلَىٰ بَعْضِ بَدَنِهٖ د هغه [مضروب] د بدن بعضې حصې ته د قصد کولو په وجه [يعني ځکه چي قاتل د هغه د بعضې حصې د ويشتلو قصد کړی دی] وَجَمِيْعُ الْبَدَنِ كَالْمَحَلِّ الْوَاحِدِ او ټوله بدن د يوه ځای په څېر دی [ټوله بدن محلِ واحد دی].

**اللغات**: ﴿القصد﴾ د نصر د باب اسم مصدر دی: اراده. ﴿يرمي﴾ د ضرب د باب مضارع ده: غشی وغيره غورځول، ویشتل. ﴿غرضًا﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: نښه. نښان (نښانه)، هدف. ﴿يؤذن﴾ د افعال د باب مضارع ده، مراد: خبر ورکول. ﴿عزيمة﴾ لغوي معنیٰ يې ده: پخه اراده (ټينګه اراده). اصطلاحي معنیٰ يې ده: اصل مشروع. صاحب د تعريفات د عزيمت اصطلاحي معنیٰ داسې ذکر کړې ده: "وفي الشريعة اسم لما هو أصل المشروعات غير متعلق بالعوارض". او صاحب د معجم لغة الفقهاء داسې ويلي دي: "الحکم الثابت بدليل خالٍ من معارض راجح". ﴿أصاب﴾ د افعال د باب ماضي ده: رسېدل. لګېدل. ﴿محل﴾ ځای. د حلول او شوه کېدلو ځای.

**تشریح**: په دې عبارت کې د قتلِ خطاء په هکله بحث سوی دی. تر ټولو مخکې تاسې دا په ياد لرئ! چې د قتلِ خطاء دوه قسمونه دي: ① خطاء في القصد. ② خطاء في الفعل.

خطاء في القصد دا ده چې د انسان په قصد او اراده کې غلطي واقع سي، مثلاً څوک د ښکار په ګومان يو انسان په غشي وغيره سره وويلي يعني د هغه ګومان وي چې دا د ښکار حيوا دی لېکن که ګوري هغه انسان وي، يا يو څوک د حربي په ګومان مسلمان وويلي، نو دا د قصد او ارادې خطاء ده.

خطاء في الفعل دا ده چې څوک پر ښکار غشی ور ايله کړي، لېکن د ښکار پر ځای هغه پر يو انسان ولګيږي، نو دا د فعل يعني د غشي ويشتلو غلطي ده چې دې ته خطاء في الفعل وايي.

د دې دواړو قسمونو حکم دا دی چې په دوی کې کفاره هم واجبيږي او د قاتل پر عاقله وو ديت هم واجبيږي چې هغه به په دريو کالو کې دننه عاقله اداء کوي. لکه مخکې چې د حضرت عمر رضي الله عنه په اثر سره د دې دليل بيان سو. او د کفارې واجبېدلو دليل د قرآن کريم دا آيت دی ﴿ومن قتل مؤمنًا خطأً فتحرير رقبةٍ مؤمنةٍ وديةٌ مسلّمةٌ إلى أهله إلخ﴾ (يعني څوک چې په غلطي سره يو مسلمان قتل کړي، د هغه بدله يو مؤمن غلام آزادول دي او د مقتول مسلمان کورنۍ ته ديت ورسپارل دي).

ولاإثم فيه إلخ: فرمايي چې په قتلِ خطاء کې پر قاتل ګناه نسته، يعني کوم چې د قصد ګناه ده (ځکه د هغه قصد او اراده د قتل نه ده)؛ ځکه د ګناه لپاره قصد صحيح ضروري دی او دلته په قصد کې خلل دی. نو په دې حواله سره ګناه خو نسته، لېکن د نفس د قتل ګناه هغه په هر حال کې سته. ځکه قاتل په عزيمت باندې عمل نه دی کړی او د غشي غورځولو په وخت کې چې د کومې درجې احتياط کول پکار دي، هغه يې نه دی کړی، نو ځکه د نفس قتل ګناه پر هغه سته؛ ځکه که ګناه نه وای نو پر قاتل به کفاره هم واجب نه وای، لهذا د کفارې مشروع کېدل او واجبېدل د دې ښکاره دليل دی چې په قتلِ خطاء کې هم ګناه سته.

ويحرم عن الميراث إلخ: څرنګه چي په قتلِ خطاء کي ګناه سته. نو همداسي په هغه کي قاتل د خپل مقتول مُورث له ميراثه محروميږي هم؛ ځکه ګناه او له ميراثه محرومېدل دواړه يو ځای جاري کيږي.

بخلاف ما إذا تعمد إلخ: د دې تعلق د متن د دې جملې سره دی "و موجب ذٰلك الكفارة والدية".
حاصل يې دا دی چي که څوک پر معلوم اندام د انسان د وهلو يا ويشتلو قصد وکړي لېکن هغه پر بل ځای ولګيږي، مثلاً قصداً د انسان پر پښو غشی ور ايله کړي لېکن غشی د انسان پر سينه ولګيږي او هغه مړ سي، نو په دې صورت کي هم پر ويشتونکي کس قصاص واجبيږي؛ ځکه دلته که څه هم د هغه قصد غلط سوی دی، خو څرنګه چي د هغه له طرفه د بدن د يوې حصې (پښو) د ويشتلو قصد موجود دی او د انسان ټوله بدن د محلِ واحد په څېر دی (او دې محل ته د هغه قصد ثابت سو). نو په دې قتل کي د عمد معنیٰ موجوده سوه او قتلِ عمد د قصاص موجب دی. نو ځکه دلته به هم پر قاتل قصاص واجب وي. (احسن الهدايه)

## د قتلِ خطاء قائم مقام او د قتل بالسبب بيان

قَالَ: وَمَا أُجْرِيَ مَجْرَى الْخَطَإِ فرمايي: او هغه قتل کوم چي د قتلِ خطاء قائم مقام دی مِثْلُ النَّائِمِ يَنْقَلِبُ عَلٰى رَجُلٍ فَيَقْتُلُهُ [هغه] لکه بيده کس چي پر يو سړي را واړي او قتل يې کړي فَحُكْمُهُ حُكْمُ الْخَطَإِ فِي الشَّرْعِ نو په شريعت کي د هغه حکم د قتلِ خطاء حکم دی وَأَمَّا الْقَتْلُ بِسَبَبٍ او کوم چي قتل بالسبب دی كَحَافِرِ الْبِئْرِ وَوَاضِعِ الْحَجَرِ فِي غَيْرِ مِلْكِهِ [هغه] لکه د بل چا په ملکيت [ځمکه] کي څاه کيندونکی او ډبره ايښوونکی کس وَمُوجَبُهُ إِذَا تَلِفَ فِيهِ آدَمِيٌّ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او د قتل بالسبب موجَب دا دی چي که په هغه کي سړی مړ سي [نو] پر عاقله وو ديت دی لِأَنَّهُ سَبَبُ التَّلَفِ ځکه چي دا [حفر او وضع الحجر] د تلف کېدلو سبب دی وَهُوَ مُتَعَدٍّ فِيهِ او هغه [حافر او واضع] په دې کي تعدی کونکی دی فَأُنْزِلَ مُوْقِعًا دَافِعًا نو ځکه هغه به د ور اچونکي او د ورپوري وهونکي کس په درجه کرځول کيږي [يعني حافر او واضع حجر به داسي وي لکه دوی چي خپله هغه سړی څاه ته اچولی يا پر ډبره يې ور پوري وهلي وي] فَوَجَبَتِ الدِّيَةُ نو ځکه ديت به واجبيږي.

**اللغات:** ﴿ينقلب﴾ د انفعال مضارع ده: اوښتل. ﴿حافر﴾ د ضرب د باب فاعل دی: (څاه) کيندونکی. کنبونکی. ﴿تلف﴾ د سمع ماضي ده: تلفېدل. ضايع کېدل. ﴿متعدّ﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدی

کونکی (تجاوز کونکی). نا حقه تصرف کونکی. ﴿مُوْقِعْ﴾ دافعال د باب فاعل دی: ور اچونکی (ور اینه کونکی). ﴿دافع﴾ د فتح د باب فاعل دی. مراد: ديکه ور کونکی، پوري وهونکی. تمبونکی.

**تشريح**: په دې عبارت کي د قتل دآخري دوو قسمونو يعني د قائم مقام خطاء او قتل بالسبب بيان سوی دی. نو فرمايي هغه قتل کوم چي د قتلِ خطاء قائم مقام وي مثال يې دا دی چي يو سړی بيده وي او د خوب په حالت کي پر بل کس را واوړي او هغه (بل کس) مړ سي. نو داسي قتل د قتلِ خطاء قائم مقام دی او د دې هاغه حکم دی کوم چي د قتلِ خطاء دی، او څرنګه چي په قتلِ خطاء کي پر قاتل کفاره او ديت واجبيږي او قاتل د مقتول له ميراثه محروميږي (که مقتول د هغه مورث وي). نو ځکه هغه قتل کوم چي د قتلِ خطاء قائم مقام دی، په هغه کي به هم پر قاتل کفاره او ديت دواړه واجبيږي او هغه به له ميراثه محروميږي.

وأما القتل بسبب إلخ: د قتل پنځم آخري قسم قتل بالسبب دی. يعني چي د يو سړي فعل د بل چا د قتل سبب وګرځي. مثلاً يو سړی د بل چا په ځمکه کي بغير د هغه له اجازې څاه وکيندي او په هغه کي يو کس ولوېږي او مړ سي. يا د بل چا په ځمکه کي بغير له اجازې غټه ډبره کښېږدي او بيا د ډبري سره يو څوک ټکر سني يا ډبره پر يو چا را واوړي او هغه مړ سي، نو دا قتل بالسبب دی او پر قاتل بالسبب يعني پر څاه کيندونکي او ډبره ايښوونکي باندي ديت واجبيږي چي هغه به د ده عاقله اداء کوي؛ ځکه که څه هم په دې صورتونو کي قاتل (يعني حافر او واضعِ حجر) بذات خود قتل نه دی کړی. خو بيا هم د مقتول کس د تلف کېدلو او مړ کېدلو سبب د هغه فعل (حفر او وضع حجر) دی. او هغه په دې فعل کي تعدی کونکی دی، نو داسي به ګڼل کيږي چي ګواکي هغه خپله دا کس څاه ته ور ايله کړی دی يا خپله يې د ډبري سره وهلی دی او څوک چي داسي وکړي او مرګ واقع سي. نو پر هغه ديت واجبيږي، لهذا څوک چي د داسي مرګ سبب جوړ سي، نو پر هغه به هم ديت واجبيږي.

**په قتل بالسبب کي کفاره او له ميراثه محرومېدل نسته او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف**

وَلَا كَفَّارَةَ فِيهِ وَلَا يَتَعَلَّقُ بِهِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ او په قتل بالسبب کي نه کفاره سته او نه د هغه سره ميراث محرومي متعلق کيږي [يعني پر قاتل بالسبب نه کفاره واجب ده او نه له ميراثه محروم کيږي] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُلْحَقُ بِالْخَطَإِ فِي أَحْكَامِهِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي قتل بالسبب به په ټولو احکامو کي د قتلِ خطاء سره لاحقول کيږي لِأَنَّ الشَّرْعَ أَنْزَلَهُ قَاتِلًا ځکه شريعت هغه د قاتل په درجه ګرځولی دی وَلَنَا: أَنَّ الْقَتْلَ مَعْدُومٌ مِنْهُ حَقِيقَةً زموږ دليل دا دی: چي د هغه له طرفه حقيتاً

قتل معدوم دی فَأُلْحِقَ بِهِ فِيْ حَقِّ الضَّمَانِ نو ځکه قتل بالسبب به د ضمان [دیت] په حق کي د قتلِ خطاء سره لاحقول کيږي فَبَقِيَ فِيْ حَقِّ غَيْرِهٖ عَلَى الْأَصْلِ نو له ضمان [دیت] څخه بغیر [ د بل حکم] په حق کي به هغه پر اصل باقي پاتيږي وَهُوَ اِنْ كَانَ يَأْثَمُ بِالْحَفْرِ فِيْ غَيْرِ مِلْكِهٖ او هغه [حافر...] که څه هم د بل چا په ملکيت کي د څاه کيندلو په وجه ګناهګاره کيږي لَا يَأْثَمُ بِالْمَوْتِ (لېکن د سړي) د مرګ په وجه نه ګنهګاره کيږي عَلٰى مَا قَالُوْا لکه څرنګه چي مشايخو ويلي دي وَهٰذِهٖ كَفَّارَةُ ذَنْبِ الْقَتْلِ او دغه [د قتل کفاره] د قتل د ګناه کفاره ده وَكَذَا الْحِرْمَانُ بِسَبَبِهٖ او همداسي له ميراثه محروم کېدل هم د ګناه په سبب سره دي وَمَا يَكُوْنُ شِبْهَ عَمَدٍ فِي النَّفْسِ او کوم قتل چي په نفس کي شبه عمد وي فَهُوَ عَمَدٌ فِيْمَا سِوَاهَا نو هغه له نفس څخه بغير [په اندامو] کي عمد دی لِأَنَّ اِتْلَافَ النَّفْسِ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْآلَةِ ځکه د نفس تلفېدل [قتلېدل] د آلې د بدلېدلو په وجه مختلف کيږي [چي د نفس قتل په وسله يا په قائم مقام د وسلې سره ثابتيږي. نه په غير وسله (لکړه وغيره) سره] وَمَا دُوْنَهَا لَا يَخْتَصُّ اِتْلَافُهٗ بِآلَةٍ دُوْنَ آلَةٍ او کوم چي له نفس څخه کم دي [يعني اندامونه] د هغه تلفېدل د يوې آلې نه بلي آلې سره مختص نه دي [بلکي په هره آله سره د هغوی اتلاف ثابتيږي. مثلاً سترګه چي څنګه په چاړه سره ايستل کيږي. همداسي په لکړه وغيره سره هم ايستل کيږي].

**اللغات:** ﴿يُلحق﴾ د افعال له بابه مضارع مجهوله ده: لاحقول. ور سره يو ځای کول. ﴿يأثم﴾ د فتح د باب مضارع ده: ګناهګاره کېدل. ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول. تلفېدل. ضايع کېدل. هلاکېدل.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي زموږ په نېز په قتل بالسبب کي صرف ديت واجب دی او په هغه کي کفاره او له ميراثه محرومېدل نشته. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د قتلِ خطاء په څېر په قتل بالسبب کي هم کفاره او له ميراثه محرومېدل واجب دي: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي شريعت حافر (څاه کيندونکی کس) او داسي نور د قاتل په درجه کرځولي دي او قاتل يې شمېرلي دي. او د قتل ادنیٰ درجه قتلِ خطاء ده. او په قتلِ خطاء کي (د امام شافعي په نېز) د ديت سره. سره کفاره او له ميراثه محرومي دواړه ثابتيږي او واجبيږي. نو ځکه په قتل بالسبب کي به هم دا ټوله حکمونه جاري کيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل جواب دا دی چي په قتل بالسبب کي د حافر له طرفه حقيقتاً قتل معدوم دی (يعني حقيقتاً براه راست هغه قتل نه دی کړی)، خو د هغه له طرفه صرف د قتل سبب موجود دی، نو د دې سبب په اعتبار کولو سره موږ د ديت واجبېدلو په هکله قتل بالسبب د قتلِ خطاء قائم مقام کړی دی او له ديت (ضمان) څخه بغير په نورو احکامو کي مو قتل بالسبب پر خپل اصل باقي پرې اينبی دی او ويلي مو دي چي په هغه کي د حافر له طرفه حقيقتاً قتل معدوم دی، او کله چي حقيقتاً قتل کول معدوم دي، نو ښکاره ده چي پر حافر به نه کفاره واجب وي او نه به هغه له ميراثه محروميږي.

وإن كان يأثم إلخ: د دې حاصل دا دی چي د قتل په وجه پر قاتل په هغه صورت کي کفاره واجبيږي او له ميراثه محروميږي، کله چي د هغه قتل په وجه پر قاتل گناه لازمه وي، او په دې (د حفر وغيره) په مسئله کي د قتل بالسبب په وجه پر حافر گناه نسته، بلکي د بل چا په ملکيت کي د څاه کيندلو په وجه هغه گناهکار سوی دی لکه څرنگه چي مشايخو ويلي دي، نو ځکه په دې حواله سره به هم پر حافر نه کفاره واجب وي او نه به له ميراثه محروميږي؛ ځکه د کفارې واجبېدل او له ميراثه محرومېدل د قتل پر گناه موقوف دي، او دلته پر حافر د قتل گناه سته نه، نو ځکه کفاره او د ميراث محرومي به هم لازم نه وي.

ومايكون شبه عمد إلخ: يو قتلول (وژل) دي او بل د اندامونو ماتول او غوڅول دي (چي د هغه بيان به وروسته راسي)، نو دلته مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د قتل له پنځو اقسامو څخه قتلِ عمد او قتلِ شبه صرف په قتلِ نفس کي جاري کيږي (يعني عمد کېدل او شبه عمد کېدل فقط د نفس قتل کولو په صورت کي متحقق کېدای سي)، لېکن نور د اندامونو د ماتولو او غوڅولو په هکله ټوله اقسام عمد شمېرل کيږي؛ ځکه دا خبره په قتلِ نفس کي خو جاري کيږي چي د هغه قصد او اراده د قتل وه که نه، لېکن په قطع اعضاء کي نه جاري کيږي؛ ځکه له نفس څخه بغير په نورو اندامونو کي هر ډول آله اثر کوي برابره ده هغه تېره وي او که پڅه وي، غټه وي او که کوچنۍ (صغيره) آله وي، دا هيڅ فرق نه لري: ځکه مثلاً سترگه چي څرنگه چي په توره او او چاړه سره ايستل کېدلای سي، هداسي په لکړه او ډانگ سره هم ايستل کېدای. نو ځکه د اندامونو په ضرب او قطع کي صرف عمد سته، شبهِ عمد نسته. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)



# بَابُ مَا يُوجِبُ الْقِصَاصَ وَمَا لَا يُوجِبُهُ

(دا) باب د هغه اُمورو (په بيان کي) دی کوم چي قصاص
واجبوي او کوم چي يې نه واجبوي

**تشريح**: مخکي تر دې مصنف رَحِمَهُ الله د قتل اقسام بيان کړل چي له هغوی څخه يو قسم قتل عمد هم دی کوم چي قصاص واجبوي، خو هغه هر وخت قصاص نه واجبوي، لهذا تفصيل ته ضرورت پېښ سو چي کله يې واجبوي او کله يې نه واجبوي؟، نو ځکه په دې باب کي عليحده د هغه تفصيل او تشريح بيانوي.

**د کوم چا د قتل قصاص واجب دی؟**

قَالَ: اَلْقِصَاصُ وَاجِبٌ بِقَتْلِ كُلِّ مَحْقُوْنِ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيْدِ فرمايي: قصاص د هر هغه کس د قتل په وجه واجب دی کوم چي په دايمي توګه [د همېشه لپاره] محفوظُ الدم وي إِذَا قُتِلَ عَمَدًا [په دې شرط] کله چي هغه عمداً قتل کړی سي أَمَّا الْعَمَدِيَّةُ فَلِمَا بَيَّنَّاهُ کوم چي عمد والی دی [چي قتلِ عمد به وي] نو د هغه دليل په وجه دی کوم چي موږ [مخکي] بيان کړی [يعني مخکينی حديث، آيت او عقلي دليل] وَأَمَّا حَقْنُ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيْدِ او کوم چي په دايمي توګه محفوظُ الدم کېدل دي فَلِتَنْتَفِيَ شُبْهَةُ الْإِبَاحَةِ نو هغه په دې وجه دي چي [ددَم (وينې)] د مباح کېدلو شبهه ختمه سي وَتَتَحَقَّقَ الْمُسَاوَاةُ او مساوات ثابت سي.

**اللغات**: ﴿محقون﴾ د نصر د باب مفعول دی. حَقَنَ يَحْقُنُ حَقْنًا: د دې باب په صله کي چي دَم (وينه) ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: وينه له توېيدو څخه ساتل، د چا د وينې او نفس حفاظت کول. نو د محقون الدم معنیٰ ده: هغه کس چي د هغه وينه او نفس محفوظ وي. ﴿على التأبيد﴾ په ابدي (دايمي) توګه. د همېشه لپاره. ﴿حقن الدم﴾ د وينې حفاظت. ﴿تنتفي﴾ د افعال د باب مضارع ده: نفي کېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک قصداً (په قصده) داسي کس قتل کړي کوم چي په دايمي توګه محفوظُ الدم وي يعني د هغه وينه توېيول د همېشه لپاره محفوظه او غير مباح وي او د هغه د قتل هيڅ شرعي وجه نه وي، نو پر قاتل قصاص واجبيږي. مثلاً که څوک قصداً مسلمان يا ذمي

قتل کړي، نو څرنګه چې مسلمان او ذمي دواړه په دایمي توګه محفوظ الدم دي (ځکه د ذمي اماڼ هم دایمي دی)، نو ځکه د دوی پر قاتل به قصاص واجب وي.

أما العمدية إلخ: امام قدوري رَحِمَهُ الله دلته دوه شرطونه لګولي دي: (۱) عمد کېدل چې قتلِ عمد به وي. دا شرط یې ځکه لګولی دی چې صرف همدا قتلِ عمد قصاص واجبوي لکه مخکې چې په حدیث "العَمَدُ قَوَدٌ" سره د دې وضاحت سو. (۲) په دایمي توګه محفوظ الدم کېدل چې مقتول به داسي کس وي چې د هغه وینه تو پېول به د همېشه لپاره غیر مباح وي؛ د دغه شرط لګولو دوې وجهې دي: ① که دا شرط نه وي نو د مقتول د مباح الدم کېدلو شبهه به پاته سي، او تاسي ته معلومه ده چې په شبهې سره سمدستي قصاص ساقطیږي. ② او د دغه شرط لګولو بله وجه دا ده چې په دې شرط سره د مقتول او قاتل تر مینځ مساوات ثابت سي چې کله مقتول محفوظُ الدم دی نو د هغه په بدله کي به محفوظُ الدم قاتل هم قتلول کیږي. لهذا په دې حواله سره به په قاتل او مقتول کي مساوات راسي او کما حقهٔ به قصاص ثابت سي. (احسن الهدایه)

## آزاد او غلام یو د بل په بدله کي قصاصاً قتلول (حکم او تفصیل او د شوافعو اختلاف)

قَالَ: وَيُقْتَلُ الْحُرُّ بِالْحُرِّ فرمایي: او قتلول کیږي به آزاد کس د آزاد په عوض کي وَالْحُرُّ بِالْعَبْدِ او آزاد کس د غلام په عوض کي لِلْعُمُوْمَاتِ د عامو نصوصو په وجه [یعني هغه آیتونه او حدیث چې په هغوی کښي عموم دی] وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يُقْتَلُ الْحُرُّ بِالْعَبْدِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چې آزاد کس به د غلام په عوض کي نه قتلول کیږي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾[البقرة: ۱۷۸] ځکه الله تعالیٰ فرمایلي دي: [چې قتلول کیږي به] آزاد د آزاد په بدله کي او غلام د غلام په بدله کي [یعني په دې آیت کي آزاد د آزاد په مقابله کي ذکر سوی دی او غلام د غلام...] وَمِنْ ضَرُوْرَةِ هٰذِهِ الْمُقَابَلَةِ أَنْ لَا يُقْتَلَ حُرٌّ بِعَبْدٍ او د دغه مقابلې له ضرورت څخه دا خبره ده چې آزاد د غلام په بدله کي قتل نه کړی سي [یا په بله وینا دا چې د دغه تقابل او مقابلې د لوازماتو څخه دا دي چې آزاد به د غلام په قصاص کي نه قتلول کیږي] وَلِأَنَّ مَبْنَى الْقِصَاصِ عَلَى الْمُسَاوَاةِ او ځکه د قصاص دار ومدار پر مساوات دی وَهِيَ مُنْتَفِيَةٌ بَيْنَ الْمَالِكِ وَالْمَمْلُوْكِ او مساوات د مالک او مملوک تر مینځ منتفي [او معدوم] دی وَلِهٰذَا لَا يُقْطَعُ طَرَفُ الْحُرِّ بِطَرَفِهِ په همدې وجه د آزاد کس اندام د غلام د اندام په بدله کي

نه پرېکول کېږي بِخِلَافِ الْعَبْدِ بِالْعَبْدِ په خلاف د غلام په بدله کي غلام لِأَنَّهُمَا يَسْتَوِيَانِ ځکه دوی دواړه سره برابر دي وَبِخِلَافِ الْعَبْدِ حَيْثُ يُقْتَلُ بِالْحُرِّ او په خلاف د غلام چي هغه به د آزاد په بدله کي قتلول کېږي لِأَنَّهُ تَفَاوُتٌ إِلَى نُقْصَانٍ ځکه چي دا [له مساوات څخه] د نقصان [کموالي] وطرف ته تفاوت دی [ځکه غلام په درجه کي له آزاد څخه کم دی] وَلَنَا: أَنَّ الْقِصَاصَ يَعْتَمِدُ الْمُسَاوَاةَ فِي الْعِصْمَةِ او زموږ دليل دا دی: چي قصاص د عصمت پر مساوات اعتماد کوي [يعني د قصاص دارومدار د عصمت پر مساوات دی چي په عصمت (د حفاظت په حق) کي به يو د بل سره برابر وي] وَهِيَ بِالدِّينِ وَبِالدَّارِ او عصمت په دين سره وي يا په دار الاسلام سره وي وَيَسْتَوِيَانِ فِيهِمَا او آزاد او غلام په دې دواړو [دين او دار الاسلام] کي سره برابر دي وَجَرَيَانُ الْقِصَاصِ بَيْنَ الْعَبْدَيْنِ يُؤْذِنُ بِانْتِفَاءِ شُبْهَةِ الْإِبَاحَةِ او د دوو غلامانو تر مينځ د قصاص جاري کېدل د اباحة الدم د شبهي د منتفي کېدلو خبر ورکوي وَالنَّصُّ تَخْصِيصٌ بِالذِّكْرِ او نص [آيت] په ذکر سره تخصيص دی [يعني په دې آيت ﴿الْحُرُّ بِالْحُرِّ الخ﴾ کي چي کوم کسان ذکر سوي دي. دا آيت صرف د هغو سره خاص دی] فَلَا يَنْفِي مَا عَدَاهُ نو دا به له مذکور [مذکوره کسانو] څخه بغير د نورو [الحر بالعبد] نفي نه کوي.

**اللغات**: ﴿عمومات﴾ (د قرآن او حديث) عام نصوص چي په هغوی کي هيڅ قيد يا تخصيص نسته.

﴿مملوک﴾ د ضرب د باب مفعول دی: (د بل چا) تر ملکيت لاندي، په ملکيت کي داخل. ﴿منتفية﴾ د افتعال د باب فاعل دی: نفي کېدونکی، معدوم او غير موجود. ﴿طرف﴾ مراد: عضو، اندام.

﴿العصمة﴾ محفوظيت (محفوظ کېدل) او ممنوعيت، د حفاظت حق.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي که يو آزاد کس بل آزاد کس قتل کړي يا غلام قتل کړي. نو زموږ په نېز قاتل يعني آزاد به قصاصاً قتلول کېږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز که قاتل آزاد وي او مقتول غلام وي، نو آزاد به د غلام په بدله کي قصاصاً نه قتلول کېږي. بلکي پر آزاد کس د ضمان (تاوان) په توګه د غلام قيمت واجبېږي، همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول هم دی (لنډه دا چي زموږ او د امام شافعي وغيره اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي قاتل آزاد وي او مقتول غلام وي. او که دې برعکس وي يا دواړه غلامان وي يا دواړه آزاد وي. نو په دې هر صورت کې بالاتفاق قصاص سته. اختلاف فقط په مذکوره صورت کي دی چې قاتل آزاد کس وي او مقتول غلام وي).

زموږ دليل د هغه آيتونو او حديث عموم دی چې په هغوی کې مطلقاً د قصاص اخيستلو حکم سوی دی او د قاتل له مقتول څخه هيڅ بحث نه دی سوی چې هغه به غلام وي يا به آزاد وي. چې هغه دا آيتونه دي کوم چې مخکي ذکر سوه: ﴿کُتِبَ عليكم القصاص فی القتلیٰ﴾ او ﴿و کتبنا عليهم فيها أن النفس بالنفس﴾، او دا حديث "العَمد قَوَدٌ"، تاسي او ګورئ! دا آيتونه عام دي او په حديث کې هم عموم سته چې ټوله علی الاطلاق د قصاص پر اخيستلو دلالت کوي برابره ده مقتول آزاد وي او که غلام وي په هر صورت کې به له قاتل څخه قصاص اخيستل کيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا آيت دی ﴿الحرّ بالحرّ والعبد بالعبد﴾، هغه وايي چې په دې آيت کې الله تعالیٰ د آزاد په مقابله کې آزاد او د غلام په مقابله کې غلام ذکر کړی دی چې له دې مقابلې څخه همدا څرګنديږي چې د غلام په بدله کې به آزاد کس نه قتلول کيږي (ځکه دا د تقابل د لوازماتو څخه دي چې غير مقابل به د مقابل عوض نه ګرځول کيږي. او غلام د آزاد غير دی).

ولأن مبنی إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله عقلي دليل دی. حاصل يې دا دی چې د قصاص لپاره دا ضروري ده چې د قاتل او مقتول تر مينځ مساوات وي او د آزاد او غلام تر مينځ هيڅ مساوات نسته: ځکه آزاد کس مالک او قادر دی او غلام مملوک او عاجز دی. همدا وجه ده که آزاد کس د غلام يو اندام پرېکړي نو د هغه په بدله کې د آزاد اندام نه پرېکول کيږي؛ ځکه چې په دوی کې مساوات نسته. او په قصاص کې د مساوات رعايت نور هم زيات ضروري دی، نو په دې وجه به هم آزاد کس د غلام په قصاص کې نه قتلول کيږي.

وبخلاف العبد إلخ: دا پر امام شافعي رَحِمَهُ الله د يو اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چې که غلام يو آزاد کس قتل کړي نو غلام ولي د آزاد کس په قصاص کې قتلول کيږي (يعني له غلام څخه ولي د آزاد قصاص اخيستل کيږي)، حال دا چې دلته هم په قاتل او مقتول کې مساوات نسته؟.

نو د دې په جواب کې امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې هو! په غلام او آزاد کې خو مساوات نسته، لېکن څرنګه چې دلته کمي او نقصان په قاتل کې دی چې هغه غلام دی، نه په مقتول کې. او په مخکيني صورت کې قصور او نقصان په مقتول کې وو، او په قاتل (غلام) کې چې کوم تفاوت او کمي ده، هغه له قصاص څخه مانع نه ده؛ ځکه کله چې غلام بل غلام قتل کړي نو قاتل غلام په قصاص کې قتلول کيږي، لهذا هغه چې يو آزاد کس قتل کړي نو په درجه اولیٰ به قتلول کيږي، ځکه د غلام په نسبت آزاد کس د قصاص زيات حقدار دی.

ولنا إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دليل جواب ورکول سوی دی. حاصل يې دا دی چې دا خبره موږ هم تسليموو چې په قصاص کې ضروري ده چې د قاتل او مقتول تر مينځ به مساوات وي، خو دا مساوات په عصمت کې ضروري دی (يعني په دوی چې کوم مساوات معتبر دی هغه د عصمت او حفاظتي حق مساوات دی) چې دواړه به معصوم او د حفاظت حقدار وي، او د عصمت حصول په اسلام او دار الاسلام سره کيږي، او دلته آزاد او غلام دواړه مسلمانان هم دي او په دارُالاسلام کې هم اوسيږي، لهذا دوی دواړه معصوم او د حفاظت حقدار دی او په دواړو کې مساوات سته.

وجريان القصاص إلخ: او په غلام کې د عصمت د ثبوت (چې غلام معصوم دی) يو دليل دا هم دی چې که يو غلام بل غلام قتل کړي، نو پر قاتل غلام بالاتفاق قصاص سته، لهذا که چيرې د مقتول غلام په عصمت کې څه شبه وای، نو د هغه پر قاتل به قصاص لازم نه وای، نو معلومه سوه چې د غلام په عصمت کې څه نقصان او کمي نسته.

والنص تخصيص إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د نقلي دليل (آيت) جواب دی، حاصل يې دا دی چې په ﴿الحُرُّ بِالْحُرِّ والعَبْدُ بِالْعَبْدِ﴾ کې چې آزاد کس د آزاد او غلام د غلام په مقابله کې ګرځول سوی دی. دا تقابل فقط د دې ذکر سوو کسانو سره خاص دی يعني په آيت سره مقصود خاص د دوی د حکم بيان دی، او په آيت کې د "الحر بالعبد" هيڅ ذکر نسته، نو دا تخصيص د غيرِ مذکور يعني د "الحر بالعبد" نفي نه کوي؛ ځکه دا د فقهي قاعده ده چې "تخصيصُ الشيء بالذکر لاينفي عما عداه" (په ذکر سر يو شی خاصول يعني خاص د يوه شي ذکر کول له هغه څخه بغير د نورو نفي نه کوي) او ځکه چې احناف د مفهومِ مخالف اعتبار نه کوي.

**يادونه:** علامه سيوطي رَحِمَهُ الله په درِ منثور کې مذکوره آيت منسوخ ګرځولی دی او د هغه ناسخ يې ﴿النَّفس بِالنَّفسِ...﴾ ذکر کړی دی، نو د دې تحقيق مطابق خو ګردسره په مذکوره آيت سره دليل نيول صحيح نه دي.

## مسلمان د ذمي په بدله کي قصاصاً قتلول (حکم او تفصيل او د شوافعو اختلاف)

قَالَ: وَالْمُسْلِمُ بِالذِّمِّيِّ فرمايي: او [قتلول کيږي به] مسلمان د ذمي په بدله کي خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لَهُ قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ ❶: «لَا يُقْتَلُ مُؤْمِنٌ بِكَافِرٍ» د امام شافعي دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: چي مؤمن به د کافر په بدله کي نه قتلول کيږي وَلِأَنَّهُ لَا مُسَاوَاةَ بَيْنَهُمَا وَقْتَ الْجِنَايَةِ او ځکه چي د جنايت [قتل] په وخت کي د دوی [مسلمان او ذمي] ترمينځ مساوات نسته وَكَذَا الْكُفْرُ مُبِيحٌ او همدارنګه کفر [د هغه د ويني] مباح کونکی دی فَيُوْرِثُ الشُّبْهَةَ نو دا [د عدم مساوات] شبه پيدا کوي. وَلَنَا مَا رُوِيَ ❷: «أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَتَلَ مُسْلِمًا بِذِمِّيٍّ» او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چي روايت سوی دی: چي نبي ﷺ د ذمي په بدله کي مسلمان قتل کړی وَلِأَنَّ الْمُسَاوَاةَ فِي الْعِصْمَةِ ثَابِتَةٌ او ځکه چي [د ذمي او مسلمان ترمينځ] په عصمت کي مساوات ثابت دی نَظَرًا إِلَى التَّكْلِيفِ وَالدَّارِ مکلف کېدلو او دارُالاسلام ته په نظر کولو سره وَالْمُبِيحُ كُفْرُ الْمُحَارِبِ دُونَ الْمُسَالِمِ او مباح کونکی د جنګ کونکي [حربي] کفر دی، نه د صلح کونکي [ذمي] کفر وَالْقَتْلُ بِمِثْلِهِ يُؤْذِنُ بِانْتِفَاءِ الشُّبْهَةِ او د خپل مثل [ذمي] په بدله کي د ذمي قتل کېدل د شبهي د نفي کېدلو خبر ورکوي [يعني د قتل مباح کېدلو شبهه يې نفي کوي] وَالْمُرَادُ بِمَا رَوَى الْحَرْبِيُّ او مراد په هغه حديث سره چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی حربي کافر دی لِسِيَاقِهِ «وَلَا ذُو عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ» د حديث د سياق "ولا ذو عهدٍ فی عهده" په وجه [چي نه به ذمي د خپل ذمي والي په وخت کي قتلول کيږي] وَالْعَطْفُ لِلْمُغَايَرَةِ او عطف د مغايرت لپاره دی.

**اللغات:** ﴿مُبِيح﴾ د افعال د باب فاعل دی: مباح کونکی، روا کونکی (روا ګرځونکی). ﴿يورث﴾ د افعال د باب مضارع ده: شاته پرېښوول، يعني تر خپل شا شبهه پرېږدي، شبهه پيدا کوي. ﴿تکليف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مکلف کېدل، مکلف والی. ﴿محارب﴾ د افعال د باب فاعل دی: جنګ

---

❶ تخريج: اخرجه ابو داؤد في كتاب الديات، حديث رقم:۴۵۳، باب رقم:۱۱. والبخاري في كتاب العلم، باب رقم:۳۹.(احسن الهداية)

❷ تخريج: اخرجه دار قطني ج:۳، حديث رقم:۱۶۵. (احسن الهداية)

کونکی. مقابله کونکی. ﴿مغايرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو له بل ځخه مختلف کېدل (جلا کېدل)، متضاد کېدل (تضاد او منافات). ﴿سَالَمه﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: صلح کول. مُصالحه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مسلمان کس يو ذمي قتل کړي، نو د ذمي په بدله کې به قصاصاً هغه مسلمان قتلول کيږي، که نه؟. په دې کې هم زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی. امام شافعي رحِمَهُ الله د عدمِ مساوات په وجه د قصاص قائل نه دی (چې دا مسلمان به قصاصاً نه قتلول کيږي)، او احناف د قصاص قائل دي او مساوات ثابت مني.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا حديث دی "لا يُقتل مؤمن بكافر". له دې حديث ځخه همدا ثابتيږي چې د کافر په بدله کې به مسلمان نه قتلول کيږي؛ ځکه ذمي کافر دی او د قتل په وخت کې کفر په هغه کې موجود دی، او کفر فی نفسه مُبيح او د اباحت سبب دی، نو د مقتول (ذمي) مباحُ الدم کېدل په هغه کې د عدمِ مساوات شبهه پيدا کړه، او کله چې شبهه پيدا سوه، نو قصاص ساقطيږي (ځکه په شبهه سره قصاص او حدود ساقطيږي).

ولنا إلخ: زموږ نقلي دليل دا حديث دی "أنّ النبي ﷺ قتل مسلمًا بذمي" چې نبي ﷺ د ذمي په بدله کې مسلمان قصاصاً قتل کړی دی، له دې حديث ځخه په واضحه توګه دا ثابتيږي چې که يو مسلمان ذمي قتل کړي، نو د ذمي په بدله کې به هغه قصاصاً قتلول کيږي.

ولأن المساواة إلخ: دا زموږ عقلي دليل دی، حاصل يې دا دی چې د قصاص لپاره چې د قاتل او مقتول تر مينځ کوم مساوات ضروري دی، هغه مساوات فی العصمة دی (چې دوی به په عصمت کې يو د بل سره مساوي وي)، او دلته د ذمي او مسلمان تر مينځ مساوات فی العصمة سته (د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز هم). په دې توګه چې ذمي هم انسان (آدمي) دی او په دې حواله سره هغه د شريعت په احکامو مکلف دی او بيا هغه د دارُالاسلام اوسېدونکی دی. نو د دارُ اسلام کېدلو په وجه زموږ په نيز او د انسان او مکلف کېدلو په وجه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز ذمي معصوم دی او د هغه او مسلمان قاتل تر مينځ مساوات فی العصمة موجود دی، نو ځکه د ذمي په بدله کې به مسلمان قصاصاً قتلول کيږي.

والمبيح كفر المحارب إلخ: او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وينا "چې کفر مُبيح او د اباحت سبب دی" دا مطلقاً صحيح نه ده، بلکې مُبيح صرف د حربي کفر دی کوم چې د مسلمانانو سره جنګ او مقابله کونکی وي، د مُسالِم (ذمي) کفر مُبيح نه دی کوم چې مصلحت پسند او په صلح سره په دارُ الاسلام کې ژوند تېروي.

والقتل بمثله إلخ: يعني ذمي چي بل ذمي قتل کړي، ښکاره ده چي هغه بالاتفاق قصاصاً قتلول کيږي. نو په دې سره دا شبهه منتفي کيږي چي د ذمي وينه مباح ده (ځکه که مباح وای نو قاتل ذمي به د هغه په بدله کي نه قتلول کېدای). لهذا معلومه سوه چي د ذمي د ويني په عصمت کي هيڅ شبهه نسته او مساوات سته.

والمراد بما روى إلخ: دا د امام شافعي د نقلي دليل جواب دی. حاصل يې دا دی چي امام شافعي رَحِمَهُ الله کوم حديث پېش کړی دی يعني "لا يُقتل مؤمنٌ بكافرٍ"، په هغه کي له کافر څخه حربي کافر مراد دی، او د دې خو موږ هم قائل يو چي د حربي کافر په بدله کي به مسلمان نه قتلول کيږي.

او دليل د دې خبري چي په مذکوره حديث کي له کافر څخه حربي کافر مراد دی، دا دی چي د حديث له سياق څخه همدا ثابتيږي؛ ځکه پوره حديث داسي دی "لا يُقتل مُؤْمِنٌ بكافرٍ ولا ذو عهدٍ في عَهده"، او له "ذُو عهدٍ" څخه ذمي مراد دی؛ ځکه د حديث په اوله حصه کي له "مُؤْمِنٌ" څخه مسلمان مراد دی نو خامخا به له "ذو عهدٍ" څخه ذمي مراد وي؛ ځکه "ذو عهد" پر "مؤمن" عطف دی او عطف د مغايرت تقاضا کوي، او مغايرت همغه وخت ثابتيږي، کله چي له "ذو عهد" څخه ذمي مراد سي، او د حديث مطلب دا دی چي د حربي کافر په بدله کي به نه مؤمن قصاصاً قتلول کيږي او نه ذمي. (احسن الهدايه)

## مسلمان د مستأمن کافر په بدله کي قتلول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَا يُقْتَلُ بِالْمُسْتَأْمَنِ فرمايي: او مسلمان به د مستأمن [امان اخيستونکي کافر] په بدله کي نه قتلول کيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَحْقُوْنِ الدَّمِ عَلَى التَّأْبِيْدِ ځکه مستأمن په دايمي توګه محفوظُ الدم نه دی وَكَذٰلِكَ كُفْرُهُ بَاعِثٌ عَلَى الْحِرَابِ او همدارنګه د هغه کفر پر جنګ [د هنه] پارونکی دی لِأَنَّهُ عَلٰى قَصْدِ الرُّجُوْعِ ځکه هغه د واپس تللو پر اراده دی [يعني بيرته خپل دارُ الکفر ته ځي] وَلَا يُقْتَلُ الذِّمِّيُّ بِالْمُسْتَأْمَنِ او ذمي به د مستأمن په بدله کي نه قتلول کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ [اوس] بيان کړی وَيُقْتَلُ الْمُسْتَأْمَنُ بِالْمُسْتَأْمَنِ قِيَاسًا او مستأمن به د مستأمن په بدله کي قتلول کيږي د قياس له رويه لِلْمُسَاوَاةِ ځکه [د دوی ترمينځ] مساوات سته وَلَا يُقْتَلُ اسْتِحْسَانًا او د استحسان له رويه به نه قتلول کيږي لِقِيَامِ الْمُبِيْحِ ځکه [د مستأمن د قتل] مباح کونکی دليل قائم

[موجود] دی وَيُقْتَلُ الرَّجُلُ بِالْمَرْأَةِ وَالْكَبِيْرُ بِالصَّغِيْرِ او قتلول کیږي به سړی د ښځي په بدله کي او لوی کس د کوچني په بدله کي وَالصَّحِيْحُ بِالْأَعْمٰى وَالزَّمِنِ او روغ کس د ړانده او شل په بدله کي وَبِنَاقِصِ الْأَطْرَافِ وَبِالْمَجْنُوْنِ او د ناقصو اندامو والا په بدله کي او د لېوني په بدله کي لِلْعُمُوْمَاتِ د عامو نصوصو په وجه [یعني ځکه چي په آیتو... کي عموم دی] وَلِأَنَّ فِي اعْتِبَارِ التَّفَاوُتِ فِيْمَا وَرَاءَ الْعِصْمَةِ اِمْتِنَاعَ الْقِصَاصِ او ځکه چي له عصمت څخه بغیر په بل شي کي د تفاوت په اعتبار کولو کي له قصاص څخه منع کېدل سته وَظُهُوْرَ التَّقَاتُلِ وَالتَّفَانِيْ او یو د بل قتلول او یو د بل فنا کول [یکښي] سته [چي قصاص به پاته سي نو د خلکو تر مینځ به د قتل او هلاکت دروازه خلاصه سي].

**اللغات**: ﴿مستأمن﴾ د استفعال د باب فاعل دی: امان غوښتونکی، امان اخیستونکی، هغه کافر کوم چي له دارُ الکفر څخه دارُ الاسلام ته راسي او دا امان واخلي چي زما ځان، مال او داسي نور دي په امن وي او دارُ الاسلام والا هغه ته امان او امان پاڼه ورکړي. ﴿حِراب﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ او مقابله کول. ﴿الزَّمِن﴾ (بفتح الزاء وکسر الميم). شوټ او شل، پخوانی معیوبه (چي په قدیم عیب او آفت سره مبتلا وي). ﴿التقاتل﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو د بل سره جنګ کول او قتلول. ﴿التفانی﴾ مخکنی صیغه ده: یو بل فنا کول او هلاکول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که یو کافر کس امان واخلي او دارُ الاسلام ته راسي، بیا یو مسلمان هغه قتل کړي، نو د دې مستأمن کافر په بدله کي به هغه مسلمان قصاصاً نه قتلول کیږي: ځکه د قصاص واجبېدو لپاره دا شرط دي چي مقتول به په دایمي توګه محفوظ الدم وي (چي د همېشه لپاره به يې وينه غیر مباح وي، لکه مخکي چي ذکر سوه) او د مستأمن په حق کي دا شرط معلوم دی: ځکه مستأمن د همېشه لپاره محفوظُ الدم نه پاتیږي بلکي فقط د امان تر مودې پوري محفوظُ الدم وي، او بل دا چي د امان د مودې تر ختمېدو وروسته هغه له دارُالاسلام څخه واپس ځي، نو د هغه کفر پر جنګ د هغه باعث او پارونکی دی چي د مسلمانانو سره به يې جنګ او مقابلې ته اماده کوي، نو د هغه مثال د حربي کافر دی، او د حربي کافر په بدله کي مسلمان نه قتلول کیږي، نو همداسي به د مستأمن په بدله کي هم مسلمان نه قتلول کیږي.

همدارنګه که یو ذمي کس هغه (مستأمن کافر) قتل کړي، نو د هغه په بدله کي به ذمي هم قصاصاً نه قتلول کیږي: د مذکوره دلیل په وجه چي مستأمن په دایمي توګه محفوظ الدم نه دی. او ذمي په زیاتره احکامو کي د مسلمان په درجه کي دی.

ويقتل المستأمن الخ: او که يو مستأمن بل مستأمن قتل کړي، نو په دې صورت کې دوه قوله دي. د قياس تقاضا دا ده چې په دواړو کې مساوات سته ځکه چې دواړه په دې وخت کې محفوظ الدم دي. نو ځکه قصاصاً به قتلول کيږي. او د استحسان تقاضا دا ده چې په دوی کې مُبيح موجود دی نو ځکه قصاصاً به نه قتلول کيږي. او مُبيح په دې توګه موجود دی چې د دوی محفوظ الدم کېدل دايمي نه دي. بلکې عارضي دي او دواړه له دارُالاسلام څخه دارُالکفر ته واپس کېدونکي دي او هلته چې ولاړ سي بيا خپل کفر دوی جنګ ته اماده کونکي دي. نو ځکه د دوی دغه حالت په کتلو سره به له دوی څخه قصاص اخيستل کيږي.

ويقتل الرجل بالمرأة الخ: کله چې د مساوات مدار پر اسلام دی. نو چيرې چې دا مدار موجود سي. هلته به قصاص اخيستل کيږي، برابره ده سړي پر ښځې حمله کړې او قتل کړې يې وي. يا دې برعکس وي، او برابره ده بالغ کس صغير قتل کړی وي. يا روغ کس ړوند او شل کس قتل کړی وي. يا روغ سالمُ الاعضاء سړي يو ناقصُ الاعضاء سړی قتل کړی وي. يا روغ (پرسد) سړي يو مجنون کس قتل کړی وي؛ ځکه په نصوصو کې عموم دی، او که دلته له عصمت څخه بغير په نورو شيانو کې د مساوات اعتبار سي. نو ګردسره به د قصاص دروازه بنده سي. او کله چې قصاص اخيستل پاته سي. نو د خلګو په مېنځ کې به د جنګ او هلاکت دروازه خلاصه سي او ښه بې غمه به يو بل سره قتلوي او هلاکوي.

## پلار د ځوی په بدله کې قصاصاً قتلول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَا يُقْتَلُ الرَّجُلُ بِابْنِهِ فرمايي: او سړی به د خپل ځوی په بدله کې نه قتلول کيږي لِقَوْلِهِ ﷺ: «لَا يُقَادُ الْوَالِدُ بِوَلَدِهِ» [1] ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چې پلار به د خپل بچي په بدله کې نه قصاصول کيږي وَهُوَ بِإِطْلَاقِهِ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ فِيْ قَوْلِهِ او دا حديث د خپل مطلق والي په وجه د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف د هغه په دې قول کې حجت دی يُقَادُ إِذَا ذَبَحَهُ ذَبْحًا چې پلار به قصاصول کيږي کله چې هغه خپل ځوی ذبح کړی وي وَلِأَنَّهُ سَبَبٌ لِإِحْيَائِهِ او ځکه چې پلار د خپل ځوی دژوندي والي سبب دی فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ يُسْتَحَقَّ لَهُ إِفْنَاؤُهُ نو دا محال [او ناممکنه] ده چې ځوی لره د پلار د فنا کولو [او ختمولو] استحقاق ثابت سي وَلِهٰذَا لَا يَجُوْزُ لَهُ قَتْلُهُ وَإِنْ وَجَدَهُ

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجه في كتاب الديات، باب لا يقتل الوالد بولده، حديث رقم: ۲۶۶۱، ۲۶۶۲.

فِيْ صَفِّ الْأَعْدَاءِ مُقَاتِلًا همدا وجه ده چي ځوی لره د پلار قتلول جائز نه دي که څه هم هغه خپل پلار د دښمنانو په صف کي جنګ کونکی وويني أَوْ زَانِيًا وَهُوَ مُحْصَنٌ يا زنا کونکی يې ووينې حال دا چي پلار محصن [واده والا] هم وي وَالْقِصَاصُ يَسْتَحِقُّهُ الْمَقْتُوْلُ او د قصاص مستحق [اول] مقتول وي ثُمَّ يَخْلُفُهُ وَارِثُهُ بيا يې وارث د هغه خليفه کيږي [يعني تر مقتول وروسته بيا د هغه وارث د قصاص نائب کيږي] وَالْجَدُّ مِنْ قِبَلِ الرِّجَالِ أَوِ النِّسَاءِ وَإِنْ عَلَا فِيْ هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ او د خلکو او ښځو [پلرونو او ميندو] له طرفه نيکه که څه هم لوړ وي په دې باره کي د پلار په درجه کي دی وَكَذَا الْوَالِدَةُ وَالْجَدَّةُ مِنْ قِبَلِ الْأَبِ أَوِ الْأُمِّ قَرُبَتْ أَوْ بَعُدَتْ او همدارنګه د پلار يا مور له طرفه انا نږدې وي او که ليري وي [د پلار په درجه کي ده] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی [يعني لأنه سبب لإحيائه إلخ] وَيُقْتَلُ الْوَلَدُ بِالْوَالِدِ او ځوی به د پلار په بدله کي قتلول کيږي لِعَدَمِ الْمُسْقِطِ د ساقطونکي د نشتوالي په وجه [يعنې د ځوی په حق کي څه مُسقط دليل نسته].

**اللغات:** ﴿لا يُقَاد﴾ د افعال د باب نفي صيغه ده: قصاصول، يو د بل په قصاص کي قتلول. ﴿إفناء﴾ د افعال د باب فاعل دی: فنا کول، ختمول. ﴿محصن﴾ د افعال د باب فاعل دی: پاک لمنی سړی، مراد: هغه کس چي واده يې کړی وي او ښځه لري (يعني واده والا). ﴿مسقط﴾ مخکنی صيغه ده: ساقطونکی، ختمونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که پلار خپل ځوی قتل کړي، برابره ده ذبح يې کړي يا په بله ذريعه يې قتل کړي (مثلاً په غشي، ټوپک وغيره سره يې ووېلي)، په هر صورت کي زموږ په نيز حکم دا دی چي دا پلار به د ځوی په بدله کي قصاصاً نه قتلول کيږي؛ لېکن امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي که پلار خپل ځوی ذبح کړی وي، نو له هغه څخه به قصاص اخيستل کيږي او د ځوی په بدله کي به قصاصاً قتلول کيږي.

زموږ دليل دا حديث دی "لا يُقَادُ الوالد بولده" چي پلار به د خپل ځوی په بدله کي نه قصاصول کيږي. څرنګه چي دا حديث عام دی او د پلار په حق کي علی الاطلاق د ځوی د قصاص نفي کوي، برابره ده پلار هغه ذبح کړی وي يا په يو بله طريقه سره يې قتل کړی وي. په هر حال به له هغه څخه د ځوی قصاص نه اخيستل کيږي. او د همدې عموم په وجه دا حديث د امام مالک رَحِمَهُ

الله په خلاف حجت دی د هغه په دې وينا کې چې که پلار خپل ځوی ذبح کړي. نو له هغه څخه به قصاص اخيستل کيږي.

ولأنه سبب إلخ: زموږ عقلي دليل دا دی چې دنيا ته د ځوی د راتګ او د هغه د ژوندون سبب پلار جاړ دی، لهذا دا محال او نا ممکنه ده چې ځوی د پلار د خاتمې او فنا کېدو سبب وګرځول سي. او څرنګ چې د ځوی په قصاص کې د پلار په قتل کولو سره دا سبب لازميږي، نو ځکه شريعت هغه رد کړ دی او له دې څخه يې منع کړې ده. بلکې شريعت خو تر دې حده ويلي دي چې که ځوی خپل پلار د کفارو په صف کې د مسلمانانو سره په جنګ ووينې يا خپل پلار پر زنا ووينې حال دا چې هغه مُحصن هم وي، نو هم ځوی ته پر هغه لاس پورته کول او قتلول جائز نه دي.

والقصاص يستحقه إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې کله پلار خپل ځوی قتل کړي او هغه مړ سو او د قصاص اخيستو قابل پاته نه سو (چې له پلار څخه قصاص واخلي)، نو اوس د قصاص معامله د دې مقتول (ځوی) وارثانو ته حواله سوه، او وارثان د قاتل ځامن نه دي، لهذا هغو ته له قاتل څخه د قصاص اخيستلو حق حاصلېدل پکار دي، حال دا چې دلته له وارثانو څخه هم د قصاص حق ساقط کړی سوی دی، آخر د دې څه وجه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چې وارثان د مقتول (ځوی) نائب او فرع دي، او نائب د اصل تابع وي، لهذا کوم شی چې د اصل (ځوی) لپاره ثابت وي، هاغه به د نائب لپاره ثابتيږي، او کوم شی چې د اصل لپاره ثابت نه وي. هاغه به د فرع لپاره هم نه ثابتيږي، او څرنګه چې دلته د اصل يعني د ځوی په حق کې د دغه حديث "لا يقاد الوالد بولده" په روی سره قصاص ساقط کړ سوی دی. نو د فرع يعني د ځوی د وارثانو په حق کې به هم قصاص ساقطيږي او وارثانو ته به د مقتول ځوی له پلار څخه د قصاص اخيستلو حق نه وي.

والجد من قبل إلخ: د دې حاصل دا دی چې د مور يا پلار له طرفه نيکه او ترنيکه، ور نيکه. همداسې د مور يا پلار له طرفه انا تر آخره دا ټول د پلار په درجه کې دي، لهذا څرنګه چې له پلار څخه قصاص نه اخيستل کيږي، همداسې به له دوی يوه څخه هم قصاص نه اخيستل کيږي: ځکه له دوی څخه هر يو د مقتول د ژوندون سبب دی، نو ځکه مقتول د دوی د خاتمې او فنا کېدو سبب ګرځول ممکن نه دي.

ويقتل الولد بالوالد إلخ: يعني که ځوی خپل پلار قتل کړي، نو له ځوی څخه به قصاص اخيستل کيږي او د پلار په بدله کې به هغه قصاصاً قتلول کيږي؛ ځکه د ځوی په حق کې د قصاص ساقطونکی دليل نسته (لکه د پلار په حق کې چې سته)، ځکه د ځوی په هکله نه يو حديث سته او نه ځوی د پلار د ژوندون سبب دی.

## د خپل غلام او مالک تر مینځ د قصاص حکم

قَالَ: وَلَا يُقْتَلُ الرَّجُلُ بِعَبْدِهِ او نه به قتلول کيږي سړی [مالک] د خپل غلام په بدله کي وَلَا مُدَبَّرِهِ وَلَا مُكَاتَبِهِ او نه د خپل مدبر او مکاتب په بدله کي وَلَا بِعَبْدِ وَلَدِهِ او نه د خپل ځوی د غلام په بدله کي لِأَنَّهُ لَا يَسْتَوْجِبُ لِنَفْسِهِ عَلَىٰ نَفْسِهِ الْقِصَاصَ ځکه سړی [مالک] د خپل ځان لپاره پر خپل ځان د قصاص استحقاق نه لري [يا په بله وينا دا چي د خپل نفس په وجه پر خپل نفس د قصاص استحقاق نه لري] وَلَا وَلَدِهِ عَلَيْهِ او نه پر هغه خپل ځوی [د قصاص استحقاق لري] وَكَذَا لَا يُقْتَلُ بِعَبْدٍ مَلَكَ بَعْضَهُ او همدارنګه نه به سړی د هغه غلام په بدله کي قتلول کيږي چي سړی د هغه د بعضي حصې مالک وي لِأَنَّ الْقِصَاصَ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه قصاص نه متجزي کيږي قَالَ: وَمَنْ وَرِثَ قِصَاصًا عَلَىٰ أَبِيهِ فرمايي: او څوک چي پر خپل پلار د قصاص وارث سي سَقَطَ نو قصاص ساقطيږي لِحُرْمَةِ الْأُبُوَّةِ د پلار والي د احترام په وجه.

**اللغات:** ﴿مدبر﴾ هغه غلام چي خپل مالک ورته ويلي وي: زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې!.
﴿مكاتب﴾ هغه غلام چي خپل مالک ورته ويلي وي: ته! ما ته دومره پيسې راوړه (مثلاً پنځه سوه درهمه) نو ته آزاد يې! او غلام دا معامله منظوره کړي، نو دغه غلام ته مکاتب وايي او دې معاملې ته کتابت وايي، ﴿لا يستوجب﴾ د استفعال له بابه د نفي صيغه ده: حق او استحقاق لرل. مستحق کېدل (احسن الهدايه)، ﴿لا يتجزأ﴾ د تفعل له بابه مخکنۍ صيغه ده: جزء جزء کېدل. حصه حصه کېدل.
﴿حرمة﴾ احترام او تعظيم.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک (مولیٰ) خپل غلام يا خپل مکاتب يا خپل مدبر يا د خپل ځوی غلام قتل کړي، نو هغه به د مقتول په قصاص کي نه قتلول کيږي؛ ځکه غلام. مکاتب او مدبر دا ټوله د خپل مالک تر ملکيت لاندي دي او د دوی د قصاص ملکيت او اختيار مالک لره دی. او څرنګه چي دلته خپله مالک (مولیٰ) قاتل دی، نو که مورږ له دې قاتل شخص قصاص اخيستل جائز وګرځوو. نو خپله پر مالک به قصاص واجب سي او د قصاص مؤاخذه به هم له هغه شخصه کيږي. يا په بله وينا دا چي د قصاص وارث به هم مالک (مولیٰ) وي او اخيستل کيږي به هم له مالک شخصه. او دا باطل دي.

او د خپل ځوی د غلام قتلولو په صورت کي هم پر هغه (پلار) ځکه قصاص نه لازميږي چي ځوی پر خپل پلار د قصاص حق نه لري.

وكذا لايقتل إلخ: که يو غلام د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي او بيا يو شريک هغه قتل کړي. نو په دې صورت کې هم حکم دا دی چې له قاتل شريک څخه به قصاص نه اخيستل کيږي؛ ځکه دلته قاتل شريک د نصف غلام مالک دی. لهذا هغه به صرف د نصف قصاص وارث او مالک وي. حال دا چې په قصاص کې تجزی او تقسيم نه سي کېدلای. نو ځکه په دې صورت کې هم قصاص ساقطيږي.

قال ومن ورث إلخ: مثلاً يو چا خپله ښځه قتل کړه او د ښځې ځوی پاته سو. نو همدا ځوی د هغې د قصاص وارث او مالک دی. خو په دې صورت کې هم ځوی له خپل پلار څخه قصاص نه سي اخيستلای؛ ځکه د ابوت (پلار والي) احترام د قصاص مانع دی (او بل دا چې دلته د ملکيت شبهه موجوده ده (احسن الهدايه ۱)). نو ځکه په دې صورت کې هم قصاص ساقطيږي.

## قصاص به په وسله (توره وغيره) سره اخيستل کيږي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَا يُسْتَوْفَى الْقِصَاصُ إِلَّا بِالسَّيْفِ فرمايي: او قصاص به نه اخيستل کيږي مګر په توره سره وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُفْعَلُ بِهِ مِثْلُ مَا فَعَلَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د قاتل سره به داسې کړنه [او چلند] کيږي کوم چې هغه [د مقتول سره] کړی وي إِنْ كَانَ فِعْلًا مَشْرُوعًا په دې شرط چې هغه فعل [کړنه] مشروع وي فَإِنْ مَاتَ بيا که [په هغه مشروع فعل سره] قاتل مړ سي، فبها [نو سمه ده!] وَإِلَّا تُحَزُّ رَقَبَتُهُ کنې د هغه غاړه به پرېکول کيږي لِأَنَّ مَبْنَى الْقِصَاصِ عَلَى الْمُسَاوَاةِ ځکه د قصاص بنياد پر مساوات دی وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام: «لَا قَوَدَ [1] إِلَّا بِالسَّيْفِ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: قصاص نسته مګر [صرف] په توره سره وَالْمُرَادُ بِهِ السِّلَاحُ او مراد په توري سره وسله ده وَلِأَنَّ فِيمَا ذَهَبَ إِلَيْهِ اسْتِيفَاءُ الزِّيَادَةِ او ځکه کوم طرف ته چې امام شافعي رَحِمَهُ الله تګ کړی دی په هغه کې د زياتوب اخيستل سته [يعني د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا مذهب چې د قاتل سره به هغسې فعل او چلند کيږي لکه څنګه چې قاتل کړی وي بيا که په هغه سره مړ سي فبها، کنې غاړه به يې پرېکول کيږي، په دې کې د قاتل سره زياتوب دی] لَوْ لَمْ يَحْصُلِ الْمَقْصُودُ بِمِثْلِ مَا فَعَلَ که د قاتل د فعل [او چلند] په مثل سره مقصود حاصل نه سي [يعني قاتل مړ نه سي] فَيُحَزُّ نو غاړه به يې پرېکول کيږي [په دې کې د قاتل سره زياتوب دی] فَيَجِبُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو ځکه له دې څخه بچ کېدل واجب دي كَمَا فِي كَسْرِ الْعَظْمِ لکه د هډوکي د ماتولو په صورت کې.

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الديات، باب لا قود إلا بالسيف، حديث رقم: ۲۶۶۷. (حسن هدايه)

**اللغات**: ﴿يستوفى﴾ د استفعال د باب مضارع ده: ترلاسه کول. اخیستل. ﴿تُحزّ﴾ د نصر له بابه د مضاع مجهولي صيغه ده: حَزَّيَحُزُّحَزًّا: قطع کول، پرېکول (داسې پرېکول چې را جلا نه سي). ﴿قَوَد﴾ قصاص. ﴿الزيادة﴾ زياتوب. اضافي مقدار. ﴿التحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل. ځان ساتل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې زموږ په نېز به قصاص په وسله سره اخیستل کیږي، هغه که هر ډول وسله وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د قصاص طریقه دا ده چې قاتل کوم حرکت د مقتول سره کړی وي، هاغه حرکت به په قصاص اخیستلو کي د قاتل سره کیږي بیا که قاتل د هغه په وجه مړ سي نو سمه ده کنې غاړه به يې پرېکول کیږي، مثلاً که قاتل په لوېه درنه ډبره سره مقتول وژلی وي یا په ډانګ او لکړه سره يې وژلی وي، نو قاتل به هم په ډبره یا په ډانګ او لکړه سره وژل کیږي. لیکن که قاتل د مقتول سره ناوړه حرکت کړی وي مثلاً په فرج کي يې وهلی وي یا يې ښځه په سینه (تیو) کي وهلې او وژلې وي، نو بیا د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز به هم د قاتل سره هغه حرکت نه کیږي، بلکي له قاتل څخه به د وسلې په ذریعه قصاص اخیستل کیږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې د قصاص دار ومدار پر مساوات دی، لهذا د قاتل په قتلولو کي به حتی الامکان د مساوات رعایت کیږي، او د مساوات رعایت په همدې کي دی چې د قاتل سره هغسي چلند وسي لکه ده چې د مقتول سره کړی وي، نو ځکه هغسي حرکت به ورسره کیږي، په دې شرط چې هغه حرکت او فعل مشروع وي.

**ولنا قوله ﷺ إلخ**: زموږ دلیل دا حدیث دی "لَا قَوَدَ إِلَّا بِالسَّيْفِ" چې قصاص به صرف په وسله سره اخیستل کیږي، په دې حدیث سره موږ په دې توګه دلیل نیسو چې په دې کي له "السَّيْف" څخه "السِّلَاح" يعني وسله مراد ده او د حديث مطلب دا دی چې له قاتل څخه به د وسلې په ذريعه قصاص اخیستل کیږي؛ ځکه د قصاص مقصد قاتل وژل او ختمول دي او په وسله سره دا مقصد ډېر په آسانه حاصلیږي؛ ځکه د وسلې په یوه وار سره قاتل ختمیږي، د دې په خلاف که قاتل اول په ډانګ او لکړه سره ووهل سي او هغه مړ نه سي بیا يې غاړه پرېکړل سي لکه څرنګه چې امام شافعي رَحِمَهُ الله وايي، نو په دې صورت کي به د مساوات پر ځای د قاتل سره زیاتوب وسي، لهذا موږ د داسې مساوات قائل نه یو چې په هغه کي زیاتوب لازم سي او داسې کول جائز نه دي، نو ځکه له داسې قصاص اخیستلو څخه ډډه کول ضروري دي او د قصاص غوره طریقه همدا ده چې په وسلې سره واخیستل سي.

د دې مثال هغو کې ماتول دي، مثلاً که څوک (له غاښ څخه بغير) د بل چا يو هډوکی ورمات کړي، نو څرنګه چې دلته په قصاص اخيستلو کې د زياتوب خطره سته، ځکه که هغومره هډوکی د قاتل مات کړی سي څومره چې هغه مات کړی وي يا تر هغه کم، نو جائز دي او که زيات مات کړی سي، نو جائز نه دي، او دلته د زياتوب امکان سته يعني په دې هکله اطمينان نه سي کېدلای چې زيات هډوکی به يې مات نه سي، نو ځکه د زياتوب د امکان په وجه د هډوکی قصاص جائز نه دی او شريعت له سره د هغه قصاص معاف کړی دی (د مساوات او عدم مساوات رعايت خو هلته پرېږده)، نو همداسي په پورتني صورت کې هم زياتوب لازميږي چې يو وار قاتل ووهل سي او بيا يې غاړه پرېکړل سي، نو ځکه هغه هم جائز نه دي که څه هم مساوات فوتيږي، ځکه کله چې د زياتوب د احتمال په وجه شريعت ګردسره قصاص معاف کړی دی، نو آيا د زياتوب د احتمال په وجه مساوات نه سي ختمولای! (شوافع دي د دې جواب وکړي).

## د مکاتب قصاص او د امامانو اختلاف

قَالَ: وَإِذَا قُتِلَ الْمُكَاتَبُ عَمَدًا فرمايي: او کله چې مکاتب قصداً قتل کړی سي وَلَيْسَ لَهُ وَارِثٌ إِلَّا الْمَوْلَى او له مالک څخه بغير د هغه بل هيڅ وارث نه وي وَتَرَكَ وَفَاءً او هغه د بدل کتابت [اداء کولو] په برابر مال پرېږي ايښی وي [يعني د مالک او مکاتب تر مينځ چې څومره بدل کتابت ټاکل سوی وي. د هغه په اندازه مال يې په ميراث کې پرېږي ايښی وي] فَلَهُ الْقِصَاصُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مالک لپاره [حق د] قصاص سته وَقَالَ مُحَمَّدٌ: لَا أَرَى فِي هٰذَا قِصَاصًا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې زه په دې کې قصاص [جائز] نه ګڼم لِأَنَّهُ اشْتَبَهَ سَبَبُ الْاسْتِيفَاءِ ځکه د قصاص اخيستلو سبب مختلف سوی دی فَإِنَّهُ الْوَلَاءُ إِنْ مَاتَ حُرًّا ځکه هغه [سبب] ولاء ده که چيري مکاتب د آزاد والي په حالت کې مړ سوی وي وَالْمِلْكُ إِنْ مَاتَ عَبْدًا او ملکيت دی که چيري د غلام والي په حالت کې مړ سوی وي وَصَارَ كَمَنْ قَالَ لِغَيْرِهِ: بِعْتَنِي هٰذِهِ الْجَارِيَةَ بِكَذَا او دا داسي سوه لکه يو څوک چې بل چا ته [يعني د مينځي مالک ته] ووايي: تا دا مينځه په دومره قيمت پر ما خرڅه کړې ده وَقَالَ الْمَوْلَى: زَوَّجْتُهَا مِنْكَ او مالک ووايي: ما هغه تا ته په نکاح درکړې ده [د هغې نکاح مې ستا سره تړلې ده] لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا نو ده ته د هغه مينځي سره وطي کول حلال نه دي لِاخْتِلَافِ السَّبَبِ ځکه چې سبب مختلف دی كَذَا هٰذَا نو همداسي دا [پورتنی صورت] هم دی وَلَهُمَا: أَنَّ

حَقَّ الْاِسْتِيْفَاءِ لِلْمَوْلٰى بِيَقِيْنٍ عَلَى التَّقْدِيْرَيْنِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې مالک لره پر دواړو تقديرونو په يقين سره د قصاص اخيستلو حق ثابت ده [يعني برابره ده مکاتب د آزادۍ په حالت کې مړ سوی وي او که د غلامۍ په حالت کې. پر هر تقدير مالک ته د قصاص حق سته] وَهُوَ مَعْلُوْمٌ او مالک معلوم دی وَالْحُكْمُ مُتَّحِدٌ او حکم يو دی وَاخْتِلَافُ السَّبَبِ لَا يُفْضِيْ إِلَى الْمُنَازَعَةِ او [دلته] د سبب اختلاف نه جنګ ته رسېدل کوي وَلَا إِلَى اخْتِلَافِ حُكْمٍ او نه د حکم اختلاف ته [رسېدل کوي. يعني نه د نزاع سبب ګرځي او نه د حکم د اختلاف] فَلَا يُبَالِيْ بِهِ نو ځکه د سبب په اختلاف به پروا نه کيږي بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ په خلاف د هغه مسئلې لِأَنَّ حُكْمَ مِلْكِ الْيَمِيْنِ يُغَايِرُ حُكْمَ النِّكَاحِ ځکه د ملک يمين حکم د ملک نکاح له حکم څخه غير [او جلا] دی.

**اللغات:** ﴿وارث﴾ د ضرب د باب فاعل دی: ميراث خور. ﴿وفاء﴾ د ضرب د باب مصدر دی. خپله معنیٰ يې ده: پوره اداء کول، پوره کول. مراد ځني دومره مال دی کوم چې د بدل کتابت د اداء کولو لپاره کافي وي. ﴿وطي﴾ کور والی، جماع. ﴿لا يفضي﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده: رسول، رسېدل. سبب جوړېدل. ﴿لا يُبالي﴾ د مفاعلې له بابه د نفي صيغه ده: پروا کول. ﴿يغاير﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: يو د بل غير کېدل (يو له بل څخه جلا کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک قصداً د زيد مکاتب غلام قتل کړي او د مکاتب په ميراث کې دومره مال وي چې په هغه سره بدل کتابت اداء کېدلای سي او له مالک (زيد) څخه بغير د دغه مکاتب بل هيڅ وارث نه وي (بلکې فقط مالک [زيد] يې وارث وي کوم چې هغه مکاتب جوړ کړی دی). نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز مالک (زيد) ته دا حق سته چې د خپل مقتول مکاتب په بدله کې د هغه له قاتل څخه قصاص واخلي؛ لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې زما په رايه په دې مسئله کې مالک ته د خپل مکاتب غلام د قصاص اخيستلو حق نسته، ځکه دلته د قصاص اخيستلو سبب متعين نه دی، بلکې مختلف دی او د سبب اختلاف د مستحق اختلاف لره مستلزم دی او د مستحق اختلاف د قصاص مانع دی، لهذا د سبب اختلاف به هم د قصاص مانع وي. پاته سو دا سوال چې دلته سبب څنګه مختلف دی او متعين نه دی؟، نو جواب دا دی چې که دلته دا فرض کړی سي چې دا مکاتب د آزادۍ په حالت کې مړ سوی دی نو د قصاص سبب به ولاء وي، او که دا فرض کړی سي چې هغه د غلامۍ (عبديت) په حالت کې مړ سوی دی، نو د قصاص سبب به ملک (ملکيت) وي، او د ولاء او

ملک تر مینځ ښکاره اختلاف دی او همدا اختلاف مانع د قصاص دی. د دې مثال داسي دی لکه زید چي د یو مینځي مالک ته ووایي چي تا! دا مینځه په دومره قیمت پر ما خرڅه کړې ده. یا په بله وینا دا چي دا زما مملوکه مینځه ده. او مالک ووایي چي ما دا مینځه تا ته په نکاح در کړې ده او هغه ستا منکوحه مینځه ده. نو څرنګه چي د دغه کس (زید) په حق کي د وطي سبب مختلف دی (چي یو سبب یې ملک یمین دی او بل سبب یې ملک نکاح دی)، نو ځکه د مذکوره مینځي سره د ده لپاره نکاح کول جائز نه دي، نو همداسي په پورتنۍ مسئله کي هم د قصاص سبب مختلف دی. نو ځکه د مالک لپاره قصاص اخیستل جائز نه دي.

ولهما أن حق إلخ: دا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دی. حاصل یې دا دی چي سبب برابره ده متحد وي او که مختلف وي په هر صورت کي مالک ته د قصاص اخیستلو حق ستّه او په دې سره پر دغه حق هیڅ اثر نه پرېوځي چي مکاتب د آزادۍ او که د غلامۍ په حالت کي مړ سوی دی: ځکه مالک (مولیٰ) معلوم او متعیّن دی او حکم یعني قصاص اخیستل هم یو حکم دی. نو ځکه د سبب په اختلاف به پروانه کیږي او له هغه څخه بغیر به مالک ته دا حق ورکول کیږي. ځکه دا ختلاف خو نه مفضي الی النزاع دی او نه په دې سره په حکم (قصاص اخیستلو) کي څه تغیّر راځي. نو ځکه په دې اختلاف به پروانه کیږي او مالک ته به خپل حق یعني د قصاص حق ورکول کیږي.

بخلاف تلك المسألة إلخ: یعني د ملک یمین او ملک نکاح مسئله چي امام محمد رَحِمَهُ الله هغه په مثال کي پېش کړې ده. هغه له قصاص څخه علیحده ده: ځکه د ملک یمین حکم یو څه دی او د ملک نکاح حکم بل څه دی او دواړه یو د بل مغایر او جلا دي: ځکه د ملک یمین حکم دا دی چي دا مینځه دي مملوکه مینځه وي چي په هغې کي رقبه اصل ده او د وطي حلت تابع دی او د ملک نکاح حکم دا دی چي دا دي منکوحه مینځه وي چي په هغې کي حلت اصل دی (لهٰذا چي په ملک یمین کي د وطي حلت تابع دی او په ملک نکاح کي اصل دی، تابع نه دی)، او ښکاره ده چي اصل او تابع خو سره جلا وي. نو ځکه دا مسئله په مثال کي پېښول او دلیل په نیول صحیح نه دي. •

## د پورتنۍ مسئلي نور وضاحت (که د مکاتب بل وارث هم موجود وي)

| |
|---|
| وَلَوْ تَرَكَ وَفَاءً او که هغه [مقتول مکاتب] د بدل کتابت په برابر مال پرې ایښی وي وَلَهُ وَارِثٌ غَيْرُ الْمَوْلَىٰ او له مالک څخه بغیر د هغه وارث هم وي فَلَا قِصَاصَ نو قصاص نسته وَإِنِ اجْتَمَعُوا مَعَ الْمَوْلَىٰ که څه هم وارثان د مالک سره جمع سي لِأَنَّهُ اشْتَبَهَ مَنْ لَهُ الْحَقُّ ځکه هغه کس مشتبه سو چي [قصاص] د هغه حق دی لِأَنَّهُ الْمَوْلَىٰ إِنْ مَاتَ عَبْدًا. ځکه هغه [من له الحق] مالک دی که مکاتب د غلام |

والي په حالت کي مړ سوی وي وَالْوَارِثُ إِنْ مَاتَ حُرًّا او وارث دی که مکاتب د آزاد والي په حالت کي مړ سوی وي إِذْ ظَهَرَ الِاخْتِلَافُ بَيْنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فِي مَوْتِهِ عَلَى نَعْتِ الْحُرِّيَّةِ أَوِ الرِّقِّ ځکه د صحابه وو اختلاف ظاهر سوی دی د آزادي یا غلامتوب پر صفت د مکاتب د مړ کېدلو په هکله [یعني ځکه په دې هکله صحابه وو هم اختلاف کړی دی چي مکاتب آزاد او که غلام مړ سوی دی] بِخِلَافِ الْأُولَى په خلاف د اول صورت [چي له مالک څخه بغیر د مکاتب بل وارث نه وي] لِأَنَّ الْمَوْلَى مُتَعَيِّنٌ فِيهَا ځکه په هغه صورت کي مالک متعيّن دی وَإِنْ لَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً او که مکاتب د بدل کتابت په برابر [په اندازه] مال نه وي پرې ایښی وَلَهُ وَرَثَةٌ أَحْرَارٌ او هغه لره آزاد وارثان وي وَجَبَ الْقِصَاصُ لِلْمَوْلَى فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د مالک لپاره [حق د] قصاص واجبیږي د دوی ټولو په قول کي [یعني د شیخینو او امام محمد ټولو په نيز] لِأَنَّهُ مَاتَ عَبْدًا بِلَا رَيْبٍ لِانْفِسَاخِ الْكِتَابَةِ ځکه [په دې صورت کي] مکاتب د کتابت فسخ کېدلو په وجه بلا شکه د غلام والي په حالت کي مړ سوی دی بِخِلَافِ مُعْتَقِ الْبَعْضِ إِذَا مَاتَ په خلاف د هغه غلام چي بعضي حصه یې آزاده کړی سوې وي کله چي هغه مړ سي [د عاجز والي په حالت کي چي تر اوسه یې د پاته حصې د آزادولو لپاره سعایه لا ګټه نه وي پوره کړي] وَلَمْ يَتْرُكْ وَفَاءً او د سعایه په اندازه مال یې پرې ایښی نه وي لِأَنَّ الْعِتْقَ فِي الْبَعْضِ لَا يَنْفَسِخُ بِالْعَجْزِ ځکه د بعضي حصې آزادېدل د عاجز والي په وجه نه فسخ کیږي.

**اللغات:** ﴿وفاء﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي ذکر سو. ﴿الرق﴾ غلامتوب، غلامي. ﴿بلا ريب﴾ بلا شکه، بلا شبهې. ﴿انفساخ﴾ د انفعال د باب مصدر دی: فسخ کېدل، ماتېدل. ﴿عجز﴾ د ضرب د باب مصدر دی: عاجزه کېدل، عاجز والی.

**تشريح:** په مخکیني صورت کي د مکاتب وارث فقط مالک (مولیٰ) وو ځکه چي د هغه بل هیڅ وارث نه وو. دلته دا صورت بیانوي چي له مالک (مولیٰ) څخه بغیر د مکاتب نور وارثان هم وي او د مکاتب په میراث کي د بدل کتابت په اندازه مال هم پاته سوی وي، نو په دې صورت کي له قاتل څخه قصاص ساقطیږي او یوه ته هم د قصاص حق نه حاصلیږي نه مالک ته او نه د مکاتب وارثانو ته؛ ځکه په دې صورت کي مَن له الحق متعیّن نه دی؛ ځکه که مکاتب د غلامی په حالت کي مړ سوی وي نو قصاص د مالک حق دی. او که د آزادی په حالت کي مړ سوی وي نو قصاص د وارثانو

حق دی؛ ځکه د مکاتب د غلامي يا آزادی په حالت کي د مړ کېدلو په هکله د صحابه ؤ هم اختلاف وو. د حضرت علي ﷛ او ابن مسعود ﷛ په نېز که د هغه بدل کتابت اداء کړی سوی وي نو هغه د آزادوالي په حالت کي مړ سوی دی او د قصاص حق د هغه وارثانو لره دی او د زید بن ثابت ﷛ په نېز دا مکاتب د غلامي په حالت کي مړ سوی دی او د قصاص حق د هغه مالک لره دی (کفايه او بنايه).
لهذا کله چي له قرن اول څخه په دې کي اختلاف دی، نو ښکاره ده چي قصاص به ساقطيږي. او پاته سو په اول (مخکني) صورت کي چي څرنګه مَن له الحق متعيّن دی چي هغه مالک (مولیٰ) دی. نو ځکه د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په هغه صورت کښې د مالک لپاره قصاص ثابت دی.

وإن لم يترك وفاء إلخ: دا د مسئلې دويم صورت دی. حاصل يې دا دی چي که مقتول مکاتب د بدل کتابت په اندازه مال پرې اينبی نه وي او د هغه نور وارثان هم وي خو هغوی ټوله آزاد وي. نو په دې صورت کي د شيخينو او امام محمد رَحِمَهُمُ الله ټولو په نېز د مالک لپاره د قصاص حق سته؛ ځکه کله چي مقتول مکاتب د بدل کتابت په اندازه مال نه دی پرې اينبی، نو هغه د بدل کتابت له اداء کولو څخه عاجزه سو او عقد کتابت فسخ سو. نو بلا شکه د هغه مرګ د غلامي په حالت کي واقع سوی دی. او څرنګه چي هغه د مالک تر ملکيت لاندې دی؛ نو ځکه د هغه د قصاص حق به هم مالک لره وي.

بخلاف معتق البعض إلخ: د دې په خلاف که يو غلام د دوو کسانو (خالد او زيد) تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه يو شريک (خالد) خپله حصه آزاده کړي او د بل شريک (يعني د زيد) د حصې آزادولو لپاره خپله غلام سعي او کټه کوي او په دې دوران کي يو څوک عمداً هغه قتل کړي او هغه دومره مال نه پرېږدي د څومره مال ګټل چي پر هغه لازم وي يعني دومره مال چي په هغه سره د دې بل شريک (زيد) حصه آزاده کړی سي، نو په دې صورت کي دا بل شريک (زيد) ته د قصاص حق نه حاصليږي (يعني کوم شريک چي د پاته حصې مالک دی او هغه خپله حصه نه ده آزاد کړې او غلام هم د هغه لپاره خپل سعايه او کټه نه ده پوره کړي [چي هغه دلته زيد دی]، هغه ته د قصاص اخيستلو حق نسته)؛ ځکه که څه هم د قتل کېدلو په وجه دا غلام له مال ګټلو او د دې بل شريک د حصې له آزادولو څخه عاجزه سو. لېکن د دې عجز په وجه د هغه حصې آزادي يې نه فسخ کيږي کوم چي آزاده سوې ده (يعني کوم چي اول شريک [خالد] آزاده کړې ده). او کله چي آزاده سوې حصه باقي پاته ده، نو په ټوله غلام کي د دې بل مالک شريک (زيد) ملکيت ثابت نه سو. او بغير له ملکيت تامه څخه مالک لره د قصاص حق نه حاصليږي.

## د مرهون غلام د قتل کېدلو حکم

وَإِذَا قُتِلَ عَبْدُ الرَّهْنِ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ او کله چي مرهون غلام د مرتهن په قبضه کي قتل کړی سي لَمْ يَجِبِ الْقِصَاصُ حَتّٰى يَجْتَمِعَ الرَّاهِنُ وَالْمُرْتَهِنُ نو قصاص نه واجبيږي تر دې چي راهن او مرتهن [په قصاص اخيستلو کي] سره جمع سي لِأَنَّ الْمُرْتَهِنَ لَا مِلْكَ لَهُ ځکه چي مرتهن لره ملکيت نسته [مالک نه دی] فَلَا يَلِيْهِ نو ځکه مرتهن به د هغه [قصاص] ولي نه وي [يعني د نا مالک والي په وجه به مرتهن لره د قصاص اخيستلو ولايت نه وي] وَالرَّاهِنُ لَوْ تَوَلَّاهُ او راهن که د هغه [قصاص] متولي سي لَبَطَلَ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ فِي الدَّيْنِ نو په قرض کي به د مرتهن حق باطل سي فَيُشْتَرَطُ اِجْتِمَاعُهُمَا نو ځکه د راهن او مرتهن جمع کېدل شرط دي لِيَسْقُطَ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ بِرِضَاهُ د دې لپاره چي د مرتهن حق د مرتهن په خوښی سره ساقط سي.

**اللغات:** ﴿لا يليه﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده: ولي کېدل، ولايت او اختيار لرل. ﴿تولّاه﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: متولي او مشر کېدل، ذمه وار کېدل، ولايت لرل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مرهون غلام د مرتهن په قبضه کي عمداً قتل کړی سي، نو يوازي راهن يا يوازي مرتهن ته د قصاص اخيستلو حق نسته، بلکي په هغه کي د دواړو جمع کېدل شرط دي؛ راهن خو ځکه يوازي قصاص نه سي اخيستلای چي د مرتهن د حق ابطال لازميږي. او مرتهن ځکه يوازي قصاص نه سي اخيستلای چي پر مرهون غلام د هغه ملکيت نسته. نو ضروري ده چي دواړه جمع سي او په متفقه توګه قصاص واخلي. د دې لپاره چي د مرتهن د حق ابطال د هغه په رضاء سره سي.

**سوال:** کله چي د مرتهن په قبضه کي غلام هلاک سو، نو د هغه حق خو په همدې سره ساقط سو؟.

**جواب:** خبره خو همداسي ده، لېکن د حق ساقطېدل تر اوسه تام سوي نه دي: ځکه دا احتمال سته چي د قصاص په بدله کي د قاتل سره صلح وسي. يا د يوې شبهې پر بناء دغه قتل قتلِ خطاء وګرځي او قصاص ګردسره واجب نه سي.

## که د معتوه (باوله) کس ولي قتل کړی سي نو د قصاص حقدار څوک دی؟

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي فرمايلي دي] وَإِذَا قُتِلَ وَلِيُّ الْمَعْتُوْهِ او کله چي د معتوه ولي قتل کړی سي فَلِأَبِيْهِ أَنْ يَقْتُلَ نو د هغه پلار ته دا حق سته چي قاتل [قصاصاً] قتل کړي لِأَنَّهُ مِنَ الْوِلَايَةِ عَلَى النَّفْسِ ځکه دا [قصاص اخيستل] پر نفس د ولايت له باب څخه دي شُرِعَ لِأَمْرٍ رَاجِعٍ إِلَيْهَا

چي هغه د داسې څه لپاره مشروع دي کوم چي د نفس وطرف ته راجع دي وَهُوَ تَشَفِّي الصَّدْرِ او هغه
څه د سينې [زړه] تشفي ده [په لنډه وينا دا چي قصاص د ولايت على النفس له قبيل څخه دى او د زړه د تشفي
او تسلي لپاره مشروع دى] فَيَلِيْهِ نو ځکه پلار به د هغه ولي وي [يعني پلار ته به د قصاص اخيستلو ولايت
حاصل وي] كَالْإِنْكَاحِ لکه نکاح ورکول [يعني لکه څرنګه چي پلار ته د نکاح کولو ولايت حاصل دى] وَلَهُ
أَنْ يُصَالِحَ او پلار ته دا حق [هم] سته چي صلح وکړي لِأَنَّهُ أَنْظَرُ فِيْ حَقِّ الْمَعْتُوْهِ ځکه چي صلح
کول د معتوه په حق کي زيات د مصلحت باعث دي [يعني په صلح کي د هغه زيات مصلحت (ښېګڼه)
ده] وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَعْفُوَ او پلار لره دا حق نسته چي معافي وکړي [يعني قصاص معاف کړي] لِأَنَّ فِيْهِ
إِبْطَالَ حَقِّهِ ځکه په معافي کي د معتوه د حق باطلېدل سته وَكَذٰلِكَ إِنْ قُطِعَتْ يَدُ الْمَعْتُوْهِ عَمَدًا او
همدارنګه که د معتوه لاس قصداً پرېکړى سي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي [اوس] موږ
ذکر کړى وَالْوَصِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ فِيْ جَمِيْعِ ذٰلِكَ او وصي په دې ټولو صورتونو کي د پلار په درجه کي
دى إِلَّا أَنَّهُ لَا يَقْتُلُ ليکن وصي [قصاصاً] قتل نه سي کولاى [يعني قصاص نه سي اخيستلاى] لِأَنَّهُ
لَيْسَ لَهُ وِلَايَةٌ عَلَى نَفْسِهِ ځکه چي وصي لره د معتوه پر نفس ولايت نسته وَهٰذَا مِنْ قَبِيْلِهِ او دا
[قصاص اخيستل] د هغه [ولايت على النفس] له قبيل څخه دي وَيَنْدَرِجُ تَحْتَ هٰذَا الْإِطْلَاقِ او تر دغه
اطلاق لاندي داخلېږي الصُّلْحُ عَنِ النَّفْسِ وَاسْتِيْفَاءُ الْقِصَاصِ فِي الطَّرَفِ د نفس له جانبه صلح کول
او د طرف [اندام] قصاص اخيستل فَإِنَّهُ لَمْ يَسْتَثْنِ إِلَّا الْقَتْلَ ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله صرف د
قتل استثناء کړې ده.

**اللغات:** ﴿المعتوه﴾ باوله (اوتره، اوتي بوتي ويونکى)، ناقصُ العقل او فاسدُ التدبير کس کوم چي پوره پر سد نه وي ﴿الولاية﴾ سرپرستي او مشري، اختيار. ﴿تَشَفِّي﴾ د تفعّل د باب مصدر دى: غصه او غضب ختمېدل. زړه يخېدل، اطمينان او سکون ترلاسه کول. شفا ترلاسه کول. ﴿يصالح﴾: مفاعلې د باب مضارع ده: صلح کول. ﴿أنظر﴾ د اسمِ تفضيل صيغه ده: زيات مصلحت (ښېګڼې) والا. (زيات فايده من). ﴿ينـدرج﴾ د انفعال د باب مضارع ده: پـه ضـمن کـي راتلل. داخلېدل. ﴿الطرف﴾ مراد: عضو. اندام.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې مثلاً زيد معتوه دی او د هغه يو ځوی دی چې نوم يې حميد دی او همدا ځوی (حميد) د خپل معتوه پلار ولي دی، اوس که يو څوک د معتوه دغه ولي ځوی (حميد) عمداً قتل کړي، نو د ځوی (حميد) چې کوم نيکه دی يعني د معتوه پلار، هغه ته دا حق سته چې د خپل مقتول لمسي په بدله کې له قاتل څخه قصاص واخلي، همدا زموږ مسلک دی او همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول هم دی (بنايه)؛ د دې دليل دا دی چې د معتوه پلار ته پر معتوه (زيد) د نفس ولايت حاصل دی او قصاص اخيستل هم د ولايت على النفس له قبيل څخه دي؛ ځکه قصاص د زړه د اطمينان او تشفي په خاطر مشروع دی (چې په هغه سره د پلار د زړه براس او غيض وغضب وخيږي او په قصاص اخيستلو سره د هغه زړه يخ او مطمئن سي)، نو څرنګه چې د معتوه پلار ته د دې ولايت حاصل دی چې د معتوه نکاح وکړي، همداسي به پلار ته د معتوه حق (يعني د معتوه د ځوی د قصاص اخيستلو ولايت) هم حاصل وي.

**وله أن يصالح إلخ**: فرمايي چې څرنګه د مقتول ځوی نيکه ته يعني د معتوه پلار ته د قصاص حق سته چې له قاتل څخه قصاص واخلي، همداسي هغه ته دا حق هم سته چې د قصاص په بدله کې د قاتل سره پر مال صلح وکړي؛ ځکه په صلح کولو کې هم د معتوه مصلحت او فايده ده چې هغه ته به د قصاص په بدله کې مال حاصله سي.

ها! د معتوه پلار ته د قصاص معاف کولو او د قاتل بري کولو هيڅ حق نسته؛ ځکه په دې کې د معتوه نقصان او د هغه د حق بطلان دی، نو ځکه د معاف کولو حق ورته نسته.

همدارنګه که يو څوک قصداً د معتوه لاس پرېکړي، نو په دې صورت کې د معتوه پلار ته له قاطع څخه د قصاص اخيستلو حق سته؛ ځکه دا هم د ولايت على النفس له قبيل څخه دي، او د معتوه پلار ته د نفس د قصاص اخيستلو حق هم سته، نو د ما دون النفس د قصاص حق خو به په درجه اولیٰ ورته حاصل وي.

**والوصي بمنزله الأب إلخ**: فرمايي چې په دې پورتني صورتونو کې وصي د پلار په درجه کې دی، لهذا که د معتوه پلار نه وي، نو د هغه وصي د قصاص په بدله کې پر مال صلح هم کولای سي او د اطرافو (اندامو) قصاص هم اخيستلای سي، خو وصي د نفس قصاص نه سي اخيستلای (يعني هغه ته د دې حق نسته چې د معتوه د ځوی قصاص واخلي)؛ ځکه د نفس قصاص اخيستل د ولايت على النفس له قبيل څخه دي او وصي لره پر معتوه ولايت على النفس نسته، نو ځکه وصي قصاص خو نه سي اخيستلای، ليکن له هغه څخه بغير په نورو اُمورو کې د معتوه د پلار نائب کيږي؛ ځکه امام

محمد رَحِمَهُ الله چي کوم عبارت درج کړی دی "والوصی بمنزلة الأب فی جمیع ذٰلك إلا أنه لا یقتل" په دې عبارت کي عموم دی او له قتل څخه بغیر د بل شي استثناء نه ده پکښې سوې. (احسن الهدایه)

## د وصي په هکله د دوو متضادو عبارتونو حل او وضاحت

وَفِي كِتَابِ الصُّلْحِ: أَنَّ الْوَصِيَّ لَا يَمْلِكُ الصُّلْحَ او [د مبسوط] په کتاب الصلح کي دي: چي وصي د صلح ملکيت [او اختيار] نه لري لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي النَّفْسِ بِالِاعْتِيَاضِ عَنْهُ ځکه چي صلح کول په نفس کي تصرّف کول دي د هغه [نفس] له طرفه د عوض اخيستلو په وجه فَيُنَزَّلُ مَنْزِلَةَ الِاسْتِيفَاءِ نو ځکه هغه [صلح کول] به د قصاص اخيستلو په منزله ګرځول کيږي وَوَجْهُ الْمَذْكُورِ هٰهُنَا أَنَّ الْمَقْصُودَ مِنَ الصُّلْحِ الْمَالُ او دلته د ذکر سوي روايت دليل دا دی چي له صلح څخه مال مقصود وي وَأَنَّهُ يَجِبُ بِعَقْدِهِ او مال د وصي په عقد سره واجبيږي كَمَا يَجِبُ بِعَقْدِ الْأَبِ لکه څرنګه چي د پلار په عقد سره واجبيږي بِخِلَافِ الْقِصَاصِ په خلاف د قصاص لِأَنَّ الْمَقْصُودَ التَّشَفِّي ځکه د قصاص مقصود [دزړه] تشفي ده وَهُوَ مُخْتَصٌّ بِالْأَبِ او دا مقصود د پلار سره خاص دی وَلَا يَمْلِكُ الْعَفْوَ او وصي [د قصاص] د معاف کولو ملکيت نه لري لِأَنَّ الْأَبَ لَا يَمْلِكُهُ ځکه چي پلار [هم] د هغه ملکيت نه لري لِمَا فِيهِ مِنَ الْإِبْطَالِ ځکه چي په هغه کي [د معتوه د حق] باطلېدل سته فَهُوَ أَوْلَىٰ نو وصي به په درجه اولیٰ [د هغه ملکيت نه لري] وَقَالُوا: الْقِيَاسُ أَلَّا يَمْلِكَ الْوَصِيُّ الِاسْتِيفَاءَ فِي الطَّرَفِ. او مشايخو فرمايلي دي: قياس دا دی چي وصي په طرف [اندام] کي د قصاص اخيستلو ملکيت نه لري [يعني وصي ته د قصاص فی الطرف حق نسته] كَمَا لَا يَمْلِكُهُ فِي النَّفْسِ لکه څرنګه چي وصي په نفس کي د هغه [قصاص اخيستلو] ملکيت نه لري لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مُتَّحِدٌ ځکه چي مقصود يو دی وَهُوَ التَّشَفِّي چي هغه [د زړه] تشفي ده وَفِي الِاسْتِحْسَانِ يَمْلِكُهُ خو په استحسان کي وصي د هغه ملکيت لري [يعني استحساناً وصي ته د قصاص فی الطرف حق سته] لِأَنَّ الْأَطْرَافَ يُسْلَكُ بِهَا مَسْلَكَ الْأَمْوَالِ ځکه اطراف د اموالو په درجه کي داخلول کيږي [يا په بله وينا دا چي د اطرافو سره د مال په څېر سلوک کيږي. يعني اطراف (اندامونه) د مال په درجه کي دي] فَإِنَّهَا خُلِقَتْ وِقَايَةً

بِالنَّفْسِ كَالْمَالِ ځکه اطرف د مال په شان د نفس د حفاظت کولو لپاره پيدا کړی سوی دي عَلَىٰ مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي دا پېژندل سوې ده فَكَانَ اسْتِيفَاؤُهُ بِمَنْزِلَةِ التَّصَرُّفِ فِي الْمَالِ نو د اطرافو قصاص اخيستل به په مال کي د تصرف کولو په شان وي وَالصَّبِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْمَعْتُوهِ فِي هٰذَا او بچی په دې باره کي د معتوه په درجه کي دی وَالْقَاضِيْ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ فِي الصَّحِيْحِ او قاضي د صحيح قول مطابق د پلار په درجه کي دی أَلَا تَرىٰ أَنَّ مَنْ قُتِلَ وَلَا وَلِيَّ لَهُ آيا ته نه ګوري! چي که شوک قتل کړی سي او د هغه هيڅ ولي نه وي يَسْتَوْفِيهِ السُّلْطَانُ نو د هغه قصاص به باچا اخلي وَالْقَاضِيْ بِمَنْزِلَتِهِ فِيهِ او قاضي په دې [قصاص اخيستلو] کي د باچا په درجه کي دی.

**اللغات**: ﴿الوصی﴾ چا ته چي د مړي له طرفه وصيت سوی وي. شوک چي د مړي تر مرګ وروسته د وصيت نافذولو ذمه وار ګرځول سوی وي. ﴿اعتياض﴾ د افتعال مصدر دی: عوض اخيستل. ﴿يُنـزّل﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده(صحيح همدا ده چي په دې معنیٰ د تفعيل له بابه مستعمل دی): شو د کول. يُنزّل منزلَةً: يو شی د بل په درجه کي شو د کول (د بل شي په منزله ګرځول). يو شه د بل شه پر ځای اېښوول. د بل شي قائم مقام کول. ﴿مَنْـزِلة﴾ مکان او مرتبه، درجه. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول. اخيستل. ﴿التشفي﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: د تېر عبارت په لغاتو کي يې معنیٰ ذکر سوه. ﴿يسلك﴾ د نصر له باب څخه مضارع مجهوله ده. د دې باب څو معناوي دي: داخلېدل. داخلول (لازمي او متعدي). تګ کول (د لاري په اتباع کي تلل). ﴿مسلك﴾ تګ لاره. لاره. جمع: مسالك. ﴿وقاية﴾ د دې لفظ څو معناوي دي: يوه دا چي هر هغه شی کوم چي د بل شي د حفاظت ذريعه وي. د حفاظت او ساتني سبب.

**تشريح**: په تېر عبارت کي د جامع صغير په حواله سره دا بيان سوه چي وصي ته دا حق سته چي د قصاص په عوض کي د قاتل سره پر مال صلح وکړي، او دلته د مبسوط د کتاب الصلح په حواله سره دا بيانوي چي وصي ته د صلح کولو حق هم نسته (لکه څرنګه چي د نفس د قصاص اخيستلو حق ورته نسته)؛ ځکه د قصاص په عوض کي د قاتل سره صلح کول داسي دي لکه له قاتل څخه د نفس عوض اخيستل او په نفس کي تصرف کول، او دا د قصاص اخيستلو په درجه کي دي، او وصي ته د قصاص اخيستلو حق نسته، نو ځکه هغه ته به د صلح کولو حق هم نه وي. لنډه دا چي دلته دوه روايتونه جمع سوه چي په اول (يعني د جامع صغير په) روايت کي د صلح جواز نقل سوی دی او په دويم (يعني د مبسوط) په روايت کي د صلح عدمِ جواز نقل سوی دی.

ووجه المذكور إلخ: د اول يعني د جامع صغير د روايت دليل دا دی چي په صلح سره مال مقصود وي چي د قصاص په عوض کي مال ترلاسه کړی سي، او وصي ته دا حق سته چي د معتوه لپاره عقود ماليه (مالي معاملات) وکړي او دا صلح هم عقد مالي دی، نو ځکه وصي ته به د دې حق هم وي.

او پاته سو قصاص اخيستل نو وصي ته د هغه حق ځکه نسته چي د قصاص مقصود تشفي او د زړه اطمينان دی (چي په قصاص اخيستلو سره زړه ته تسلي او اطمينان حاصل سي) او د غم و غضب ازاله وسي، او د تشفي او تسلی ضرورت هلته سته چيري چي له مخکي څخه غم او غصه موجود وي چي هغه پلار دی او دا اُمور د پلار سره مختص دي (يعني دعوی په قتل سره غمجن کېدل او غصه راپارېدل دا د پلار سره خاص دي) او وصي خو اجنبي دی چي د دې اُمورو سره د هغه هيڅ تعلّق نسته او هغه په دې هکله غمجن او په غصه نه دی، لهذا د هغه د ازالې ضرورت به هم نه وي، نو ځکه وصي قصاص نه سي اخيستلای.

ولا يملك العفو إلخ: او پاته سوه دا مسئله چي وصي قصاص معاف کولای سي، که نه؟، نو فرمايي چي کله پلار ته د معاف کولو حق نسته، نو وصي ته به په درجه اولیٰ د دې حق نه وي؛ ځکه په دې سره د معتوه حق باطليږي او ضايع کيږي.

وقالوا القياس إلخ: مخکي چي د جامع صغير په عبارت (والوصی بمنزلة الأب في جميع ذٰلك) سره دا بيان سوی چي وصي ته د اطرافو يعني د اندامونو د قصاص اخيستلو حق هم سته، دا استحسان دی، لېکن قياس دا دی چي وصي ته د دې حق او ملکيت نسته، د قياس دليل دا دی چي د قصاص مقصود تشفي او تسلي ده، برابره ده قصاص د نفس وي او که د اطرافو وي، نو څرنګه چي د نفس د قصاص حق وصي ته حاصل نه دی، نو همداسي د اطرافو د قصاص حق هم هغه ته نه حاصلېدل پکار دي.

او د استحسان (چي وصي ته د دې حق سته) دليل دا دی چي اطراف د مال په درجه کي دي؛ ځکه مال هم د انسان د خدمت لپاره دی او اندامونه هم د انسان د خدمت لپاره دي، لهذا کله چي اطراف د مال په درجه کي سوه، نو د اطرافو قصاص اخيستل په مال کي د تصرّف کولو په څېر سوه (يعني لکه وصي چي د معتوه په مال کي تصرّف وکړي) او ښکاره ده چي وصي ته د معتوه په مال کي د تصرّف کولو حق سته، نو همداسي به هغه ته د اطرافو د قصاص اخيستلو حق هم حاصل وي.

والصبي بمنزلة المعتوه إلخ: يعني دلته چي کوم حکم د معتوه دی، هاغه حکم د بچي هم دی؛ ځکه څرنګه چي معتوه په پورتني اُمورو کي د بل چا محتاج دی، همداسي بچی هم د بل چا لارښووني او مرستي ته محتاج دی.

او قاضي د پلار په درجه کې دی چې کوم حکم د پلار دی. هغه حکم د قاضي هم دی: يعنې ځرنګه چې د معتوه پلار ته د قصاص فی النفس او ما دون النفس او د صلح وغیره حق سته، همداسې د پلار په نا موجوديت کې قاضي ته هم د دې أمورو حق سته؛ ځکه قاضي ته د معتوه پر مال او نفس ولايت حاصل دی او د قاضي ولايت عام دی، ځکه قاضي د باچا نائب دی، همدا وجه ده که يو څوک عمداً قتل کړی سي او د هغه هيڅ ولي نه وي، نو باچا د هغه ولي دی چې هغه به له قاتل څخه قصاص اخلي، او قاضي په دې سلسله کې د باچا معاون او نائب دی، لهذا ځرنګه چې باچا ته د لا وارثه کس د قصاص اخيستلو حق ستهـ. نو همداسې قاضي ته هم دا حق حاصل دی.

**که د مقتول کس په وارثانو کې ځيني بالغ او ځيني نا بالغ وي نو د قصاص حکم**

قَالَ: وَمَنْ قُتِلَ وَلَهُ أَوْلِيَاءُ صِغَارٌ وَكِبَارٌ فرمايي: او څوک چې قتل کړی سي او هغه لره لويان او کوچنيان [بالغه او نا بالغه] وليان وي فَلِلْكِبَارِ أَنْ يَقْتُلُوا الْقَاتِلَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو لويانو لره دا حق سته چې قاتل [قصاصاً] قتل کړي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا: لَيْسَ لَهُمْ ذَلِكَ حَتَّى يُدْرِكَ الصِّغَارُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې هغو ته د دې حق نستهـ تر دې چې کوچنيان بلوغ ته ورسيږي [بالغان سي] لِأَنَّ الْقِصَاصَ مُشْتَرَكٌ بَيْنَهُمْ ځکه قصاص د دوی تر مينځ مشترک دی وَلَا يُمْكِنُ اسْتِيفَاءُ الْبَعْضِ او د بعضي قصاص اخيستل ممکن نه دي لِعَدَمِ التَّجَزِّيْ د تجزي د نشتوالي په وجه [يعنې ځکه چې قصاص نه متجزي کيږي] وَفِي اسْتِيفَائِهِمُ الْكُلَّ إِبْطَالُ حَقِّ الصِّغَارِ او د لويانو د ټوله قصاص په اخيستلو کې د کوچنيانو د حق باطلېدل ستهـ فَيُؤَخَّرُ إِلَى إِدْرَاكِهِمْ نو ځکه د کوچنيانو تر بلوغ [بالغه کېدو] پورې به قصاص ځنډول کيږي كَمَا إِذَا كَانَ بَيْنَ الْكَبِيرَيْنِ وَأَحَدُهُمَا غَائِبٌ لکه کله چې قصاص د دوو لويانو تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه يو غائب وي أَوْ كَانَ بَيْنَ الْمَوْلَيَيْنِ يا [لکه] قصاص د دوو مالکانو تر مينځ مشترک وي وَلَهُ: أَنَّهُ حَقٌّ لَا يَتَجَزَّأُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې قصاص داسې حق دی کوم چې نه متجزي کيږي لِثُبُوتِهِ بِسَبَبٍ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه قصاص په داسې سبب سره ثابت دی کوم چې نه متجزي کيږي وَهُوَ الْقَرَابَةُ او هغه سبب قرابت دی وَاحْتِمَالُ الْعَفْوِ مِنَ الصَّغِيرِ مُنْقَطِعٌ او له کوچني څخه د معافی احتمال منقطع دی [يعنې دا احتمال منقطع او نا معلومه دی چې کوچنی به تر بلوغ وروسته د قاتل قصاص معاف کړي] فَيَثْبُتُ

لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَمَلًا نو ځکه دا حق به د دوی [لويانو او کوچنيانو] هر يوه لپاره په کامله توګه ثابت وي كَمَا فِي وِلَايَةِ الْإِنْكَاحِ لکه څرنګه چي د نکاح کولو په ولايت کي دي [چي د نکاح ولايت د هر ولي لپاره کامل ثابت دی] بِخِلَافِ الْكَبِيرَيْنِ په خلاف د دوو لويانو [چي له هغوی څخه يو غائب وي] لِأَنَّ احْتِمَالَ الْعَفْوِ مِنَ الْغَائِبِ ثَابِتٌ ځکه د غائب يوه له طرفه د معافی احتمال ثابت دی وَمَسْأَلَةُ الْمَوْلَيَيْنِ مَمْنُوعَةٌ او د دوو مالکانو مسئله نا تسليم سوې ده [او موږ يې نه تسليمو].

**اللغات**: ﴿صِغَار﴾ جمع د صَغِيْرٌ ده: کوچنيان. نابالغان. ﴿كِبَار﴾ جمع د كَبِيْرٌ ده: لويان. بالغان. ﴿التجزی﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: جزء، جزء کېدل (حصه. حصه کېدل). تقسيمېدل. ﴿يُؤَخِّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مؤخر کول. ځنډول. ﴿مَوْلَيَيْن﴾ تثنيه د مَوْلیٰ ده: مالک. بادار.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي مثلاً زيد عمداً قتل کړی سو. او د زيد چي کوم وارثان يعني وليان دي، له هغو څخه ځيني لويان يعني بالغان او ځيني کوچنيان يعني نابالغان دي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي کوم بالغه وليان دي. هغوی دي له قاتل څخه قصاص واخلي او د نا بالغو د بلوغ تر وخته پوري دي قصاص نه ځنډوي؛ لېکن صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي قصاص به د نا بالغو د بلوغ تر وخته پوري ځنډول کيږي او د هغوی تر بالغه کېدلو مخکي لويانو ته د قصاص اخيستلو حق نسته.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي قصاص د لويانو او کوچنيانو دواړو تر مينځ مشترک دی. لهذا کله چي دواړه ډلي په متفقه توګه قصاص واخلي نو صحيح دی، او څرنګه چي کوچنيان اوس د قصاص اخيستلو قابل نه دي، نو ځکه د دوی تر بالغه کېدلو پوري به د هغه اخيستل ځنډول کيږي. او داسي هم نه سي کېدلای چي کوم لوی بالغه وليان دي هغوی صرف د خپلي حصي قصاص واخلي او د نا بالغو (کوچنيانو) حصه پرېږدي؛ ځکه په قصاص کي تجزي او تقسيم نه سي کېدلای. او دا هم نه سي کېدلای چي بالغه وليان پوره قصاص واخلي؛ ځکه په دې کي د نا بالغو د حق ابطال راځي. نو ځکه په هيڅ صورت کي هم بالغو (لويانو) ته في الحاله د قصاص اخيستلو حق نسته.

د دې مثال داسي دی لکه قصاص چي د دوو لويانو تر مينځ مشترک وي مثلاً د يوه سړي دوه لوی (بالغه) ځامن وي. بيا يو څوک دا سړی عمداً قتل کړي او د ده له دوو ځامنو څخه يو غائب وي. نو تر څو چي غائب څوی حاضر نه سي، تر هغه وخته به قصاص ځنډول کيږي.

يا مثلاً دوه کسان يو غلام رانيسي چې له هغوی څخه يو کس (يو مالک) نا بالغه او بل بالغ وي. بيا يو څوک دا غلام عمداً قتل کړي، نو تر څو چې نا بالغه مالک بالغ نه سي. تر هغه وخته قصاص ځنډول کيږي، نو همداسي به په پورتنۍ مسئله کي هم قصاص ځنډول کيږي.

**وله أنه حق إلخ:** دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی (چي هغه وايي قصاص به نه ځنډول کيږي). حاصل د دليل يې دا دی چي د قصاص حق غير متجزي دی (يعني تجزی او تقسيم نه قبلوي): ځکه په کوم سبب سره چي د قصاص حق (وليانو ته) حاصل سوی دی، هغه سبب هم غيرِ متجزي دی ځکه هغه سبب قرابت دی او په قرابت کي ټوله وليان او وارثان په کامله توګه شريکان دي. نو معلومه سوه چي سبب (قرابت) غيرِ متجزي دی. لهذا د قصاص حق به هم غير متجزي وي او په هغه کي به ټوله کامل شريکان وي چي دلويانو له طرفه د قصاص اخيستل به د کوچنيانو له طرفه هم اخيستل شمېرل کيږي.

او محض د دې شبهې په وجه به قصاص نه ځنډول کيږي چي کېدای سي کله کوچنيان بلوغ ته ورسيږي نو قصاص به معاف کړي لهذا قصاص به ساقط سي. دا محض توهّم دی؛ ځکه اوس دا هم معلومه نه ده چي دا کوچنيان به بلوغ ته ورسيږي، که نه؟. لهذا څرنګه چي د نکاح ولايت هر برابر ولي ته کامل حاصليږي، همداسي به د قصاص حق هم هر يوه ته کامل حاصل وي او صغار او کبار ټولو لره به په برابره توګه کامل او مکمل د قصاص حق ثابت وي، لهذا کله چي کامل حق لويانو (بالغينو) لره هم ثابت سو، نو ځکه هغو ته به کاملاً د قصاص اخيستلو حق حاصل وي.

**بخلاف الكبيرين:** صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي کومي دوې مسئلې په مثال کي پيش کړي دي، له دې ځايه د هغه جواب ورکوي.

د اول مثال جواب يې دا دی چي د غائب څوی له طرفه د دې خبري احتمال سته چي هغه به قصاص معاف کړی وي او تر اوسه به حاضر څوی ته دا معلومه نه وي، نو ځکه يوازي حاضر لره د قصاص اخيستلو حق نسته.

**وَمَسْأَلَةُ الْمَوْلَيَيْنِ إلخ:** د دويم مثال جواب يې دا دی چي دا مسئله تسليم سوې نه ده. بلکي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کي بالغ مالک لره جائز دي چي قصاص واخلي او د نا بالغه مالک د بلوغ تر وخته انتظار نه وکړي، لهذا کله چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز تأخير (قصاص ځنډول) تسليم نه دي، نو هغه په مثال کي پېشول هم صحيح نه دي.

## په بېلچه وغیره سره د وهلو په صورت کې د قصاص حکم

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کې] فرمايي وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا بِمَرٍّ فَقَتَلَهُ او څوک چې يو سړی په بېلچه سره ووهي نو هغه قتل کړي فَإِنْ أَصَابَهُ بِالْحَدِيدِ نو که پر مقتول اوسپنه لګېدلې وي [يا په بله ورېنا دا چې دبېلچې په اوسپنه سره يې وهلی وي] قُتِلَ بِهِ نو قاتل به هغه په بدله کې قتلول کېږي وَإِنْ أَصَابَهُ بِالْعُودِ او که پر هغه [دبېلچې] لرګی لګېدلی وي فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ نو پر قاتل ديت [واجب] دی قَالَ ﷺ: وَهٰذَا إِذَا أَصَابَهُ بِحَدِّ الْحَدِيدِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا [حکم] هغه وخت دی کله چې پر هغه دا وسپنې تېره طرف لګېدلی وي لِوُجُودِ الْجُرْحِ د زخم د موجودېدلو په وجه [يعني چې په هغه سره مقتول زخمي سوی وي] فَكَمُلَ السَّبَبُ نو سبب به کامل وي وَإِنْ أَصَابَهُ بِظَهْرِ الْحَدِيدِ او که پر هغه د اوسپنې د شا طرف لګېدلی وي فَعِنْدَهُمَا يَجِبُ نو هم د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز قصاص واجبېږي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دی اِعْتِبَارًا مِنْهُ لِلْآلَةِ دامام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د آلې په اعتبار کولو سره وَهُوَ الْحَدِيدُ او آله [دلته] اوسپنه ده وَعَنْهُ إِنَّمَا يَجِبُ إِذَا جَرَحَ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دی چې قصاص هغه وخت واجبېږي کله چې يې زخم کړی وي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زياته صحيح ده عَلَىٰ مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ چې دا به انشاء الله موږ [وروسته] بيان کړو وَعَلَىٰ هٰذَا الضَّرْبُ بِسَنْجَاتِ الْمِيزَانِ او پر همدغه اختلاف دي د ترازو په کاڼي سره وهل وَأَمَّا إِذَا ضَرَبَهُ بِالْعُودِ او هرچې کله يې هغه [دبېلچې] په لرګي سره وهلی وي فَإِنَّمَا تَجِبُ الدِّيَةُ نو ديت [په دې وجه] واجبېږي لِوُجُودِ قَتْلِ النَّفْسِ الْمَعْصُومَةِ ځکه د معصوم نفس قتلېدل موجود سوه وَامْتِنَاعِ الْقِصَاصِ او ځکه چې قصاص ممتنع دی [نو ځکه ديت واجبېږي] حَتَّىٰ لَا يُهْدَرَ الدَّمُ د دې لپاره چې [د مقتول] وينه ضايع نه سي.

**اللغات:** ﴿مَرٌّ﴾ صاحب د حاشيې د دې لفظ يوه معنیٰ په "بېلچه" سره کړې ده. صاحب د معجم الوسيط د دې معنیٰ په مِسْحَاة سره کړې ده چې د هغه معنیٰ ده: آلَةُ القَشْرِ والجَرْفِ يعني د کيندلو پوستولو او تورلو آله، چې پر بېلچه، کلنګ، تېشه ټولو باندې د دې اطلاق کېږي. ﴿العود﴾ لرګی. هر ډول لرګي ته وايي، جمع: أعواد او عِيدان. ﴿کمل﴾ د کرُم د باب ماضي ده: کامل کېدل. پوره

کېدل. ﴿سنجات﴾ جمع د سَنْجَةٌ ده: د کوم څه په ذريعه چې بل شی تلل کيږي، په کوم شي سره چې بل شی وزن کيږي، سنجات الميزان: د ترازو کاڼی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: که څوک بل څوک (مثلاً زيد) په بېلچه وغيره سره ووهي او هغه مړ سي نو فرمايي که پر هغه مقتول (زيد) د بېلچې اوسپنه لګېدلې وي، نو پر قاتل قصاص واجب دي. او که د بېلچې لاستی (لرګی) پر لګېدلی وي، نو په دې صورت کي پر قاتل ديت واجب دی. قصاص نه دی واجب.

وهٰذا إذا أصابه إلخ: په دې سره د متن تشريح کوي فرمايي چې د بېلچې د اوسپني په لګېدلو سره قصاص هغه وخت واجبيږي، کله چې د اوسپنې تېره طرف پر لګېدلی وي (چې په هغه سره کيندل او پرېکول کيږي)، د دې لپاره چې زخمي کړی يې وي او د قصاص سبب کامل سي. او که د اوسپني د شا پڅ طرف پر لګېدلی وي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو دا قتلِ عمد دی. لهذا قصاص واجبيږي.

او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه په دې باره کي دوه روايتونه دي: ① قصاص واجب دی؛ ځکه دلته د قتل آله اوسپنه ده، او اوسپنه في نفسه وسله ده. ② قصاص واجب نه دی. ها! که د اوسپني په شاتني طرف سره هم زخمي سوی وی (يعني زخم يې پکښي جوړ کړی وي)، نو قصاص واجبيږي، خو بغير له زخمي کېدلو څخه نه واجبيږي؛ ځکه بغير له زخم څخه افساد او د قصاص سبب کامل نه سو، نو د آخري کاملې سزا (قصاص) استحقاق به هم نه وي.

وعلىٰ هٰذا الضرب إلخ: فرمايي که څوک د ترازو د اوسپني په کاڼي سره بل څوک ووهي او هغه مړ سي، نو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا قتلِ عمد دی، لهذا قصاص واجب دی، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز که په هغه سره مقتول زخمي سوی وي (زخم پکښي جوړ سوی وي)، نو بيا دا قتلِ عمد دی او قصاص واجب دی، کنې نه دی. (کمامرّ)

وأما إذا ضربه إلخ: د دې په خلاف که څوک د بېلچې په لاستي (لرګي) سره بل څوک ووهي او هغه مړ سي، نو په دې صورت کي پر قاتل ځکه ديت واجبيږي او قصاص نه واجبيږي چې د بېلچې لاس خو نه اوسپنه او وسله ده، او نه عموماً هغه د وژلو لپاره استعماليږي. لېکن څرنګه چې دلته د هغه په وجه مضروب کس مړ سوی دی او قصاص واجب نه دی، نو اوس به ديت خامخا واجبيږي. کنې د هغه وينه او خون به ضايع ولاړ سي (په لنډه وينا دا چې د بېلچې په لاستي سره د قتل کېدلو په وجه دغه قتل "قتلِ عمد" نه سي کېدلای چې قصاص واجب کړی سي. نو ځکه لامحاله به ديت واجبول کيږي. چې د مقتول وينه هدر نه سي).

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت او د فقهاؤ قولونه

ثُمَّ قِيْلَ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ الْعَصَا الْكَبِيْرَةِ بیا ویل سوي دي: چې [د بېلچې] لاستی [لرګی] د لکړي په درجه کې دی فَيَكُوْنُ قَتْلًا بِالْمُثَقَّلِ نو دا به په درانه شي سره د قتلولو په درجه کې وي وَفِيْهِ خِلَافُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او په دې کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله اختلاف دی عَلٰى مَا نُبَيِّنُ د هغه تفصيل مطابق چې موږ به يې [وروسته] بيان کړو وَقِيْلَ: هُوَ بِمَنْزِلَةِ السَّوْطِ او ويل سوي دي: چې لاستی [لرګی] د دُرې په درجه کې دی وَفِيْهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَهِيَ مَسْأَلَةُ الْمُوَالَاةِ او دا د موالات [پرلپسې وهلو] مسئله ده لَهُ: أَنَّ الْمُوَالَاةَ فِي الضَّرَبَاتِ إِلٰى أَنْ مَاتَ دَلِيْلُ الْعَمَدِيَّةِ د امام شافعي دليل دا دی: چې پرلپسې [مسلسل] وهل تر دې چې هغه مړ سي د عمد والي دليل دی فَيَتَحَقَّقُ الْمُوْجِبُ لهذا د قصاص موجب [واجبونکی] به متحقق سي وَلَنَا مَا رَوَيْنَا: «أَلَا إِنَّ قَتِيْلَ خَطَإِ الْعَمَدِ» او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چې موږ روايت کړی [يعني]: أَلَا إِنَّ قَتِيْلَ خطإ العمد وَيُرْوٰى "شِبْهِ الْعَمَدِ" او روايت سوی دی: شبه العمد [يعني په يوه روايت کې د "خطإ العمد" پر ځای "شبه العمد" نقل سوي دي] وَلِأَنَّ فِيْهِ شُبْهَةَ عَدَمِ الْعَمَدِيَّةِ او ځکه چې په دې کې د عدمِ عمديت [ناعمد والي] شبه ده لِأَنَّ الْمُوَالَاةَ قَدْ تُسْتَعْمَلُ لِلتَّأْدِيْبِ ځکه پرلپسې والی [پرلپسې وهل] کله دادب ښوونې [او اصلاح] لپاره کارول کيږي أَوْ لَعَلَّهُ اِعْتَرَاهُ الْقَصْدُ فِيْ خِلَالِ الضَّرَبَاتِ يا کېدای سي هغه [ضارب] ته د وهلو په دوران کې [د قتل] قصد عارض سوی وي [نه په شروع کې] فَيَعْرٰى أَوَّلُ الْفِعْلِ عَنْهُ نو د فعل [وهلو] اوله حصه به له قصد څخه خالي وي وَعَسَاهُ أَصَابَ الْمَقْتَلَ او کېدای سي هغه [وهل يا مضروب] د قتل وخت ته رسېدلی وي [يعني د ضارب له قصد (ارادې) څخه بغير د مرګ وخت ته رسېدلی وی. وضاحت به يې د تشريح په آخر کې وسي] وَالشُّبْهَةُ دَارِئَةٌ لِلْقَوَدِ او شبهه د قصاص دفع کونکې ده فَوَجَبَتِ الدِّيَةُ نو ځکه ديت به واجب وي.

**اللغات:** ﴿العصا الكبيرة﴾ لويه لکړه. ﴿المثقل﴾ درونډ شی. ﴿السوط﴾ دُره. ﴿موالاة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: پرلپسې والی. پرلپسې کېدل. ﴿تأديب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ادب ښوول. ادب ور زده کول. ﴿اعتراه﴾ د افتعال د باب ماضي ده: عارضېدل، پېښېدل، واردېدل. ﴿يعرى﴾ د فتح

د باب مضارع ده: خالي کېدل. ﴿دارئة﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده: دفع کونکی او لیري کونکی، ختمونکی، ساقطونکی.

**تشریح**: د بېلچې وغيره په لاستي سره د وهلو په صورت کې د مضروب کس د مړ کېدلو سره اړوند احکام خو مخکې بيان سول، لېکن له هغه څخه بغير په دې مسئله کې نور اقوال هم سته چې هغه په دې عبارت کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله بيان کړي دي، نو فرمايي چې په دې هکله د ځينو حضراتو قول دا دی چې د بېلچې لاستی (لرگی) د غټې لکړې په درجه کې دی، او غټه لکړه د سنگين (درانه) شي په درجه کې ده او په سنگين شي سره واقع کېدونکی قتل د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قتلِ شبهِ عمد دی چې د هغه موجب ديت دی (يعني په قتلِ شبهِ عمد سره ديت واجبيږي). او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغه قتلِ عمد دی چې د هغه موجب قصاص دی، نو د دې قول مطابق د بېلچې په لاستي سره په واقع کېدونکي قتل کې هم دا مذکوره اختلاف جاري کيږي او همدې طرف ته صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په خپل دې وينا "وفيه خلاف أبي حنيفة" سره اشاره کړې ده.

وقيل هو بمنزلة السوط إلخ: د بېلچې د لاستي په هکله دويم قول دا دی چې هغه د سَوط (دُرې) په درجه کې دی، او کوم قتل چې په دُره سره واقع سي نو هغه قتلِ شبهِ عمد دی کوم چې د ديت موجب دی. لهذا د بېلچې په لاستي سره واقع کېدونکي قتل به هم شبهِ عمد او د ديت موجب وي، نه د قصاص؛ لېکن دا حکم هغه وخت دی کله چې مضروب کس په يو څو دُرو سره سمدستي مړ سوی وي، خو که هغه مسلسل پرلپسې په دُرو سره ووهل سي تر دې چې مړ سي، نو دا د موالات (يعني د پرلپسې وهلو په وجه د مړ کېدلو) مسئله ده چې په هغه کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، او هغه دا چې کله د موالات په وجه قتل واقع سي نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز دا قتلِ عمد دی کوم چې موجب د قصاص دی، او زموږ په نېز دا قتلِ شبهِ عمد دی کوم چې موجب د ديت دی.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د مضروب کس د مرگ تر وخته هغه مسلسل وهل د عمديت دليل دی؛ ځکه په مسلسل وهلو سره دا خبره څرگنده سوه چې د ضارب مقصد د مضروب وژل دي. لهذا د ضارب د نيت او قصد په وجه دا قتل به قتلِ عمد وي او پر ضاب به قصاص واجب وي.

ولنا إلخ: په دې سلسله کې زموږ دليل دا حديث دی "ألا إن قتيل خطإ العمد قتيل السوط والعصا وفيه مائة من الإبل" او په يوه روايت کې د "قتيل خطإ العمد" پر ځای "قتيل شبه العمد" دي کوم چې د

دې خبرې څرګند دليل دی چې په لکړې او ډرې سره قتل کړی سوی کس مقتول شبه عمد دی چې په هغه کې ديت واجب دی، نه قصاص.

ولأن فيه شبهة إلخ: زموږ عقلي دا دی چې په مسلسل پرلپسې وهلو کې شبهه ده يعني دا يقين نسته چې ضارب د وژلو په قصد سره مضروب وهلی دی، ځکه ځيني وخت مضروب د تأديب او سمولو په غرض سره پرلپسې وهل کيږي، لهذا په دې کې شبهه پيدا سوه او د شبهې په وجه قصاص ساقطيږي. يا بل احتمال دا دی چې کېدای سي په شروع کې د ضارب دا اراده نه وه چې مضروب ووژني، خو د وهلو په دوران کې هغه دا اراده وکړه، نو څرنګه چې دلته د وهلو د شروع حصه (اول وهل) د قتل له قصد او ارادې څخه خالي دي او د قتل پر اراده مبني نه دي. نو ځکه په دې کې هم شبهه پيدا سوه. يا بل احتمال دا دی چې عساه أصاب المقتل: د دې يوْ مطلب دا دی چې يا کېدای سي د ضارب قصد (اراده) د قتل نه وي بلکې د تنبيه او أصلاح په غرض سره يې مضروب وهلی وي خو بيا دا وار د مضروب پر يو نازک ځای لګېدلی او هغه مړ سوی وي، نو په دې صورت کې هم په قتل کې شبه راغله. او ځيني حضراتو د دې جملې مطلب دا بيان کړی دی چې يا کېدای سي د هغه اراده د قتل نه وي لېکن ناڅاپه داسې پېښ سي چې کله هغه وهل شروع کړي نو له مخکې څخه دا د هغه مضروب د مرګ وخت وي او دا وهل يې محض بانه سي او هغه مړ سي، نو په دې صورت کې هم شبهه راغله، او د شبهې په وجه قصاص ساقطيږي. نو ځکه زموږ په نېز حکم دا دی چې دلته قصاص ساقطيږي او ديت واجبيږي.

## په اوبو کې د غرقولو او قتلولو په صورت کې د قصاص حکم او د فقهاو قولونه

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کې] فرمايي وَمَنْ غَرَّقَ صَبِيًّا أَوْ بَالِغًا فِي الْبَحْرِ او څوک چې کوچنی يا بالغ کس په سمندر کې غرق کړي فَلَا قِصَاصَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قصاص نسته وَقَالَا[1]: يُقْتَصُّ مِنْهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې له هغه څخه به قصاص اخيستل کيږي وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی غَيْرَ أَنَّ عِنْدَهُمَا

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله عند صاحب الهداية حيث أخر دليله من دلائلهما وأجاب عن استدلالهما بالحديث المأثور بأنه غير مرفوع انظر للتفصيل [القول الراجح ج:٢، ص:٣٣٦]

يُسْتَوْنِي حَزًّا خو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به [د غاړې] په پرېکولو سره قصاص اخيستل کيږي وَعِنْدَهُ يُغَرَّقُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به هغه غرقول کيږي كَمَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې مونږ دا بيان کړه لَهُمْ قَوْلُهُ عليه السلام ❶: «مَنْ غَرَّقَ غَرَّقْنَاهُ» د دې حضراتو دليل د نبي ﷺ دا فرمان: څوک چې غرقول وکړي نو مونږ به [هم] هغه غرقوو وَلِأَنَّ الْآلَةَ قَاتِلَةٌ او ځکه چې آله [د سمندر اوبه] قتلونکې دي فَاسْتِعْمَالُهَا أَمَارَةُ الْعَمْدِيَّةِ نو د هغه استعمالول د عمديت نښه ده وَلَا مِرَاءَ فِي الْعِصْمَةِ او [دويني] په عصمت کې هيڅ نزاع [او شبهه] نسته وَلَهُ قَوْلُهُ عليه السلام او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی «أَلَا إِنَّ قَتِيلَ ❷ خَطَإِ الْعَمْدِ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا» خبردار! د خطاء عمد [شبه عمد] مقتول د دُرې او لکړې مقتول دی [يعني هغه کس چې په دُرې او لکړې سره قتل کړی شوی وي] وَفِيهِ: «وَفِي كُلِّ خَطَإٍ أَرْشٌ» او په دې حديث کې دي: او په هر قتلِ خطاء کې ديت دی لِأَنَّ الْآلَةَ غَيْرُ مُعَدَّةٍ لِلْقَتْلِ ځکه دا آله [اوبه] د قتل لپاره تياره سوې نه ده وَلَا مُسْتَعْمَلَةٌ فِيهِ او نه په قتل کې استعماليدونکې ده لِتَعَذُّرِ اسْتِعْمَالِهِ ځکه د هغه استعمال متعذر دی فَتَمَكَّنَتْ شُبْهَةُ عَدَمِ الْعَمْدِيَّةِ نو د عدمِ عمديت شبهه پيدا سوه وَلِأَنَّ الْقِصَاصَ يُنْبِئُ عَنِ الْمُمَاثَلَةِ او ځکه چې قصاص د مماثلت خبر ورکوي وَمِنْهُ يُقَالُ: اِقْتَصَّ أَثَرَهُ او له همدې څخه ويل کيږي: اِقْتَصَّ أَثَرَهُ [چې فلانکی کس د فلانکي پر نښه [قدم] باندې ولاړی] وَمِنْهُ الْمِقَصَّةُ لِلْجَلَمَيْنِ او له همدې څخه دي [لفظ د] مِقَصَّة د غيچې د دواړو اوسپنو لپاره [چې په هغوی سره پرېکول کيږي] وَلَا تَمَاثُلَ بَيْنَ الْجَرْحِ وَالدَّقِّ او د جرح او دقّ [زخمي کولو او کوټلو] تر مينځ مماثلت نسته لِقُصُورِ الثَّانِي عَنْ تَخْرِيبِ الظَّاهِرِ ځکه دويم [دقّ] د ظاهر له خرابولو څخه قاصر دي [يعني په کوټلو سره د بدن ظاهر نه خرابول کيږي بلکې باطن کوټل کيږي] وَكَذَا لَا يَتَمَاثَلَانِ فِي حِكْمَةِ الزَّجْرِ او همدارنګه دا دواړه [جرح او دقّ] د زجر په حکمت کې هم مماثل نه دي لِأَنَّ الْقَتْلَ بِالسِّلَاحِ غَالِبٌ ځکه په وسله سره قتلول

---

❶ تخريج: أخرجه البيهقي في سنن الكبرى، باب عمد القتل بالحجرة وغيرها، حديث رقم: ١٥٩٩٣.

❷ تخريج: أخرجه ابن ماجة بمعناه في كتاب الديات، باب دية شبه العمد، حديث رقم: ٢٦٢٧.

غالب [رائج] دي وَبِالْمُثَقَّلِ نَادِرٌ او په درانه شي سره [قتلول] نادر دي وَمَا رَوَاهُ غَيْرُ مَرْفُوعٍ او هغه حديث کوم چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی غير مرفوع دی أَوْ هُوَ مَحْمُولٌ عَلَى السِّيَاسَةِ يا هغه پر سياست محمول دی وَقَدْ أَوْمَتْ إِلَيْهِ إِضَافَتُهُ إِلَى نَفْسِهِ فِيْهِ او همدې طرف ته اشاره کړې ده په حديث کي د غرقولو نسبت د ځان وطرف ته کول [يعني په حديث کي چي نبي کريم ﷺ د غرقولو نسبت ځان ته کړی دی چي "غرقناه". دا همدې طرف ته اشاره کوي چي دغه حديث پر سياست مدنيه محمول دی] وَإِذَا امْتَنَعَ الْقِصَاصُ او کله چي قصاص ممتنع سو وَجَبَتِ الدِّيَةُ نو ديت به واجب وي وَهِيَ عَلَى الْعَاقِلَةِ او ديت پر عاقله وو دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او دا مو ذکر کړي دي [فی أول کتاب الجنايات] وَاخْتِلَافُ الرِّوَايَتَيْنِ فِي الْكَفَّارَةِ او په کفاره کي د دوو روايتونو اختلاف دی.

**اللغات:** ﴿غَرَّقَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: غرقول. ډوبول. غوپول. او غَرَّقْنَا له همدې باب څخه د جمع متکلم صيغه ده. ﴿صبي﴾ بچی. کوچنی. ﴿حَزًّا﴾ د نصر له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: حَزَّ يَحُزُّ حَزًّا: قطع کول. پرېکول (داسي پرېکول چي را جلا نه سي). ﴿مِراء﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: مَارَىٰ يُمَارِي مُمَارَاةً وَمِرَاءً: مجادله او نزاع کول. مناظره او مباحثه. ﴿تمكّنت﴾ د تفعّل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده: ځای نيول. قرار نيول. ﴿أرش﴾ جرمانه. ديت. ﴿مُعَدَّة﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث مفعول صيغه ده: تيار کړی سوی. ﴿الدّق﴾ د نصر د باب مصدر دی: کوټل. ﴿الجلمين﴾ تثنيه د جَلَمْ: هغه څه چي بل څه په پرېکول کيږي. مراد: د غچي هغه دوې اوسپني چي په هغه سره پرېکول کيږي. ﴿عصمة﴾ محفوظيت (محفوظ کېدل. د حفاظت حقدار کېدل). د حفاظت حق.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو کوچنی يا بالغ کس په سمندر او درياب کي غرق کړي او هغه مړ سي، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز صرف ديت واجبيږي، قصاص نه واجبيږي چي له غرقونکي سړي څخه به قصاص نه اخيستل کيږي. لېکن صاحبين او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي قصاص واجبيږي.

بيا د قصاص په صورت کي اختلاف دی، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په قصاص کي به د قاتل غاړه پرېکول کيږي، او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي قاتل به هم غرقول کيږي لکه مخکي

چي د هغه مسلک ذکر سو چي "يُفعل به كما فعل إن كا فعلاً مشروعًا". صاحبينو او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله دواړو په دې حديث سره دليل نيولى دى يعني دا د ټولو مشترک دليل دى "مَنْ غَرَّقَ غَرَّقْنَاهُ".

په دې حديث سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل نيول خو ښکاره دي، او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي له دغه حديث څخه دا معلومه سوه چي له قاتل (غرقونکي) څخه به قصاص اخيستل کيږي او د قصاص طريقه خو په مخکيني حديث کي ذکر سوې ده چي "لَا قَوَدَ إِلَّا بِالسَّيْفِ" (يعني قصاص به صرف په توره [وسله] سره اخيستل کيږي). او بل دا چي غرقونکي کس هلاکونکى فعل اختيار کړى دى يعني په اوبو کي ډبول. او دا ګواکي د قتل آله ده. نو د قتل د آلې استعمالول د قصد او عمد دليل دى. او د کوچني يا بالغ کس په معصومُ الدم کېدو کي نزاع او شبهه نسته. او قاتل عمداً قتل کوي، نو دا قتلِ عمد دى کوم چي موجب د قصاص دى. نو ځکه په دې صورت کي به پر قاتل قصاص واجبيږي.

ولهُ قوله ﷺ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دى، حاصل يې دا دى چي اوبه د قتل آله نه ده. نو د هغه حکم به د وسلې حکم نه وي، بلکي د هغه حکم به د لکړي او دُرې حکم وي چي په هغه کي ديت واجبيږي: ځکه په حديث کي دي "ألا إن قتيل خطإ العمد قتيل السوط والعصا"، او په دې حديث کي بله جمله دا ده "وفي كل خطإ أرش"... "وفيه مائة من الإبل". او د حديث مطلب همدا دى چي په هر خطاء عمد (شبهِ عمد) او جنايتِ خطاء کي ديت واجبيږي. نو ځکه په مذکوره صورت کي به هم صرف ديت واجب وي. او بل دا چي اوبه نه د قتل آله ده او نه عموماً د قتل لپاره هغه استعماليږي. او بيا په زياتره صورتونو کي د قتل لپاره اوبه استعمالول متعذر او ناممکن هم دي. نو په اوبو سره په قتلولو کي د عدمِ عمديت شبهه راغله. او په شبهې سره قصاص ساقطيږي. نو ځکه په دې حواله سره په مذکوره صورت کي به قصاص ساقط وي او صرف ديت به واجب وي.

ولأن القصاص ينبئ إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله بل دليل دا دى چي د قصاص د واجبېدلو لپاره خو مماثلت او مساوات ضروري دى (لکه مخکي چي ذکر سوه): ځکه د قصاص خپله معنىٰ د مماثلت او مساوات ده. په همدې وجه "اِقْتَصَّ أَثَرَهُ" هغه وخت ويل کيږي کله چي يو څوک خاص د بل چا پر پله (نقشِ قدم) باندي ولاړ سي. همدارنګه دغه چي د دواړو اوسپنو لپاره (کوم چي يو د بل مثل او سره برابري دي) د مِقَصَّةٌ لفظ استعماليږي او مِقَصَّةٌ هم له قصاص څخه مشتق دى. لهذا دا چي د قصاص د

وجوب لپاره مماثلت او مساوات ضروري دی، او په غرقولو او قصاص کې هیڅ مماثلت نشته؛ ځکه په قصاص کې ظاهر او باطن دواړه زخمي کیږي، حال دا چې په غرقولو کې له زخم څخه بغیر هم مرګ واقع کیږي، په همدې وجه وایي چې په جَرْح او دَق (زخمي کولو او کوټلو) کې مماثلت نشته، ځکه په دَق (کوټلو) کې ظاهر نه خرابول کیږي بلکې باطن (دننه) کوټل کیږي. لهذا کله چې په جرح او دَق کې مماثلت نشته، نو په جرح او غرق (قصاص او غرق) کې خو به په درجه اولیٰ مماثلت نه وي، او کله چې مماثلت معدوم دی نو قصاص به هم معدوم وي. (احسن الهدایه)

وكذا لايتماثلان إلخ: همدارنګه د قصاص یو مهم مقصد دا دی چې په هغه سره زجر او عبرت حاصل سي، او دا مقصد هماغه وخت په کامله توګه حاصلیږي کله چې قتل په داسي آله سره سوی وي چې په هغه سره قتل کول غالب او رائج وي، او په کوم څه سره چې قتل غالب او رائج نه وي، هلته دا د زجر حکمت هم نه حاصلیږي، او دا ښکاره ده چې غالب او عام رواج په وسله (توره، ټوپک وغیره) سره قتل کول دي، او په غرقولو یا درانه شي سره قتل کول نادر دي، لهذا دلته د قصاص واجبولو سره د زجر حکمت متماثل نه دی، نو په دې حواله سره هم دلته قصاص نشته.

وما رواه إلخ: او پاته سو هغه حدیث چې امام شافعي او صاحبینو رَحِمَهُمُ الله دلیل په نیولی دی، هغه مرفوع متصل نه دی، بلکې هغه د زیاد کلام دی (کوم چې د حدیث راوي دی)، او په غیرِ مرفوع حدیث سره دلیل نیول صحیح نه دي.

یا بیا هم که مونږ دا حدیث مرفوع ومنو، نو جواب یې دا دی چې دغه حدیث پر سیاست مدنیه محمول دی؛ ځکه په هغه کې صاحبِ شریعت ﷺ د غرقولو نسبت د ځان طرف ته کړی دی یعني "غَرَّقْنَاهُ".

لنډه دا چې کله په دې مسئلهِ کې پر قاتل قصاص نه سي لازمېدلای، نو دیت به واجبیږي چې هغه به د قاتل عاقله (په دریو کالو کې) اداء کوي.

واختلاف الروايتين إلخ: پاته سوه دا خبره چې په دې مسئله کې پر قاتل کفاره سته، که نه؟، نو د یوه روایت مطابق کفاره نشته. لیکن د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د روایت مطابق کفاره واجب ده او په قول د علامه عیني رَحِمَهُ الله همدا روایت صحیح دی. (بنایه ج: ۱۲، ص: ۱۲۹)

## كه مجروح كس فوراً مړ نه سي بلكې وروسته مړ سي، نو د قصاص حكم

قَالَ: وَمَنْ جَرَحَ رَجُلًا عَمَدًا فرمايي: او څوک چي يو سړی قصداً زخمي کړي فَلَمْ يَزَلْ صَاحِبَ فِرَاشٍ حَتّٰى مَاتَ نو هغه [مجروح سړی] مسلسل بستري سي تر دې چي هغه مړ سي فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ نو پر هغه [جارح] قصاص واجب دی لِوُجُوْدِ السَّبَبِ [دمرګ] د سبب موجودېدلو په وجه [چي هغه زخمي کول دي] وَعَدَمِ مَا يُبْطِلُ حُكْمَهُ فِي الظَّاهِرِ او د هغه شي د نشتوالي په وجه کوم چي ظاهراً د دې سبب حکم باطل کړي [يعني ځکه چي په ښکاره داسي شی (دليل) نسته چي د دې سبب حکم باطل کړي] فَأُضِيْفَ إِلَيْهِ نو ځکه د حکم اضافت [نسبت] به د سبب وطرف ته کيږي.

**اللغات:** ﴿صَاحِبِ فراش﴾ د بستر خاوند، بستري، هغه کس چي مرض او تکليف يې دومره سخت سي چي له ولاړي څخه يې وباسي او بستر ونيسي، ﴿أُضِيْف﴾ د افعال له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: اضافت کول، نسبت کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** که څوک عمداً يو سړی (مثلاً حامد) زخمي کړي او له زخمي کېدلو وروسته هغه سړی (حامد) څو ورځي مسلسل صاحب فراش وي تر دې چي په همدې حالت کي د هغه زخم په نتيجه کي مړ سي، نو اوس حکم دا دی چي پر جارح (يعني کوم چا چي دا سړی زخمي کړی دی پر هغه) قصاص واجبيږي؛ ځکه د مرګ سبب يعني زخمي کول د هاغه له طرفه واقع سوي دي، او څرنګه چي هغه عمداً زخمي کړی دی او د مجروح (حامد) له طرفه معافي هم نه ده سوې، لهذا د جارح له طرفه چي کوم د مرګ سبب واقع سوی دی، د هغه هيڅ باطلونکی دليل نسته، لهذا دا مرګ به د هاغه د سبب (زخمي کولو) وطرف ته منسوب وي، نو ځکه پر هغه به قصاص واجب وي.

## د جنګ په ميدان کي په غلطي سره د مسلمان کس د قتلولو حکم

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي] فرمايي وَإِذَا الْتَقَى الصَّفَّانِ مِنَ الْمُسْلِمِيْنَ وَالْمُشْرِكِيْنَ او کله چي د مسلمانانو او مشرکانو دواړه صفونه سره مخامخ [او سره ګډ] سي فَقَتَلَ مُسْلِمٌ مُسْلِمًا ظَنَّ أَنَّهُ مُشْرِكٌ بيا يو مسلمان بل مسلمان قتل کړي په دې ګومان چي هغه مشرک دی فَلَا قَوَدَ عَلَيْهِ نو پر هغه قصاص نسته وَعَلَيْهِ الْكَفَّارَةُ خو پر هغه کفاره سته لِأَنَّ هٰذَا أَحَدُ نَوْعَيِ الْخَطَإِ ځکه دا د قتلِ خطاء له دوو قسمونو څخه يو قسم دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي [مخکي] موږ دا بيان

وَيُوجِبُ الْكَفَّارَةَ وَكَذَا الدِّيَةَ او كفاره او همدارنګه ديت واجبوي عَلٰى مَا نَطَقَ بِهِ نَصُّ الْكِتَابِ لکه څرنګه چې نصّ د کتابُ الله په دې سره ګويا دی «وَلَمَّا اخْتَلَفَتْ سُيُوْفُ الْمُسْلِمِيْنَ عَلَى الْيَمَانِ أَبِيْ حُذَيْفَةَ او کله چې د مسلمانانو توري د حضرت حذيفه رضي الله عنه پر پلار يَمان باندي واقع سوې قَضٰى رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم بِالدِّيَةِ[1]» نو رسول الله ﷺ د ديت فيصله وکړه قَالُوْا: إِنَّمَا تَجِبُ الدِّيَةُ إِذَا كَانُوْا مُخْتَلِطِيْنَ مشايخو فرمايلي دي: چې ديت هغه وخت واجبېږي کله چې مسلمانان او مشرکان يو د بل سره ګډ وي فَإِنْ كَانَ فِيْ صَفِّ الْمُشْرِكِيْنَ ليکن که يو مسلمان د مشرکانو په صف کې وي لَا تَجِبُ نو ديت نه واجبېږي لِسُقُوْطِ عِصْمَتِهِ ځکه چې د هغه عصمت [د حفاظت حق] ساقط سو بِتَكْثِيْرِ سَوَادِهِمْ د مشرکانو د تعداد زياتولو په وجه [يعني ځکه چې په هغه سره د کافرانو شمېر اضافه سوی دی. نو په دې وجه د هغه عصمت ساقط سو] قَالَ عليه السلام[2]: «مَنْ كَثَّرَ سَوَادَ قَوْمٍ نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چې د يو قوم تعداد اضافه کړي فَهُوَ مِنْهُمْ» نو هغه له همدوی څخه دی.

**اللغات:** ﴿اِلْتَقٰى﴾ د افتعال د باب ماضي ده: يو د بل سره مخامخ کېدل، يو د بل سره يو ځای کېدل او جمع کېدل. ﴿سواد﴾ د دې لفظ ډېرې معناوې دي چې له هغوی څخه ځيني دا دي: د يو چا اتباع، جماعت او تعداد. ﴿عصمة﴾ محفوظيت او ممنوعيت (محفوظ کېدل، د حفاظت حقدار کېدل)، د حفاظت حق.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د مسلمانانو او مشرکانو صفونه د جنګ او قتال لپاره يو د بل سره نژدې او مخامخ سي او لاس په لاس جنګ شروع سي، بيا په دې دوارن کې يو مسلمان مجاهد د مشرک په ګومان بل مسلمان مجاهد قتل کړي (يعني د هغه ګومان دا وي چې دا مشرک او کافر دی. خو که ګوري هغه مسلمان وي)، نو په دې صورت کې پر قاتل قصاص نسته، صرف کفاره او ديت سته، ځکه دا قتل خطاء في القصد دی او د قتلِ خطاء په يوه قسم کې هم قصاص نسته، بلکې ديت او کفاره واجبېږي؛ په دې سلسله کې اول دليل د قرآن کريم دا آيت دی: ﴿وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلٰى أَهْلِهِ﴾. [سورة النساء: ۹۲]

---

[1] تخريج: اخرجه البيهقي في سنن الكبرى، باب المسلمين يقتلون مسلمًا خطأ، حديث رقم:۱۶۴۷۸. (احسن الهدايه)

[2] تخريج: أخرجه ابو يعلى موصلي في مسنده عن هماموابن المبارک في کتاب الزهد والرقائق. (احسن الهدايه)

ولما اختلفت سيوف إلخ: دويم دليل د حضرت حذيفه رضي الله عنه د پلار واقعه ده، پوره واقعه داوه چي په غزوۀ خندق کي د حذيفه رضي الله عنه پلار يمان رضي الله عنه د خپل بوډا والي په وجه د ښځو او کوچنيانو سره پريو غونډۍ ناست وو، او کله چي دواړه صفونه سره ومونښتل او د تورو شرنګهار سو، نو پر يمان رضي الله عنه د شهادت شوق لو جذبه طاري سوه او ميدان ته راشوه سو، خو مسلمانانو هغه مشرک وګڼي او د تورو ګذارونه يې پرې شروع کړه، حضرت حذيفه رضي الله عنه چي دا حالت وليدى نو پر هغو سي، چيغي او نعري کړې چي دا خو زما پلار دى، لېکن چا د هغه آواز نه واورېدى تر دې چي د هغه پلار قتل سو، بيا په دې واقعه کي نبي کريم ﷺ د ديت فيصله وکړه او حکم يې وکړى چي حضرت حذيفه رضي الله عنه ته دي ديت ورکول سي، نو له دې واقعې څخه په واضحه توګه معلومه سوه چي د قتل خطاء فى القصد په صورت کي قصاص نه، بلکي ديت واجب دى.

قالوا إلخ: مشايخو رَحِمَهُمُ الله فرمايلي دي چي د ديت حکم هغه وخت دى کله چي دواړه صفونه سره ګډ او سره ننوځي او لاس په لاس جنګ شروع سي بيا په همدې دوران کي يو مسلمان د مشرک په ګومان بل مسلمان قتل کړي، لېکن که يو مسلمان له مخکي څخه د کافرانو په صف ننوتلى وي او بيا يو مسلمان هغه قتل کړي، نو په دې صورت کي ديت هم نه واجبېږي؛ ځکه په دې صورت کي مقتول مسلمان د کافرانو د تعداد زياتونکى شمېرل کيږي (چي په هغه سره د کافرانو شمېر زيات سوى دى)، او په دې وجه د هغه عصمت او د هغه د حفاظت حق ساقطيږي، ځکه په حديث کي دي چي کوم کس د يو قوم په تعداد کي د زياتوب باعث وګرځي، دا کس د هاغه قوم له افرادو څخه شمېرل کيږي، نو په دې حواله سره په مذکوره صورت کي پر قاتل ديت هم نه واجبيږي.

## که په يو مقتول کي د قتل څو اسباب جمع سي نو څه حکم دى؟

قَالَ: وَمَنْ شَجَّ نَفْسَهُ فرمايي: او کوم کس چي خپل سر مات کړي وَشَجَّهُ رَجُلٌ او [بل] سړى [هم] د هغه سر ورمات کړي وَعَقَرَهُ أَسَدٌ او يو زمرى هغه وداړي [ټپي يې کړي] وَأَصَابَتْهُ حَيَّةٌ او مار [هم] هغه وچيچي فَمَاتَ مِنْ ذٰلِكَ كُلِّهِ او هغه کس له دې ټولو څخه مړ سي فَعَلَى الْأَجْنَبِيِّ ثُلُثُ الدِّيَةِ نو پر اجنبي سړي د ديت ثلث [دريمه حصه] واجب ده لِأَنَّ فِعْلَ الْأَسَدِ وَالْحَيَّةِ جِنْسٌ وَاحِدٌ ځکه د زمري او مار فعل يو جنس دى لِكَوْنِهِ هَدَرًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ځکه هغه په دنيا او آخرت دواړو کي معاف دى وَفِعْلُهُ بِنَفْسِهِ هَدَرٌ فِي الدُّنْيَا مُعْتَبَرٌ فِي الْآخِرَةِ او د هغه [سر ماتونکي] کس خپل فعل په دنيا کي معاف دى او په آخرت کي معتبر دى حَتّٰى يَأْثَمَ عَلَيْهِ تر دې چي هغه په دې

فعل [سر ماتولو] باندي ګناهکاره کيږي وَفِي النَّوَادِرِ: أَنَّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ يُغَسَّلُ وَيُصَلَّى عَلَيْهِ او په نوادر کي دي: چي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز به هغه کس ته غسل ورکول کيږي او پر هغه به [دجنازې] لمونځ کيږي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُغَسَّلُ وَلَا يُصَلَّى عَلَيْهِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز به هغه ته غسل ورکول کيږي خو پر هغه به لمونځ نه کيږي وَفِي شَرْحِ السِّيَرِ الْكَبِيرِ ذَكَرَ فِي الصَّلَاةِ عَلَيْهِ اِخْتِلَافَ الْمَشَايِخِ او د سير کبير په شرح کي يې پر هغه کس د لمونځ کولو په هکله د مشايخو اختلاف ذکر کړی دی عَلَى مَا كَتَبْنَاهُ فِي كِتَابِ التَّجْنِيسِ وَالْمَزِيدِ لکه څرنګه چي دا موږ په کتاب التجنيس والمزيد کي ليکلي دي فَلَمْ يَكُنْ هَدَرًا مُطْلَقًا نو د هغه خپل فعل به مطلقاً ضايع نه وي وَكَانَ جِنْسًا آخَرَ او بل جنس به وي وَفِعْلُ الْأَجْنَبِيِّ مُعْتَبَرٌ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ او د هغه اجنبي سړي فعل په دنيا او آخرت دواړو کي معتبر دی فَصَارَتْ ثَلَاثَةَ أَجْنَاسٍ نو هغوی [تولہ] درې جنسونه وګرځېدل فَكَأَنَّ النَّفْسَ تَلِفَتْ بِثَلَاثَةِ أَفْعَالٍ ګواکي نفس په دريو فعلونو سره تلف سوی [هلاک سوی] دی فَيَكُونُ التَّالِفُ بِفِعْلِ كُلِّ وَاحِدٍ ثُلُثَهُ نو د هر يوه په فعل سره تلف سوې [هلاکه سوې] حصه به د هغه يو ثلث وي فَيَجِبُ عَلَيْهِ ثُلُثُ الدِّيَةِ نو ځکه پر هغه به د ديت يو ثلث واجب وي.

**اللغات:** ﴿شَجَّ﴾ د ماضي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: سر يا مخ زخمي کول، سر ماتول، (يعني هغه ماتولو او زخمي کولو ته وايي کوم چي په سر يا مخ کښي واقع سي). د سر يا مخ پوست څيرل. ﴿عَقَرَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده، د دې باب په صله کي چي درنده ذکر سي. نو معنی يې ده: داړل، خوله اچول او څيرل، چيچيل. ﴿هدرًا﴾ د ضرب د باب مصدر دی: (وينه او جنايت) ضايع کېدل. باطلېدل. بې ځايه تلل چي هيڅ بدل يې نه واخيستل سي. معاف کېدل. ﴿يأثم﴾ د سمع له بابه مضارع ده: ګنهګاره کېدل (ګناهکاره کېدل). او د ضرب له بابه متعدي راځي، يعني ګناهکاره کول (ګناهکاره ګرځول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي يو چا مثلاً زيد خپل سر مات وکړی او بيا يو بل اجنبي سړي مثلاً خالد هم د هغه سر ورمات کړی او په همدې دوران کي يو زمري هم پر هغه حمله وکړه او له بده مرغه يو مار هم هغه وچيچی او زخمي يې کړی، او د دې ټولو فعلونو په وجه زيد مړ سو. نو په دې صورت کي پر خالد (کوم چي د زيد سر ورمات کړی دی) د پوره ديت يو ثلث (دريمه حصه)

واجبيږي: ځکه دلته ګواکي زيد د دريو اسبابو په وجه مړ سوی دی (که څه هم هغه په ظاهره څلور اسباب دي) او د خالد فعل او سبب د هغه اسبابو ثلث (دريمه حصه) ده. نو ځکه ديت به هم ثلث پر واجب وي.

**سوال:** د خالد فعل څنګه د مذکوره اسبابو ثلث دی؟.

**جواب:** ځکه د زمري او مار فعل د جنس واحد کېدلو په وجه يو فعل دی او بل فعل خپله د زيد او بل فعل د خالد دی. لهذا دلته ټوله درې فعلونه او سببونه سول. نو د خالد فعل د هغوی ثلث سو.

**سوال:** د زمري او مار فعل ولي يو جنس، او د خالد او زيد فعلونه دوه جلا جنسونه شمېرل سوي دي؟.

**جواب:** ځکه د زمري او مار فعل خو په دنيا او آخرت دواړو کي هدر او معاف دی. يعني نه په دنيا کي د زمري او مار مؤاخذه کيږي او نه په آخرت کي، نو په دې اعتبار سره دا دواړه ديوه جنس سول. او زيد کوم چي خپل سر مات کړی دی د هغه فعل په دنيا کي هدار دی لېکن په آخرت کي معتبر دی چي پر هغه ګناه سته. او خالد (اجنبي) کوم چي د زيد سر ورمات کړی دی د هغه فعل په دنيا او آخرت دواړو کي معتبر دی يعني په دنيا کي هم د هغه مؤاخذه کيږي او په آخرت کي هم هغه ته سزا حاصليږي. لهذا دا ټوله درې افعال سول چي د خالد فعل د هغوی ثلث دی. نو ځکه پر هغه به د ديت يو ثلث واجبول کيږي. (يا په لنډه وينا دا چي کله فعلونه درې دي. نو پر هر فعل والا د ديت يوه حصه راځي. دوو فعلونو والا خو معاف دي او ديو فعل والا [خالد] مؤاخذه کيږي چي پر هغه د ديت يوه حصه [دريمه حصه] راغلې ده. نو ځکه له هغه څخه به د ديت يو ثلث اخيستل کيږي).

**سوال:** د دې څه دليل سته چي د زيد فعل په آخرت کي معتبر دی؟.

**جواب:** زيد د خپل فعل (خپل سر ماتولو) په وجه ګنهګاره کيږي او د همدې ګناه پر بناء په مشايخو کي دا اختلاف دی چي پر هغه به د جنازې لمونځ کيږي، که نه؟، چي د هغه وضاحت به لاندي وسي (ځکه کله چي د زيد د مرګ په اسبابو کي د هغه خپل فعل هم داخل دی. نو ګواکي هغه ځان وژونکی [خود کشي کونکی] دی. او پر ځان وژونکي د جنازې د لمونځ کولو په هکله د فقهاؤ اختلاف دی).

## ﴿د ځان وژونکي (خود کشي کونکي) د غسل او د جنازې د لمانځه حکم﴾

وفي النوادر إلخ: يعني د ځان وژونکي (خود کشه) د غسل او د جنازې د لمانځه په هکله د طرفينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي هغه ته به غسل هم ورکول کيږي او د جنازې لمونځ به هم پرې کيږي. لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي هغه ته به صرف غسل ورکول کيږي او د جنازې لمونځ به پې نه کيږي. لېکن د احنافو په نېز د اصح او مفتٰى به قول مطابق هغه ته به غسل هم ورکول کيږي او د جنازې لمونځ به پې هم کيږي (شامي ج: ۱. ص: ۵۸۴). صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د داسي کس د جنازې د لمانځه په هکله د مشايخو اختلاف دی او دا اختلاف موږ په خپل کتاب التجنيس والمزيد کي بيان کړی دی.

ـړه او چتونکی.

**فلم یکن هدرًا مطلقاً الخ**: د دې حاصل دا دی چي څرنګه د زید (کوم چي خپل سره مات کړی دی. د هغه) فعل په یوه اعتبار سره هدر دی او په یوه اعتبار سره هدر نه دی. نو ځکه د هغه فعل به د جلا جنس شمېرل کېږي، لنډه دا چي دلته درې جلا جنسونو والا فعلونه سره جمع سوي دي او د خالد فعل د هغوی ثلث دی، نو ځکه صرف یو ثلث دیت به پر هغه واجب وي.

**یادونه**: په کتابُ التجنیس والمزید کي چي کوم اختلاف مذکوره دی. صاحب د احسن الهدایې غفر الله له هغه داسي بیان کړی دی چي هلته د امام حلواني رَحِمَهُ الله د قول مطابق پر ځان وژونکي به د جنازې لمونځ کېږي، ځکه که هغه نه مرګ څخه مخکي توبه وکړي. نو توبه یې قبلیږي. او د امام سعدي رَحِمَهُ الله قول دا دی چي د جنازې لمونځ به نه پرې کېږي؛ ځکه هغه د خپل نفس باغي دی. (احسن الهدایه. اشرف الهدایه)




**تشریح**: دا فصل د هغه څه په بیان کي دی کوم چي د قصاص د تابع په درجه کي دي.

مخکي تر دې هغه مسائل بیان سول کوم چي په قصاص کي اصل دي یعني قصاص فی النفوس.... اوس له دې ځایه هغه مسائل بیانوي کوم چي د قصاص تابع دي، یعني مسلمان باغي او حمله کونکی وژل، او ښکاره ده چي اصل مخکي وي او تابع وروسته وي، نو ځکه یې دا فصل له "باب ما یوجب القصاص..." څخه وروسته کړی دی.

## د هغه مسلمان کس د قتل حکم چي پر مسلمانانو وسله پورته کړي (د وژلو اراده یې وکړي)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي] وَمَنْ شَهَرَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ سَيْفًا فرمایي: او څوک چي پر مسلمانانو توره پورته کړي [توره پرې راوکاږي] فَعَلَيْهِمْ أَنْ يَقْتُلُوْهُ نو پر مسلمانانو [واجب] دي چي هغه قتل کړي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1]: «مَنْ شَهَرَ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ سَيْفًا ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: څوک چي پر

[1] تخریج: [illegible] هذا اللفظ وأخرجه النسائی فی سننه فی کتاب المحاربة، باب تحریم الدم، حدیث رقم: ۴۱۰۲. (احسن الهدایه)

مسلمانانو توره پورته کړي فَقَدْ أَطَلَّ دَمَهُ» نو هغه خپله وينه ضايع کړه [او که أُطِلَّ (مجهوله) سي. نو معنی يې ده: وينه يې هدر او ضايع سوه] وَلِأَنَّهُ بَاغٍ او ځکه چي هغه باغی دی فَتَسْقُطُ عِصْمَتُهُ بِبَغْيِهِ نو د خپل بغاوت په وجه به د هغه عصمت ساقطيږي [لهذا قتلول کيږي به] وَلِأَنَّهُ تَعَيَّنَ طَرِيقًا لِدَفْعِ الْقَتْلِ عَنْ نَفْسِهِ او ځکه چي همدا قتلول متعينه طريقه ده له خپل نفس څخه د قتل دفع کولو لپاره فَلَهُ قَتْلُهُ نو ځکه مسلمان لره به د هغه قتلول جائز وي وَقَوْلُهُ: "فَعَلَيْهِمْ" او [په متن کي] د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: چي پر مسلمانانو [واجب] دي وَقَوْلُ مُحَمَّدٍ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: فَحَقٌّ عَلَى الْمُسْلِمِينَ أَنْ يَقْتُلُوهُ او په جامع صغير کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دا قول: نو لازم دي پر مسلمانانو چي هغه قتل کړي إِشَارَةٌ إِلَى الْوُجُوبِ [دا دواړه قولونه] د وجوب وطرف ته اشاره ده وَالْمَعْنَى وُجُوبُ دَفْعِ الضَّرَرِ او وجه د ضرر ليري کولو وجوب دی وَفِي سَرِقَةِ الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَمَنْ شَهَرَ عَلَى رَجُلٍ سِلَاحًا او د جامع صغير په کتابُ السرقه کي دي: چي څوک پر يو سړي يو وسله پورته [اوچته] کړي لَيْلًا أَوْ نَهَارًا د شپې يا د ورځي أَوْ شَهَرَ عَلَيْهِ عَصًا لَيْلًا فِي مِصْرٍ يا د شپې په ښار کي پر هغه لکړه [ډانګ] پورته کړي أَوْ نَهَارًا فِي طَرِيقٍ فِي غَيْرِ مِصْرٍ يا د ورځي په داسي لاره کي کوم چي په ښار کي نه وي [پر هغه لکړه پورته کړي] فَقَتَلَهُ الْمَشْهُورُ عَلَيْهِ عَمْدًا بيا مشهور عليه [پر چا چي وسله يا لکړه پورته سوې ده] هغه عمداً قتل کړی فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر ده [مشهور عليه] هيڅ شی نسته لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَهَذَا لِأَنَّ السِّلَاحَ لَا يَلْبَثُ او دا [حکم] ځکه دی چي وسله درنګ نه کوي [بلکي سمدستي سری وژني] فَيَحْتَاجُ إِلَى دَفْعِهِ بِالْقَتْلِ نو ځکه دئ [مشهور عليه] په قتل سره د هغه دفع کولو ته محتاج دی وَالْعَصَا الصَّغِيرَةُ وَإِنْ كَانَتْ تَلْبَثُ او کوچنی لکړه که څه هم درنګ کوي [او سمدستي وژل نه کوي] وَلَكِنْ فِي اللَّيْلِ لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ خو د شپې ده [مشهور عليه] ته کومکي [غاورسي] نه رسيږي فَيَضْطَرُّ إِلَى دَفْعِهِ بِالْقَتْلِ نو ځکه دئ به د قتل په ذريعه د هغه دفع کولو ته مجبوره وي وَكَذَا فِي النَّهَارِ فِي غَيْرِ الْمِصْرِ فِي الطَّرِيقِ لَا يَلْحَقُهُ الْغَوْثُ همدارنګه د ورځي له ښار څخه بغير [د صحرا] په لاره کي ده ته کومکي نه رسيږي فَإِذَا قَتَلَهُ نو کله چي دئ هغه [لکړه اوچتونکی

کس] قتل کړي كَانَ دَمُهُ هَدَرًا نو د هغه وينه به ضايع [او معاف] وي قَالُوْا: فَإِنْ كَانَ عَصًا لَا تَلْبَثُ مشايخو فرمايلي دي: چي که هغه داسي لکړه وي کوم چي درنګ نه کوي يَحْتَمِلُ أَنْ تَكُونَ مِثْلَ السِّلَاحِ عِنْدَهُمَا نو احتمال سته چي هغه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د وسلې په شان سي.

**اللغات:** ﴿شَهَرَ﴾ د فتح د باب ماضي ده: توره له خپل پوښه راکښل او پر جانب مقابل پورته کول. وسله راکښل او د حملې لپاره پورته کول. ﴿أَطَلَّ﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: وينه او خون هدر کول، باطلول او ضايع کول، ضايع کېدل. ضايع تلل، چي هيڅ بدله او ديت يې نه واخيستل سي. ﴿فَحَقَّ﴾ د ضرب د باب ماضي ده. حَقَّ يَحِقُّ حَقًّا: د دې باب په صله کي چي عَلیٰ راسي نو معنیٰ يې ده: واجبېدل، لازمېدل، ثابتېدل. ﴿الغوث﴾ مرسته او کومک، فرياد، مراد: کومکي، غاورسي او غم خوړونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دي چي کوم کس مسلمان وي او د مسلمانانو د وژلو لپاره توره پورته کړي (يا مثلاً ټوپک، توپنچه وغيره پرې راوکاږي)، نو پر مسلمانانو د خپل ځان د دفاع (مدافعت) لپاره دغه کس قتلول واجب دي؛ ځکه د مذکوره حديث مطابق (کوم چي په عبارت کي ذکر سوی دی) د داسي کس عصمت او حرمت ساقط دی او د هغه وينه هدر او معاف ده. همدارنګه دا کس باغي (سرکښه) دی او بغاوت عصمت او د حفاظت حق ختموي. همدارنګه که هغه قتل نه کړی سي، نو د خپلو ځانو دفاع او ساتنه کول مشکل دي. لهذا اوس د دفاع طريقه صرف قتل ده. نو ځکه د قتل جواز ثابت سو.

وقوله فعليهم إلخ: امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي "فَعَلَيْهِمْ" ويلي دي، او په جامع صغير کي يې ويلي دي "فَحَقَّ عَلَى الْمُسْلِمِيْنَ أَنْ يَقْتُلُوْهُ". په دغه دواړو عبارتونو سره دا خبره معلومه او ثابته سوه چي پر مسلمانانو د هغه کس قتلول واجب دي. او وجوب ځکه دی چي له خپل ځان څخه ضرر ليري کړی سي (وفيه أقوال اخریٰ).

وفي سرقة الجامع الصغير إلخ: فرمايي د جامع الصغير په کتاب السرقه کي امام محمد رَحِمَهُ الله څو نوري مسئلې هم ليکلي دي: (۱) که يو چا د ورځي يا د شپې پر بل چا (مثلاً پر زيد) وسله پورته کړه (وسله يې پرې راوکښله). (۲) که يو چا د شپې په ښار کي پر بل چا (زيد) ډانګ او لکړه پورته کړه. (۳) يا له ښار څخه بغير په يو خالي لاره او صحرا کي يې لکړه پرې پورته کړه.

بيا د دغه حالت په ليدلو سره دا بل چا (زيد) هغه کس قتل کړی کوم چي يې وسله يا لکړه پرې پورته کړې ده. نو پر هغه (زيد) هيڅ ضمان (تاوان) نسته. يعني نه قصاص پرې لازميږي او نه ديت واجبيږي: د مخکيني حديث "من شهر على المسلمين إلخ" په وجه.

وهٰذا لأن السلاح إلخ: په جامع صغير (متن) چي کوم قيدونه لګول سوي دي. له دې ځايه صاحب د هدايې رحمه الله د هغوی وجه بيانوي.

(١)... وسله که د ورځي پر چا پورته کړل سي او که د شپې. د دواړو حکم څکه برابر دی چي وسله سمدستي سړی وژني او حرکت ته يې نه پرېږدي. نو دلته د خپل ځان د بچ کولو په خاطر دا کس (زيد) په هر صورت کي قتل کولو ته مجبوره دی.

(٢)... او د لکړي په صورت کي يې د شپې او صحرا قيد ځکه لګولی دی چي لکړه که څه هم سمدستي سړی نه وژني خو د شپې هيڅ کومکي او خلاصونکی کس نه پيدا کيږي کوم چي دا کس له هغه شخصه خلاص کړي، همدارنګه د ورځي که په دښت او صحرا کي وي. نو هلته هم هيڅ خلاصونکی نه ترلاسه کيږي. نو په دې دواړو صورتونو کي به هم دئ (زيد) مجبوره شمېرل کيږي او داسي به ګڼل کيږي چي څرنګه دا کس په مخکيني صورت کي مجوره وو. اوس هم مجبوره دی. نو ځکه په دې صورت کي هم پر ده د هغه (لکړي والا) په قتلولو سره هيڅ ضمان نه واجبيږي.

قالوا إلخ: مخکي ذکر سوه چي د صاحبينو رحمهما الله په نېز لکړه د وسلې په درجه کي ده. لهذا د وسلې په څېر که څوک پر بل چالويه او درنه لکړه پورته کړي. نو د صاحبينو رحمهما الله په نېز د دې لکړي هم هاغه حکم دی کوم چي د وسلې دی. چي په هغه کي د شپې او ورځي. ښار او صحرا ټولو حکم د دوی په نېز برابر دی. (اشرف الهدايه. احسن الهدايه)

## که د وسلې پورته کونکی کس لېونی يا بچی وي (حکم او تفصيل)

قَالَ [امام محمد رحمه الله په جامع صغير کي] فرمايي وَإِنْ شَهَرَ الْمَجْنُونُ عَلَى غَيْرِهِ سِلَاحًا او که يو لېونی پر بل چا [مثلاً پر زيد] يو وسله پورته کړي فَقَتَلَهُ الْمَشْهُورُ عَلَيْهِ عَمَدًا بيا پر چا چي يې وسله پورته کړې وي [يعني زيد] هغه دا لېونی قتل کړي فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ فِي مَالِهِ نو پر قاتل [زيد] په خپل مال کي ديت واجب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او امام شافعي رحمه الله فرمايي: چي پر قاتل هيڅ شی نسته وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ الصَّبِيُّ وَالدَّابَّةُ او پر همدغه اختلاف دي کوچنی [هلک] او

ځاروی وَعَنْ أَبِیْ یُوْسُفَ ۞ أَنَّهُ یَجِبُ الضَّمَانُ فِي الدَّابَّةِ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي په ځاروي کي ضمان واجبیږي وَلَا یَجِبُ فِي الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُوْنِ او په کوچني او لېوني کي نه واجبیږي لِلشَّافِعِيِّ: أَنَّهُ قَتَلَهُ دَافِعًا عَنْ نَفْسِهِ دامام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي قاتل له خپل ځان څخه د دفاع کولو په غرض هغه قتل کړی دی فَیُعْتَبَرُ بِالْبَالِغِ الشَّاهِرِ نو هغه به پر بالغ وسله اوچتونکي باندي قیاسول کیږي وَلِأَنَّهُ یَصِیْرُ مَحْمُوْلًا عَلٰی قَتْلِهِ بِفِعْلِهِ او ځکه چي قاتل د مقتول پر قتل د هغه [مقتول] په فعل سره پارول سوی دی فَأَشْبَهَ الْمُکْرَهَ نو قاتل د مجبوره کړل سوي کس مشابه سو وَلِأَبِیْ یُوْسُفَ: أَنَّ فِعْلَ الدَّابَّةِ غَیْرُ مُعْتَبَرٍ أَصْلًا او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي د ځاروي فعل خو بالکل معتبر نه دی حَتّٰی لَوْ تَحَقَّقَ همدا وجه ده که د هغه فعل ثابت هم سي [یعني قتل وکړي] لَا یُوْجِبُ الضَّمَانَ نو هم ضمان نه واجبوي أَمَّا فِعْلُهُمَا مُعْتَبَرٌ فِي الْجُمْلَةِ او کوم چي د کوچني او لېوني فعل دی نو هغه فی الجمله (په یو درجه کي) معتبر دی حَتّٰی لَوْ حَقَّقَاهُ همدا وجه ده که دوی دواړه خپل فعل ثابت کړي [یعني مشهور علیه (زید) قتل کړي] یَجِبُ عَلَیْهِمَا الضَّمَانُ نو پر دوی ضمان واجبیږي وَکَذَا عِصْمَتُهُمَا لِحَقِّهِمَا او همدارنګه د دوی عصمت د دوی د خپل حق په وجه دی وَعِصْمَةُ الدَّابَّةِ لِحَقِّ مَالِکِهَا او د ځاروي عصمت د هغه د مالک د حق په وجه دی فَکَانَ فِعْلُهُمَا مُسْقِطًا لِلْعِصْمَةِ دُوْنَ فِعْلِ الدَّابَّةِ نو د دوی دواړو فعل به د عصمت ساقطونکی وي، نه د ځاروي فعل وَلَنَا: أَنَّهُ قَتَلَ شَخْصًا مَعْصُوْمًا او زموږ دلیل دا دی: چي هغه [مشهور علیه] یو معصوم کس وژلی دی [ځکه صبي او مجنون معصوم دي] أَوْ أَتْلَفَ مَالًا مَعْصُوْمًا حَقًّا لِلْمَالِکِ یا هغه داسي مال [ځاروی] ضایع کړی دی کوم چي د مالک د حق په وجه معصوم دی وَفِعْلُ الدَّابَّةِ لَا یَصْلُحُ مُسْقِطًا او د ځاروي فعل [د عصمت] د ساقطونکي صلاحیت نه لري [چي د عصمت لپاره مسقط وګرځي] وَکَذَا فِعْلُهُمَا او همدارنګه د دوی دواړو فعل [د عصمت ساقطولو صلاحیت نه لري] وَإِنْ کَانَتْ عِصْمَتُهُمَا حَقَّهُمَا که څه هم د دوی دواړو عصمت د دوی خپل حق دی لِعَدَمِ اخْتِیَارٍ صَحِیْحٍ داختیار صحیح د نشتوالي په وجه

۞ القول الراجح: قول الطرفین. انظر للتفصیل [القول الراجح ج:۲، ص:۲۳۸].

[يعني ځکه چي په کوچني او لېوني کي اختيار صحيح نسته] وَلِهٰذَا لَايَجِبُ الْقِصَاصُ بِتَحَقُّقِ الْفِعْلِ مِنْهُمَا په همدې وجه د دوی له طرفه د فعل په ثابتېدلو سره هم قصاص نه واجبيږي بِخِلَافِ الْعَاقِلِ الْبَالِغِ په خلاف د عاقل بالغ کس لِأَنَّ لَهُ اخْتِيَارًا صَحِيحًا ځکه چي هغه لره اختيار صحيح سته وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ لِوُجُوْدِ الْمُبِيْحِ او قصاص ځکه نه واجبيږي چي مُبيح [روا کونکې علت] موجود دی وَهُوَ دَفْعُ الشَّرِّ او مُبيح د شر ليري کول دي فَتَجِبُ الدِّيَةُ نو ځکه ديت به واجبيږي.

**اللغات:** ﴿الصبي﴾ کوچنی. بچی. ﴿الدابة﴾ څاروی. چارپای. ﴿شَاهِر﴾ د فتح د باب فاعل دی. مراد: وسله راکښونکی او پورته کونکی، وسله اوچتونکی. ﴿عصمة﴾ محفوظيت. د حفاظت حق (محفوظ کېدل. د حفاظت حقداره کېدل). ﴿مُبِيْح﴾ د افعال د باب فاعل دی: روا کونکی، روا ګرځونکی، جواز ورکونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** که يو لېونی (پاګل) يا کوچنی هلک مثلاً پر زيد وسله (توره. توپک وغيره) پورته کړي يا يو څاروی مثلاً غويی پر زيد حمله وکړي. نو زيد د خپل ځان په دفاع کي هغوی قتل کړي او ځان خلاص کړي، نو قصاص خو بالاتفاق په يوه صورت کي هم پر زيد نسته، پاته سو ديت او ضمان، نو په هغه کي اختلاف دی. يا په بله وينا دا چي په هغه کي درې قوله دي:

①... د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دا دی چي ديت او د غويي قيمت واجبيږي (يعني په ضمان (تاوان) کي به د مقتول لېوني او د مقتول کوچني ديت ورکوي. او د مقتول غويي قيمت به ورکوي)

②... د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دا دی چي په دې يوه صورت کي هم ديت او ضمان نه واجبيږي.

③... د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دا دی چي د لېوني او کوچني په صورت کي ديت نه واجبيږي، خو د غويي په صورت کي د هغه قيمت واجبيږي.

للشافعي إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي که دا وسله پورته کونکی کس بالغ وای او زيد هغه قتل کړي وای. نو ښکاره ده چي ديت به نه واجبېدلای، همداسي به دلته هم ديت نه واجبيږي: ځکه په دواړو صورتونو کي د زيد مقصد د خپل ځان حفاظت دی؛ او وجه دا ده چي همدې لېوني او کوچني او غويي قاتل (زيد) پر قتل را پارولی دی (يا بله وينا دا چي خپله دوی د خپل قتل سبب جوړ سوي دي). که دوی ورانديتوب نه کولای. نو هغه (زيد) به قتل نه کولای. د دې مثال بالکل همداسي دی چي مثلاً حامد د زيد پر سينه توپنچه (تماچه) ونيسي چي ژر سه! د غه کس مثلاً خالد مړ کړه! کنې زه تا مړ کوم. او زيد د خپل ځان خلاصولو لپاره خالد مړ کړي او ځان خلاص کړي. نو زيد کوم چي مُکرَه دی پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي.

ولأبي يوسف إلخ: دا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دی. حاصل يې دا دی چې د ښاروي او د لېوني او کوچني تر مينځ فرق دی يعني د ښاروي فعل غير معتبر دی او د کوچني او لېوني فعل فی الجمله معتبر دی. او بل فرق يې دا دی چې د کوچني او لېوني عصمت خپله د دوی ذاتي عصمت دی او د دوی خپل حق دی. او د ښاروي عصمت ذاتي نه دی بلکې د ښاروي د مالک د حق په وجه دی.

کله چې دا فرق ثابت سو. نو د ښاروي (غوبي) فعل د عدم فعل په درجه کې دی (يعني د هغه حمله کول د حمله نه کولو په درجه کې دي). لهذا د ښاروي په فعل سره د ښاروي عصمت ساقط نه سو. او کله چې هم د هغه عصمت باقي دی. نو ځکه د هغه د قتلولو په وجه به په ضمان (تاوان) کې پر قاتل د هغه قيمت واجبيږي.

او څرنګه چې د کوچني او مجنون فعل معتبر دی. نو د دوی په فعل (وسله راکښلو او پورته کولو) سره به د دوی عصمت ساقط شمېرل کيږي. او کله چې يې عصمت ساقط سو. نو ځکه د دوی د قتلولو په وجه به پر قاتل ضمان (تاوان) يعني ديت نه واجبيږي.

او د کوچني او مجنون د فعل د معتبر والي دليل دا دی چې که دوی قتل وکړي. نو پر دوی ضمان واجبيږي. خو د نا مکلف والي په وجه قصاص نه پرې واجبيږي.

ولنا إلخ: دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دی چې د هغو په نېز په دې دواړو صورتونو کې ديت او ضمان واجب دی: ځکه په اول صورت کې قاتل (زيد) يو معصوم کس قتل کړی دی. او په دويم صورت کې هغه داسې مال تلف کړی دی: کوم چې د مالک د حق په وجه معصوم دی.

او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا وينا چې د ښاروي فعل د عصمت ساقطونکی (مُسقط) نه دی او د مجنون او بچي فعل د عصمت ساقطونکی دی. دا صحيح نه ده. بلکې د دواړو فعلونه غير مسقط دي. د ښاروي فعل خو معلومه خبره ده چې مسقط نه دی. او د مجنون او کوچني فعل ځکه مسقط نه دی چې په دوی کې اختيار صحيح نسته؛ او په دوی کې د اختيار صحيح د نشتوالي دليل دا دی چې که مجنون او کوچنی قتل وکړي. نو قصاص نه واجبيږي. او دا بيا جلا خبره ده چې د مجنون او کوچني عصمت د دوی خپل حق دی او د ښاروي عصمت د مالک د حق په وجه دی. خو د اختيار صحيح په نشتوالي کې دوی ټوله برابر دي.

بخلاف العاقل البالغ إلخ: د دې په خلاف که عاقل او بالغ کس پر بل چا مثلاً پر زيد وسله پورته کړي او زيد هغه قتل کړي. نو پر قاتل (زيد) ځکه ضمان نه واجبيږي. چې په عاقل بالغ کس کې اختيار صحيح موجود دی. لهذا کله چې په هغه کې اختيار صحيح سته نو د دغه فعل (وسله پورته کولو) په وجه د هغه عصمت ساقط سو. نو ځکه د هغه په قتلولو سره به پر قاتل (زيد) هيڅ ضمان نه واجبيږي.

وإنما لايجب القصاص إلخ: دا د يو مُقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې کله د مجنون او بچي په صورت کې پر قاتل ضمان واجبيږي. نو په ضمان کې بايد قصاص واجب سي. نه ديت. د دې لپاره چې مساوات متحقق سي. حال دا چې تاسې (طرفينو) دلته پر قاتل ديت واجب دی کړی دی.

د جواب حاصل دا دی چي که څه هم د قتل کولو اصل سزا قصاص ده او دلته باید قصاص واجب سي. خو دلته قصاص ځکه نه سي واجبېدلای چي قاتل کوم قتل کړی دی هغه یې د یو مُبیح (روا کونکي علت) پر بناء کړی دی. او هغه مُبیح دا دی چي له خپل نفس څخه د وسله پورته کونکي کس شر او ضرر لیري کړي او خپل ځان وژغوري. نو د دغه مُبیح (روا کونکي علت) پر بناء دی له قصاص څخه قاتل بري کړی دی او پر هغه مو صرف دیت واجب کړی دی.

## په ښار کي دننه په وسله سره د حمله کونکي کس حکم

قَالَ: وَمَنْ شَهَرَ عَلىٰ غَيْرِهِ سِلَاحًا فِي الْمِصْرِ فرمايي: او څوک چي پر بل چا [مثلاً پر زيد] په ښار کي يو وسله پورته کړي [يو وسله پرې راوکاږي] فَضَرَبَهُ خو بيا هغه ووهي [او قتل يې نه کړي] ثُمَّ قَتَلَهُ الْآخَرُ بيا دا بل يو [زيد] هغه قتل کړي فَعَلَى الْقَاتِلِ الْقِصَاصُ نو پر قاتل [زيد] قصاص واجب دی مَعْنَاهُ: إِذَا ضَرَبَهُ فَانْصَرَفَ د دې مطلب دا دی: چي کله هغه ووهي نو واپس وګرځي [او د قتل اراده پرېږدي] لِأَنَّهُ خَرَجَ مِنْ أَنْ يَكُونَ مُحَارِبًا بِالْاِنْصِرَافِ ځکه د واپس ګرځېدلو په وجه هغه له محارب کېدلو څخه ووتی فَعَادَتْ عِصْمَتُهُ نو د هغه عصمت بیرته راوګرځېدی.

**تشريح:** ﴿محارب﴾ د افعال د باب فاعل دی: جنګ کونکی. مقابله کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي يو چا مثلاً حامد په ښار کي پر زيد د وژلو لپاره وسله پورته کړه (مثلاً تورنچه یې پرې راوکښله) لېکن بيا نرم سو او زيد يې صرف دوې درې لغتي ووهی او روان سو يعني بيا حامد د زيد د وژلو اراده پرېښووله. خو اوس بيا زيد په جذبه کي راغلی او پر هغه يې حمله وکړه او قتل يې کړي. نو په دې صورت کي پر زيد قصاص واجبېږي: ځکه کله چي حامد له معمولي وهلو څخه وروسته د ده د قتل اراده پرېښووله، نو هغه محارب پاته نه سو او د وسلې پورته کولو په وجه چي د هغه کوم عصمت ساقط سوی وو، هغه بیرته بحاله سو. اوس ګواکي زيد يو معصوم الدم کس وژلی دی. او د معصوم الدم کس په وژلو سره پر قاتل قصاص واجبېږي. نو ځکه په دې صورت کي به هم پر قاتل (زيد) قصاص واجب وي.

## د غله (سارق) د وژلو د يو صورت حکم

قَالَ: وَمَنْ دَخَلَ عَلَيْهِ غَيْرُهُ لَيْلًا فرمايي: او پر چا چي بل څوک د شپې داخل سي وَأَخْرَجَ السَّرِقَةَ او د غلا مال وباسي فَاتَّبَعَهُ وَقَتَلَهُ بيا هغه [د مال مالک] په ده پسې سي او قتل يې کړي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هيڅ شی واجب نه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] : «قَاتِلْ دُوْنَ مَالِكَ» د نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه: چي ته په خپل مال پسي [يعني د خپل مال د حفاظت لپاره] قتال کوه! وَلِأَنَّهُ يُبَاحُ لَهُ الْقَتْلُ دَفْعًا فِي الْاِبْتِدَاءِ او ځکه چي د

[1] تخريج: أخرجه النسائي في كتاب المحاربة، باب يفعل من تعرّض لماله، حديث رقم: ۴۰۸۶. (احسن الهداية)

هغه لپاره [د ځان] د دفاع په خاطر په ابتداء کې [هم] قتل روا دی فَكَذَا اسْتِرْدَادًا فِي الْانْتِهَاءِ نو همداسې به د مال اخیستلو لپاره په انتهاء کې هم [د هغه لپاره قتل روا] وي وَتَأْوِيْلُ الْمَسْأَلَةِ إِذَا كَانَ لَا يَتَمَكَّنُ مِنَ الْاسْتِرْدَادِ إِلَّا بِالْقَتْلِ او د مسئلې تأویل دا دی چې کله هغه د مال پر اخیستلو قدرت نه لري مګر په قتل سره [نو بیا قتل ورته روا دی، کنې روا نه دی].

**اللغات**: ﴿قَاتِلْ﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مذکر امرِ حاضر صیغه ده. قَاتَلَ يُقَاتِلُ مُقَاتَلَةً وَقِتَالًا: جنګ او جګړه کول. په وسله سره د ځان دفاع کول. ﴿استرداد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: واپس اخیستل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که د شپې دیو چا کور ته غل داخل سو او خپل مطلوب سامان یې غلا کړی او له کوره ووتی. بیا د کور مالک هغه ولیدی او پسې منډه یې کړه او هغه یې قتل کړی. نو په دې صورت کې حکم دا دی چې پر قاتل (د کور پر مالک) نه قصاص واجب دی او نه ضمان (دیت)؛ ځکه په حدیث کې دي "قَاتِلْ دُوْنَ مَالِكَ" چې د خپل مال د حفاظت لپاره قتال کوه!. او دلته چې کوم قتل سوی دی. هغه هم د خپل مال د حفاظت په خاطر سوی دی. نو ځکه په دغه قتل سره به نه قصاص واجبیږي او نه دیت.

په دې هکله عقلي دلیل دا دی چې د غله له شر څخه د ځان بچ کولو په خاطر په ابتداء کې هم د کور مالک ته د هغه قتلول روا وه (یعني کله چې غل کور ته داخل سو. نو په هغه وخت کې یې هم قتلول مباح وه). نو تر غلا کولو او مال اخیستلو وروسته (انتهاءً) به هم د هغه قتلول روا وي چې د هغه کار تمام کړي او خپل مال واپس ځني واخلي.

وتأویل المسألة إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې مسئله کې له غله څخه د خپل مال اخیستلو لپاره د غله قتلول هغه وخت د کور مالک لره جائز دي کله چې د دې هیڅ امکان نه وي چې له غله څخه په دمکې او په چیغو او خبرو مال واخیستل سي. یا د دې موقع نه وي چې غل ونیول سي او له هغه څخه مال ترلاسه کړی سي (نو په داسې صورت کې د غله قتلول ورته ورته جائز دي). لېکن که له قتل څخه بغیر په یو بله لاره د مال ترلاسه کول ممکن وي. نو جائز او روا نه دي بلکې مالک دي هغه لاره اختیار کړي او له قتل څخه دي ځان وساتي. لېکن که بیا هم غل قتل کړي. نو په دې صورت کې پر هغه د قتل ضمان لازمیږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الْقِصَاصِ فِيمَا دُوْنَ النَّفْسِ

(دا) باب له نفس څخه د کمي حصې د قصاص (په بيان کي) دی

**تشريح**: قصاص في النفس اصل دی او قصاص ما دون النفس د هغه تابع دی، او دا ښکاره خبره ده چي اصل له تابع څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د اصل له بيان څخه وروسته اوس د فرع او تابع احکام او مسائل بيانوي.

ما دون النفس: يو خو نفس دی يعني د انسان ځان، او بل ما دون النفس دی يعني له نفس څخه کم او رالاندي يعني اطراف او اندامونه، نو د قصاص فيما دون النفس مراد هغه قصاص دی کوم چي له نفس څخه بغير په اطرافو او اندامو کي اخيستل کيږي.

## د اندامونو د قصاص حکم او تفصيل

قَالَ: وَمَنْ قَطَعَ يَدَ غَيْرِهِ عَمَدًا مِنَ الْمِفْصَلِ فرمايي: او څوک چي قصداً د بل چا لاس له بند څخه پرېکړي قُطِعَتْ يَدُهُ نو د هغه لاس به [هم] پرېکول کيږي وَإِنْ كَانَتْ يَدُهُ أَكْبَرَ مِنَ الْيَدِ الْمَقْطُوعَةِ که څه هم د هغه لاس له پرېکړل سوي لاس څخه غټ وي لِقَوْلِهِ تَعَالَى ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ [المائدة: ۴۵] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: او زخمونه قصاص [بدل] دي برابر [يعني د زخمونو بدله به د هغوی سره برابره وي] وَهُوَ يُنْبِئُ عَنِ الْمُمَاثَلَةِ او هغه [يعني قصاص] د مماثلت خبر ورکوي فَكُلُّ مَا أَمْكَنَ رِعَايَتُهَا فِيهِ نو هر هغه زخم چي په هغه کي د مماثلت رعايت ممکن وي يَجِبُ فِيهِ الْقِصَاصُ نو په هغه کي به قصاص واجب وي وَمَا لَا فَلَا او چيري چي [ممکن] نه وي نو [قصاص] به [واجب] نه وي وَقَدْ أَمْكَنَ فِي الْقَطْعِ مِنَ الْمِفْصَلِ او له بند څخه په پرېکولو کي د مماثلت رعايت ممکن دی فَاعْتُبِرَ نو ځکه [په هغه کي] قصاص معتبر سو وَلَا مُعْتَبَرَ بِكِبَرِ الْيَدِ وَصِغَرِهَا او د لاس غټوالي او کوچنيوالي لره هيڅ اعتبار نسته لِأَنَّ مَنْفَعَةَ الْيَدِ لَا تَخْتَلِفُ بِذَلِكَ ځکه چي په دې سره د لاس منفعت نه مختلف کيږي وَكَذَلِكَ الرِّجْلُ وَمَارِنُ الْأَنْفِ وَالْأُذُنُ او همدارنګه پښه او د

پزي نرمۍ او غوږ [ د دوی هم داغه حکم دی ] لِإِمْكَانِ رِعَايَةِ الْمُمَاثَلَةِ ځکه [ په دوی کي ] د مماثلت رعايت ممکن دی.

**اللغات:** ﴿الـمفصل﴾ د دوو هډوکو د يو ځای کېدلو ځای، بند. ﴿جروح﴾ جمع د جرح ده: زخم. ﴿رعاية﴾ د فتح د باب مصدر دی: رعايت او لحاظ کول (مراعات). ﴿مارن﴾ د پزي نرمه حصه. نرمۍ. ﴿مماثلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو د بل مثل کېدل، برابري.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د بل چا لاس پرېکړي، نو په بعضي صورتونو کي قصاص لازمېږي او په بعضو کي نه لازمېږي. او د دې قاعدهٔ کليه دا ده چي په کوم صورت کي مماثلت ممکن وي او د مماثلت رعايت کېدلای سي، هلته قصاص لازمېږي. او په کوم صورت کي چي مماثلت مشکل يا ناممکن وي، نو هلته قصاص نه لازمېږي بلکي ديت واجبېږي.

د دغه اجمال تفصيل دا دی چي که قاطع (پرېکونکي کس) لاس يا پښه له بند څخه پرېکړې وي. مثلاً لاس يې پر مړوند يا پر څنګله، يا پښه يې پر بجلکه يا پر زنګون پرېکړې وي، نو مماثلت ممکن دی چي د قاطع لاس يا پښه هم دغومره پرېکول کېدای سي (ځکه بند معلوم ځای دی. نو د زياتوب خطره نسته چي په قصاص کي به د قاطع د لاس يا پښې زياته حصه پرېکړل سي)، همدارنګه په غوږ کي هم مماثلت ممکن دی او د پزي په نرميو کي هم د مماثلت رعايت کېدلای سي، نو ځکه د دوی د پرېکولو په صورت کي به قصاص لازمېږي: ځکه په قرآن کريم کي همدا فيصله سوې ده چي ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ يعني د زخمونو قصاص او بدله به د زخمونو سره برابره وي او ښکاره ده چي برابري همغه وخت متحقق کيږي کله چي په بدله اخيستلو کي د مماثلت رعايت کېدلای سي.

**ولا معتبر بکبر اليد الخ:** يعني که د قاطع لاس د مقطوع د لاس څخه غټ يا کوچنی وي، نو دې لره اعتبار نسته او دا له قصاص څخه مانع نه دي (بلکي که د قاطع لاس هر څومره اوږد او غټ وي. په قصاص کي به پرېکول کيږي)؛ ځکه د لاس په غټوالي يا کوچنيوالي سره د هغه په منفعت کي هيڅ فرق نه راځي (بلکي هر يو لاس نيول او اخيستل کولای سي)، او د منفعت په حواله سره په دواړو کي مماثلت دی. نو ځکه يو د بل په بدله کي د پرېکولو په صورت کي به هم مماثلت پاتيږي او د لاس په غټوالي يا کوچنيوالي سره به په قصاص کي هيڅ خلل نه راځي.

او چيري چي مماثلت ممکن نه وي مثلاً قاطع د هغه لاس يا پښه له بند څخه نه وي پرېکړې بلکي پر داسي ځای يې پرېکړې وي چي هلته په پرېکولو کي د مماثلت رعايت نه سي کېدلای. مثلاً لاس يې د ليڅې پر مينځ پرېکړی وي يا پښه يې له زنګون څخه را لاندي د پنډۍ پر مينځ

پرېکړې وي. نو دلته د مماثلت رعايت ممکن نه دی. لهذا په داسې صورت کې د قصاص حکم ساقطيږي او ديت واجبيږي.

## د سترګې ايستلو د قصاص حکم

قَالَ: وَمَنْ ضَرَبَ عَيْنَ رَجُلٍ فَـقَلَعَهَا فرمايي: او څوک چې يو سړي پر سترګه ووهي او سترګه ورو باسي لَاقِصَاصَ عَلَيْهِ نو پر هغه قصاص نشته [يعني په قصاص کې به د هغه سترګه نه ايستل کيږي] لِامْتِنَاعِ الْمُمَاثَلَةِ فِي الْقَلْعِ ځکه د سترګې په کښلو [ايستلو] کې مماثلت ممتنع [ناممکن] دی وَإِنْ كَانَتْ قَائِمَةً فَذَهَبَ ضَوْؤُهَا او که سترګه موجوده وي خو د هغې ديد ختم سي فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ نو پر هغه قصاص سته لِإِمْكَانِ الْمُمَاثَلَةِ ځکه چې [په دې صورت کې] مماثلت ممکن دی عَلٰى مَاقَالَ فِي الْكِتَابِ لکه څرنګه چې يې په کتاب [قدوري] کې ويلي دي تُحْمٰى لَهُ الْمِرْآةُ چې د هغه لپاره دي هينداره ګرمه کړل سي وَيُجْعَلُ عَلٰى وَجْهِهٖ قُطْنٌ رَطْبٌ او د هغه پر مخ دي لنده پمبه کښېښول سي وَتُقَابَلُ عَيْنُهُ بِالْمِرْآةِ او ګرمه هينداره دي د هغه د سترګې سره مخامخ کړل سي فَيَذْهَبُ ضَوْؤُهَا نو د هغې ديد به ختم سي وَهُوَ مَأْثُوْرٌ عَنْ جَمَاعَةٍ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او دا [طريقه] دصحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ له يو جماعت څخه نقل سوې ده.

**اللغات:** ﴿قَلَعَ﴾ د فتح ماضي ده: کښل، باسل. ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دی: ممتنع کېدل. ناممکن کېدل. ﴿ضوء﴾ رڼا، ديد، بينايي. ﴿تُحْمٰى﴾ د افعال له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: په اُور سره ګرمول. ﴿المرآة﴾ هينداره. خو په حاشيه کې د درِ مختار په حواله سره ليکل سوي دي: المراد بالمرآة ههنا فولاذٌ صيقل (يعني صفا اوسپنه) يُرى به الوجه، لا المرآة المعروفة من الزجاج. ﴿قطن﴾ پمبه (پنبه)، مالوچ. ﴿مأثور﴾ نصر له بابه د مفعول صيغه ده: منقول، نقل سوی.

**تشريح:** په تېر عبارت کې دا قاعده تېره سوه چې په کوم صورت کې مماثلت ممکن وي هلته قصاص لازميږي، او چيري چې مماثلت ممکن نه وي نو هلته قصاص نه لازميږي بلکې ديت لازميږي. لهذا که زيد مثلاً حامد پر سترګه ووهي چې د هغه په وجه د حامد سترګه ووځي، نو څرنګه چې دلته مماثلت ممکن نه دی بلکې د زيد د سترګې په کښلو کې مماثلت فوتيږي. نو ځکه قصاص نه لازميږي يعني د زيد سترګه به نه ايستل کيږي، بلکې زيد به د سترګې ديت ورکوي.

او که سترګه نه ووځي بلکې هغه پر خپل ځای پاته وي، فقط د هغې دید ختم سوی وي، نو په دې صورت کې قصاص لازميږي، ځکه فقط د سترګې په دید ختمولو کې مماثلت ممکن دی او يوازې د سترګې دید ختمول کېدای سي، چې د هغه طريقه دا نقل سوې ده چې کـه مثلاً د راسته سترګې قصاص ځنې اخيستل کيږي نو پر چپه سترګه دې پټې ورکنېښودې او هغه دې وتړې او پر مخ دې يې لنده پمبه کنېښږدي(يا په بله وينا دا چې په لنده پنبه کښي دې يې مخ ورپټ کړي). بيا دې ګرمه (تود) صفا اوسپنه د هغه د راسته سترګې سره مخامخ کړي، نو په داسې کولو سره به د راسته سترګې دید ختم سي، او مخ او بلې (چپه) سترګې به ته هيڅ نقصان نه ورسيږي. لنډه دا چې دلته په قصاص کې مماثلت ممکن دی، نو ځکه له مجرم (زيد) څخه به قصاص اخيستل کيږي.

**وهومأثور عن جماعة إلخ:** فرمايي چې په ديد ختمولو سره د قصاص اخيستلو دغه ظريقه د صحابه وو له يو جماعت څخه منقوله ده. لکه څرنګه صاحب د بنايې او داسې نورو ليکلي دي چې د حضرت عثمان ﷺ په زمانه کې داسې واقعه پېښه سوه، بيا حضرت عثمان د صحابه وو (رض) سره مشوره وکړه، نو حضرت علي ﷺ هغه ته دا مذکوره طريقه وښووله او ټولو بلا نکيره دا طريقه خوښه کړه او پر همدې عمل وسو. (بنايه ج: ۱۲، ص: ۱۴۰)

## د غاښونو د قصاص حکم

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَفِي السِّنِّ الْقِصَاصُ او په غاښ کې [هم] قصاص سته لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ﴾ [المائدة: ۴۵] د الله تعالىٰ د دې فرمان په وجه: او غاښ به په غاښ سره وي [يعني غاښ به د غاښ په بدله کې ايستل کيږي] وَإِنْ كَانَ سِنُّ مَنْ يُقْتَصُّ مِنْهُ أَكْبَرَ مِنْ سِنِّ الْآخَرِ که څه هم د هغه کس غاښ چې قصاص ځنې اخيستل کيږي د بل يوه تر غاښ غټ وي لِأَنَّ مَنْفَعَةَ السِّنِّ لَا تَتَفَاوَتُ بِالصِّغَرِ وَالْكِبَرِ ځکه د غاښ منفعت په کوچنيوالي يا غټوالي سره نه مختلف کيږي قَالَ: وَفِي كُلِّ شَجَّةٍ تَتَحَقَّقُ فِيهَا الْمُمَاثَلَةُ الْقِصَاصُ فرمايي: او په هر هغه زخم کې چې په هغه کې مماثلت ثابتېدلای سي قصاص سته [يعني قصاص پکښې واجب دی] لِمَا تَلَوْنَا د هغه آيت په وجه کوم چې موږ تلاوت کړی.

**اللغات:** ﴿السِّنّ﴾ غاښ. ﴿يقتص﴾ د افتعال له بابه د مضارع مجهولې صيغه ده: قصاص اخيستل. ﴿لا تتفاوت﴾ د تفاعل له بابه د نفي صيغه ده: مختلف کېدل. بدلېدل (تفاوت او توپير پکښې راتلل). ﴿شَجَّة﴾ زخم(د سر او مخ زخم ته وايي. او عام زخم ته جراحة وايي). ﴿مماثلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو د بل مثل کېدل. برابري.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چې که څوک د بل چا غاښ وباسي، نو قصاص لازمېږي چې په بدله کې به د هغه غاښ ایستل کیږي؛ ځکه په قرآن کریم کې په ښکاره الفاظو دا حکم سوی دی ﴿وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ﴾ چې د غاښ په بدله کې غاښ دی، که څه هم د یوه غاښ د بل له غاښ څخه غټ وي؛ ځکه په دې اختلاف سره د غاښ په منفعت کې هیڅ تفاوت نه راځي. او مخکې په دې آیت ﴿وَالْجُرُوحَ قِصَاصٌ﴾ سره دا خبره ثابته سوه چې په کوم زخم کې مماثلت ممکن وي، په هغه کې به قصاص اخیستل کیږي.

## له غاښ څخه بغیر د نورو هډوکو د قصاص حکم

قَالَ: وَلَا قِصَاصَ فِيْ عَظْمٍ إِلَّا فِي السِّنِّ فرمایي: او قصاص په هډوکي کښې نسته مګر په غاښ کې [یعني له غاښ څخه بغیر بل په هیڅ هډوکي کښې قصاص نسته] وَهٰذَا اللَّفْظُ مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او دغه لفظ [الفاظ] له حضرت عمر او حضرت ابن مسعود (رض) څخه روایت سوي دي وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] : «لَا قِصَاصَ فِي الْعَظْمِ» او نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: په هډوکي کښې قصاص نسته وَالْمُرَادُ غَيْرُ السِّنِّ او مراد له غاښ څخه بغیر نور هډوکي دي وَلِأَنَّ اعْتِبَارَ الْمُمَاثَلَةِ فِيْ غَيْرِ السِّنِّ مُتَعَذَّرٌ او ځکه چې له غاښ څخه بغیر په نورو هډوکو کښې د مماثلت اعتبار کول مشکل دي لِاحْتِمَالِ الزِّيَادَةِ وَالنُّقْصَانِ ځکه د زیاتوب او کمي احتمال [پکښې] سته بِخِلَافِ السِّنِّ په خلاف د غاښ لِأَنَّهُ يُبْرَدُ بِالْمِبْرَدِ ځکه چې هغه په سوان سره توږل کېدای سي وَلَوْ قَلَعَ مِنْ أَصْلِهِ او که له بېخه یې کښلی وي يُقْلَعُ الثَّانِيْ نو د دویم یوه غاښ [هم] له بېخه کښل کېدای سي فَيَتَمَاثَلَانِ نو یو به د بل مماثل وګرځي.

**اللغات**: ﴿متعذر﴾ د تفعل د باب مفعول دی (فاعل هم کېدلای سي): د دې لفظ دوې معناوي دي: مشکل، ناممکن. ﴿لا یبرد﴾ د نصر له بابه د نفي مجهول صیغه ده. د دې په صله کې چې اوسپنه، هډوکی وغیره ذکر سوه، نو معنیٰ یې ده: توږل، تراشل. ﴿المبرد﴾ سوهان، سوان. د توږلو او تراشلو آله.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه بمعناه، قال الزيلعي: هذا اللفظ غريب. (احسن الهدايه)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې له غاښنو څخه بغير بل په هيڅ هډوکي کښې هم قصاص اخيستل جائز نه دي. فقط د غاښ ماتولو يا کښلو په صورت کې به قصاص اخيستل کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په متن کې کوم دا الفاظ ذکر سوي دي "لا قصاص في عظم الإنسان إلا في السن". دا له حضرت عمر او ابن مسعود رضي الله عنهما څخه نقل سوي دي کوم چې د دې خبرې ښکاره دليل دی چې له غاښ څخه بغير د نورو هډوکو قصاص به نه اخيستل کيږي.

همدارنګه په دې سلسله کې دا حديث هم نقل سوی دی "لا قصاص في العظم" چې په هډوکو کښې قصاص نسته. مراد يې له غاښ څخه بغير نور هډوکي دي (ځکه د حضرت عمر او ابن مسعود (رض) قول پر همدې دلالت کوي).

او قاعده هاغه ده کوم چې مخکې ذکر سوه چې په کوم صورت کې مماثلت ممکن وي. هلته قصاص لازميږي، کنې نه لازميږي. او ښکاره خبره ده چې په هډوکو کښې د مماثلت رعايت ممکن نه دی؛ ځکه د هډوکي په ماتولو کښې د کمي و زياتوب قوي احتمال سته، او دا احتمال په غاښ کې نسته. مثلاً که زيد د حامد غاښ مات کړي، نو په قصاص کې د زيد غاښ هغومره ماتول کېدای سي په دې توګه چې د سوان وغيره په ذريعه د زيد غاښ وتوږل سي او د حامد د غاښ سره برابر کړی سي. يا که زيد د حامد غاښ له بېخه کښلی وي، نو د زيد غاښ هم له بېخه ايستل کېدای سي. نو ځکه له غاښ څخه بغير د نورو هډوکو قصاص به نه اخيستل کيږي.

## په ما دون النفس (اطرافو) کې شبه عمد نسته

| |
|---|
| قَالَ: وَلَيْسَ فِيْمَا دُوْنَ النَّفْسِ شِبْهُ عَمَدٍ فرمايي: او له نفس څخه په کم کې شبهِ عمد نسته إِنَّمَا هُوَ عَمَدٌ أَوْ خَطَأٌ بلکې هغه [مادون النفس] يا خو عمد دی يا خطاء دی لِأَنَّ شِبْهَ الْعَمَدِ يَعُوْدُ إِلَى الْآلَةِ ځکه چې شبه عمد د آلې وطرف ته راجع کيږي وَالْقَتْلُ هُوَ الَّذِيْ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِهَا او همدا قتل د آلې په بدلېدلو سره بدليږي دُوْنَ مَا دُوْنَ النَّفْسِ نه ما دون النفس [يعني د ما دون النفس قتل (اتلاف) د آلې په اختلاف سره نه مختلف کيږي] لِأَنَّهُ لَا يَخْتَلِفُ إِتْلَافُهُ بِاخْتِلَافِ الْآلَةِ ځکه د ما دون النفس اتلاف [هلاکول] د آلې په بدلېدلو سره نه بدليږي فَلَمْ يَبْقَ إِلَّا الْعَمَدُ وَالْخَطَأُ لهذا [په ما دون النفس کې] صرف عمد او خطاء باقي پاته سوه. |

**تشريح:** ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضايع کول او له منځه وړل. هلاکول.

**تشريح**: مخکي (يعني له "باب مايوجب القصاص ومالايوجبه" څخه په مخکي والا عبارت کي) دا بحث تېر سو چي د قتل له پنځو اقسامو څخه قتلِ عمد او قتلِ شبه عمد صرف د نفس په قتل کي جاري کيږي (يعني عمد کېدل او شبه عمد کېدل فقط د نفس [انسان] د قتل کولو په صورت کي متحقق کېدای سي). لېکن د ما دون النفس په قتل (اتلاف) يعني د اندامونو په پرېکولو او ماتولو کي شبه عمد نه جاري کيږي بلکي په ما دون النفس کي صرف د قتل دوه قسمونه جاري کيږي ① قتلِ عمد ② او قتلِ خطاء. يا په بله وينا دا چي په ما دون النفس کي د قتل (اتلاف) ټوله قسمونه صرف عمد او خطاء شمېرل کيږي. نه شبه عمد. ځکه د شبه عمد مدار پر آله دی يعني د آلې په بدلېدلو سره قتلِ عمد. شبه عمد ګرځي. او د آلې په بدلېدلو سره صرف په قتل فی النفس کي بدلون راځي لېکن په قتلِ ما دون النفس کي بدلون نه راځي يعني د آلې په اختلاف سره د ما دون النفس په اتلاف (هلاکولو) کي هيڅ تغير نه راځي (بلکي مادون النفس [يعني اندامونه] په هره آله سره هلاکېدلای سي. مثلاً ستر ګه چي څرنګه په چاړه او توره سره ايستل کېدای سي. همداسي په لکړه او لرګي سره هم ايستل کېدای سي). نو ځکه د ما دون النفس په إتلاف کي شبه عمد نه جاري کيږي. بلکي په هغه کي صرف د عمد يا خطاء ګنجايش سته. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

## د اطرافو (اندامونو) په قصاص کي د سړي او ښځي فرق

وَلَا قِصَاصَ بَيْنَ الرَّجُلِ وَالْمَرْأَةِ فِيمَا دُوْنَ النَّفْسِ او قصاص نسته د سړي او ښځي تر مينځ له نفس څخه په کم [يعني په اطرافو] کي وَلَا بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ وَلَا بَيْنَ الْعَبْدَيْنِ او نه د آزاد او غلام تر مينځ او نه د دوو غلامانو تر مينځ خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ فِي جَمِيعِ ذٰلِكَ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په دې ټولو صورتونو کي إِلَّا فِي الْحُرِّ يَقْطَعُ طَرَفَ الْعَبْدِ مګر د آزاد په صورت کي چي هغه د غلام يو طرف [اندام] پرېکړي وَيَعْتَبِرُ الْأَطْرَافَ بِالْأَنْفُسِ او هغه اطراف [ندامونه] پر نفسونو قياسوي لِكَوْنِهَا تَابِعَةً لَهَا ځکه اطراف د نفسونو تابع دي وَلَنَا: أَنَّ الْأَطْرَافَ يُسْلَكُ بِهَا مَسْلَكَ الْأَمْوَالِ او زموږ دليل دا دی: چي اطراف د اموالو په درجه کي داخلول کيږي [يا په بله وينا دا چي د اطرافو سره د مال په څېر سلوک کيږي. يعني اطراف د مال په درجه کي او د مال قائم مقام دي] فَيَنْعَدِمُ التَّمَاثُلُ بِالتَّفَاوُتِ فِي الْقِيمَةِ نو په قيمت کي د تفاوت په وجه به مماثلت معدوم سي وَهُوَ مَعْلُومٌ قَطْعًا بِتَقْوِيمِ الشَّرْعِ او [دلته] د شريعت په قيمت ټاکلو سره تفاوت قطعاً معلوم دی فَأَمْكَنَ اعْتِبَارُهُ نو د تفاوت اعتبار کول ممکن دي بِخِلَافِ التَّفَاوُتِ فِي الْبَطْشِ په خلاف د هغه تفاوت کوم چي [د لاس] په نيولو کي

دی لِأَنَّهُ لَا ضَابِطَ لَهُ ځکه د هغه لپاره هيڅ ضابطه [قاعده] مقرره نه ده فَاعْتُبِرَ أَصْلُهُ نو د اصل نيولو اعتبار به کيږي وَبِخِلَافِ الْأَنْفُسِ او په خلاف د نفسونو لِأَنَّ الْمُتْلِفَ إِزْهَاقُ الرُّوحِ ځکه [هلته] تلفونکی د روح هلاکول [د روح ايستل] دي [يعني د نفس قتل د روح تلفونکي او ايستونکي دی] وَلَا تَفَاوُتَ فِيهِ او په هغه کي هيڅ تفاوت نسته.

**اللغات:** ﴿ينعدم﴾ د انفعال مضارع ده: معدوم کېدل، نيستېدل. ﴿التماثل﴾ د تفاعل مصدر دی: يو د بل مثل کېدل، مماثلت او برابري. ﴿تقويم﴾ د تفعيل مصدر دی. د دې باب يوه معنیٰ ده: قيمت ټاکل (قيمت مقررول)، د يو شي اندازه بيانول. ﴿البطش﴾ مصدر دی. له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: نيول (په لاس سره يو شی نيول او اخيستل). ﴿يسلك﴾ د نصر له باب څخه مضارع مجهوله ده. د دې باب څو معناوي دي: داخلېدل، داخلول (لازمي او متعدي)، تګ کول (د لاري په اتباع کولو سره تلل). ﴿مسلك﴾ لاره، جمع: مسالك. ﴿متلف﴾ د افعال د باب فاعل دی: تلفونکی، ضايع کونکی. ﴿إزهاق﴾ د افعال د باب مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي، دلته يې مطلب دی: روح له تنه جلا کول، هلاکول. (احسن الهدايه، حاشيه)

**تشريح:** د قصاص فی النفس له مسئلو څخه يوه مسئله دا هم ده چي په قصاص فی النفس کي سړی او ښځه، آزاد او غلام او همدارنګه دوه غلامان سره برابر دي چي د دې بيان مخکي تېر سوی دی، لېکن په قصاص فيما دون النفس (قصاص فی الاطراف) کي مساوات نسته، بلکي پکښي تفاوت دي (نو د ښځي د لاس په قصاص کي به د سړي لاس نه پرېکول کيږي)؛ وجه يې دا ده چي اطراف (اندامونه) د مال په درجه کي دي؛ ځکه مال او اطراف دواړه د نفس د حفاظت لپاره پيدا کړل سوي دي چي څرنګه په مال سره د ځان حفاظت کيږي همداسي په اطرافو (اندامو) سره هم د ځان حفاظت کيږي، لهذا کله چي اطراف د مال په درجه کي سوه، نو د هغوی قيمت به ورکول کيږي او په قيمت کي تفاوت دی. مثلاً د سړي د لاس قيمت شريعت ۵۰۰ ديناره ټاکلی دی او د ښځي د لاس قيمت يې ۲۵۰ ديناره ټاکلی دی، مطلب دا چي کله په دوی کي تفاوت دی نو ځکه د سړي د لاس په بدله کي به د ښځي او د ښځي د لاس په بدله کي به د سړي لاس نه پرېکول کيږي او نه به د غلام په بدله کي د آزاد، او د آزاد په بدله کي د غلام، او د غلام په بدله کي د غلام لاس وغيره پرېکول کيږي، لنډه دا چي په دې ټولو صورتونو کي قصاص نه لازميږي.

او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې ټولو صورتونو کي قصاص لازميږي، ما سوا له يوه صورت څخه؛ ځکه امام شافعي رَحِمَهُ الله اطرف پر نفس قياسوي، ځکه چي اطراف تابع دي او نفس

متبوع دی او کوم حکم چې د متبوع وي، هاغه حکم د تابع هم وي. بس په دې يوه صورت کې د هغه په نېز قصاص واجب نه دی. هغه دا چې کله آزاد کس د غلام لاس پرېکړي؛ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې پر آزاد کس قصاص في النفس هم نسته (يعني که آزاد کس غلام قتل کړي، نو د هغه په نېز پر آزاد قصاص نسته). نو قصاص في الطرف به هم نه وي.

خو د احنافو په نېز په دې ټولو صورتونو کې قصاص نه لازمېږي: د ښکاره تفاوت په وجه کوم چې ذکر سو.

بخلاف التفاوت في البطش إلخ: دا د يو مقدّر سوال جواب دی. سوال دا دی چې که يو آزاد کس د بل آزاد لاس پرېکړي او له دوی څخه د يوه لاس غټ او د بل لاس کوچنی وي، نو دلته هم قصاص نه لازمېدل پکار دي؛ ځکه د دواړو تر مينځ تفاوت دی؟.

د جواب حاصل دا دی چې معتبر په لاس کې اصل نيول دي (يعني د لاس اصلي کار نيول او اخيستل دي) کوم چې په کوچني او غټ لاس دواړو کې موجود دي (ځکه دواړه نيول کولای سي). او د دې تفاوت لپاره شريعت هيڅ ضابطه او قاعده نه ده مقرر کړي، نو ځکه دغه تفاوت لره به اعتبار نه وي. او پاته سو د سړي او ښځي په لاس کې شريعت د تفاوت اعتبار کړی دی چې د هغه لپاره يې جلا جلا قيمت ټاکلئ دی، نو ځکه هغه تفاوت معتبر سوی دی.

او د نفس په ضايع کولو (قتلولو) کې دا تفاوت هم معتبر نه دی (يعني برابره ده قاتل له مقتول څخه غټ وي او که کوچنی وي. په هر صورت کې هغه د مقتول په قصاص کې قتلول کيږي)؛ ځکه قتل په هر صورت کې د روح تلفونکی دی او په روح کې هيڅ تفاوت نسته، نو ځکه تفاوت في الانفس معتبر نه دی او په هر ډول نفس کې قصاص واجبيږي.

## د مسلمان او ذمي تر مينځ د اندامو د قصاص حکم

وَيَجِبُ الْقِصَاصُ فِي الْأَطْرَافِ بَيْنَ الْمُسْلِمِ وَالْكَافِرِ او د مسلمان او کافر [ذمي] تر مينځ په اطرافو کې قصاص واجبيږي لِلتَّسَاوِيْ بَيْنَهُمَا فِي الْأَرْشِ ځکه د دوی تر مينځ په ديت کې مساوات دی.

**اللغات**: ﴿أرش﴾ تاوان او جرمانه، ديت، هغه مال کوم چې پر ما دون النفس (يعني پر اندامونو) د جنايت کولو په بدله کې لازميږي.

**تشريح**: دلته له کافر څخه ذمي مراد دی، او شريعت د مسلمان او د ذمي د اندامونو ديت يو ټاکلی دی، نو ځکه د مساوات په وجه به قصاص واجبيږي؛ ځکه د قصاص د ثبوت لپاره مماثلث او مساوات ضروري دی، او هغه دلته موجود دی.

## د پرېکړل سوي اندام يا د ژور زخم د جوړېدلو په صورت کي د قصاص حکم

قَالَ: وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ مِنْ نِصْفِ السَّاعِدِ فرمايي: او څوک چي د يو سړي لاس د ليځي له نيمايي ځخه پرېکړي أَوْ جَرَحَهُ جَائِفَةً يا سړی په جائفه زخم سره زخمي کړي [يا په بله وينا دا چي هغه داسي زخمي کړي چي اثر يې جوف ته ورسيږي] فَبَرَأَ مِنْهَا بيا هغه [مجروح] له دې ځخه جوړ سي فَلَا قِصَاصَ عَلَيْهِ نو پر هغه [قاطع او جارح] قصاص نسته لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اِعْتِبَارُ الْمُمَاثَلَةِ فِيْهِ ځکه په دې کي د مماثلت اعتبار ممکن نه دی إِذِ الْأَوَّلُ كَسْرُ الْعَظْمِ ځکه اول [ليځی پرېکول] هډوکی ماتول دي وَلَا ضَابِطَةَ فِيْهِ او په دې [هډوکي ماتولو] کي هيڅ ضابطه مقرره نه ده وَكَذَا الْبُرْءُ نَادِرٌ او همدارنګه [د جائفه زخم] جوړېدل نادر دي فَيُفْضِي الثَّانِيْ إِلَى الْهَلَاكِ ظَاهِرًا نو دويم [جائفة زخمي کول] به په ښکاره هلاکت [مرګ] ته رسونکي وي.

**اللغات**: ﴿الساعد﴾ ما بين المرفق الى الكف (يعني له څنګلو ځخه تر ورغوي پوري دغه حصې ته ساعد وايي)، ليځه. خو عموماً عضد او ساعد په يوه معنیٰ سره استعماليږي، چي د هغه معنیٰ ده: بازو، مټ، يعني ما بين المرفق الى الكتف. ﴿جائفة﴾ داسي زخم ته وايي چي د هغه اثر جوف (دننه باطن ته) ته ورسيږي، مثلاً پر سر ووهل سي او د هغه اثر دماغ ته ورسيږي. ﴿بَرَأَ﴾ د ماضي صيغه ده: له فتح، سمع او کرُم ټولو ځخه راځي؛ بَرَأَ او بَرِئَ يَبْرَأُ بَرْأً وَبُرْأً: د دې باب يوه معنیٰ ده: روغېدل، له ناروغی وروسته جوړېدل، شفاء حاصلېدل. ﴿نادر﴾ مَا قَلَّ وُجُوْدُهُ: يعني کوم څه چي ډېر کم (کله نا کاله) موجوديږي. ﴿يفضي﴾ د افعال د باب مضارع ده: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله دوې مسئلې ذکر کړي دي:

(۱)... که څوک د ليځي له نيمايي ځخه د يو چا لاس پرېکړي (يعني د ليځي او بازو پر مينځ لاس ور پرېکړي)، نو دلته قصاص نه لازميږي: ځکه دلته د مماثلت رعايت ممکن نه دی: ځکه د ليځي پر مينځ لاس پرېکول د هډوکي ماتول دي (چي په هغه کي به د لاس د ليځي هډوکی ماتول کيږي). او مخکي ذکر سوه چي له بند (مفصل) ځخه بغير پر بل ځای د هډوکي د ماتولو په صورت کي مماثلت ممکن نه دی او نه شريعت په دې هکله يو قاعده مقرره کړې ده. نو ځکه د عدمِ مماثلت په وجه په دې صورت کي قصاص ساقط دی.

(۲)... که څوک په داسي توګه بل څوک زخمي کړي چي هغه زخم جوف ته سرایت وکړي یعني اثر یې دننه باطن ته ورسیږي او جائفه زخم وګرځي، خو بیا هغه جوړ سي او مجروح کس مړ نه سي. نو قصاص نه لازمیږي؛ ځکه په جائفه زخم کي هلاکت غالب وي او د جوړتیا امکان یې ډېر کم وي یعني په جائفه زخم کي د مرګ غالب ګومان وي، نو اوس که له جارح څخه قصاص واخیستل سي یعني هغه هم په جائفه زخم سره زخمي کړل سي نو غالب ګومان دا دی چي هغه به جوړ نه سي او مړ به سي، لهذا په دې صورت کي هم په قصاص کي مماثلت معدوم دی، نو ځکه دلته هم قصاص ساقط سوی دی.

**که د یوه لاس سم وي او د بل لاس شل یا یې ګوتي کمي وي (په دې هکه د عدم مماثلت حکم)**

قَالَ: وَإِذَا كَانَتْ يَدُ الْمَقْطُوعِ صَحِيحَةً فرمایي: او کله چي پرېکړل سوی لاس صحیح وي وَيَدُ الْقَاطِعِ شَلَّاءَ أَوْ نَاقِصَةَ الْأَصَابِعِ او د پرېکونکي کس لاس شل یا کمو ګوتو والا وي فَالْمَقْطُوعُ بِالْخِيَارِ نو د چا لاس چي پرېکړل سوی دی هغه ته اختیار دی إِنْ شَاءَ قَطَعَ الْيَدَ الْمَعِيبَةَ که وغواړي نو [د قاطع] عیبداره لاس دي پرېکړي وَلَا شَيْءَ لَهُ غَيْرُهَا او له دې [عیبداره لاس] څخه بغیر هغه لره بل هیڅ شی نسته وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْأَرْشَ كَامِلًا. او که وغواړي نو [د خپل لاس] پوره دیت دي واخلي لِأَنَّ اسْتِيفَاءَ الْحَقِّ كَامِلًا مُتَعَذِّرٌ ځکه چي [دلته] د کامل حق ترلاسه کول متعذر دي فَلَهُ أَنْ يَتَجَوَّزَ بِدُونِ حَقِّهِ نو ځکه هغه [مقطوع الید] ته دا حق سته چي له خپل حق څخه په کم کي چشم پوشي وکړي [یعني له خپل حق څخه په کم حق اکتفا وکړي] وَلَهُ أَنْ يَعْدِلَ إِلَى الْعِوَضِ او هغه ته دا حق [هم] سته چي د عوض [دیت] وطرف ته عدول وکړي كَالْمِثْلِيِّ إِذَا انْصَرَمَ عَنْ أَيْدِي النَّاسِ بَعْدَ الْإِتْلَافِ لکه مثلي شی چي کله تر ضایع کولو وروسته د خلکو د لاس څخه منقطع [او نېستي] سي ثُمَّ إِذَا اسْتَوْفَاهَا نَاقِصًا بیا کله چي مقطوع الید په هغه ناقص لاس سره قصاص واخلي [یا په بله وینا دا چي په ناقصه توګه قطع ید ترلاسه کړي] فَقَدْ رَضِيَ بِهِ نو هغه په دې سره راضي سو [یعني په ناقصه توګه په خپل حق ترلاسه کولو راضي سو] فَيَسْقُطُ حَقُّهُ نو ځکه د هغه حق به ساقطیږي كَمَا إِذَا رَضِيَ بِالرَّدِيءِ مَكَانَ الْجَيِّدِ لکه کله چي هغه د کره [دراهمو] پر ځای په خرابو [کوټه دراهمو] راضي سي.

**اللغات**: ﴿شلاء﴾ شل. ناکاره چي کار نه کوي (يعني نيول نه سي کولای). ﴿أرش﴾ ديت. مخکي يې تفصيلي معنیٰ ذکر سوه. ﴿متعذر﴾ د تفعل د باب مفعول دی: مشکل. ناممکن. ﴿يتجوّز﴾ د تفعل د باب مضارع ده: چشم پوشي کول (پر يو شي سترګي پټول). تاوان يې برداشتول (زغمل). اکتفا کول. (مثلا که مالک د مزدور په کار کي خرابي ووېني. خو بيا هم قصداً سترګي پرې پټي کړي او هغه برداشت کړي او معاف يې کړي. نو دې ته "تجوز" وايي). ﴿انصرم﴾ د انفعال د باب ماضي ده: منقطع کېدل. نايابه کېدل. ختمېدل. ﴿الرديء﴾ کمزوري. خراب.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که عُمر د زيد لاس پرېکړي، حال دا چي د زيد لاس صحيح سالم وو. او د زيد لاس شل دی يا يې ګوتي کمي دي، نو په دې صورت کي مقطوع اليد (زيد) ته دوه اختياره حاصليږي:

① ... که وغواړي نو قصاص دي واخلي يعني د قاطع (عُمر) دا ناقص معيوبه لاس دي پرېکړي. ځکه کله چي قاطع (عمر) ګردسرده کامل لاس لري نه. نو له دې څخه بغير بله چار نسته. او له خپل حق څخه په کم حق راضي کېدل او پر هغه سترګي پټول جائز دي. نو که هغه (مقطوع اليد زيد) په دې راضي سي يعني له قاطع څخه قصاص اخيستل اختيار کړي او د هغه معيوب لاس پرېکړي، نو د ده حق اداء سو بيا (له عُمر څخه) د بل شي مطالبه نه سي کولای. او د دې مثال داسي دی لکه د کَرَه دراهمو پر ځای کوټه دراهم اخيستل.

② ... همدارنګه مقطوع اليد (زيد) ته دويم اختيار دا سته چي قصاص نه واخلي. بلکي ديت واخلي.

او د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي د بل چا مثلي شی هلاک کړي. مثلاً حامد د خالد وريجي ضايع کړي، نو پر حامد واجب دي چي د هغه مثل اداء کړي (يعني خالد ته هغسي او هغومره وريجي ورکړي). خو له بده مرغه دا مهال په بازار کي وريجي نه ترلاسه کيږي او که وي نو هغه ډېري کمزوري او ردي وي. نو اوس خالد ته دوه اختياره حاصليږي چي که وغواړي نو دا ناقصه کمزوري وريجي دي قبولي کړي او هغه دي ځني واخلي. او که خالد داسي وکړي، نو حق يې اداء کيږي او بيا (له حامد څخه) د نور څه مطالبه نه سي کولای. او دويم ده ته دا اختيار حاصليږي چي د خپل وريجو قيمت ځني واخلي. نه د هغوی مثل. نو همدغه ډول په مذکوره صورت کي هم مقطوع اليد ته داسي دوه اختياره حاصليږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ سَقَطَتِ الْمُؤْذِيَةُ قَبْلَ اخْتِيَارِ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ او که شل [معيوبه] لاس د مجني عليه [مقطوع اليد] له اختيار څخه مخکي ولوېږي أَوْ قُطِعَتْ ظُلْمًا يا هغه په ظلم [په ناحقه] پرېکړل سي فَلَا شَيْءَ لَهُ عِنْدَنَا نو [په دې صورت کي] زموږ په نېز مجني عليه [مقطوع اليد] لره هيڅ شی نسته لِأَنَّ حَقَّهُ

مُتَعَيَّنٌ فِي الْقِصَاصِ ځکه د هغه حق په قصاص کې متعين دی وَإِنَّمَا يَنْتَقِلُ إِلَى الْمَالِ بِاخْتِيَارِهِ او دا حق د مال [ديت] وطرف ته د مجني عليه په اختيار سره منتقل کيږي [او هغه ديت اختيار کړی نه دی] فَيَسْقُطُ بِفَوَاتِهِ نو ځکه د لاس په فوتېدلو سره به د هغه حق [قصاص] ساقطيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قُطِعَتْ بِحَقٍّ عَلَيْهِ مِنْ قِصَاصٍ أَوْ سَرِقَةٍ په خلاف د هغه صورت کله چې د يو داسې حق په وجه هغه [د قاطع معيوب لاس] پرېکړل سوی وي کوم چې پر ده [قاطع] واجب وي حَيْثُ يَجِبُ عَلَيْهِ الْأَرْشُ نو [په دې صورت کې] پر ده [قاطع] ديت واجبيږي لِأَنَّهُ أَوْفَى بِهِ حَقًّا مُسْتَحَقًّا ځکه ده په دې سره خپل يو واجب حق اداء کړی دی فَصَارَتْ سَالِمَةً لَهُ مَعْنًى نو د معنیٰ په اعتبار سره هغه [معيوب پرېکړل سوی لاس] د ده لپاره سالم پاته سو.

**اللغات**: ﴿المئوفة﴾ آفت زده. شل او ناکاره. ﴿المجنی علیه﴾ مَجْنِیٌ د ضرب د باب مفعول دی: پر چا چې بل چا جنايت او جرم کړی وي. ﴿سالمة﴾ د سمع له بابه د اسم فاعل صيغه ده: صحيح سالم. محفوظ او خوندي.

**تشريح**: د عبارت تر حل مخکې په دې ځان پوه کړئ! چې له "الْمَئُوفَةُ" څخه د قاطع (عُمر) معيوب لاس مراد دی او له "الْمَجْنِيُّ عَلَيْهِ" څخه مقطوع اليد (زيد) مراد دی چې د هغه روغ سالم لاس پرېکړل سوی دی.

صورت د مسئلې دا دی که مقطوع اليد (زيد) تر اوسه د ديت اخيستل اختيار کړي نه وي يعني تر اوسه يې د ديت هيڅ يادونه هم نه وي کړې، يا مقطوع اليد قصاص اختيار کړی وی چې زه د قاطع (عُمر) دا معيوب ناقص لاس پرېکول غواړم، خو په دې دوران کې د قاطع (عُمر) لاس يو څوک ظلماً (په ناحقه) پرېکړي يا هغه خپله پرې سي او له تن څخه جلا سي، نو په دې صورت کې نه قصاص پاتيږي، نه ديت، يعني له قاطع څخه قصاص ساقطيږي او مقطوع اليد د هغه بل لاس نه سي پرېکولای او نه ديت ځني اخيستلای سي؛ ځکه واجب اصلي خو دلته قصاص دی او مال يعني ديت هغه وخت واجبيږي کله چې مجنی عليه (مقطوع اليد) هغه اختيار کړی وي، حال دا چې دلته مجنی عليه ديت نه دی اختيار کړی، نو ځکه په دې صورت کې نه ديت لازم دی او نه قصاص لازم دی، قصاص خو ځکه لازم نه دی چې اوس د قصاص محل (معيوب لاس) فوت سو. لهذا قصاص اخيستل ناممکن سوه. نو ځکه د قصاص حکم ساقط سو. او ديت ځکه لازم نه دی چې مجنی عليه (مقطوع اليد) هغه اختيار کړی نه دی. نو ځکه د ديت حکم هم ساقط سو.

خو که مجنی علیه دیت اخیستل اختیار کړي وي او بیا دا واقعه پېښه سي. نو په دې صورت کي د دیت حکم نه ساقطیږي بلکي دیت لازم پاتیږي. لهذا اوس به قاطع هغه ته دیت ورکوي.

بخلاف ما إذا قطعت إلخ: فرمايي که په پورتني صورت کي د قاطع لاس ظلماً (په نا حقه) نه. بلکي د یو د چا حق په بدله کي پرېکړل سوی وي. مثلاً په قصاص یا غلا کي پرېکړل سوی وي. نو په داسي صورت کي د مقطوع الید حق نه ساقطیږي بلکي په هر حال کي دیت لازم پاتیږي؛ ځکه په دې صورت کي په معنوي اعتبار سره ګواکي د قاطع لاس موجود او خوندي پاته دی (ځکه چي هغه د شریعت د حق په وجه پرېکړل سوی دی).

خو د حقیقت په اعتبار سره موجود نه دی، نو د حقیقت په اعتبار کولو سره قصاص معدوم سو او د معنیٰ په اعتبار کولو سره به دیت باقي پاته وي.

## د سر زخمي کولو د یو تفصیلي صورت حکم

قَالَ: وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا فرمايي: او څوک چي د یو سړي سر ورمات کړي فَاسْتَوْعَبَتِ الشَّجَّةُ مَا بَيْنَ قَرْنَيْهِ نو د سر زخم د هغه سړي د سر دواړه طرفونه ونیسي وَهِيَ لَا تَسْتَوْعِبُ مَا بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّاجِّ او هغه [د سر زخم] د سر ماتونکي دواړه طرفونه نه نیسي [یعني د شاج سر د مشجوج له سر څخه غټ وي] فَالْمَشْجُوجُ بِالْخِيَارِ نو سر مات سوي ته اختیار دی إِنْ شَاءَ اقْتَصَّ بِمِقْدَارِ شَجَّتِهِ که وغواړي نو د خپل زخم د مقدار مطابق دي قصاص واخلي يَبْتَدِئُ مِنْ أَيِّ الْجَانِبَيْنِ شَاءَ له هر طرفه چي د ده خوښه شروع دي یې کړي وَإِنْ شَاءَ أَخَذَ الْأَرْشَ او که وغواړي نو دیت دي واخلي لِأَنَّ الشَّجَّةَ مُوجِبَةٌ ځکه چي زخم د قصاص واجبونکی دی لِكَوْنِهَا مَشِينَةً ځکه هغه د عیبداره کولو باعث دی فَيَزْدَادُ الشَّيْنُ بِزِيَادَتِهَا نو د زخم په زیاتوب سره به عیب نور اضافه سي وَفِي اسْتِيفَائِهِ مَا بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّاجِّ زِيَادَةٌ عَلَى مَا فَعَلَ او د شاج [د سر] د دواړو طرفونو په مینځ کي د مشجوج په قصاص اخیستلو کي د شاج پر فعل زیاتوب دی [یعني که مشجوج له شاج څخه (چي د هغه سر غټ دی) د کامل سر قصاص واخلي یعني له یوه جانب څخه تر بل جانبه سر ورمات کړي نو په دې کي زیاتوب دی، نور وضاحت به یې په تشریح کي وسي] وَلَا يَلْحَقُهُ مِنَ الشَّيْنِ بِاسْتِيفَائِهِ قَدْرَ حَقِّهِ مَا يَلْحَقُ الْمَشْجُوجَ او د خپل حق په اندازه قصاص اخیستلو کي شاج ته هغه عیب نه رسیږي کوم چي مشجوج ته رسېدلی دی فَيَنْتَقِصُ نو د مشجوج حق به ناقص [کم] سي فَيُخَيَّرُ نو ځکه هغه [مشجوج] ته به اختیار ورکول کیږي كَمَا فِي الشَّلَّاءِ وَالصَّحِيحَةِ لکه څرنګه چي په شل او روغ لاس کي [مقطوع الید ته اختیار ورکول سوی دی] وَفِي عَكْسِهِ يُخَيَّرُ أَيْضًا او د دې [مخکني صورت] په برعکس صورت کي به هم اختیار ورکول کیږي لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الِاسْتِيفَاءُ كَامِلًا ځکه په کامله توګه قصاص اخیستل متعذر دي لِلتَّعَدِّي إِلَى غَيْرِ حَقِّهِ ځکه دا

د مشجوج له حق څخه بغير د بل چا [شاج] و حق ته متعدي کيږي [دعيب په مقدار کي. يعني په دې صورت کي هم په کامل قصاص اخيستلو کي په عيب کي نوره راځي] وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الشَّجَّةُ فِي طُولِ الرَّأْسِ او همدارنګه که زخم د سر په اوږدول کي وي وَهِيَ تَأْخُذُ مِنْ جَبْهَتِهِ إِلَى قَفَاهُ او زخم د هغه [مشجوج] له تندي څخه تر څټ پوري حصه نيولې وي وَلَا تَبْلُغُ إِلَى قَفَا الشَّاجِّ او دا زخم د شاج تر څټ پوري نه رسيږي فَهُوَ بِالْخِيَارِ نو [په دې صورت کي هم] مشجوج ته اختيار دی لِأَنَّ الْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ ځکه چي وجه [سبب] مختلف نه دی [بلکي په دواړو صورتونو کي وجه يوه ده].

**اللغات**: ﴿شَجَّ﴾ د ماضي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: سر يا مخ زخمي کول. سر ورماتول. (يعني هغه ماتولو او زخمي کولو ته وايي کوم چي په سر يا مخ کښي واقع سي). د سر يا مخ پوست ورڅيرل. دلته مراد: سر ماتول دي، ﴿شاج﴾ له مخکيني بابه د فاعل صيغه ده: د سر ماتونکی (زخمي کونکی). ﴿مشجوج﴾ له مخکيني بابه د مفعول صيغه ده: د چا سر چي مات (زخمي) کړی سوی وي، ﴿قَرْنَي﴾ تشنيه د قَرْنٌ ده. اصل معنیٰ يې خو ښکر ده. لېکن کله چي يې په صله کي د انسان يا شيطان سر ذکر سي. نو معنیٰ يې ده: جانب، طرف، ﴿اقتصّ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: قصاص اخيستل، ﴿مَشِيْنَةٌ﴾ (لکه مَبِيْعَةٌ) د ضرب د باب مفعول دی: عيبداره کړی سوی، د عيبداره کولو او بدرنګۍ باعث، ﴿الشَّيْن﴾ د ضرب د باب مصدر دی: عيب. بدرنګي، قباحت، ﴿جبينة﴾ تندی، ﴿قفا﴾ څټ (څټه)، ورميږ.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که حامد د زيد سر مات کړی او حالت دا وو چي د زيد سر څه کوچنی وو مثلاً بَر (عرض) يې څلور ګوتي وو، خو د حامد د سَر بَر مثلاً يوه لوېښت وو، او حامد د زيد سر دومره مات کړی چي له يوه طرفه تر بل طرفه پوري زخم د هغه ټول بَر (عرض) ونيوی چي هغه څلور ګوتي دي يعني د زيد ټوله سر خراب او عيبداره سو، اوس که زيد (مشجوج) له حامد (شاج) څخه څلور ګوتي قصاص واخلي، نو د حامد په (غټ) سر کي به څلور ګوتي بل طرف ته نه ورسيږي بلکي څه ځای به پاته سي يعني د هغه ټوله سر به خراب نه سي، نو په دې صورت کي به د زيد حق ناقص (کم) پاته سي، او که د ټوله سر (ټوله بَر) قصاص ځني واخلي يعني پوره يوه لوېښت سر ورمات کړي، نو په دې صورت کي به زخم د جنايت له مقدار (څلورو ګوتو) څخه زيات سي کوم چي ظلم او زياتوب دی، نو ځکه په دې مسئله کي زيد (مشجوج) ته دوه اختياره حاصليږي:

① ... يو دا چي فقط د څلور ګوتو په مقدار چي له هر طرفه وغواړي. سر دي ور زخمي او ورمات کړي.

② ... او دويم دا چي يا ديت دي واخلي. لکه په مخکنۍ مسئله کي چي کله د قاطع لاس شل يا ناقص الاصابع وي نو مقطوع اليد ته دوه اختياره حاصلېدل. همداسي دلته هم مشجوج ته دوه اختياره حاصليږي.

وفي عكسه إلخ: او كه حالت د اول صورت برعكس وي يعني د مشجوج (زيد) سر غټ وو. او د شاج (حامد) سر كوچنى وو. نو په دې صورت كي هم پورتني حكم دى چي كه مشجوج وغواړي نو د خپل حق (څلورو ګوتو) په اندازه دي قصاص واخلي او يا ديت دي واخلي. مثلاً د مشجوج سر د څلورو ګوتو په مقدار مات سوى دى او دا مقدار د هغه په سر كي دواړه طرفونه نه نيسي بلكي څه ځاى پاتيږي او د شاج په سر كي دا مقدار دواړه طرفونه نيسي. نو مشجوج ته اختيار دى چي كه وغواړي نو څلور ګوتي دي د هغه سر ورمات كړي او كه دا نه غواړي نو ديت دي واخلي.

او كه همداغه صورت د عرض (بر) پر ځاى د سر په طول كي واقع سي. نو په دې صورت كي هم دا پورتني حكم او دا پورتنى وجه او دليل دى. (اشرف الهدايه)

## د ژبي او د ذكر (تناسلي اندام) د قصاص حكم

قَالَ: وَلَا قِصَاصَ فِي اللِّسَانِ فرمايي: او په ژبه كي قصاص نسته وَلَا فِي الذَّكَرِ او نه په ذكر كي سته وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ۞ أَنَّهُ إِذَا قُطِعَ مِنْ أَصْلِهِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چي كه دا [ژبه يا ذكر] له بېخه پرېكړل سوي وي يَجِبُ نو قصاص واجبيږي لِأَنَّهُ يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ ځكه چي [په دې صورت كي] د مساوات اعتبار كول ممكن دي وَلَنَا: أَنَّهُ يَنْقَبِضُ وَيَنْبَسِطُ او زمونږ دليل دا دى چي دا [ژبه او ذكر] غنجيږي او غځيږي [لنډيږي او اوږديږي] فَلَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ نو ځكه د مساوات اعتبار كول ممكن نه دي إِلَّا أَنْ تُقْطَعَ الْحَشَفَةُ مګر دا چي حشفه [د ذكر سر] پرېكړل سي لِأَنَّ مَوْضِعَ الْقَطْعِ مَعْلُوْمٌ كَالْمَفْصِلِ ځكه د بند په څېر [د هغه] د پرېكېدلو ځاى معلوم دى وَلَوْ قُطِعَ بَعْضُ الْحَشَفَةِ أَوْ بَعْضُ الذَّكَرِ او كه د حشفې بعضي حصه يا د ذكر بعضي حصه پرېكړل سي فَلَا قِصَاصَ فِيْهِ نو په هغه كي قصاص نسته لِأَنَّ الْبَعْضَ لَا يُعْلَمُ مِقْدَارُهُ ځكه د بعضي حصې مقدار معلوم نه دى بِخِلَافِ الْأُذُنِ إِذَا قُطِعَ كُلُّهُ أَوْ بَعْضُهُ په خلاف د غوږ كله چي هغه ټوله يا د هغه بعضي حصه پرېكړل سي لِأَنَّهُ لَا يَنْقَبِضُ وَلَا يَنْبَسِطُ ځكه هغه نه غنجيږي او نه غځيږي وَلَهُ حَدٌّ يُعْرَفُ او هغه لره پېژندل سوى [معلوم] حد دى فَيُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ نو [په هغه كي] د مساوات اعتبار كول ممكن دي وَالشَّفَةُ إِذَا اسْتَقْصَاهَا بِالْقَطْعِ او شونډه كله چي هغه پوره [له بېخه] پرېكړي يَجِبُ الْقِصَاصُ نو قصاص واجبيږي لِإِمْكَانِ اعْتِبَارِ الْمُسَاوَاةِ ځكه د مساوات اعتبار كول ممكن

۞ القول الراجح: قول الجمهور أنه لا قصاص. كما في رد المختار: ولسان وذكر ولو من أصلهما، به يفتى.....وعن أبي يوسف إذا قطع الكل يجب القصاص والصحيح قول أبي حنيفة وقد علمت أن قول الإمام ظاهر اطلاق المتون (ج:٥، ص:٣٩٤). [المحرر]

دي بِخِلَافِ مَا إِذَا قُطِعَ بَعْضُهَا په خلاف د هغه صورت چي د شونډي بعضي حصه پرېکړل سوې وي لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ اعْتِبَارُهَا ځکه (په دې صورت کي) د مساوات اعتبار کول متعذر دی.

**اللغات**: ﴿الذَّکر﴾ د تناسل آله (تناسلي اندام). ﴿ينقبض﴾ د انفعال د باب مضارع ده: يو شی سره راټولېدل. سره نښتل (لنډېدل). کلکېدل او ټينګېدل. غنجېدل. ﴿ينبسط﴾ مخکنۍ صيغه ده: منتشر کېدل. اوږدېدل او غوړېدل. غځېدل. ﴿الحَشَفَة﴾ د ذکر سر. ﴿الشفة﴾ يوه شونډه. ﴿استقصاها﴾ د افتعال د باب ماضي ده: استقصى يستقصي استقصاء: ديو امر بېخ او انتها ته رسېدل. استقصاء بالقطع: مراد بشپړ پرېکول. ﴿يتعذّر﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مشکل کېدل. ناممکن کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که حامد د زيد ژبه پرېکړي. يا يې ذکر پرېکړي. نو قصاص نه لازميږي. امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که ژبه او ذکر يې له بېخه پرېکړي وي. نو قصاص لازميږي. ځکه په دې صورت کي په قصاص اخيستلو کي مساوات او مماثلت ممکن دی چي د قاطع ژبه او ذکر هم له بېخه پرېکړل سي.

زموږ دليل دا دی چي ژبه او ذکر داسي اندامونه دي چي دواړه اوږدېږي او لنډېږي (يعني منتشر کيږي هم او سره راټولېږي هم)، نو کما حقه د مساوات اعتبار کول پکښي ناممکن دي. حال دا چي د قصاص لپاره مماثلت او مساوات ضروري دي او هغه دلته معدوم دي. نو ځکه قصاص به هم نه اخيستل کيږي.

إلا أن تُقطع الحشفة إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک د بل چا حشفه (د ذکر سر) پرېکړي. څرنګه چي دا معلوم ځای دی. نو ځکه قصاص به يې اخيستل کيږي. لکه څرنګه چي لاس له بند څخه پرېکړل سي نو قصاص لازميږي. همداسي دلته هم لازميږي.

او که د حشفې يا د ذکر بعضي حصه ورپرېکړي. نو په دې صورت کي قصاص نه لازميږي. ځکه بعضي حصه متعيّن ځای نه دی او په هغه کي د مساوات او مماثلت رعايت نه سي کېدلای. حال دا چي مساوات او مماثلت ضروري دی. نو ځکه قصاص نه لازميږي.

بخلاف الأذن إلخ: يعني که څوک د بل چا پوره غوږ يا د غوږ بعضي حصه ورپرېکړي. نو قصاص لازميږي: ځکه غوږ د ژبي او ذکر په څېر منتشر کيږي او لنډيږي نه. او غوږه لره يو ټاکل سوی حد دی. لهذا د هغه په قصاص کي مساوات ممکن دی. نو ځکه قصاص پکښي لازميږي.

او که څوک د بل چا (د لوړ طرف يا لاندي طرف) ټوله شونډه پرېکړي. نو قصاص لازميږي. او که بعضي حصه يې ور پرېکړي. نو نه لازميږي: ځکه ښکاره خبره ده چي په اول صورت کي مساوات کېدلای سي او په دويم صورت کي نه سي کېدلای. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ أَحْكَامِ الصُّلْحِ فِي الْقِصَاصِ)

(دا) فصل (په قصاص کې د صلح کولو د احکامو په بیان کې) دی

**تشريح**: مخکې تر دې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله قصاص او د هغه احکام او مسائل بیان کړل. اوس له دې ځایه صلح او د هغه مسائل بیانوي؛ څرنګه چې په قصاص کې د صلحې معامله د قصاص تر ثبوت وروسته پېښېږي. نو ځکه د صلحې مسائل تر قصاص وروسته بیان کړل سوي دي. (احسن الهدايه)

## په قصاص کې د صلحې کولو احکام

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَإِذَا اصْطَلَحَ الْقَاتِلُ وَأَوْلِيَاءُ الْقَتِيْلِ عَلٰى مَالٍ او کله چې د قاتل او مقتول وليان پر يو مال [د مال يو پر مقدار] اتفاق [او صلح] وکړي سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقطيږي وَوَجَبَ الْمَالُ او مال واجبيږي قَلِيْلًا كَانَ أَوْ كَثِيْرًا [برابره ده] مال کم وي او که زيات وي لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيهِ شَيْءٌ﴾ [البقرة: ۱۷۸] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: نو کوم [قاتل او جنايتکار] لره چې د خپل ورور له طرفه د څه شي معافي وکړل سي عَلٰى مَا قِيْلَ: نَزَلَتِ الْآيَةُ فِي الصُّلْحِ د هغه قول مطابق چې ويل سوي دي: دا آيت د صلح په هکله نازل سوی دی وَقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1]: «مَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيْلٌ» او د نبي کريم ﷺ د دې فرمان په وجه: چا لره چې يو قتل کړی سي وَالْمُرَادُ وَاللهُ أَعْلَمُ الْأَخْذُ بِالرِّضَا او مراد والله اعلم د قاتل په رضاء سره اخيستل دي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکې] چې دا مو بيان کړه وَهُوَ الصُّلْحُ بِعَيْنِهِ او همدا [په رضاء سره اخيستل] بعينه صلح ده وَلِأَنَّهُ حَقٌّ ثَابِتٌ لِلْوَرَثَةِ يَجْرِيْ فِيْهِ الْإِسْقَاطُ عَفْوًا او ځکه چې قصاص د وارثانو داسې ثابت شده حق دی چې په هغه کې د معافي په ذريعه اسقاط جاري کيږي فَكَذَا تَعْوِيْضًا نو همداسې به د عوض [مال] ورکولو په ذريعه [اسقاط پکښې جاري] لِاشْتِمَالِهِ عَلٰى إِحْسَانِ الْأَوْلِيَاءِ وَإِحْيَاءِ الْقَاتِلِ ځکه تعويض

[1] تخريج. أخرجه الائمة الستة في كتبهم البخاري في كتاب العلم، باب كتابة العلم، حديث رقم: ۱۱۲. ومسلم في كتاب

[مال ورکول] د ولیانو پر احسان او د قاتل پر ژوندون مشتمل دی فَيَجُوْزُ بِالتَّرَاضِيْ نو ځکه تعویض [مال ورکول] به یو دبل په رضاء سره جائز وي وَالْقَلِيْلُ وَالْكَثِيْرُ فِيْهِ سَوَاءٌ او په دې صلح کې لږ او ډېر مال برابر دی لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيْهِ نَصٌّ مُقَدَّرٌ ځکه چې د هغه په باره کې هیڅ اندازه کونکی [متعین کونکی] نص نسته فَيُفَوَّضُ إِلَى اصْطِلَاحِهِمَا نو ځکه دا به د فریقینو اتفاق ته سپارل کیږي كَالْخُلْعِ وَغَيْرِهِ لکه خلع او داسې نور وَإِنْ لَمْ يَذْكُرُوْا حَالًّا وَلَا مُؤَجَّلًا او که دوی د حالي [نقد] او قرض هیڅ ذکر نه وکړي فَهُوَ حَالٌّ نو هغه حالي [نقد] دی [یعني فی الحاله واجبُ الاداء دی] لِأَنَّهُ مَالٌ وَاجِبٌ بِالْعَقْدِ ځکه چې دا یو داسې مال دی کوم چې په عقد سره واجب سوی دی وَالْأَصْلُ فِيْ أَمْثَالِهِ الْحُلُوْلُ او اصل په داسې مالونو کې [کوم چې په عقد سره واجب وي] حال والی [نقد والی] دی نَحْوَ الْمَهْرِ وَالثَّمَنِ لکه مهر او ثمن بِخِلَافِ الدِّيَةِ په خلاف د دیت دی لِأَنَّهَا مَا وَجَبَتْ بِالْعَقْدِ ځکه دیت په عقد سره نه دی واجب سوی [بلکې هغه د شریعت په واجبولو سره واجب وي].

**اللغات**: ﴿اصطلح﴾ د افتعال د باب ماضي ده: پر یو شي اتفاق کول، مراد: صلح کول. ﴿القتیل﴾ د صفت مشبه صیغه ده: قتل کړی سوی، مقتول. ﴿تعویض﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: عوض ورکول. ﴿التراضی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: یو تر بله راضي کېدل، په یو شي د دواړو فریقینو راضي کېدل. ﴿اصطلاح﴾ د افتعال د باب مصدر دی: اتفاق، متفق کېدل. ﴿الحلول﴾ د ضرب د باب مصدر دی. مراد: حالي والی، نقدیت (نغد کېدل. فی الحاله واجبُ الاداء کېدل).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د مقتول ولیان او وارثان د قصاص په عوض کې د قاتل او د هغه د قریبانو سره پر مال صلحه وکړي (چې موږ قصاص نه اخلو بلکې د هغه په بدله کې دومره مال را کړئ! او دوی یې ورکړي)، نو په دې صورت کې قصاص ساقطیږي، او پر څومره مال چې صلح سوې وي، پر قاتل د هغه اداء کول لازم دي، برابره ده هغه ډېر مال وي او که لږ وي، په هر صورت کې د ټاکل سوي مقدار اداء کول ضروري دي؛ په دې سلسله کې اول دلیل د قرآن کریم دا آیت ﴿فَمَنْ عُفِيَ لَهُ مِنْ أَخِيْهِ شَيْءٌ فَاتِّبَاعٌ بِالْمَعْرُوْفِ وَأَدَاءٌ إِلَيْهِ بِإِحْسَانٍ﴾ اسورة البقرة: ۱۷۸ یعني که د قاتل لپاره د مقتول له طرفه قصاص (د دیت وطرف ته) معاف کړی سي نو د غوره طریقې اتباع کول دي او په ښه توګه اداء کول دي (یعني تر معافی. وروسته دي عفوه کونکی کس له قاتل څخه په غوره توګه د هغه دیت طلب کوي بغیر له زور او اجبار څخه. او قاتل دي هم د هغه په اداء کولو کې له احسان څخه کار واخلي او بې ځایه ټال مټول دې نه کوي).

همدارنګه په حديث کي دي "مَنْ قُتِلَ لَهُ قَتِيْلٌ إِمَّا أَنْ يَّعْفُوَ وإمَّا أَنْ يَّقْتُلَ" يعني که د يو چا يو کس قتل کړی سوی وي. نو هغه ته اختيار دی که وغواړي. نو معافي دي وکړي او که وغواړي نو قصاص دي واخلي (احسن الهدايه). په دې دواړو نصوصو سره دا خبره ثابته سوه چي د مقتول وليانو ته د قصاص اخيستلو حق هم سته او د قصاص معافولو (بخښلو) يا د هغه په عوض کي پر مال د صلحي کولو حق هم ورته سته.

والمراد...الأخذ بالرضا إلخ. په پورتني حديث کي وروسته دا اضافه هم سوې ده "فَأَهْلُهُ بَيْنَ خِيَرَتَيْنِ إِنْ شَاءُوْا أَقَادُوْا وَإِنْ شَاءُوْا أَخَذُوا الدِّيَةَ" چي د مقتول وارثانو ته دوه اختيار حاصليږي: ① که وغواړي نو قصاص دي واخلي ② او که وغواړي نو ديت دي واخلي (يعني صلح دي وکړي). نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې حديث کي له اخيستلو څخه هغه اخيستل مراد دي کوم چي د قاتل په رضاء سره وي.

په اصل کي په دې عبارت "والمراد...الأخذ بالرضا" سره د يو سوال جواب ته اشاره سوې ده کوم چي پر يو مخکني مسئله وارديږي. مسئله دا وه چي که د قاتل اولياء د ديت په اخيستلو راضي وي او قاتل راضي نه وي بلکي هغه په قصاص راضي وي (چي زه ديت نه ورکوم بلکي زما څخه دي قصاص واخلي). نو په دې صورت کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز فقط اولياؤ لره اختيار سته. نه قاتل لره.
نو سوال دا دی چي پورتني حديث سره خو په دې مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلک تائيد کيږي.

نو صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې په جواب کي فرمايي چي په دې حديث کي هم له اخيستلو څخه هغه اخيستل مراد دي کوم چي د قاتل په رضاء سره وي، او همدا په رضاء سره اخيستل خو صلح ده. او که قاتل په ديت ورکولو راضي نه وي، نو جبراً له هغه څخه ديت نه سي اخيستل کېدای.
او بل دا چي قصاص د مقتول د وليانو او وارثانو حق دی، نو څرنګه چي دوی هغه بلا عوضه معاف کولای سي. همداسي د عوض (مال) په بدله کي يې هم معاف کولای سي (د دواړو اختيار ورته سته). او په عوض ورکولو او اخيستلو کي د قاتل هم فايده ده او د مقتول د وليانو هم پکښې فايده ده. د قاتل فايده خو په دې توګه ده چي د هغه نفس به وژغورل سي او ژوند به يې نصيب سي. کنې د قصاص په صورت کي به هغه هم قتل کړی سي، او د مقتول د وليانو فايده په دې توګه ده چي دوی به د قصاص په بخښلو سره پر قاتل احسان کونکي سي وأجر الإحسان عند الله عظيم، وإن الله يُحِبّ المحسنين. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

والقليل والكثير الخ: د دې حاصل دا دی چي د مقتول د وليانو او د قاتل ترمينځ چي د مال پر کوم مقدار هم صلح وسي نو صحيح دي برابره ده هغه دېر مال وي او که لږ وي؛ ځکه په دې هکله د شريعت له طرفه هيڅ مقدار نه دی ټاکل سوی. نهذا د فريقينو په اتفاق سره چي کوم مقدار هم وټاکل سي، هغه صحيح او واجبُ الاداء دی. لکه د خلع او د اعتاق علی مال په صورت کي چي فريقين کوم مقدار هم وټاکي، نو هغه صحيح او واجبُ الاداء وي.

او که دلته فريقين د نقد (نغد) او قرض هيڅ ذکر نه وکړي، نو مال نقد واجبيږي (يعني قاتل به يې سمدستي اداء کوي)؛ ځکه قاعده دا ده چي کوم مال په عقد سره د فريقينو په رضاء واجب سي، نو هغه فی الحاله واجبُ الاداء کيږي، او کوم مال چي په عقد سره واجب نه وي، هغه فی الحاله نه واجبيږي. او دلته په عقدِ صلح سره مال واجب سوی دی. نو ځکه نقد يعني فی الحاله واجبُ الاداء به وي چي سمدستي به يې اداء کوي.

او ديت فی الحاله واجبُ الاداء نه وي، بلکي په قسط (په حصه حصه) سره يې اداء کولای سي؛ ځکه ديت په عقد سره نه واجبيږي بلکي هغه د شريعت په واجبولو سره واجب وي، نو ځکه د ديت مال به فی الحاله واجب الاداء نه وي.

## د مشترکه قتل د صلحي يو صورت

قَالَ: وَإِنْ كَانَ الْقَاتِلُ حُرًّا وَعَبْدًا فرمايي: او که قتل کونکي آزاد او غلام وي فَأَمَرَ الْحُرُّ وَمَوْلَى الْعَبْدِ رَجُلًا بيا آزاد او د غلام مالک يو سړي ته حکم وکړي بِأَنْ يُصَالِحَ عَنْ دَمِهِمَا عَلَى أَلْفِ دِرْهَمٍ چي هغه د دوی دواړو د خون له طرفه پر زرو درهمو صلح وکړي فَفَعَلَ نو هغه يې وکړي فَالْأَلْفُ عَلَى الْحُرِّ وَالْمَوْلَى نِصْفَانِ نو زر درهمه پر آزاد او مالک نيم په نيمه دي لِأَنَّ عَقْدَ الصُّلْحِ أُضِيفَ إِلَيْهِمَا ځکه عقد صلح د دوی دواړو طرف ته منسوب سوی دی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که آزاد کس او غلام په ګډه يو څوک قتل کړي چي د هغه په وجه پر دوی قصاص واجب سي، او بيا آزاد کس او د غلام مالک يو څوک وکيل جوړ کړي چي ته ورسه! د مقتول د وارثانو سره زموږ د قصاص معاف کولو په هکله خبره وکړه! او د زرو درهمو (۱۰۰۰) په عوض کي صلح ور سره وکړه. او وکيل هم ولاړ سي خبره ور سره وکړي او پر زرو درهمو صلح ور سره کړي. نو په دې صورت کي دا د صلح مال (۱۰۰۰ درهمه) پر آزاد او د غلام پر مالک نيم په نيمه واجبيږي او پر وکيل هيڅ شی نه واجبيږي؛ ځکه هغه محض سفير او د دوی د خبرو نقلونکی دی. اصل صلح کوونکي صرف دوی دواړه دي نو ځکه مال به هم پر همدغو دواړو واجب وي. ... اليهما

## د بعضي وارثانو له طرفه د قصاص معاف کېدلو حکم او تفصيل

وَإِذَا عَفَا أَحَدُ الشُّرَكَاءِ مِنَ الدَّمِ او کله چي له شريکانو څخه يو شريک خون معاف کړي أَوْ صَالَحَ مِنْ نَصِيبِهِ عَلَى عِوَضٍ يا هغه له خپلي حصې څخه پر يو عوض صلح وکړي سَقَطَ حَقُّ الْبَاقِيْنَ عَنِ الْقِصَاصِ نو د پاتو [شريکانو] د قصاص حق ساقطيږي وَكَانَ لَهُمْ نَصِيبُهُمْ مِنَ الدِّيَةِ او هغو لره به له ديت څخه خپله حصه وي [يعني اوس به پاتو وارثانو هر يوه ته له ديت څخه خپله حصه ورکول کيږي] وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ الْقِصَاصَ حَقُّ جَمِيعِ الْوَرَثَةِ وَكَذَا الدِّيَةُ او د دې اصل دا دی چي قصاص او همدارنګه ديت د ټولو وارثانو حق دی خِلَافًا لِمَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ فِي الزَّوْجَيْنِ په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله د خاوند او ښځي [مېړه او مايني] په حق کي لَهُمَا: أَنَّ الْوِرَاثَةَ خِلَافَةٌ د دې دواړو دليل دا دی: چي وراثت خلافت [نيابت] دی وَهِيَ بِالنَّسَبِ دُوْنَ السَّبَبِ او خلافت د نسب په وجه دی، نه د سبب په وجه لِانْقِطَاعِهِ بِالْمَوْتِ ځکه سبب په مرګ سره ختميږي [مثلاً که خاوند مړ سي نو د ښځي او د هغه تر مينځ زوجيت ختميږي] وَلَنَا: أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَمَرَ بِتَوْرِيثِ امْرَأَةِ أَشْيَمَ الضَّبَابِيِّ مِنْ عَقْلِ زَوْجِهَا أَشْيَمَ [1] او زموږ دليل دا دی: چي نبي کريم ﷺ د حضرت اشيم ضبابي د ښځي د وارثه ګرځولو [يعني هغې ته د ميراث ورکولو] حکم کړی وو د هغې د خاوند اشيم له ديت څخه وَلِأَنَّهُ حَقٌّ يَجْرِي فِيهِ الْإِرْثُ او ځکه چي دا [قصاص او ديت] داسي حق دی چي په هغه کي ميراث جاري کيږي حَتَّى أَنَّ مَنْ قُتِلَ وَلَهُ ابْنَانِ تر دې چي که څوک قتل کړی سي او د هغه [مقتول] دوه ځامن وي [يعني دوه ځامن يې تر شا پاته سي] فَمَاتَ أَحَدُهُمَا عَنِ ابْنٍ بيا له هغه دوو څخه يو له څوی څخه مړ سي [يعني بيا د مقتول له هغه دوو ځامنو (وارثانو) څخه يو څوی مړ سي او د هغه هم يو څوی تر شا پاته سي] كَانَ الْقِصَاصُ بَيْنَ الصُّلْبِيِّ وَابْنِ الِابْنِ نو [دمقتول] قصاص به د صلبي څوی او لمسي په مينځ کي وي فَيَثْبُتُ لِسَائِرِ الْوَرَثَةِ نو ځکه دا [قصاص او ديت] به ټولو وارثانو لره ثابتيږي وَالزَّوْجِيَّةُ تَبْقَى بَعْدَ الْمَوْتِ حُكْمًا فِي حَقِّ الْإِرْثِ او زوجيت د ميراث په حق کي حکماً تر مرګ وروسته باقي پاتيږي أَوْ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ

---

[1] تخريج: اخرجه ابو داؤد في كتاب الفرائض، باب في المرأة ترث من دية زوجها، حديث رقم:٢٩٢٧. وابن ماجة في كتاب الديات، باب الميراث من الدية، حديث رقم:٢٦٤٢.

مُسْتَنِدٌ إِلٰى سَبَبِهٖ یا دا [قصاص او دیت] په تر مرګ وروسته د خپل سبب و طرف منسوب کېدونکي ثابتیږي وَهُوَ الْجَرْحُ او هغه [سبب] زخمي کول دي.

**اللغات**: ﴿عفا﴾ د نصر د باب ماضي ده: معاف کول. بخښل. ﴿الدم﴾ وینه. خون. ﴿نصیب﴾ برخه. حصه. ﴿عقل﴾ د دې لفظ له معناوو څخه یوه معنیٰ ده: دیت. ﴿زوجیة﴾ یو د بل خاوند او ښځه کېدل. د خاوند او ښځې رشته. واده او نکاح. ﴿وِرَاثة﴾ د سمع له بابه اسم دی: میراث. د مړي ترکه. ﴿سائر﴾ د دې لفظ دوې معناوې نقل سوي دي: ① ټوله (تمام). ② باقي (پاته. نور). ﴿مستند﴾ د افتعال د باب فاعل دی: منسوب کېدونکی (منسوبېدونکی). هغه شی چې نسبت یې بل شي ته سوی وي.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د قتل سوي کس (مقتول) له وارثانو څخه یو د خپل حق قصاص معاف کړي. یا د قصاص په عوض کې صلح وکړي. نو په دې صورت کې د نورو وارثانو د قصاص حق هم ساقطیږي او دوی لره صرف خپل د دیت حصه پاتیږي چې تر دې وروسته به دوی له قاتل څخه هر یو د خپلې حصې دیت اخلي (مثلاً که ټوله پنځه وارثان وه چې له هغوی څخه یوه خپل حق معاف کړی، نو قصاص خو ساقط سو. اوس چې د ماباقي څلورو وارثانو هر یوه ته د دیت څومره حصه رسیږي. دوی صرف هغه له قاتل څخه اخیستلای سي)، او قصاص نه سي اخیستلای: ځکه په قصاص کې تقسیم او تجزي نه سي کېدلای، خو دیت متجزي کېدلای سي یعني دیت په تقسیم (حصه. حصه) سره وارثانو ته حاصلېدلای سي، نو ځکه اوس په دیت کې د ماباقي وارثانو حق باقي پاتیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د دې اصل او قاعده دا بیان کړې ده چې قصاص او دیت د ټولو وارثانو حق دی. لهذا په دواړو کې به ټوله وارثان برابر شریکان وي. لېکن څرنګه چې قصاص نه متجزي کیږي نو ځکه که یو وارث د خپلې حصې قصاص معاف کړي، نو دا عفوُ البعض (د بعضې حصې معافي) عفو الکل (د ټوله قصاص معافی) لره مستلزم کیږي او ټوله قصاص ساقطیږي. خو دیت باقي او برقرار پاتیږي او په هغه کې هر ټول وارث شریک کیږي، برابر ده هغه د مقتول پلار یا ورور وي یا یې خاوند یا ښځه وي.

د دې په خلاف د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز په قصاص او دیت کې د خاوند او ښځې حق نسته. یعني که مقتول خاوند وي (خاوند قتل کړی سوی وي) نو د هغه ښځې ته او که ښځه قتل کړل سوې وي نو د هغې خاوند ته نه د قصاص حق سته او نه دیت ور ته حاصلیږي.

د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې د مړي تر مرګ وروسته چې کوم وارثت او میراث ثابتیږي. هغه د خلافت (نائب والي) په توګه ثابتیږي (چې څوک د مړي نائبان وي. هغو لره

ثابتیږي)، او د خلافت بنیاد نسب دی، سبب نه دی، او دا معلومه خبره ده چې د ښځې او خاوند تعلق سببي دی، نسبي نه دی (یعني د سبب [زوجیت او نکاح] پر بناء ثابت سوی دی، نه د نسب پر بناء)؛ ځکه چې د خاوند یا ښځې په مرګ سره دا تعلق ختمیږي، لهذا کله چې د خاوند او ښځې تعلق سببي دی او سبب (زوجیت) په مرګ سره ختمیږي، نو ځکه ښځې او خاوند ته یو د بل په قصاص او دیت کې حق نه حاصلیږي (ځکه د سبب سره د خلافت هیڅ تعلق نسته، حال دا چې د وراثت بنیاد او مدار پر خلافت دی، نو ښکاره ده چې د زوجینو تر مینځ به دا وراثت هم نه جاري کیږي).

ولنا إلخ: زموږ مسلک دا دی چې خاوند او ښځې ته یو د بل په قصاص او دیت کې حق او حصه حاصلیږي؛ په دې هکله زموږ دلیل دا حدیث دی چې کله حضرت اشیم ضبابي رضي الله عنه یو چا خطاءً قتل کړی او پر قاتل دیت واجب سو، نو پر دې موقع نبي کریم ﷺ دا حکم وکړی چې له دغه دیت څخه دې د حضرت اشیم رضي الله عنه ښځې ته هم میراث ورکول سي، نو له دې څخه معلومه سوه چې خاوند او ښځې ته یو د بل په دیت او قصاص کې حق حاصلیږي او په دې هکله هم د دوی تر مینځ میراث جاري کیږي، همدا وجه ده که د یو مقتول کس دوه ځامن وي مثلاً زید او خالد، نو ښکاره ده چې د پلار قصاص د دوی دواړو حق دی، لېکن بیا تر قصاص اخیستلو مخکې له دوی څخه یو ځوی مثلاً زید مړ سي او د زید هم یو ځوی پاته سي، نو دا ځوی د خپل اکا (خالد) سره د خپل مقتول نیکه د قصاص وارث کیږي (یعني اوس اکا او وراره ته د قصاص حاصلیږي)، نو له دې څخه هم دا څرګنده سوه چې په قصاص کې میراث جاري کیږي.

والزوجیة تبقی إلخ: دا د امام او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله د دلیل جواب دی، حاصل یې دا دی چې ستاسې دا وینا "چې زوجیت په مرګ سره ختمیږي" موږ نه تسلیموو؛ ځکه د میراث په حق کې تر مرګ وروسته هم حکماً زوجیت باقي پاتیږي او کله چې زوجیت من حیث الحکم باقي پاته دی، نو ښکاره ده چې خاوند او ښځه به یو د بل د قصاص او دیت هم حقداره کیږي یعنې په دې کې به هم وراثت جاري کیږي.

یا جواب دا دی چې د مقتول (خاوند یا ښځې) د قصاص یا دیت واجبېدلو سبب هغه زخم دی کوم چې له مرګ واقع کېدلو څخه مخکې هغه ته لګېدلی دی، او د زخم لګېدلو (زخمي کېدلو) په وخت کې د ښځې او خوند تر مینځ زوجیت پاته وو، او تر مرګ وروسته قصاص یا دیت د همدې مخکینې سبب په وجه ثابتیږي، نو ګواکې د قصاص او دیت ثابتېدلو په وخت کې په دوی کې زوجیت موجود دی. نو ځکه پر دې بناء به هم دوی یو د بل د قصاص او دیت وارثان کیږي او له نورو وارثانو څخه د دوی ایستل به صحیح نه وي. (احسن الهدایه، اشرف الهدایه)

وَإِذَا ثَبَتَ لِلْجَمِيعِ او كله چي د قصاص حق د ټولو وارثانو لپاره ثابت سو فَكُلٌّ مِنْهُمْ يَتَمَكَّنُ مِنَ الِاسْتِيفَاءِ وَالْإِسْقَاطِ عَفْوًا وَصُلْحًا نو له دوی څخه به هر وارث د قصاص اخيستلو او د معافی او صلح په توګه د قصاص ساقطولو قدرت [او اختيار] لري وَمِنْ ضَرُورَةِ سُقُوطِ حَقِّ الْبَعْضِ فِي الْقِصَاصِ سُقُوطُ حَقِّ الْبَاقِينَ فِيهِ او په قصاص كي د بعضي [وارثانو] د حق ساقطېدلو سره په هغه كي د پاتو [وارثانو] د حق ساقطېدل [هم] ضروري دي لِأَنَّهُ لَا يَتَجَزَّأُ ځكه چي قصاص نه متجزي كيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قُتِلَ رَجُلَيْنِ په خلاف د هغه صورت كله چي دوه خلګ قتل كړل سي وَعَفَا أَحَدُ الْوَلِيَّيْنِ او [د هغو] له دواړو وليانو څخه يو ولي معافي وكړي [يعني د هغه دواړو قتل كړل سوو خلګو څخه د يوه ولي خپل د قصاص حق معاف كړي] لِأَنَّ الْوَاجِبَ هُنَالِكَ قِصَاصَانِ مِنْ غَيْرِ شُبْهَةٍ ځكه هلته بغير له څه شبهي دوه قصاصونه واجب دي لِاخْتِلَافِ الْقَتْلِ وَالْمَقْتُولِ د قتل او مقتول د مختلف كېدلو [جلا كېدلو] په وجه وَهٰهُنَا وَاحِدٌ او دلته يو قصاص دی لِاتِّحَادِهِمَا د قتل او مقتول د متحد كېدلو په وجه وَإِذَا سَقَطَ الْقِصَاصُ او كله چي قصاص ساقط سو يَنْقَلِبُ نَصِيبُ الْبَاقِينَ مَالًا نو د پاتو [وارثانو] حصه په مال [ديت] سره بدليږي لِأَنَّهُ امْتَنَعَ لِمَعْنًى رَاجِعٍ إِلَى الْقَاتِلِ ځكه قصاص د يو داسي معنیٰ [سبب] په وجه ممتنع سوی دی كوم چي د قاتل وطرف ته راجع دی وَلَيْسَ لِلْعَافِي شَيْءٌ مِنَ الْمَالِ او معاف كوونكي لره هيڅ مال [ديت] نسته لِأَنَّهُ أَسْقَطَ حَقَّهُ بِفِعْلِهِ وَرِضَاهُ ځكه هغه خپل حق په خپل فعل او خپل رضا سره ساقط كړی دی.

**اللغات**: ﴿يتمكّن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: قادر كېدل. قدرت او اختيار لرل. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه كول. اخيستل. ﴿لا يتجزأ﴾ د تفعّل له بابه د نفي صيغه ده: جزء جزء (ټوټه ټوټه) كېدل. حصه حصه كېدل. ﴿ينقلب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: اوښتل. بدلېدل.

**تشريح**: فرمايي كله چي په مخكښني بيان او تفصيل سره دا خبره ثابته سوه چي قصاص د ټولو وارثانو حق دی. نو دا هم په ياد لرئ! چي له وارثانو څخه هر وارث ته د قصاص اخيستلو حق هم سته. او د مفت قصاص معاف كولو (بخښلو) حق هم ورته سته. او د قصاص په بدله كي د صلح كولو

او د مال (ديت) اخيستلو حق او اختيار هم ورته سته، خو دا لازمه ده چې کله له وارثانو څخه يو وارث خپل د قصاص حق معاف کړي، نو د پاتو وارثانو د قصاص حق هم ساقطيږي: ځکه په قصاص کې تقسيم او تجزی نه سي کېدلای.

بخلاف ما إذا قتل إلخ: يعني که يو څوک دوه سړيان قتل کړي مثلاً خالد او حامد دواړه قتل کړي او بيا ديوه مقتول وارثان مثلاً د خالد وارثان قصاص معاف کړي، نو دا معافي (بخښنه) د بل مقتول (يعني د حامد) د وارثانو قصاص لره نه مستلزم کيږي؛ ځکه په دې صورت کې قتل او مقتول سره جلا، جلا دي چې مقتول دوه کسان دي نو په دې صورت کې پر قاتل دوه قصاصه واجب دي. لهذا ديوه قصاص په معاف کېدلو سره دا بل قصاص نه معاف کيږي بلکې پر قاتل هغسي واجب پاتيږي. او زموږ په مذکوره مسئله کې يعني کله چې مقتول يو کس وي، نو په دې کې يو قصاص واجب دی. لهذا که دلته د مقتول يو وارث قصاص معاف کړي، نو د نورو ټولو وارثانو قصاص ساقطيږي: ځکه دلته په قتل او مقتول کې اتحاد دی او قصاص نه متجزي کيږي، نو ځکه ديوه له طرفه د قصاص معافي د ټولو له طرفه معافي شمېرل کيږي او د ټولو د قصاص حق ساقطيږي.

او دلته د هر وارث حق تر ساقطېدلو وروسته د مال يعني د ديت وطرف ته منتقل کيږي؛ ځکه د معاف کولو په وجه د قاتل عصمت (د حفاظت حق) واپس راوګرځېدی او د هغه نفس بيرته معصوم او محفوظ سو، همدا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "امتنع بمعنیً راجع إلی القتل" سره تعبير کړي دي (د نور وضاحت لپاره حاشيې ته رجوع وکړئ!).

وليس للعافي إلخ: يعني کله چې يو وارث خپل د قصاص حق معاف کړي، نو په دې صورت کې خو د باقي وارثانو د قصاص حق هم ساقطيږي او هغوته د دې په بدله کې ديت حاصليږي، لېکن معاف کونکي وارث ته هيڅ شی نه حاصليږي او هيڅ ديت به نه ورکول کيږي؛ ځکه چې هغه په خپل خوښې او رضاء سره خپل حق ساقط کړی دی.

## د ديت اداء کولو موده او د امام زفر رَحِمَهُ الله اختلاف

ثُمَّ يَجِبُ مَا يَجِبُ مِنَ الْمَالِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ بيا چې کوم مال واجبيږي هغه په درېو کالو کې واجبيږي وَقَالَ زُفَرُ: يَجِبُ فِي سَنَتَيْنِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چې په دوو کالو کې واجبيږي فِيمَا إِذَا كَانَ بَيْنَ الشَّرِيكَيْنِ وَعَفَا أَحَدُهُمَا په هغه صورت کې کله چې قصاص د دوو کسانو په مينځ کې مشترک وي او له دوی څخه يو معافي وکړي [يعني خپل د قصاص حق معاف کړي] لِأَنَّ الْوَاجِبَ نِصْفُ

الدِّيَةِ ځکه واجب[دلته] نيم ديت دی فَيُعْتَبَرُ بِمَا إِذَا قُطِعَتْ يَدُهُ خَطَأً نو دا به پر هغه صورت قياسول کيږي کله چي د يو چا لاس خطاءً پرېکړل سي [چي په هغه کي هم نيم ديت واجب دی] وَلَنَا: أَنَّ هٰذَا بَعْضُ بَدَلِ الدَّمِ او زموږ دليل دا دی: چي دا نيم ديت د خون د بدل [يعني د ديت] بعضي حصه ده وَكُلُّهُ مُؤَجَّلٌ إِلَى ثَلَاثِ سِنِيْنَ او ټوله د خون بدل [يعني ټوله ديت] تر دريو کالو پوري مؤجّل وي فَكَذٰلِكَ بَعْضُهُ نو همداسي به د هغه بعضي حصه هم [تر دريو کالو پوري مؤجله] وي وَالْوَاجِبُ فِي الْيَدِ كُلُّ بَدَلِ الطَّرَفِ او واجب په لاس کي د ټوله اندام بدل [ټوله أرش] دی وَهُوَ فِي سَنَتَيْنِ فِي الشَّرْعِ او دا [أرش] په شريعت کي په دوو کالو کي [واجب] وي وَيَجِبُ فِي مَالِهِ او هغه مال د قاتل په مال کي واجبيږي لِأَنَّهُ عَمَدٌ ځکه چي دا قتل عمد دی.

**اللغات:** ﴿مؤجّل﴾ د تفعيل له بابه د مفعول صيغه ده: تر ټاکل سوي مودې پوري مؤخر کړی سوی. نېټه داره. د کوم څه لپاره چي وخت او نېټه ټاکل سوې وي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي ديت (يعني د قصاص معاف کولو مال) په دريو کالو کي واجب دی (چي په کښت او په حصه. حصه سره به تر دريو کالو پوري اداء کول کيږي)، او أرش (يعني د جنايت معاف کولو مال) به تر دوو کالو پوري اداء کول کيږي، اوس دلته دا اختلاف دی چي په مخکښې مسئله (يعني د يوه وارث د معاف کولو په صورت) کي چي کوم مال واجبيږي، هغه زموږ په نېز د ديت په حکم کي دی او د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د أرش په حکم کي دی.

امام زفر رَحِمَهُ الله وايي چي په دې صورت کي کله چي زيد مثلاً خالد عمداً قتل کړي او د مقتول (خالد) دوه وارثان وي او له دوی څخه يو خپل د قصاص حق معاف کړي، نو د دې بل وارث لپاره نيم ديت باقي پاتيږي، همدارنګه که څوک د لاس پرېکولو جنايت وکړي يعني د يو چا لاس پرېکړي، نو دلته هم نيم ديت (أرش) واجبيږي، لهذا د دواړو مقدار سره برابر سو، نو څرنګه چي د لاس ديت (أرش) په دوو کالو کي اداء کول کيږي، نو همداسي به په دې مسئله کي واجب سوی مال يعني نيم ديت هم په دوو کالو کي اداء کول کيږي. دا د مام زفر رَحِمَهُ الله دليل دی. (اشرف الهدايه)

ولنا إلخ: زموږ د دليل حاصل دا دی چي دا ديت به پر أرش نه قياسول کيږي. بلکي پر ديت به قياسول کيږي، ځکه دلته چي کوم مقدار واجب سوی دی. هغه خو د ديت بعضي حصه ده. نه د أرش. او که د ټوله ديت په عوض کي قصاص معاف کړی سوي وای. نو ښکاره ده چي ټوله ديت به واجب وای. نو

کوم چې د ټوله ديت حکم دی، هاغه حکم به د ديت د بعضې حصې هم وي، لهذا د امام زفر رَحِمَهُ الله استدلال او قياس مخدوش دی.

ويجب في ماله إلخ: فرمايي چې د يوه وارث د قصاص د معاف کولو په صورت کې چې د باقي وارثانو لپاره کوم مال او ديت واجبيږي، دا پر قاتل واجب دی، نه د قاتل پر عاقله وو. ځکه دا د قتلِ عمد عوض دی. او پر عاقله وو خو د قتلِ خطاء ديت واجبيږي، نه د قتلِ عمد. نو ځکه دا مال به د قاتل له مال څخه اداء کول کيږي.

## که مقتول يو وي او قاتلان يې ډېر وي، نو له ټولو څخه به قصاص اخيستل کيږي

قَالَ: وَإِذَا قَتَلَ جَمَاعَةٌ وَاحِدًا عَمَدًا فرمايي: او کله چې څو خلک [په ګډه] يو کس قتل کړي أُقْتُصَّ مِنْ جَمِيْعِهِمْ نو له هغوی ټولو څخه به قصاص اخيستل کيږي لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِيْهِ ځکه په دې هکله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فرمايلي وه لَوْ تَمَالَأَ عَلَيْهِ أَهْلُ صَنْعَاءَ که پر دې د صنعاء ټوله خلکو تعاون کړی وای لَقَتَلْتُهُمْ نو ما به هغوی ټوله [قصاصاً] قتل کړي وای وَلِأَنَّ الْقَتْلَ بِطَرِيْقِ التَّغَالُبِ غَالِبٌ او ځکه چې د تغالب په توګه قتل غالب [عام] دی [يعني عموماً همداسي کيږي چې څو خلک په ګډه قتل کوي] وَالْقِصَاصُ مَزْجَرَةٌ لِلسُّفَهَاءِ او قصاص د احمقانو لپاره د زجر [منع کولو] وسيله ده فَيَجِبُ تَحْقِيْقًا لِحِكْمَةِ الْإِحْيَاءِ نو ځکه د احياء [خلکو ته د ژوندن ورکولو] د حکمت ثابتولو لپاره به قصاص واجب وي.

**اللغات:** ﴿الجماعة﴾ څو خلک، ډله. ﴿تمالأ﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: جمع کېدل او يو د بل مرسته کول. تعاون کول. ﴿التغالب﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو پر بل غالبېدل. ﴿مَزْجَرَة﴾ د نصر له بابه اسم دی. زَجَرَ يَزْجُرُ زَجْرًا: منع کول. غندل او رټل. د مَزْجَرَةٌ معنیٰ ده: ما يدعوا إلى الزجر: يعني هغه څه چې د منع وطرف ته بلنه کوي. د منع کولو او تنبيه ورکولو وسيله. د رټلو وسيله. لکه څرنګه چې ويل کيږي: ذِكْرُ اللهِ مَزْجَرَةٌ لِلشَّيْطَانِ (يعني د الله تعالیٰ ذکر د شيطان د منع کولو او رټلو وسيله ده). ﴿سفهاء﴾ جمع د سَفِيْهٌ ده: احمق او بې وقوف. د عقل او حکمت خلاف کار کونکی. په مال کې بد تصرف کونکی. ﴿إحياء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ژوندی کول. ژوندون ور بخښل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څو خلک په ګډه يو کس قتل کړي. نو له ټولو څخه به قصاص اخيستل کيږي او ټوله به د هاغه يوه کس په قصاص کې قتلول کيږي: په دې هکله يو دليل

د حضرت عمر رضي الله عنه دا فرمان دی چې "که د دې مقتول په قتل کې ټوله اهل صنعاء تعاون کړي وای. نو ما به ټوله قصاصاً قتل کړي وای ". او عقلي دليل دا دی چې قتل عموماً همداسې کيږي چې څو خلک يو د بل د مرستې په توګه په ګډه قتل کوي. نو که په دې وجه قصاص پرېښوول سي چې قاتلان څو څو خلک دي. نو بيا به د قصاص دروازه بنده سي او هره راتلونکې ورځ به دوه. درې خلک په ګډه د يو مظلوم کار تماموي. او احمقان او بدمعاشان خو به دا خپل د چپه لاس کار بولي. لهذا د هغوی د زجر او منع کولو لپاره به له داسې ټولو کسانو څخه قصاص اخيستل کيږي کوم چې د يوه کس په قتل کې ګډون کونکي وي، هغه که هرڅومره وي. کنې کوم څه چې مقصود دي يعنې د دنيا نظام سالم او برقرار ساتل او احياءُ الناس دا مقصود به فوت سي.

**«د صنعاء د قتل واقعه»**

پوره واقعه داسې وه چې د يمن په ښار "صنعاء" کې د "زينب" په نامه يوه ښځه وه چې د هغې خاوند په سفر بل وطن ته تللی وو. او د هغې سره يې خپل يو ځوی هم پرې ايښی وو کوم چې له بلې ښځې څخه د هغه ځوی وو. او د ځوی نوم يې "اصيل" وو. بيا په دې دوران کې زينب څو اشنايان پيدا کړه. خو هغوی د دې هلک "اصيل" په وجه ښه په خوند عيش او مستې نه سوه کولای او له هغه څخه تنګ وه چې دا به آخر مو‌ږ رسوا کړي. نو زينب او هغو مشوره سره وکړه او ټولو په ګډه هغه قتل کړی او په "عمدان" نامي څاه کې يې وغورځوی. دوی ټوله د ښځې سره اووه کسان وه. بيا چې هلک "اصيل" ورک سو. نو همدې ښځې "زينب" به چيغې او نعرې وهلې او ښېرواي به يې کولې چې چا "اصيل" قتل کړی وي اې الله هغه تباه کړې!. او په دې وخت کې د صنعاء حاکم حضرت يعلیٰ وو کوم چې د حضرت عمر رضي الله عنه له طرفه ټاکل سوی وو. نو هغه خلکو ته حکم وکړی چې په دې هکله تحقيق او پلټنه شروع کړئ!. نو خلکو پلټنه شروع کړه بيا څو ورځې وروسته د "بئرِ عمدان" سره د هغو يو سړی تېرېدی چې که ګوري پر دې څاه د مچيانو ګڼه ګوڼه ده. نو معلومه يې کړه چې مقتول "اصيل" په همدې څاه کې دی او حضرت يعلیٰ ته يې خبر ورکړی. نو هغه د ځان سره څو خلک بوتلل چې په هغوی کې د ښځې بعضې اشنايان هم وه. څاه ته چې ورسېدل نو د ښځې يوه اشنای وويل چې د دغه څاه ته ما ور شوه کړئ! زه به يې وګورم. کله چې هغه ور شوه سو. نو د "اصيل" جسد يې د څاه په غار کې پټ کړی بيا را ووتلی او هغو ته يې وويل چې دلته خو هيڅ شی نسته. بيا يو بل کس وويل چې ما ور شوه کړئ!. هغه چې ور شوه نو جسد يې بهر را وېستلی. لنډه دا چې په دې توګه هغه اشنای. ښځې او نورو اشنايانو د قتل اقرار وکړی چې دا موږ په ګډه قتل کړی دی. او حضرت يعلیٰ د دې واقعې تفصيل حضرت عمر رضي الله عنه ته وليکی، نو حضرت عمر رضي الله عنه دا

حکم صادر کړی چي دوی ټوله دي قتل کړل سي او ويې فرمايل چي که د صنعاء ټوله خلک هم په دې قتل کي تعاون کړي وای. نو ما به هغوی ټوله قتل کړي وای. سبحان الله!.

## که قاتل يو او مقتولين ډېر وي، نو څه حکم دی؟

وَإِذَا قَتَلَ وَاحِدٌ جَمَاعَةً او کله چي يو کس څو خلک قتل کړي فَحَضَرَ أَوْلِيَاءُ الْمَقْتُولِيْنَ او د قتل کړل سوو خلکو وليان حاضر سي قُتِلَ لِجَمَاعَتِهِمْ نو قاتل به د هغوی ټولو لپاره قتل کول کيږي وَلَاشَيْءَ لَهُمْ غَيْرُ ذٰلِكَ او له دې څخه بغير د هغو لپاره بل شی نسته فَإِنْ حَضَرَ وَاحِدٌ مِنْهُمْ او که له دوی څخه يو حاضر سي قُتِلَ لَهُ نو د هغه لپاره به [هم] قاتل قتلول کيږي وَسَقَطَ حَقُّ الْبَاقِيْنَ او د پاتو وليانو حق ساقطيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُقْتَلُ بِالْأَوَّلِ مِنْهُمْ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له دوی څخه د اول مقتول په عوض کي به قاتل قتلول وَيَجِبُ لِلْبَاقِيْنَ الْمَالُ او د پاتو خلکو لپاره مال واجبيږي وَإِنِ اجْتَمَعُوا وَلَمْ يُعْرَفِ الْأَوَّلُ او که هغوی ټوله جمع سي خو اول مقتول معلوم نه وي قُتِلَ لَهُمْ نو د هغوی ټولو لپاره به قاتل قتلول کيږي وَقُسِمَتِ الدِّيَاتُ بَيْنَهُمْ او د هغوی تر مينځ به ديتونه تقسيمول کيږي وَقِيْلَ: يُقْرَعُ بَيْنَهُمْ او ويل سوي دي: چي د هغو تر مينځ به قرعه اندازي کيږي فَيُقْتَلُ لِمَنْ خَرَجَتْ قُرْعَتُهُ لَهُ نو د هغه يوه لپاره به قاتل قتلول کيږي چي د هغه لپاره [د هغه په نامه] قرعه وخيږي لَهُ: أَنَّ الْمَوْجُوْدَ مِنَ الْوَاحِدِ قَتَلَاتٌ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي [دلته] له يو قاتل څخه څو قتلونه موجود [واقع سوي] دي وَالَّذِيْ تَحَقَّقَ فِيْ حَقِّهِ قَتْلٌ وَاحِدٌ او د قاتل په حق کي صرف يو قتل متحقق سوی دی فَلَا تَمَاثُلَ نو تماثل [مماثلت] نسته وَهُوَ الْقِيَاسُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ او همدا قياس دی په اول صورت [مخکنی مسئله] کي [يعني کله چي مقتول يوی او قاتلان څو خلک (جماعت) وي] إِلَّا أَنَّهُ عُرِفَ بِالشَّرْعِ خو هغه په شريعت سره معلوم سوی دی وَلَنَا: أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ قَاتِلٌ بِوَصْفِ الْكَمَالِ او زمونږ دليل دا دی: چي له دې وليانو څخه هر ولي د کامل والي په وصف سره [قصاصا] قاتل دی فَجَاءَ التَّمَاثُلُ نو تماثل [مماثلت] ثابت سو وَأَصْلُهُ الْفَصْلُ الْأَوَّلُ او د دې [مماثلت د ثبوت] اصل اول صورت دی [يعني چي مقتول يو او قاتلان يو حماعت وی] إِذْلَوْ

لَمْ يَكُنْ كَذٰلِكَ ځکه که داسي نه وای [يعني د جماعت او واحد په مينځ کي مماثلت نه وای] لَمَا وَجَبَ الْقِصَاصُ نو قصاص به نه واجبېدلای [لهذا کله چي جماعت د واحد په څېر دی. نو عکس به هم دغسي وي. لأن المماثلة بين الشيئين إنما تکون من الجانبين] وَلِأَنَّهُ وُجِدَ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمْ جَرْحٌ صَالِحٌ لِلْإِزْهَاقِ او ځکه چي د دوی هر يوه له طرفه داسي زخمي کېدل موجود سوه کوم چي د روح ايستولو [او وژولو] صلاحيت لرونکي دي فَيُضَافُ إِلَى كُلٍّ مِنْهُمْ نو د روح ايستل به له دوی څخه د هر يوه وطرف ته منسوب وي [يعني هر يوه ته به يې نسبت کيږي] إِذْ هُوَ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه دا روح وتل غير متجزي دي وَلِأَنَّ الْقِصَاصَ شُرِعَ مَعَ الْمُنَافِي لِتَحْقِيقِ الْإِحْيَاءِ او ځکه چي قصاص د منافي باوجود مشروع سوی دی [د خلکو] داحياء ثابتولو لپاره وَقَدْ حَصَلَ بِقَتْلِهِ او دا [داحياء تحقيق] د قاتل په قتل سره حاصل سو فَاكْتُفِيَ بِهِ نو ځکه صرف په قتل به اکتفاء کيږي [او له هغه څخه بغير د مقتول وليانو لره به نور څه نه وي].

**اللغات**: ﴿الديات﴾ جمع د دِيَةٌ ده: ديت، ﴿يُقرَع﴾ د فتح له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: قرعه اندازي کول (پچه اچول)، ﴿تماثل﴾ يو د بل مثل کېدل، مماثلت او برابري، ﴿إزهاق﴾ د انفعال د باب مصدر دی: روح ايستل، روح له تنه جلا کول، هلاکول، ﴿لا يتجزأ﴾ د تفعل له بابه د نفي صيغه ده: متجزي کېدل، يعني جزء جزء (حصه حصه) کېدل، تقسيمېدل (تقسيم قبلول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو کس څو خلک قتل کړي او بيا د دې ټولو مقتولينو خلکو اولياء حاضر سي او له قاضي څخه د قصاص مطالبه وکړي، نو زموږ په نيز حکم دا دی چي قاتل به د ټولو مقتولينو په بدله کي قتلول کيږي او له دې څخه بغير به هغو ته نور هيڅ نه ورکول کيږي، يعني د قاتل په قتل سره قصاص پوره کيږي او له هغه څخه پرته بل شی، مال وغيره نه واجبيږي. همدارنګه که د مقتولينو له اولياو څخه د يوه مقتول ولي حاضر سي، نو يوازي د هغه لپاره به هم قاتل قتلول کيږي او دا د ټولو خلکو له طرفه قصاص شمېرل کيږي يعني په دې سره د نور ټولو اولياؤ د قصاص حق ساقطيږي.

**وقال الشافعي إلخ**: په دې سلسله کي له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه دري قولونه نقل سوي دي:

① ... که قاتل دوی ټوله يو تر بل وروروسته قتل کړي وي او اول مقتول معلوم وي، نو قاتل به د اول مقتول په عوض کي قتلول کيږي او د نورو مقتولينو په عوض کي پر قاتل مال واجبيږي.

② ... که اول مقتول معلوم نه وي، نو په دې صورت کي به قاتل د ټولو لپاره قتلول کيږي او بيا به د مقتولينو د وليانو تر مينځ ديات تقسيمول کيږي.

(۳)... د هغوی تر مینځ به قرعه اندازي کیږي او د چا نوم چي وخېږي. د هغه لپاره به قاتل قتلول کیږي او د نورو مقتولینو په عوض کي پر قاتل مال واجبیږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي دلته قاتل یو دی او مقتولین له یوه څخه زیات دي. او د څو مقتولینو په عوض کي خو صرف د یوه کس په قتلولو سره نه کما حقهٔ قصاص متحقق کیږي. او نه تماثل او مساوات متحقق کیږي. حال دا چي په قصاص کي مماثلت ضروري دی او هغه دلته مفقود دی. نو ځکه د قاتل قصاصاً قتلول فقط د یوه مقتول له طرفه کفایت کوي نو د ما بقي مقتولینو لپاره به مال واجبیږي. او پاته سو په مخکنۍ مسئله کي (یعني کله چي مقتول یو او قاتلان یې څو خلک (جماعت) وي) د قیاس تقاضا همدا ده چي قصاص واجب نه سي: ځکه په هغه صورت کي هم مماثلت معدوم دی. لېکن څرنګه چي د هغه صورت په هکله د حضرت عمر رضي الله عنه فرمان وارد سوی دی. نو ځکه هلته قیاس پرېښوول سوی دی.

ولنا أن کل واحد منهم الخ: زموږ د دلیل حاصل دا دی چي کله د ټولو مقتولینو اولیاء حاضر سول او هغوی قاتل قصاصاً قتل کړی، نو ګواکي هر یوه په کامله توګه قصاص واخیستی (ځکه دوی ټولو به یا خپله هغه قصاصاً قتل کړي وي. یا یوه به بل په خپل حق کي وکیل جوړ کړی وي. یا دوی به بل څوک وکیل جوړ کړی وي. او د وکیل فعل د مؤکل د فعل په څېر دی. نو داسي سو لکه دوی هر یوه چي په کامله توګه قصاص واخیستی). او همدا په کامله توګه قصاص اخیستل د قاتل او مقتول په افعالو کي د مماثلت سبب دی. همدارنګه په مخکیني مسئله کي یعني کله چي د یوه مقتول په عوض کي څو قاتلان قتل کړل سي نو هلته هم هر قاتل د مقتول په عوض کي په کامله توګه قصاصولو سره له هغه څخه قصاص اخیستل سوی دی. ځکه که صرف د بعضي قاتلانو په قتل سره قصاص پوره کېدلای نو د حضرت عمر رضي الله عنه په څېر منصف او عادل خلیفه به د ټولو قاتلانو د قتل حکم نه کولای. معلومه سوه چي څرنګه په مخکنۍ مسئله کي د قصاص معامله مبني بر انصاف او پر حق وه. همداسي د څو مقتولینو په عوض کي د یوه قاتل د قتلولو معامله هم پر حق ده او په دې کي په کامله توګه د قصاص استیفاء ده. نو ځکه له هغه څخه بغیر پر قاتل یا د هغه پر عاقله وو به نور هیڅ مال واجب نه وي.

ولأنه وجد الخ: د قصاص کافي کېدلو او مال نه واجبېدلو په هکله عقلي دلیل دا دی چي کله د مقتولینو اولیاء له قاتل څخه د قصاص اخیستلو لپاره پر هغه وار وکړي. نو د دوی هر یوه له طرفه داسي زخمي کول موجود سوه کوم چي د روح ایستلو سبب سوه. او روح وتل صرف په یوه ځل ترسره کیږي: ځکه خروجِ روح څو ځله نه کیږي. لهذا إخراجِ روح به هم څو ځله نه کیږي او په یوه

وار سره به ټوله وليان برابر قاتلان او قصاص اخيستونکي شميرل کيږي او د دوی په دې مجموعي قتل سره به قصاص تاميږي، لهذا له قصاص څخه بغير بل هيڅ شی او مال به نه واجبول کيږي.

ولأن القصاص إلخ: دا د مال نه واجبېدلو په هکله دويم عقلي دليل دی. حاصل يې دا دی چې په قصاص کې د قاتل نفس قتلول کيږي او روح يې ايستل کيږي. حال دا چې د يو انسان اعضاء او اندامونه تلفول هم ممنوع دي. د هغه د نفس وژل خو هلته پرېږده!. په حديث کې دي "الآدَمِيُّ بُنْيَانُ الرَّبِّ مَلْعُونٌ مَنْ هَدَمَهَا". خو د ژوندیو خلکو د احیاء او ښېګڼې او د دنیاوي نظام د بقاء او احیاء په خاطر شریعت د قصاص اجازه کړې ده. او د قاتل په قتلولو سره دا مقصود حاصلیږي. نو په دې حواله سره به هم فقط د قاتل په قتلولو اکتفاء کیږي او له هغه څخه بغیر د مال وغیره له واجبولو څخه به ډډه کیږي. (احسن الهدایه)

## که قاتل تر قصاص مخکې مړ سي، نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ وَجَبَ عَلَيْهِ الْقِصَاصُ فرمايي: او پر چا چې قصاص واجب سي إِذَا مَاتَ کله چې هغه مړ سي سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقطيږي لِفَوَاتِ مَحَلِّ الِاسْتِيفَاءِ ځکه د قصاص اخيستلو محل فوت سو فَأَشْبَهَ مَوْتَ الْعَبْدِ الْجَانِيْ نو دا د جنايتکاره غلام د مړ کېدلو سره مشابه سوه وَيَتَأَتَّى فِيهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف راځي إِذِ الْوَاجِبُ أَحَدُهُمَا عِنْدَهُ ځکه د هغه نېز له دې دواړو [قصاص او دیت] څخه یو شی واجب دی.

**اللغات:** ﴿فوات﴾ د نصر د باب مصدر دی: فوتېدل. ختمېدل. ﴿محل﴾ ځای. د حلول او شوه کېدلو ځای. ﴿جاني﴾ د ضرب له بابه د فاعل دی: جنايت او جرم کونکی. جنايتکاره او مجرم (داسې کار کونکی چې پر هغه ضمان او تاوان لازمیږي). ﴿يتأتى﴾ د تفعل د باب مضارع ده: راتلل. حاصلېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د قتل عمد په وجه پر قاتل قصاص واجب وي او د مقتول وارثانو له هغه څخه قصاص اخيستل متعين کړي وي، لېکن تر قصاص اخيستلو مخکې قاتل مړ سي، نو په دې صورت کې زموږ په نېز قصاص له بېخه ساقطيږي يعنې تر دې وروسته د قصاص په بدله کې د قاتل په مال کې ديت نه واجبيږي؛ ځکه کله چې وارثانو قصاص متعين کړی وو. نو د ديت معامله خو له هغه وخت څخه ساقطه سوه او اوس تر قصاص مخکې د قاتل د مرګ په وجه قصاص اخيستل هم متعذر سوه. نو ځکه هغه هم ساقطيږي. د دې مثال داسې دی لکه يو غلام چې جنايت وکړي او په دې جنايت کې د غلام ورکول متعين سي. خو تر ورکولو مخکې هغه مړ سي. نو

ځرنګه چې دلته محل يعني جنايتکاره غلام فوت سو، نو ځکه اوس د هغه په عوض کي هيڅ هم نه واجبيږي. نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم د قصاص تر اخيستلو مخکي د قاتل د مرګ په وجه د قصاص محل معدوم سو، نو ځکه دلته هم نه قصاص واجبيږي او نه ديت واجبيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په مذکوره مسئله کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، د هغه په نيز د قاتل په مرګ سره قصاص خو ساقطيږي ليکن د هغه په مال کي ديت واجبيږي. ځکه د هغه په نيز پر قاتل له قصاص او ديت دواړو څخه يو شی خامخا واجبيږي او د يوه د متعذر کېدلو په صورت کي بل پرې لازم او جاري کول کيږي. (احسن الهدايه)

## که دوه خلک د يوه سړي لاس پرېکړي، نو د قصاص حکم

قَالَ: وَإِذَا قَطَعَ رَجُلَانِ يَدَ رَجُلٍ وَاحِدٍ فرمايي: او کله چي دوه خلک د يوه سړي لاس پرېکړي فَلَا قِصَاصَ عَلَى وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو له دوی دواړو څخه پر يوه هم قصاص نسته وَعَلَيْهِمَا نِصْفُ الدِّيَةِ او پر دوی دواړو نيم ديت واجب دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تُقْطَعُ يَدَاهُمَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د دواړو لاس به پرېکول کيږي وَالْمَفْرُوضُ او فرض کړی سوی صورت [يعني دا مسئله په هغه صورت کي فرض کړل سوې ده] إِذَا أَخَذَا سِكِّينًا وَأَمَرَّاهُ عَلَى يَدِهِ حَتَّى انْقَطَعَتْ کله چي دوی دواړه چاړه ونيسي او د هغه پر لاس يې تېره کړي تر دې چي هغه پرې سي لَهُ الِاعْتِبَارُ بِالْأَنْفُسِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل پر نفسونو قياس دی وَالْأَيْدِي تَابِعَةٌ لَهَا او لاسونه د نفسونو تابع دي فَأَخَذَتْ حُكْمَهَا نو لاس د نفس حکم واخيستی أَوْ يُجْمَعُ بَيْنَهُمَا بِجَامِعِ الزَّجْرِ يا د دوی دواړو [نفس او لاس] تر مينځ به د جامع زجر په وجه جمع کول کيږي وَلَنَا: أَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا قَاطِعٌ بَعْضَ الْيَدِ او زموږ دليل دا دی چي له دوی دواړو [قاطعينو] څخه هر کس د لاس د بعضي حصې پرېکونکی دی لِأَنَّ الِانْقِطَاعَ حَصَلَ بِاعْتِمَادَيْهِمَا ځکه پرېکېدل د دوی دواړو په تکيه [او بوج] سره حاصل سوي دي وَالْمَحَلُّ مُتَجَزِّئٌ او محل [لاس] متجزي دی فَيُضَافُ إِلَى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَعْضُ نو ځکه د دوی هر يوه وطرف ته به د بعضي حصې نسبت کول کيږي فَلَا مُمَاثَلَةَ نو مماثلت به نه وي بِخِلَافِ النَّفْسِ په خلاف د نفس لِأَنَّ الِانْزِهَاقَ لَا يَتَجَزَّأُ ځکه د روح وتل متجزي نه دي وَلِأَنَّ الْقَتْلَ

بِطَرِيقِ الِاجْتِمَاعِ غَالِبٌ حَذَارِ الْغَوْثِ او ځکه چې قتل د اجتماع [څو خلکو] په طريقه سره غالب دي د کومکي [غاورسي] له بيرې څخه وَالِاجْتِمَاعُ عَلَى قَطْعِ الْيَدِ مِنَ الْمِفْصَلِ فِي حَيِّزِ النُّدْرَةِ او له بند څخه د لاس په پرېکېدلو باندې اجتماع نادره ده لِافْتِقَارِهِ إِلَى مُقَدِّمَاتٍ بَطِيئَةٍ ځکه دا [لاس پرېکونه] داسې مقدماتو ته ضرورت لري کوم چې ځنډمن دي [لکه لاس ورتړل او بيا چاړه پر تېرول] فَيَلْحَقُهُ الْغَوْثُ نو هغه [مقطوع اليد] ته به کومکي ورسيږي.

**اللغات**: ﴿مفروض﴾ د ضرب له بابه د اسم مفعول صيغه ده: فرض کړې سوې صورت، ټاکل سوی، ﴿أَمَرَّا﴾ د افعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: چاړه وغيره پر يو شي تېرول، چلول. ﴿متجزئ﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: جزء جزء (حصه حصه) کېدونکی، ټوټه ټوټه کېدونکی، تقسيم قبلونکی، ﴿إنزهاق﴾ د انفعال د باب مصدر دی: روح وتل، روح له تنه جلا کېدل. ﴿الندرة﴾ د نصر له بابه اسم دی، نادر والی، کمیابي، ډېر کم موجودېدل، ﴿الغوث﴾ مرسته او کومک، مراد: کومکي او غم خوړونکی، غاورسي، ﴿حَيِّز﴾ پر وزن د فَيْعِل دی او حَيْز هم ويل کېدای سي: مکان، ځای، گوښه، څنګ (طرف)، ﴿افتقار﴾ د افتعال د باب مصدر دی: محتاج کېدل، ضرورت لرل. ﴿بطيئة﴾ د کرُم له بابه د صفت صيغه ده: سست، ځنډمن (کوم چې ډېر وخت کنبباسي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که دوه خلک په ګډه په چاړه وغيره سره د يو چا لاس پرېکړي، نو زموږ په نېز پر هغه قصاص واجب نه دی، خو له دوی څخه به د پرېکړل سوي لاس ديت اخيستل کيږي، خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز له دوی څخه به قصاص اخيستل کيږي او دا مسئله په هغه صورت کې فرض کړل سوې ده کله چې دواړه يوه چاړه ونيسي او په هغه سره د چا لاس پرېکړي.

لنډه دا چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې قصاص واجب دی: او د هغه دليل دا دی چې د دې صورت تعلق د لاس پرېکولو سره دی او لاس د نفس تابع دی او ښکاره ده چې که دوه خلک په ګډه يو نفس قتل کړي، نو له هغه څخه قصاص اخيستل کيږي، نو کله چې په متبوع (نفس) کې له دواړو څخه قصاص اخيستل کيږي، نو په تابع کې به هم له دواړو څخه قصاص اخيستل کيږي، ګواکې امام شافعي رَحِمَهُ الله قطعُ اليد پر قتلُ النفس قياس کړې ده.

أو يجمع بينهما إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله دویم دلیل دی. حاصل یې دا دی چې له قاتل شخصه پ همدې وجه قصاص اخیستل کیږي چې په هغه سره زجر او نورو ته عبرت حاصل سي او د قاتل آخري انجام ته په کتلو سره نور خلک له داسي واردا تو څخه وېرېږي. او څرنګه چې له قاطع اليد شخصه په قصاص اخیستلو کي هم دا فايده حاصلیږي. نو ځکه دلته به هم قصاص واجبیږي.

ولنا أن كلّ إلخ: د قصاص نه واجبېدلو په هکله زموږ دلیل دا دی چې په دې مسئله کي د دوو خلګو په فعل او د دو خلګو په تکيه او زور کولو سره لاس پرېکړل سوی دی. نو له دوی څخه هر يو د لاس د يوې حصې پرېکونکی سو. او څرنګه چې د قطع محل (يعني لاس) هم متجزي دی. نو ځکه د قطع بعض (يوه حصه) به د يوه وطرف ته منسوب وي او بعض به يې د بل وطرف ته منسوب وي. او س ښکاره دهٔ چې ته نه دواړو څخه قصاص واخیستل سي (يعني د دواړو لاس پرېکړل سي). نو ټوله لاس به يې پرېکول کیږي او د ټوله لاس د پرېکولو په صورت کي مماثلت منقطع کیږي. حال دا چې په قصاص اخیستلو کي مماثلت او مساوات ضروري دی.

د دې په خلا قصاص بالنفس له قصاص باليد څخه جلا دی: ځکه د نفس په قصاصولو او وژلو کي روح وځي او خروج روح غیر متجزي دی. نو ځکه د قتل بالنفس په صورت که قاتلان دوه وي (يعني دوه خلک څوک قتل کړي). نو په دوی کي د هر يوه وطرف ته په کامله توګه د فعل اضافت او نسبت کیږي. نو ځکه له قتل کونکو کسانو څخه خو به قصاص اخیستل کیږي. لېکن له لاس پرېکونکو کسانو څخه به زموږ په نېز قصاص نه اخیستل کیږي.

ولأن القتل إلخ: دا د امام د شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی چې هغه قطع اليد پر قتل النفس قياس کړې ده.

حاصل يې دا دی چې د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا قياس صحيح نه دی: ځکه د مقيس عليه يعني د قتل النفس او د مقيس يعني د قطع اليد په مينځ کي هيڅ مناسبت نسته. حال دا چې د قياس د صحت لپاره په مقيس او مقيس عليه کي مناسبت ضروري دی.

او په مقيس او مقيس عليه کي دلته ځکه مناسبت نسته چې په قتل کي خو څو خلک جمع کیږي د دې لپاره چې د مقتول کار ژر تمام سي او يو معاون او غاورسي هغه خلاص نه کړي. د دې په خلاف د لاس په پرېکولو کي عموماً څو خلک نه جمع کیږي. ځکه کله چې لاس له بند څخه پرېکول کیږي نو په هغه دېر وخت کښېوځي (په نسبت وقتل نه ځکه يو وار به يې لاس ترل کیږي او بيا به چاره وغیره پر تېرول کیږي او داسي نور مطلب دا چې د غاړي پرېکولو په نسبت د لاس پرېکول څه ستونزمن او ځنډمن دي. نو ښکاره ده چې که دا کار په پټه ونه سي بلکي د دې لپاره څو خلک جمع کړل سي. نو په دومره وخت کي د هغو د شور او ګني ګوڼي په وجه کېدای سي چې د هغه يو غاورسي او کومکي پيدا سي او په قطع اليد کي خلل واقع سي. لذا دا چې په قطع اليد (مقيس) کي اجتماع نه کیږي او په قتل (مقيس عليه) کي اجتماع کیږي. او په دې حواله سره په مقيس او مقيس عليه کي مناسبت او مماثلت نسته. نو ځکه دا قياس صحيح نه دی. (احسن الهدايه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَعَلَيْهِمَا نِصْفُ الدِّيَةِ فرمايي: او پر دوی دواړو نصيف ديت واجب دی لِأَنَّهُ دِيَةُ الْيَدِ الْوَاحِدَةِ ځکه دا ديوه لاس ديت دی وَهُمَا قَطَعَاهَا او دوی دواړو همدا يو لاس پرېکړی دی.

**تشريح**: دعبارت حاصل دا دی چې په مخکيني صورت کې په دواړو لاس پرېکونکو باندې نيم ديت واجبيږي؛ ځکه دوی يو لاس پرېکړی دی، نو ځکه پر دوی به د دواړو لاسونو د ديت نيمه حصه يعني نيم ديت واجب وي او بيا به په دې نيم ديت کې دوی دواړه شريکان وي.

## که يو سړی د دوو خلکو لاسونه پرېکړي، نو د قصاص حکم

وَإِنْ قَطَعَ وَاحِدٌ يَمِيْنَيْ رَجُلَيْنِ او که يو کس د دوو خلکو راسته لاسونه پرېکړي فَحَضَرَا بيا دواړه حاضر سي فَلَهُمَا أَنْ يَقْطَعَا يَدَهُ نو دوی دواړو ته دا حق سته چې د قاطع لاس پرېکړي وَيَأْخُذَا مِنْهُ نِصْفَ الدِّيَةِ او له هغه شخصه نيم ديت واخلي يَقْتَسِمَانِهِ نِصْفَيْنِ چې هغه دواړه نيم په نيمه تقسيم کړي سَوَاءٌ قَطَعَهُمَا مَعًا أَوْ عَلَى التَّعَاقُبِ برابره ده قاطع يو ځای د دواړو لاسونه پرېکړې وي يا يو تر بل وروسته يې پرېکړې وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِي التَّعَاقُبِ يُقْطَعُ بِالْأَوَّلِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د تعاقب په صورت کې به د قاطع لاس د اول کس په عوض کې پرېکول کيږي وَفِي الْقِرَانِ يُقْرَعُ او د اتصال په صورت کې به قرعه اندازي کيږي لِأَنَّ الْيَدَ اِسْتَحَقَّهَا الْأَوَّلُ ځکه اول مقطوع اليد [د قاطع] د لاس مستحق سوی [يعني د تعاقب په صورت کې له مذکوره دوو کسانو شخه اول يو د قاطع د لاس مستحق دی] فَلَا يَثْبُتُ الِاسْتِحْقَاقُ فِيهَا لِلثَّانِي نو ځکه په هغه کې به د دويم مقطوع اليد لپاره استحقاق نه ثابتيږي كَالرَّهْنِ بَعْدَ الرَّهْنِ لکه تر رهن وروسته رهن وَفِي الْقِرَانِ الْيَدُ الْوَاحِدَةُ لَا تَفِي بِالْحَقَّيْنِ او د قِران په صورت کې يو لاس دواړه حقونه نه پوره کوي فَتُرَجَّحُ بِالْقُرْعَةِ نو ځکه په قرعه اندازي سره به ترجيح ورکول کيږي وَلَنَا: أَنَّهُمَا اسْتَوَيَا فِي سَبَبِ الِاسْتِحْقَاقِ او زموږ دليل دا دی: چې د استحقاق په سبب کې دواړه سره برابر دي فَيَسْتَوِيَانِ فِي حُكْمِهِ نو ځکه د حکم په سبب کې به هم دواړه سره برابر وي كَالْغَرِيمَيْنِ فِي التَّرِكَةِ لکه دوه قرضخواهان په ميراث کې وَالْقِصَاصُ مِلْكُ الْفِعْلِ يَثْبُتُ مَعَ الْمُنَافِي او قصاص د يو فعل داسې ملکيت دی کوم چې د منافي

باوجود ثابتيږي [يعني که څه هم د هغه منافي موجود وي. نو هم ثابتيږي] فَلَا يَظْهَرُ إِلَّا فِي حَقِّ الْاِسْتِيفَاءِ نو ځکه دا ملکيت به صرف د استيفاء [قصاص اخيستلو] په حق کي ښکاره کيږي أَمَّا الْمَحَلُّ فَخِلْوٌ عَنْهُ پاته سو محل نو هغه له ملکيت څخه خالي دی فَلَا يَمْنَعُ ثُبُوتَ الثَّانِيْ نو ځکه دا ملکيت به د دويم يوه ثبوت نه منع کوي بِخِلَافِ الرَّهْنِ په خلاف د رهن لِأَنَّ الْحَقَّ ثَابِتٌ فِي الْمَحَلِّ ځکه هلته د استيفاء [اخيستلو] حق په محل [مرهون شي] کي ثابت دی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَطَعَ الْعَبْدُ يَمِيْنَيْهِمَا عَلَى التَّعَاقُبِ نو داسي سو لکه غلام چي د دوی دواړو لاسونه يو تر بل وروسته پرېکړي وي فَتُسْتَحَقُّ رَقَبَتُهُ لَهُمَا نو د غلام رقبه د دوی دواړو مُستحَقه کيږي [د دوی حق پکښي ثابتيږي].

**اللغات**: ﴿يَمِيْنَي﴾ تثنيه د يَمِيْنٌ ده: راسته لاس. ﴿يقتسمان﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب مضارع صيغه ده: تقسيمول، وېشل. ﴿التعاقب﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو تر بل وروسته کېدل. بعد کي راتلل. ﴿القِرَان﴾ اسمِ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: متصل کېدل. يو ځای کېدل. ﴿يقرع﴾ د فتح له بابه مضارع مجهوله ده: قرعه اندازي کول. ﴿غَرِيْمَيْن﴾ تثنيه د غَرِيْمٌ ده: قرضخواه، د قرض مالک (د چا چي پر بل چا قرض باندي وي). ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که زيد د دوو کسانو مثلاً د خالد او حامد دواړو راسته لاسونه ورپرېکړي او خالد او حامد د قاضي عدالت ته حاضر سي او هلته د زيد په خلاف مقدمه درج کړي او د سزا مطالبه يې وکړي، نو اوس حکم دا دی چي قاضي دي د خپلو خلکو په ذريعه قاطع يعني زيد ونيسي او په دواړو مقطوع اليد يعني په خالد او حامد يا د دوی په وکيل سره دي د هغه راسته لاس پرېکړي او بيا دي له زيد څخه نيم ديت هم واخلي او هغه دي پر دوی دواړو نيم په نيمه تقسيم کړي برابره ده زيد يو ځای د دواړو لاس پرېکړی وي يا يو تر بل وروسته يې پرېکړی وي، په هر صورت کي په شريعت کي د قاطعُ اليد (زيد) همدا سزا ده او زموږ په نېز د اتصال او تعاقب په هکله د قاطع په سزا کي هيڅ فرق نسته (يعني برابره ده قاطع دواړه لاسونه يو ځای پرېکړي وي يا يو تر بل وروسته. په هر صورت کي زموږ په نېز همدا پورتنی سزا ده)، اوس د قاطع (زيد) کوم لاس چي پرېکړل سي، هغه په دوی کي د يوه مقطوع اليد د لاس بدل کيږي او د بل مقطوع اليد د لاس په عوض کي پر قاطع نيم ديت واجبيږي چي هغه به د دوی دواړو تر مينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي.

وقال الشافعي إلخ: په دې سلسله کې دامام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که قاطع يو تربل وروسته د دوی لاسونه پرېکړي وي، نو په دې صورت کې به داول مقطوع اليد په عوض کې د هغه لاس پرېکول کيږي او دويم مقطوع اليد ته به ديت ورکول کيږي، ځکه په دې صورت کې اول مقطوع اليد د قاطع د لاس مستحق سوی دی، نو ځکه دويم مقطوع اوس په هغه کې نه سي شريک کېدلای. د دې مثال داسې دی لکه راهن چې خپل يو شی بل چا ته په رهن (په ګرو) کښېږدي، نو اوس راهن هاغه مرهون شی بل چا ته په رهن نه سي ايښوولای؛ ځکه د دې مرهون شي سره داول مرتهن حق متعلق سو.

او که قاطع پر يوه ځای د دوارو لاسونه پرېکړي وي، نو په دې صورت کې به قرعه اندازي کيږي او د هر يوه نوم چې وخېږي، د هغه د لاس په عوض کې به د قاطع لاس پرېکول کيږي او بل مقطوع اليد ته به د خپل لاس په عوض کې نيم ديت ورکول کيږي؛ ځکه په دې صورت کې هم چې د کوم نوم په قرعه کې راوختی، هغه د قاطع د لاس مستحق سو. لهذا اوس په هاغه لاس کې د بل يوه شرکت او استحقاق نه سي ثابتېدلای؛ ځکه د قاطع يو لاس پرېکړل سوی دی او هغه د دوارو مقطوع اليد کسانو عوض نه سي کېدلای. نو ځکه د قرعه اندازي په ذريعه به يوه ته ترجيح ورکول کيږي او بل کس ته به د خپل لاس په عوض کې ديت ورکول کيږي.

ولنا: إلخ: زموږ مسلک خو تاسي ته معلوم سو چې زموږ په نيز د دوارو مقطوع اليد کسانو لپاره يو ځای د قصاص حق ثابتيږي او ديت به د دوارو ترمينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي. نو په دې هکله زموږ دليل دا دی چې کله دواړه مقطوع اليد کسان د استحقاق په سبب يعني په قطع اليد کې سره برابر دي (ځکه د دوارو لاسونه پرېکړل سوي دي)، نو ښکاره ده چې د حکم په سبب يعني په قصاص اخيستلو کې به هم دواړه سره برابر وي او يوه مقطوع اليد ته به پر بل هيڅ ترجيح او فوقيت حاصل نه وي. د دې مثال داسې دی لکه پر يو سړي مثلاً پر سلمان د خلکو (غرماؤ) قرضونه باندې وي بيا د قرض تر اداء کولو مخکې مقروض (سلمان) مړ سي، نو د هغه په ميراث کې د ټولو غرماؤ حق برابر دی او کوم غريم چې مخکې يا په مينځ کې قرض ورکړی وي، د هغه حق به له وروستني غرماؤ څخه نه مخکې کيږي، نو همداسې په دې مسئله کې هم دواړه مقطوع اليد کسان د حکم په سبب يعني د قصاص اخيستلو په حق کې سره برابر دي او يو به پر بل نه مخکې کيږي.

والقصاص ملك الفعل إلخ: د دې حاصل دا دی چې په قصاص اخيستلو کې پر يوه ځای (په آنِ واحد کې) دوه خلک جمع کېدلای سي يعني قصاص اخيستل د اجتماع منافي نه دي؛ ځکه په قصاص کې د مقتول يا مقطوع ولي او د مقطوع حق د قصاص د محل يعني د نفسِ قاتل او قاطع سره نه متعلق کيږي، بلکې د فعلِ قصاص سره متعلق کيږي، په همدې وجه د منافي باوجود قصاص ثابتيږي، مثلاً که قاتل يا قاطع حر او آزاد وي نو هغه د بل چا نه سي مملوک کېدلای او د دې عدمِ ملکيت تقاضا دا ده چې د مقتول او مقطوع ولي ته يا مقتول او مقطوع ته د قصاص حق هم حاصل نه سي. لېکن د احياء الناس د مصلحت په خاطر شريعت د

قصاص حق باقي ساتلی دی او دابقاء صرف د ملک فعل په حق کي معتبر ده يعني ولي او مقطوع ته د قصاص اخيستلو حق سته. همدا صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "لايظهرإلا في حق الاستيفاء" سره بيان کړي ده.

پاته سو د قاتل او قاطع ذات کوم چي د قصاص محل دی. نو هغه د ولي وغيره له ملکيت څخه خالي دی او په هغه کي د هيڅ حق ثابت نه دی. نو ځکه دلته له هغه څخه هيڅ بحث هم نسته. بلکي دلته صرف په ملک فعل کي خبره ده او بملک فعل د دوو کسانو د حق له ثبوت څخه مانع نه دی. په همدې وجه مونږ وايو چي په دې مسئله کي پر يوه ځای د دواړو مقطوع اليد کسانو لپاره د قصاص حق ثابتيږي.

بخلاف الرهن إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب دی چي هغه دا مسئله د رهن پر مسئلې قياس کړې ده. د جواب حاصل دا دی چي دا مسئله د رهن پر مسئلې قياسول صحيح نه دي، ځکه د رهن په صورت کي د مرتهن حق د مرهون شي د ذات سره متعلق وي او په يوه شي او يوه ذات کي د دوو کسانو ګنجايش نه سي کېدلای. نو ځکه په يوه وخت (آن واحد) کي يو شی دوو کسانو ته په رهن نه سي ايښوول کېدلای. لېکن په يوه ملک فعل سره په يوه وخت کي دوه کسان خپل حق (د قصاص) اخيستلای سي. د دې مثال بالکل همداسي دی لکه يو غلام چي د دوو کسانو لاسونه يو تر بل وروسته پرېکړي. نو هغه دواړه کسان پر يوه ځای د دې قاطع غلام د رقبې مستحق کيږي او په دې استحقاق کي يو له بل څخه نه مخکي کيږي او وروسته کيږي. نو همداسي په مذکوره مسئله کي به هم دواړه مقطوع اليد کسان پر يوه ځای د نفس قصاص مستحق وي او يو به له بل څخه مخکي يا وروسته نه وي.

## د پورتني مسلي نور وضاحت

| |
|---|
| وَإِنْ حَضَرَ وَاحِدٌ مِنْهُمَا او که له دوی دواړو څخه يو [مقطوع اليد] حاضر سي فَقَطَعَ يَدَهُ او هغه د قاطع لاس پرېکړي فَلِلْآخَرِ عَلَيْهِ نِصْفُ الدِّيَةِ نو د بل [مقطوع اليد] لپاره پر هغه نيم ديت واجب دی لِأَنَّ لِلْحَاضِرِ أَنْ يَسْتَوْفِيَ ځکه چي حاضر [مقطوع اليد] لره دا اختيار سته چي خپل حق واخلي لِثُبُوتِ حَقِّهِ ځکه [د حاضر بدلو په وجه] د هغه حق ثابت سو وَتَرَدُّدِ حَقِّ الْغَائِبِ او د غائب [مقطوع اليد] حق متردد دی وَإِذَا اسْتَوْفَى او کله چي حاضر خپل حق واخلي [يعني د قاطع لاس پرېکړي] لَمْ يَبْقَ مَحَلُّ الْاِسْتِيفَاءِ نو د حق اخيستلو محل [يعني د قاطع لاس] پاته نه سو فَيَتَعَيَّنُ حَقُّ الْآخَرِ فِي الدِّيَةِ نو ځکه د بل يوه [غائب] حق به په ديت کي متعين سي لِأَنَّهُ أَوْفَى بِهِ حَقًّا مُسْتَحَقًّا ځکه چي قاطع د دې [خپل لاس] په ذريعه يو واجب حق اداء کړی دی [ځکه د مقطوع اليد د لاس په بدله کي د قاطع لاس پرېکېدل پر هغه واجب دي]. |

**تشريح:** **صورت مسئلې:** دا دی چي قاطع اليد (زيد) د کومو دوو کسانو (خالد او حامد) لاسونه پرېکړې وه. که له هغو څخه صرف يو کس (مثلاً خالد) قاضي ته حاضر سي او د قاطع د سزا مطالبه وکړي او تر اوسه بل کس (حامد) نه وي راغلی. نو قاضي به د حاضر مقطوع اليد (خالد) لپاره د قاطع د

لاس پرېکولو فيصله کوي او مقطوع (خالد) به د قاطع لاس پرېکوي. او کوم مقطوع چي تر اوسه نه دی حاضر سوی (يعني حامد) هغه ته به د خپل پرېکړل سوي لاس په عوض کي ديت ورکول کيږي: ځکه کله چي دا يو مقطوع (خالد) د قاضي مجلس ته حاضر سو. نو د حاضر پړلو په وجه د قاطع په لاس کي د هغه حق ثابت سو. لهذا کله چي د هغه حق عند القاضي ثابت سو. نو غائب مقطوع اليد په وجه به هغه نه ځنډول کيږي: ځکه د غائب د حق په ثبوت کي تردد دی. ځکه چي د هغه له طرفه د اخيستلو او معاف کولو دواړو احتمال سته (يعني کېدای سي خپل حق واخلي يا کېدای سي معاف يې کړي). او د متردد امر په وجه د يو ښا ثابت شده حق نه ځنډول کيږي. نو ځکه دلته به هم د حاضر مقطوع اليد د قصاص حق نه ځنډول کيږي بلکي هغه به اوس د قاطع لاس پرېکوي. او څرنګه چي د هغه په پرېکولو سره د استيفاء محل يعني د قاطع لاس معدوم سو. نو ځکه اوس د غائب مقطوع اليد حق په ديت کي متعين کيږي او هغه ته به صرف ديت ورکول کيږي. او د قاطع د لاس پرېکېدلو په وجه د غائب مقطوع اليد حق نه ساقطيږي: ځکه د قاطع لاس په جرم او جنايت کي پرېکړل سوی دی. يا په بله وينا دا چي قاطع په خپل دې لاس سره داسي حق اداء کړی دی کوم چي پر هغه واجب وو (لکه څرنګه چي مخکي هم د دې بيان تېر سوی دی).

### که غلام د قتل اقرار وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ الْعَبْدُ بِقَتْلِ الْعَمَدِ فرمايي: او کله چي غلام د قتلِ عمد اقرار وکړي لَزِمَهُ الْقَوَدُ نو پر هغه قصاص لازميږي وَقَالَ زُفَرُ ❁: لَا يَصِحُّ إِقْرَارُهُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د غلام دا اقرار نه صحيح کيږي لِأَنَّهُ يُلَاقِيْ حَقَّ الْمَوْلَىٰ بِالْإِبْطَالِ ځکه د هغه اقرار د مالک د حق باطلولو سره يو ځای کيږي [يعني د هغه اقرار او د مالک د حق باطلول سره تړلي دي] فَصَارَ كَمَا إِذَا أَقَرَّ بِالْمَالِ نو داسي سو لکه غلام چي د مال اقرار وکړي وَلَنَا: أَنَّهُ غَيْرُ مُتَّهَمٍ فِيْهِ او زموږ دليل دا دی: چي غلام په دې اقرار کي متهم [تورن] نه دی لِأَنَّهُ مُضِرٌّ بِهِ ځکه دا اقرار د غلام لپاره مضر دی فَيُقْبَلُ نو ځکه اقرار به قبلول کيږي وَلِأَنَّ الْعَبْدَ مُبْقًى عَلَىٰ أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِيْ حَقِّ الدَّمِ او ځکه چي غلام د خون په حق کي پر اصل آزادي باقي پرېښوولی دی عَمَلًا بِالْآدَمِيَّةِ پر انسان والي په عمل کولو سره حَتّٰى لَا يَصِحَّ إِقْرَارُ الْمَوْلَىٰ عَلَيْهِ بِالْحَدِّ وَالْقِصَاصِ همدا وجه ده چي د غلام په خلاف د مالک د حد او قصاص اقرار صحيح نه دی وَبُطْلَانُ حَقِّ الْمَوْلَىٰ بِطَرِيْقِ الضِّمْنِ او د مالک د حق باطلېدل په ضمني توګه دي فَلَا يُبَالَىٰ بِهِ نو ځکه په هغه به پروا نه کيږي.

❁ القول الراجح: قول الجمهور، لأن قولهم قول المتون، والمختار في المسائل هي مستند المتون، فيرجح تلك المسئلة. [عيون الراجح ج:٢، ص:٣٤١]

**اللغات**: ﴿القَوَد﴾ قصاص. ﴿يلاق﴾ دمفاعلې دباب مضارع ده: ور سره يو ځاى كېدل. متصل كېدل.
﴿مُتهم﴾ دافتعال دباب اسمِ مفعول دى: تورن. تهمتي. هغه كس چې څه تهمت ورباندي وي. ﴿آدمية﴾ آدمي كېدل يعني انسان كېدل. انسانيت. انسان والى.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى كه يو غلام دا قرار وكړي چې ما فلانكى كس قصداً (عمداً) قتل كړى دى. نو زموږ په نيز دغلام دا اقرار صحيح دى او پر هغه قصاص لازم دى، لېكن دامام زفر رَحِمَهُ الله په نيز دغلام دا اقرار صحيح نه دى.

دامام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دى چې كه موږ دغلام اقرار صحيح ومنو، نو هغه به قصاصاً قتلول كيږي، او دغلام په قتل كېدلو كې دمالك دحق او دهغه دملكيت باطلول سته، حال دا چې دبل چا حق باطلول صحيح نه دي، نو ځكه دغلام دقتلِ عمد اقرار به هم صحيح نه وي. ددې مثال دا دى لكه يو غلام چې پر خپل مالك دمال اقرار وكړي مثلاً داسي ووايي چې پر ما دفلانكي او فلانكي دومره قرض باندې دى (او مخكې تاسي ته معلومه سوه چې دغلام قرض دمالك قرض دى ځكه دغلام هر څه دمالك وي)، نو ښكاره ده چې ددې قرض اداء كول به پر مالك واجب وي او په دې كې سر تر پايه دمالك نقصان دى. نو څرنګه چې دلته دنقصان او دمالك دحق باطلېدلو په وجه دغلام له طرفه دمال اقرار صحيح نه دى، نو همداسې دقتلِ عمد اقرار به يې هم صحيح نه وي.

ولنا أنه إلخ: زموږ دليل دا دى چې غلام په خپل دغه قرار كې متهم نه دى؛ ځكه په دې اقرار كې دهغه ښكاره تاوان دى چې دهغه ځان له منځه ځي او دهمېشه لپاره ختمېږي، او دانسان اقرار دهغه دځان په حق كې مقبول او معتبر وي په دې شرط چې پكښې متهم نه وي، نو ځكه دقتلِ عمد په هكله به د غلام دا اقرار مقبول او معتبر وي.

دغلام دا قرار معتبر كېدلو بل دليل دا دى چې غلام هم انسان او آدمي دى او شريعت دويني او خون په حق غلام دحُريت پر اصل باقي پرې ايښى دى، همدا وجه ده كه يو مالك پر خپل غلام د قصاص يا حدّ اقرار وكړي، نو دهغه دا اقرار معتبر نه دى، نو له دې څخه هم معلومه سوه چې په غلام كې شرعاً اصل حُريت ملحوظ دى او دخپل ځان په حق كې دهغه اقرار معتبر دى.

پاته سو دا سوال چې په دې اقرار سره خو دمالك حق او ملكيت باطلېږي او دهغه پكښې نقصان دى. نو جواب دا دى چې شريعت دهغه پروا نه ده كړې، ځكه دلته اصل خو غلام قصاصاً قتلول كيږي او دمالك ملكيت دهغه په ضمن كې باطلېږي، او په ضمني توګه واقع كېدونكي شي لره هيڅ ارزښت او اهميت نه وي، نو ځكه دلته به هم دمالك (مولىٰ) دملكيت باطلېدو لره هيڅ ارزښت نه وي. (احسن الهدايه)

وَمَنْ رَمٰى رَجُلًا عَمَدًا او څوک چې عمداً یو سړی [په غشي] وویشتي فَنَفَذَ السَّهْمُ مِنْهُ اِلٰى آخَرَ بیا له هغه څخه غشی بل کس ته ووځي [یعني تر هغه ووځي او پر بل سړي ولګیږي] فَمَاتَا او هغوی دواړه مړ سي فَعَلَيْهِ الْقِصَاصُ لِلْاَوَّلِ نو پر هغه د اول کس لپاره قصاص واجب دی وَالدِّيَةُ لِلثَّانِيْ عَلٰى عَاقِلَتِهٖ او د دویم کس لپاره د هغه پر عاقله وو دیت واجب دی لِاَنَّ الْاَوَّلَ عَمَدٌ ځکه چې اول عمد دی وَالثَّانِيْ اَحَدُ نَوْعَيِ الْخَطَاِ او دویم د خطاء له دوو قسمونو څخه یو قسم دی كَاَنَّهٗ رَمٰى اِلٰى صَيْدٍ ګواکي هغه د یو ښکار طرف ته [غشی] وغورځوی فَاَصَابَ آدَمِيًّا او هغه پر یو انسان ولګېدی وَالْفِعْلُ يَتَعَدَّدُ بِتَعَدُّدِ الْاَثَرِ او فعل مُتعدد کیږي د اثر په مُتعدد کېدلو سره.

**اللغات**: ﴿رَمٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ویشتل. غورځول. ﴿نفذ﴾ د نصر د باب ماضي ده. د دې باب یوه معنیٰ ده: له یوه طرفه بل طرف ته وتل. آرپار کېدل. ﴿عاقلة﴾ د قاتل متعلقین او د هغه خاندان والا. ﴿یتعدّد﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: متعدّد کېدل. څو واره کېدل. یعني له یوه څخه زیاتېدل. (کوم کار او شی چې له یوه څخه زیات وي، نو پر هغه د تعدّد اطلاق کیږي).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک قصداً (عمدا) یو کس په غشي وویلي او غشی تر هغه آرپار ووځي او بیا پر بل کس هم ولګیږي او دواړه کسان مړه سي. نو په دې صورت کي پر غشي والا (غشي ویشتونکي) باندي د اول مقتول کس په بدله کي قصاص واجبیږي: ځکه هغه یې قصداً او عمداً وژلی دی. او قتل عمد موجب خو قصاص دی لکه څرنګه چې دا ښکاره خبره ده. او د دې بل مقتول کس په عوض کي د قاتل پر عاقله وو دیت واجبیږي: ځکه دا خطاء فی الفعل ده او مثال یې داسي دی لکه غشي والا چې پر یو ښکار غشی ور ایله کړي او هغه خطا سي پر یو انسان ولګیږي او د قتلِ خطاء په صورت کي د قاتل پر عاقله وو دیت واجبیږي چې هغه به د مقتول وارثانو ته ورکوي. نو همداسي به دلته هم د دې بل مقتول کس وارثانو ته دیت ورکول کیږي.

پاته سو دا سوال چې دلته خو د قاتل فعل یو دی او د دې یوه فعل په وجه پر هغه قصاص هم واجب دی او دیت هم. آخر د فعلِ واحد په وجه متعدّده (څو) سزاګاني ولي واجب سوي دي؟. نو جواب یې دا دی چې دلته فعل که څه هم یو دی لېکن د دې فعل په اثر کي تعدّد (څو والي) دی یعني هغه په خپل اثر سره مُتعدّد یعني څو کسان وژلي دي او دا اثر په متعدد کېدلو سره فعل هم متعدد شمېرل کیږي (یعني په بله وینا دا چې دلته فعل پر دوو کسانو اثر کړی دی. نو ځکه سزاوي به یې هم دوې وي). نو اشکال ختم سو. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ حُكْمِ الْفِعْلَيْنِ)

(دا) فصل (د دوو فعلونو [جنايتونو] د حکم په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې د يوه فعل احکام او مسائل بيان سول. اوس له دې ځايه د دوو فعلونو احکام او مسائل بيانول کيږي: او دا ښکاره خبره ده چي دوه تر يوه وروسته وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله هم د دوو فعلونو مسائل د فعلِ واحد تر مسائلو وروسته بيان کړي دي. (بنايه ۱۲/ ۱۶۶)

## د دوو جنايتونو د جمع کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ خَطَأً فرمايي: [۱] او څوک چي د يو سړي لاس په خطا سره پرېکړي ثُمَّ قَتَلَهُ عَمَدًا قَبْلَ أَنْ تَبْرَأَ يَدُهُ بيا هغه قصداً قتل کړي مخکي تر دې چي د هغه لاس جوړ سي أَوْ قَطَعَ يَدَهُ عَمَدًا ثُمَّ قَتَلَهُ خَطَأً [۲] يا د هغه لاس قصداً پرېکړي بيا هغه خطاءً قتل کړي أَوْ قَطَعَ يَدَهُ خَطَأً فَبَرِئَتْ يَدُهُ [۳] يا د هغه لاس خطاءً پرېکړي او د هغه لاس جوړ [هم] سي ثُمَّ قَتَلَهُ خَطَأً بيا هغه خطاءً قتل کړي أَوْ قَطَعَ يَدَهُ عَمَدًا فَبَرَأَتْ [۴] يا د هغه لاس قصداً پرېکړي او هغه جوړ سي ثُمَّ قَتَلَهُ عَمَدًا بيا هغه عمداً قتل [هم] کړي فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ بِالْأَمْرَيْنِ جَمِيْعًا نو هغه به په دواړو کارونو سره نيول کيږي وَالْأَصْلُ فِيْهِ او په دې باره کي قاعدهٔ کليه دا ده أَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الْجِرَاحَاتِ وَاجِبٌ مَا أَمْكَنَ تَتْمِيْمًا لِلْأَوَّلِ چي تر څو ممکنه وي د زخمونو تر مينځ جمع کول واجب دي د اول [اول زخم] د تکميل لپاره لِأَنَّ الْقَتْلَ فِي الْأَعَمِّ يَقَعُ بِضَرَبَاتٍ مُتَعَاقِبَةٍ ځکه قتل عموماً په څو پرلپسې وارونو سره واقع کيږي وَفِيْ اعْتِبَارِ كُلِّ ضَرْبَةٍ بِنَفْسِهَا بَعْضُ الْحَرَجِ او بذاتِ خود د هر وار په اعتبار کولو کي څه حرج دی إِلَّا أَنْ لَا يُمْكِنَ الْجَمْعُ مگر دا چي جمع ممکنه نه وي فَيُعْطٰى كُلُّ وَاحِدٍ حُكْمَ نَفْسِهِ نو بيا به هر وار ته خپل [جلا] حکم ورکول کيږي وَقَدْ تَعَذَّرَ الْجَمْعُ فِيْ هٰذِهِ الْفُصُوْلِ او په دې [مذکوره] ټولو صورتونو کي جمع ناممکنه ده فِي الْأَوَّلَيْنِ لِاخْتِلَافِ حُكْمِ الْفِعْلَيْنِ په اولو د

صورتونو کي خو د دواړو فعلونو د حکم مختلف کېدلو په وجه وَفِي الْآخَرَيْنِ لِتَخَلُّلِ الْبَرَائَةِ او په آخري دوو صورتونو کي د برائت [جوړښت] د مخل کېدلو په وجه [يعني د قطع او قتل په مينځ کي جوړتيا واقع سوې ده چي لاس جوړ سوی دی] وَهُوَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ او برائت [جوړېدل] د سرايت ختمونکی دي حَتَّى لَوْلَمْ يَتَخَلَّلْ تر دې چي که برائت مخل نه سي وَقَدْ تَجَانَسَا او دواړه فعلونه يو د بل همجنسه وي بِأَنْ كَانَا خَطَائَيْنِ په دې توګه چي دواړه خطاء وي يُجْمَعُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاع به جمع کول کيږي لِإِمْكَانِ الْجَمْعِ ځکه چي جمع کول ممکن دي وَاكْتُفِيَ بِدِيَةٍ وَاحِدَةٍ او په يوه ديت به اکتفاء کيږي.

**اللغات**: ﴿تبرأ﴾ د مضارع صيغه ده: له فتح، سمع او کرُم ټولو بابونو څخه راځي: بَرَأَ او بَرِئَ يَبْرَأُ بَرأً وَبُرْأً: د دې باب يوه معنیٰ ده: جوړېدل، له ناروغی وروسته روغېدل، شفاء حاصلېدل. ﴿تتميم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بشپړ کول، پوره کول. ﴿ضربة﴾ اسمِ مرة دی: يو وار وهل، يو واری. جمع: ضَرَبَات. ﴿متعاقبة﴾ د تفاعل د باب فاعل دی: يو تر بل وروسته. پرلپسې. ﴿تخلُّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مخل کېدل، خلل انداز کېدل، په مينځ کي واقع کېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي د فعل د متعدد کېدلو (يعني چي فعل تر يوه زيات وي. د هغه) څلور صورتونه بيان سوي دي او په څلورو سره صورتونو کي د فاعل هر فعل جلا، جلا شمېرل سوی دی او د هر فعل جلا، جلا ضمان هم واجب سوی دی.

①... يو څوک (مثلاً زيد) خطاءً د بل کس لاس پرې کړي او بيا د لاس تر جوړېدلو مخکي قاطع (زيد) هغه (مقطوع اليد) عمداً قتل هم کړي.

②... عمداً د يو چا لاس پرې کړي او د لاس تر جوړېدلو مخکي هغه (مقطوع اليد) خطاءً قتل کړي.

③... خطاءً د يو چا لاس پرې کړي بيا د هغه لاس جوړ سي. تر دې وروسته قاطع هغه خطاءً قتل کړي.

④... عمداً لاس ورپرې کړي بيا لاس جوړ سي، تر دې وروسته قاطع هغه عمداً قتل کړي.

نو په دې هر صورت کي جلا ضمان واجبيږي، د "کفايه شرح هدايه" د تحقيق مطابق په اول صورت کي د لاس پرې کولو په عوض کي نيم ديت واجبيږي او د قتل په عوض کي قصاص واجبيږي. په دويم صورت کي د لاس پرې کولو په عوض کي پر قاطع د لاس قصاص واجبيږي (چي د هغه لاس به هم پرې کول کيږي) او د قتل په عوض کي ټوله ديت واجبيږي. په دريم صورت کي د

لاس نيم ديت واجبيږي او د قتل ټوله ويت واجبيږي؛ ځکه قطع او قتل دواړه خطاءً واقع سوي دي.
په څلورم صورت کي به اول له قاطع شخخه د لاس قصاص اخيستل کيږي او بيا به د نفس قصاص ځني اخيستل کيږي (يعني بيا به قصاصاً به قتلول کيږي)؛ ځکه قطع او قتل يې دواړه عمداً کړي دي.

والأصل فيه إلخ: په دې سره د فعل د متعدد کېدلو د حکم په هکله يو اُصول او قاعده بيانوي. فرمايي که چيري افعال متعدد وي يعني وهونکي يا ويشتونکي کس څو واره او څو فعلونه مثلاً دوه واره زخمي کول وکړي، نو که چيري د هغوی جمع کول ممکن وي، نو هغوی به جمع کول کيږي يعني تداخل به پکښي کيږي مطلب دا چي يو زخم به په بل کي داخليږي او د دواړو حکم به يو ګرځول کيږي. او که په فعلونو او جراحاتو کي جمع ممکن نه وي، نو بيا به تداخل نه پکښي کيږي او د هر فعل حکم به جلا شمېرل کيږي.

اوس پاته سو دا سوال چي د جمع د ممکن کېدلو په صورت کي جمع ولي واجب ده؟ آيا د دواړو حکم نه سي جلا کول کېدای؟. نو د دې جواب دا دئ حي جمع د اول فعل او اول زخم د تکميل لپاره کيږي؛ ځکه عموماً قتل کونکی کس پر مقتول څو واره کوي ځکه په يوه وار سره عموماً مرګ نه واقع کيږي، اوس ښکاره ده چي که د هر وار او هر زخم لپاره جلا سزا وټاکل سي نو حرج او ستونزه به لازم سي او شريعت حرج ليري کړی دی، نو ځکه له حرج څخه د بچ کېدلو لپاره متحد فعلونه (مثلا دواړه خطاءً وي يا دواړه عمداً وي. هغوی) به سره جمع کول کيږي او تداخل به پکښي کيږي. لېکن د مختلف الافعال په مينځ کي به جمع نه راوستل کيږي او تداخل به نه پکښي کيږي، همدا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "إلّا أن لا يمكن الجمع فيعطى كل واحد حكم نفسه" سره همدا بيان کړي دي.

وقد تعذّر إلخ: فرمايي چي زموږ د بيان سوي اُصول په رڼا کي په پورتني څلورو سره صورتونو کي جمع متعذره او ناممکنه ده؛ ځکه په اول او دويم صورت کي دواړه فعلونه سره مختلف دي. يو ځای عمد دی او بل ځای خطاء دی، نو ځکه د اختلاف الافعال په وجه په هغوی کي جمع او تداخل نه سي کېدلای، او په دريم او څلورم صورت کي جوړښت (برائت) متخلل سوی دی (يعني زخمي کړی سوی لاس جوړ سوی دی)، نو ځکه په دې دوو صورتونو کي هم هر فعل مستقل او جلا وشمېرل سو او د هغه حکم جلا او منفرد کړی سو. همدا وجه ده که دواړه فعلونه متحد وي مثلاً قطع هم خطاءً وي او قتل هم خطاءً وي او په مينځ کي يې جوړښت (برائت) متخلل نه سي. نو په دې صورت کي د جمع او تداخل لاره صفا ده چي تداخل به پکښي کيږي او د تداخل کېدلو په وجه پر فاعل صرف يو ديت واجبيږي. (احسن الهدايه)

## د دوو فعلونو د عمد کېدلو د صورت حکم او تفصيل

وَإِنْ كَانَ قَطَعَ يَدَهُ عَمْدًا او که د هغه لاس يې قصداً پرېکړی وي ثُمَّ قَتَلَهُ عَمْدًا قَبْلَ أَنْ تَبْرَأَ يَدُهُ بيا د لاس تر جوړېدلو مخکې يې هغه قصداً قتل کړی [هم] وي فَإِنْ شَاءَ الْإِمَامُ قَالَ نو که امام وغواړي نو [د مقتول اولياؤ ته] دي ووايي اِقْطَعُوْهُ ثُمَّ اقْتُلُوْهُ چې [اول] د هغه لاس پرېکړئ! بيا هغه قتل کړئ! وَإِنْ شَاءَ قَالَ او که وغواړي نو [هغو ته] دي ووايي اُقْتُلُوْهُ چې هغه قتل کړئ! وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا *: يُقْتَلُ وَلَا تُقْطَعُ يَدُهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې هغه به قتلول کيږي او لاس به يې نه پرېکول کيږي لِأَنَّ الْجَمْعَ مُمْكِنٌ لِتَجَانُسِ الْفِعْلَيْنِ وَعَدَمِ تَخَلُّلِ الْبُرْءِ ځکه د دواړو فعلونو د همجنس کېدلو او د برائت د نه مخل کېدلو په وجه [دلته] جمع ممکنه ده فَيُجْمَعُ بَيْنَهُمَا نو ځکه د دواړو فعلونو تر مېنځ به جمع [او تداخل] کيږي وَلَهُ: أَنَّ الْجَمْعَ مُتَعَذِّرٌ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې [دلته] جمع متعذره ده إِمَّا لِلِاخْتِلَافِ بَيْنَ الْفِعْلَيْنِ هٰذَيْنِ يا خو د دې دوو فعلونو تر مېنځ د اختلاف په وجه [د مُوجَب په اعتبار کولو سره] لِأَنَّ الْمُوْجَبَ الْقَوَدُ ځکه [د هريوه] موجب [حکم] قصاص دی [په يوه کې د لاس قصاص دی او په بل کې د نفس قصاص دی. ځکه چې هريو عمد دی] وَهُوَ يَعْتَمِدُ الْمُسَاوَاةَ فِي الْفِعْلِ او قصاص په فعل کې د مساوات تقاضا کوي وَذٰلِكَ بِأَنْ يَكُوْنَ الْقَتْلُ بِالْقَتْلِ وَالْقَطْعُ بِالْقَطْعِ او هغه [مساوات] په دې توګه دی چې د قتل په عوض کې قتل وي او د قطع اليد [لاس پرېکولو] په عوض کې قطع اليد وي وَهُوَ مُتَعَذِّرٌ او دا مساوات متعذر دي أَوْ لِأَنَّ الْحَزَّ يَقْطَعُ إِضَافَةَ السِّرَايَةِ إِلَى الْقَطْعِ يا ځکه چې غاړه پرېکول [قتلول] د قطع اليد وطرف ته د سرايت نسبت ختموي حَتّٰى لَوْ صَدَرَا مِنْ شَخْصَيْنِ تر دې چې که هغه دواړه [يعني عمداً قطع او قتل] له دوو کسانو څخه صادر سي يَجِبُ الْقَوَدُ عَلَى الْحَازِّ نو پر غاړه پرېکونکي [قاتل] باندې قصاص واجبيږي فَصَارَ كَتَخَلُّلِ الْبُرْءِ نو دا د برائت د مخل کېدلو په څېر سو [يعني داسې سو لکه د قطع او قتل په مېنځ کې چې برائت (جوړ تيا) واقع سي]

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:٢، ص:٣٤٢]

بِخِلَافِ مَا إِذَا قَطَعَ وَسَرَى په خلاف د هغه صورت كله چي لاس پريكړي او هغه سرايت كړي (او مقطوع اليد مړ سي. نو صرف قتل لازميږي) لِأَنَّ الْفِعْلَ وَاحِدٌ ځكه چي فعل يو دى وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَا خَطَأَيْنِ او په خلاف د هغه صورت كله چي قطع او قتل دواړه خطاء وي لِأَنَّ الْمُوجِبَ الدِّيَةُ ځكه (د خطاء) موجب ديت دى وَهِيَ بَدَلُ النَّفْسِ مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ الْمُسَاوَاةِ او ديت د مساوات له اعتبار كولو څخه بغير د نفس بدل دى وَلِأَنَّ أَرْشَ الْيَدِ إِنَّمَا يَجِبُ عِنْدَ اسْتِحْكَامِ أَثَرِ الْفِعْلِ او ځكه چي د لاس ضمان (ديت) د فعل د اثر مستحكم كېدلو په وخت كي واجبيږي وَذَلِكَ بِالْحَزِّ الْقَاطِعِ لِلسِّرَايَةِ او دا استحكام د غاړي په پريكولو (قتلولو) سره حاصليږي كوم چي د سرايت ختمونكي دي فَيَجْتَمِعُ ضَمَانُ الْكُلِّ وَضَمَانُ الْجُزْءِ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ نو د كل او جزء ضمان به په يوه حالت كي سره جمع سي وَلَا يَجْتَمِعَانِ حالانكي دا دواړه نه سره جمع كيږي أَمَّا الْقَطْعُ وَالْقَتْلُ قِصَاصٌ كوم چي د قصاص په توګه قطع او قتل دي يَجْتَمِعَانِ نو دا دواړه سره جمع كيږي.

**اللغات:** ﴿حَزٌ﴾ د نصر د باب مصدر دى: حَزَّ يَحُزُّ حَزًّا: قطع كول. پرېكول. ﴿السراية﴾ د ضرب له بابه اسم مصدر دى: سرايت كول. ﴿مُوْجَب﴾ د افعال د باب مفعول دى: واجب كړ سوى (هغه څه كوم چي د يو شي په وجه واجب وي). حكم. مقتضا. ﴿أرش﴾ تاوان او جرمانه. ديت. هغه مال كوم چي پر ما دون النفس (يعني پر اندامونو) د جنايت كولو په بدله كي لازميږي. ﴿استحكام﴾ د استفعال د باب مصدر دى: مستحكم كېدل. مضبوطېدل. پخېدل.

**تشريح:** په دې عبارت كي له مخكينيو څلورو صورتونو څخه بغير جلا د بل صورت بيان دى. چي د هغه تفصيل دا دى كه يو څوك عمداً د بل چا لاس پرېكړي او بيا د لاس تر جوړېدلو مخكي هغه عمداً قتل هم كړي. نو د دې صورت د سزا په هكله د امام صاحب او صاحبينو تر مينځ اختلاف دى. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د مقتول ولي ته اختيار دى كه وغواړي نو قطع او قتل دي دواړه سره جمع كړي يعني اول دي قصاصاً د هغه لاس وربرېكړي او بيا دي قصاصاً هغه قتل كړي او كه وغواړي نو صرف په قتل دي اكتفاء وكړي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حكم دا دى چي د دې قاتل په فعلونو (قطع او قتل) كي تداخل كيږي او د مقتول ولي ته به صرف د هغه د قتلولو حق وي. د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چي د

قاتل د دواړو فعلونو جنس متحد دی. ځکه دواړه عمداً واقع سوي دي او جوړښت (برائت) هم په مينځ کي نه دی مخل سوی. لهذا د جمع او تداخل لاره بالکل صفا ده. نو ځکه د دواړو فعلونو تر مينځ به جمع راوستل کيږي او فقط قصاص به واجب وي.

**وله أن الجمع متعذر إلخ:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي په دې مسئله کي جمع او تداخل متعذر دي. يا په بله وينا دا چي له دې قاتل څخه په قصاص اخيستلو کي صرف په قتل اکتفاء کول ممکن نه دي: ځکه که څه هم په ښکاره دواړه فعلونه متحد الجنس دي ليکن حقيقتاً په دوی کي اختلاف دی او دواړه جلا جلا فعلونه دي. ځکه اطراف (اندامونه) د مال په درجه کي وي (لکه مخکي چي ذکر سوه). د دې په خلاف نفس له اطرافو څخه عليحده دی او د هغه حکم او حيثيت جلا دی. نو ځکه دواړه يو نه سي شمېرل کېدای بلکي د دواړو په عوض کي به جلا، جلا قصاص واجب وي. او قصاص په فعل کي د مساوات او مماثلت تقاضا کوي او مساوات همغه وخت ثابتيږي کله چي د قتل النفس په عوض کي نفس قتل کړل سي او د قطع اليد په عوض کي لاس پرېکړل سي. او که د دواړو په عوض کي صرف په قتل اکتفاء وسي. نو ښکاره ده چي مساوات به معدوم سي. نو ځکه موږ وايو چي په دې مسئله کي د جمع او تداخل په ذريعه صرف په قتل اکتفاء کول متعذر او نا ممکن دي. حال دا چي د الهي فرمان ﴿وَإِنْ عَاقَبْتُم فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُمْ بِهِ﴾ او د ﴿فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدَىٰ عَلَيْكُمْ﴾ په وجه په قصاص اخيستلو کي مساوات في الفعل ضروري دی.

**أو لأن الحز إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که د قطع او قتل تر مينځ برائت (جوړتيا) مخل سي (يعني تر پرېکولو وروسته لاس جوړ سي او بيا يې قتل کړي)، نو په دې صورت کي د هيچا په نېز جمع او تداخل نه کيږي، لهذا کله چي د فقهاؤ په اتفاق برائت له جمع او تداخل څخه مانع دی، نو کوم شی چي د برائت په درجه کي وي، هغه به هم له جمع څخه مانع وي. او په دې مسئله کي تر لاس پرېکولو وروسته او د لاس له برائت (جوړېدلو) څخه مخکي مقطوع قتلول او د هغه ختمول د برائت په درجه او معنیٰ کي دي؛ ځکه د قتل په وجه ګرد سره د زخم د سرايت کولو محل ختم سو. يعني څرنګه چي په برائت (جوړېدلو) سره د خم سرايت ختميږي، همداسي په قتل سره هم د هغه د سرايت کولو احتمال ختميږي. لهذا کوم حکم چي د قطع او قتل تر مېنځ د برائت د مخل کېدلو په صورت کي دی. هاغه حکم به د قتل هم وي. يعني څرنګه چي د برائت په صورت کي تداخل نه کيږي. نو همداسي د قتل په صورت کي به هم تداخل نه کيږي بلکي د قطع او قتل به جلا. جلا قصاص واجب وي. همدا وجه ده که قطع او قتل له دوو جلا کسانو څخه صادر سي مثلاً حامد د زيد لاس پرېکړي او خالد هغه

قتل کړي. نو په دې صورت کې پر خالد قصاص واجب دی. نه پر حامد (حامد له قصاص څخه خلاص دی). حال دا چې که خالد زید قتل کړی نه وای بلکې د حامد د قطع الید په وجه زید مړ سوي وای. نو قصاص به پر خالد واجب وای. لهذا د قتل په وجه پر خالد قصاص واجبېدل او د حامد خلاصېدل له دې څخه دا خبره ښکاره سوه چې د خالد فعل یعني قتلول د حامد د قطع او زخم له سرایت کولو څخه مانع دي او دغه عدم سرایت لره د برائت درجه حاصله ده (یعني سرایت درېدل داسي دي لکه پرېکړل سوی لاس چې جوړ سو). او څرنګه چې د برائت په صورت کې تداخل نه کیږي. نو ځکه په مذکوره مسئله کې به هم تداخل نه کیږي.

بخلاف ما إذا قطع إلخ: فرمایي که څوک عمداً د بل چا لاس پرېکړي او زخم سرایت وکړي تر دې چې د هغه زخم په وجه مقطوع الید مړ سي، نو په دې صورت کې صرف قصاص بالنفس واجب دی: ځکه دلته د قاتل له طرفه صرف یو فعل واقع دی. نو ځکه د هغه سزا به هم یوه وي.

همدارنګه که قطع او قتل دواړه خطاءً وي مثلاً حامد اول خطاءً د زید لاس پرېکړي او بیا تر جوړېدلو مخکې خطاءً هغه قتل هم کړي. نو په دې صورت کې په قطع او قتل کې تداخل کیږي او پر قاتل صرف د نفس دیت واجبیږي: ځکه دلته دواړه فعلونه خطاءً واقع سوي دي او په قتل خطاء کې د مساوات له اعتبار کولو څخه بغیر دیت واجبیږي. نو ځکه دلته به صرف یو شی یعني د نفس دیت واجب وي.

په قصاص او دیت کې د مساوات د معتبر کېدلو او نه معتبر کېدلو وجه دا ده چې قصاص د فعل جزاء ده او دیت د محل جزاء ده او محل په هر حال کې یو وي. نو ځکه صرف یو دیت (عموماً) واجبیږي. حال دا چې په فعل کې تعدد راتلای سي او زیاتره وخت همداسي کیږي. نو ځکه جزاء هم متعدده واجبیږي. همدا وجه ده که لس (۱۰) کسان په ګډه یو څوک خطاءً قتل کړي. نو پر دوی ټولو یو دیت واجبیږي: ځکه دیت د محل جزاء ده او دلته محل یعني مقتول یو دی. د دې په خلاف که لس (۱۰) کسان په ګډه یو څوک عمداً قتل کړي. نو پر دوی هر یوه باندې قصاص واجبیږي: ځکه قصاص د فعل جزاء ده. او څرنګه چې په مذکوره مسئله کې فعل متعدد دی. نو ځکه جزاء یعني قصاص به هم متعدد وي. (بنايه ۱۲ / ۱۶۸)

ولأن الأرش إلخ: د خطاءً قطع او قتل په صورت کې فقط په یوه دیت د اکتفاء کولو بل دلیل دا دی چې که د خطاءً پرېکړل سوي لاس زخم سرایت نه وکړي او د مرګ سبب نه وګرځي، نو پر قاطع صرف د قطع الید (لاس پرېکولو) دیت واجبیږي کوم چې د نفس نیم دیت دی (یعني د قطع الید دیت دومره دی لکه د نفس نیم دیت). او که زخم سرایت وکړي او د مرګ سبب وګرځي یعني د هغه په وجه

مقطوع اليد مړ سي. نو په دې صورت کې ټوله ديت واجبيږي. اوس که په دې پورتني صورت کې تر خطاءً قطع اليد وروسته قاطع هغه (مقطوع اليد) خطاءً قتل هم کړي. نو څرنګه چې د قتل په وجه زخم له سرايت کولو څخه ودرېدی. نو ځکه صرف يو ديت واجبيږي يعني د نفس ټوله ديت؛ ځکه چې په هغه کې نيم ديت هم موجود دی ځکه کُل جزء لره هم شامل وي. اوس که مورږ د خطاءً قطع اليد جلا ديت ځني واخلو او بيا د قتلِ خطاء جلا ديت ځني واخلو، نو څرنګه چې د قتل په ديت کې د لاس ديت هم شامل دی. نو د يوه اندام ديت به دوچنده سي او ډبل ديت به واجب سي کوم چې جائز نه دي، همدا صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په "ولايجتمعان" سره تعبير کړي دي.

د دې په خلاف که څوک د بل چا لاس عمداً پرېکړي او بيا تر جوړېدلو مخکې هغه عمداً قتل هم کړي، نو په دې صورت کې ځکه پر قاتل د لاس او نفس دواړو قصاص واجبيږي چې د عمد په سزا کې شدت او تغليظ وي او بل دا چې قصاص د فعل جزاء ده او دلته فعل مُتعدّد دی نو ځکه جزاء يعني قصاص به يې هم مُتعدّد وي. والله أعلم

**په دُره وغيره سره د وهلو په صورت کې په آخري دُرو سره د مړ کېدلو حکم او ختلاف**

قَالَ: وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ فرمايي: او څوک چې يو سړي سل دُرې ووهي فَبَرَأَ مِنْ تِسْعِينَ وَمَاتَ مِنْ عَشَرَةٍ نو هغه له نيوي دُرو څخه جوړ پاته سي او له [آخري] لسو دُرو څخه مړ سي فَفِيهِ دِيَةٌ وَاحِدَةٌ نو په دې کې يو ديت واجب دی لِأَنَّهُ لَمَّا بَرَأَ مِنْهَا ځکه کله چې هغه له نيوي دُرو څخه جوړ پاته سو لَا تَبْقَى مُعْتَبَرَةً فِي حَقِّ الْأَرْشِ نو هغه نيوي دُرې د ديت په حق کې معتبره پاته نه سوې. وَإِنْ بَقِيَتْ مُعْتَبَرَةً فِي حَقِّ التَّعْزِيرِ که څه هم د تعزير په حق کې معتبره پاته سوي فَبَقِيَ الِاعْتِبَارُ لِلْعَشَرَةِ نو صرف لسو دُرو لره اعتبار پاته سو وَكَذَلِكَ كُلُّ جِرَاحَةٍ انْدَمَلَتْ وَلَمْ يَبْقَ لَهَا أَثَرٌ او همدارنګه هر هغه زخم کوم چې ډک سي او د هغه هيڅ اثر پاته نه سي عَلَى أَصْلِ أَبِي حَنِيفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله د اصل مطابق وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ فِي مِثْلِهِ حُكُومَةُ عَدْلٍ او د دې په مثل کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې حکومةِ عدل واجب دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ تَجِبُ أُجْرَةُ الطَّبِيبِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د طبيب أُجرت واجب دی وَإِنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ او که څوک يو سړي سل دُرې ووهي وَجَرَحَتْهُ او دُرې هغه زخمي کړي وَبَقِيَ لَهُ أَثَرٌ او د زخم اثر

پاته سي تَجِبُ حُكُومَةُ الْعَدْلِ لِبَقَاءِ الْأَثَرِ نو د اثر پاتېدلو په وجه حکومة عدل واجب دی وَالْأَرْشُ إِنَّمَا يَجِبُ بِاعْتِبَارِ الْأَثَرِ فِي النَّفْسِ او ارش خو په نفس کې [د زخم] د اثر کولو په اعتبار سره واجبيږي [يعني ارش هغه وخت واجبيږي کله چې د زخم اثر نفس ته ورسيږي].

**اللغات:** ﴿سَوْط﴾ دُره. ﴿بَرَأَ﴾ د ماضي صيغه ده: له فتح. سمع او کرُم ټولو څخه راځي: بَرَأَ او بَرِئَ يَبْرَأُ بَرْأً وَبُرْأً: د دې باب يوه معنیٰ ده: جوړېدل. له ناروغۍ وروسته روغېدل. ﴿أرش﴾ ديت. مخکې يې تفصيلي معنیٰ ذکر سوه. ﴿التعزير﴾ د تفعيل مصدر دی: له حد څخه لاندي سزا ته "تعزير" وايي. (تبيه سزا ور کول) تنبيه ور کول. رټل او غندل. صاحب د "معجم لغة الفقهاء" د تعزير اصطلاحي معنیٰ داسي ذکر کړې ده: "ما يُقَدِّره القاضي من العقوبة على جريمة لم يرد في الشرع عقوبة مقدرة عليها" (يعني هغه سزا کوم چې يې قاضي د يو داسي جرم په جزاء کي مقرره کړي چې په شريعت کي د هغه جرم هيڅ سزا مقرره سوې نه وي). (معجم لغة الفقهاء ج: ۱، ص: ۱۳۶)، ﴿أجرة الطبيب﴾ د طبيب أجرت او مزدوري (د ډاکټر فيس).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک بغير له څه شرعي وجهي بل څوک (مثلاً زيد) سل (۱۰۰) دُرې ووهي او د وهلو په وخت کي نيوي (۹۰) دُرې خو د مضروب (زيد) پر صحت هيڅ اثر نه وکړي او هغه روغ جوړ پاته وي ليکن آخري لس دُرې د هغه پر صحت دومره اثر وکړي چې ساه د لاسه ورکړي او مړ سي، نو حکم دا دی چې پر هوونکي کس فقط د آخري لس (۱۰) دُرو ضمان (تاوان) واجب دی او د شروع د نيوي (۹۰) دُرو په هکله به له هغه څخه هيڅ پوښتنه نه کيږي؛ ځکه کله چې هغه نيوي دُرو د مضروب صحت متأثر کړی نه دی، نو ښکاره ده چې د ديت واجبېدلو په هکله به هغوی لره هيڅ اعتبار نه وي، لهذا د هغوی په عوض کي به پر وهونکي کس هيڅ ديت نه واجبيږي. خو له داسي ناوړه حرکت څخه د منع کولو لپاره به قاضي د هغه نيوي دُرو په عوض کي وهونکي کس ته تعزير ورکوي.

و**كذلك كل جراحة** إلخ: د دې حاصل دا دی چې هر هغه زخم کوم چې جوړ او ډک سي او پر مجروح کس د هغه هيڅ اثر او نښان پاته نه سي، نو د داسي زخم په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله اصل همدا دی چې د هغه په عوض کي پر جارح کس هيڅ ضمان (تاوان) نه واجبيږي.

او په دې باره کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې په داسي صورت کي پر جارح کس حکومة عدل واجب دی. د حکومة عدل مطلب دا دی چې که مجروح کس غلام وي، نو د هغه قيمت او د غير مجروح غلام قيمت به سره موازنه کيږي او د دوی په مينځ کي چې کوم فرق راسي، هاغه

حکومت عدل دی. مثلاً د غیر مجروح غلام قیمت زر درهمه وي او د مجروح غلام قیمت اته سوه درهمه سوی وي. نو په دواړو کي دوه سوه درهمه فرق دی. لهذا همدا دوه سوه درهمه حکومة عدل دی (نو په مذکوره مثال کي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز پر جارح دوه سوه درهمه واجب دي).

وعن محمد إلخ: او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز پر جارح د طبيب اُجرت لازم دی (يعني د مجروح پر علاج او درمنله چي څومره پيسې ولګيږي. هغه پر جارح لازم دي).

وإن ضرب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک بل څوک سل دُرې ووهي او زخمي يې کړي. بيا زخم ډېر وخت نه ونيسي بلکي په يو څو ورځو کي هغه کس جوړ او روغ سي خو د هغه پر بدن د زخم اثر او نښان باقي پاته وي. نو په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله په اتفاق پر جارح کس حکومة عدل واجبيږي او ارش يعني ديت نه واجبيږي؛ ځکه د ديت واجبېدو لپاره دا ضروري ده چي زخم به نفس متأثر کړی وي يعني د زخم اثر به نفس ته رسېدلی وي، او دلته نفس نه دی متأثر سوی بلکي جوړ سوی دی، او کله چي نفس متأثر سوی نه دی، نو ښکاره ده چي پر جارح به ارش هم واجب نه وي. (احسن الهدايه)

## که مقطوع اليد معافي وکړي او بيا د قطع له امله مړ سي (حکم او تفصيل)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي] فرمايي وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ او څوک چي د يو سړي لاس پرېکړي فَعَفَا الْمَقْطُوعَةُ يَدُهُ عَنِ الْقَطْعِ بيا د چا لاس چي پرېکړل سوی دی [يعني مقطوع اليد] هغه قطع معاف کړي ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذٰلِكَ بيا هغه د دې قطع په وجه مړ سي فَعَلَى الْقَاطِعِ الدِّيَةُ فِيْ مَالِهِ نو پر قاطع په خپل مال کي ديت واجب دی وَإِنْ عَفَا عَنِ الْقَطْعِ وَمَا يَحْدُثُ مِنْهُ او که مقطوع اليد قطع او کوم څه چي له قطع څخه پېښ سي هغه [هم] معاف کړي ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذٰلِكَ بيا هغه له همدې قطع څخه مړ سي فَهُوَ عَفْوٌ عَنِ النَّفْسِ نو دا د نفس معاف کول دي ثُمَّ إِنْ كَانَ خَطَأً بيا که قطع خطاءً وي فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ نو دا معافي به له ثلث المال څخه وي وَإِنْ كَانَ عَمَدًا او که قطع عمداً وي فَهُوَ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ نو معافي به له ټوله مال څخه وي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [تفصيل] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا ۞: إِذَا عَفَا عَنِ الْقَطْعِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي کله

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله. انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۲]

[مقطوع اليد] قطع معاف کړه فَهُوَعَفْوٌ عَنِ النَّفْسِ أَيْضًا نو دا د نفس هم معاف کول دي وَعَلَى هٰذَا الْخِلَافِ إِذَا عَفَا عَنِ الشَّجَّةِ او پر همدغه اختلاف دي کله چي هغه د سر زخم معاف کړي ثُمَّ سَرَىٰ إِلَى النَّفْسِ وَمَاتَ بيا هغه زخم نفس ته سرايت وکړي او هغه [مشجوج] مړ سي لَهُمَا: أَنَّ الْعَفْوَ عَنِ الْقَطْعِ عَفْوٌ عَنْ مُوْجَبِهِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي قطع معاف کول د قطع موجب [حکم] معاف کول دي وَمُوجَبُهُ الْقَطْعُ لَوِ اقْتَصَرَ او د قطع موجب [حکم] قطع ده که زخم سرايت نه وکړي أَوِ الْقَتْلُ إِذَا سَرَىٰ يا قتل دی کله چي زخم سرايت وکړي فَكَانَ الْعَفْوُ عَنْهُ عَفْوًا عَنْ أَحَدِ مُوْجَبَيْهِ أَيُّهُمَا كَانَ نو د قطع معاف کول به د قطع د دواړو موجبو [دواړو حکمونو] معاف کول وي. هغه که هر يو هم وي وَلِأَنَّ إِسْمَ الْقَطْعِ يَتَنَاوَلُ السَّارِيَ وَالْمُقْتَصِرَ او ځکه چي لفظ د قطع سرايت کونکي او نا سرايت کونکي دواړو [زخمونو] لره شامل دي فَيَكُوْنُ الْعَفْوُ عَنْ قَطْعٍ عَفْوًا عَنْ نَوْعَيْهِ نو د قطع معاف کول به د هغې د دواړو قسمونو معاف کول وي وَصَارَ كَمَا إِذَا عَفَا عَنِ الْجِنَايَةِ او دا داسي سو لکه جنايت چي معاف کړي فَإِنَّهُ يَتَنَاوَلُ الْجِنَايَةَ السَّارِيَةَ وَالْمُقْتَصِرَةَ نو دا معافي سرايت کونکي او نا سرايت کونکي دواړو [جنايتونو] لره شامليږي كَذَا هٰذَا نو همداسي به دا هم وي [يعني همداسي به قطع هم دواړو لره شامله وي].

**اللغات:** ﴿عفا﴾ د نصر د باب ماضي ده: معافي کول (معاف کول)، بخښل، سزا پرېښوول (مصباح اللغات). ﴿يحدث﴾ د نصر د باب مضارع ده: پېښېدل، پيدا کېدل. ﴿الشجة﴾ د سر زخم. ﴿اقتصر﴾ د افتعال د باب ماضي ده: اکتفا کول، منحصر کېدل، مراد: سرايت نه کول. ﴿مُوْجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړ سوی (هغه څه کوم چي د بل څه په وجه واجب وي)، حکم، مقتضا. ﴿يتناول﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: شاملېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد مثلاً د حامد لاس پرېکړي، برابره ده عمداً يې پرېکړي او که خطاءً، بيا مقطوع اليد (حامد) دا قطع معاف کړي او قاطع (زيد) ته بخښنه وکړي خو تر دې معافي او بخښني وروسته د هاغه قطع په وجه مقطوع اليد مړ سي، نو اوس پر قاطع په خپل مال کي ديت واجب دی: ځکه دا مسئله له قطع څخه د قتل وطرف ته متعدي سوه او مقطوع اليد فقط قطع معاف کړي ده. قتل يې نه دی معاف کړی، لهذا له قاطع څخه به د لاس قصاص خو نه اخيستل کيږي. لېکن د قتل په وجه پر هغه د نفس ديت خامخا واجبيږي.

وإن عفى... وما يحدث إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مقطوع اليد په دې الفاظو قاطع ته معافي کړې وي چې قطع هم معاف ده او د دغه قطع په نتيجه کې چې هر څه پېښ سي. هغه هم در ته معاف دي. او بيا د همدې قطع په وجه هغه مړ سي، نو اوس پر قاطع هيڅ شی نه واجبيږي، نه قصاص او نه ديت. خو په مذکوره صورت کې (يعني چې مقطوع اليد قطع و ما يحدث منه ټوله معاف کړي وي بيا هغه مړ سي. په دې صورت کې) صرف دا خبره ياد ساتل پکار دي چې که د مقطوع اليد لاس خطاءً پرېکړل سوی وي، نو دا معافي د هغه د مال په ثلث (درېيمه حصه) کې جاري کيږي لهذا که د عفو له مقدار څخه بغير د مقطوعُ اليد سره نور مال نه وي، نو دا معافي د هغه په يو ثلث کې جاري کيږي او ما بقي دوه ثلثه به قاطع اداء کوي او د مقطوع اليد وارثانو ته به يې ورکوي. او که په مذکوره صورت کې قطع اليد عمداً وي. نو په دې صورت کې په ټوله مال کې معافي جاري کيږي او په هغه کې به کمي وزياتوب نه کيږي. دا ټوله تفصيل د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مسلک مطابق دي.

وقالا إذا عفى إلخ: په دې سلسله کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذهب دا دی چې کله مقطوعُ اليد کس (حامد) قطع معاف کړه، نو په دې سره عفو عن النفس هم متحقق سوه يعني قاطع د قتل له جرم څخه هم بري سو، لهذا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر قاطع په يوه صورت کې هم قصاص او ديت نه واجبيږي. برابره ده مقطوع صرف قطع معاف کړې وي، يا قطع و ما يحدث منهُ ټوله يې معاف کړې وي. (احسن الهدايه)

وعلى هٰذا الخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چې که زيد مثلاً د حامد سر مات کړي او زخمي يې کړي، بيا مشجوج (حامد) دا شجه (د سر زخم) معاف کړي او شاج (زيد) ته بخښنه وکړي. خو تر دې وروسته شجه سرايت وکړي او د هغه په وجه مشجوج مړ سي، نو په دې کې هم د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله همدغه اختلاف دی. يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې زخم (شجه) په معافی سره قتل نه معاف کيږي، نو ځکه پر شاج (زيد) ديت واجب دی، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د داسې زخم معافي د قتل معافی لره هم شامليږي او پر شاج هيڅ شی نه واجبيږي.

لهما إلخ: دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دی. حاصل يې دا دی چې د قطع او زخم معاف کول د قطع موجَب او حکم معاف کوي. او د قطع سره دوه حکمه متعلق دي: ① که د قطع زخم سرايت نه وکړي او د هغه په وجه مرګ واقع نه سي، نو د هغه حکم قطع اليد دی (چې د قاطع لاس به پرېکول کيږي)، ② او که زخم سرايت وکړي او مقطوع اليد مړ سي، نو د هغه حکم قتل او قصاص دی. لهذا کله چې

مقطوع اليد قطع معاف کړه (يا مشجوج شجه معاف کړه)، نو دا معافي به د قطع (او شجه) دواړو قسمونو او حکمونو لره شامله وي او کوم قسم چې هم متحقق سي په هغه کې به دا معافي جاري وي برابره ده هغه قطع اليد وي او که قتل او قصاص وي، لنډه دا چې دا معافي به د قاطع ټوله جرم لره محيط وي او پر قاطع به هيڅ شي هم واجب نه وي.

ولأن اسم القطع إلخ: دا بل دليل دی، حاصل يې دا دی چې د قطع دوه قسمونه دي: (۱) قطع ساري (چې د قطع زخم سرايت وکړي)، (۲) قطع مقتصر (کوم چې سرايت نه وکړي) او څرنګه چې دلته مقطوع اليد قطع معاف کړې ده، نو دا معافي به د قطع دواړو قسمونو لره شامله وي او قطع ساري او قطع مقتصر به دواړه معاف وي، او ښکاره ده چې کله دواړه معاف دي، نو د قاطع جرم او جنايت به له بېخه ختم سي او پر قاطع به هيڅ ضمان او تاوان هم واجب نه وي. د دې مثال داسې دی لکه حامد چې له سره جنايت معاف کړي. نو ښکاره ده چې دا معافي جنايت ساريه او جنايت مقتصره دواړو لره شامليږي. نو همداسې به په مذکوره مسئله کې د قطع معافي هم قطع ساري او قطع مقتصر دواړو لره شامله وي او له بېخه به جرم معاف وي. (احسن الهدايه)

## په مذکوره مسئله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ: أَنَّ سَبَبَ الضَّمَانِ قَدْ تَحَقَّقَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د ضمان سبب ثابت سوی دی وَهُوَ قَتْلُ نَفْسٍ مَعْصُومَةٍ مُتَقَوِّمَةٍ او هغه د معصوم قيمت لرونکي نفس قتلول دي وَالْعَفْوُ لَمْ يَتَنَاوَلْهُ بِصَرِيحِهِ او عفوا صراحتاً قتل لره شامله نه ده لِأَنَّهُ عَفَا عَنِ الْقَطْعِ ځکه چې هغه [مقطوع اليد] قطع معاف کړې ده وَهُوَ غَيْرُ الْقَتْلِ او قطع له قتل څخه بغير ده [يعني قطع قتل نه ده] وَبِالسِّرَايَةِ تَبَيَّنَ أَنَّ الْوَاقِعَ قَتْلٌ او د سرايت په وجه دا خبره څرګنده سوه چې کوم شی واقع سوی وو هغه قتل دی وَحَقُّهُ فِيهِ او د مقطوع اليد حق په همدې قتل کې دی وَنَحْنُ نُوجِبُ ضَمَانَهُ او موږ هم د دې قتل ضمان واجبوو وَكَانَ يَنْبَغِي أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ او مناسب خو دا وه چې قصاص واجب سوي وای وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دی لِأَنَّهُ هُوَ الْمُوجَبُ لِلْعَمْدِ ځکه همدا قصاص د قتل عمد موجب دی إِلَّا أَنَّ فِي الِاسْتِحْسَانِ تَجِبُ الدِّيَةُ خو استحساناً ديت واجبيږي لِأَنَّ صُورَةَ الْعَفْوِ أَوْرَثَتْ شُبْهَةً ځکه د معافي صورت شبهه پيدا کړه وَهِيَ دَارِئَةٌ لِلْقَوَدِ او شبهه د قصاص دفع کونکې [او ساقطونکې] ده وَلَا نُسَلِّمُ أَنَّ السَّارِيَ نَوْعٌ مِنَ الْقَطْعِ او موږ دا خبره نه تسليموو چې ساري د قطع يو قسم دی وَأَنَّ

| |
|---|
| سَرايَةَ صِفَةُ لَهُ او نه دا [تسليمو] چي سرايت د قطع صفت دی بَلِ السَّارِيْ قَتْلٌ مِنَ الْاِبْتِدَاءِ بلکې ساري [سرايت کونکی] له شروع څخه قتل دی وَكَذَا لَا مُوْجَبَ لَهُ مِنْ حَيْثُ كَوْنِهِ قَطْعًا او همدارنګه قطع اليد لره د قطع کېدلو په حيثيت سره [اوس] هيڅ موجب نسته فَلَا يَتَنَاوَلُهُ الْعَفْوُ نو ځکه قطع لره به معافي شامله نه وي بِخِلَافِ الْعَفْوِ عَنِ الْجِنَايَةِ په خلاف د جنايت معاف کولو لِأَنَّهُ اِسْمُ جِنْسٍ ځکه چي جنايت اسم جنس دی وَبِخِلَافِ الْعَفْوِ عَنِ الشَّجَّةِ وَمَا يَحْدُثُ مِنْهَا او په خلاف د سر د زخم او د هغه څه د معاف کولو کوم چي له دې زخم څخه پېښ سي لِأَنَّهُ صَرِيْحٌ فِي الْعَفْوِ عَنِ السِّرَايَةِ وَالْقَتْلِ ځکه دا معافي د سرايت او قتل په معاف کولو کي صريح ده [يعني دا صراحتاً د سرايت او قتل هر څه معاف کول دي]. |

**اللغات**: ﴿تحقق﴾ د تفعل د باب ماضي ده: موجودېدل او ثابتېدل. ﴿معصومة﴾ د ضرب د باب مفعول دی: بې جرمه. محفوظ (د حفاظت حقدار). ﴿متقومة﴾ د تفعل د باب مفعول دی: قيمت لرونکی. قيمتداره. ﴿ينبغي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: مناسب ده. پکار ده.

**تشريح**: په مخکنۍ مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي دلته قاطع قصور واره دی او د هغه له طرفه د ضمان سبب ثابت سوی دی: ځکه هغه يو معصوم متقوم نفس قتل کړی دی. نو د قاعدې مطابق خو پر هغه قصاص واجبېدل پکار دي لکه څرنګه چي د قياس همدا تقاضا ده: ځکه په قتل سره ضمان واجبيږي. خو بيا هم استحساناً دلته مونږ ځکه پر قاتل ديت واجب کړی دی: چي د مقطوع اليد له طرفه قطع معاف سوې ده او د دې معافي په وجه په قصاص کي شبهه پيدا سوه. نو ځکه د دغه شبهې په وجه قصاص خو به معاف کيږي (ځکه په شبهې سره قصاص ساقطيږي) لېکن ديت به نه معاف کيږي. ځکه کوم شی چي معاف کړی سوی دی يعني قطع. دا د هغه شي غير دی کوم چي متحقق سوی دی. يعني مقطوع اليد قطع معاف کړې ده او دلته قتل متحقق سوی دی (چي مقطوع اليد مړ سوی دی). نو ښکاره ده چي د قطع په معافي سره به قتل نه معاف کيږي. ځکه دلته د قطع معافي صراحتاً د قتل معافي لره شامله نه ده. حالانکي د مقطوع اليد حق په قتل کي دی. نو ځکه هغه ته به د قتل په عوض کي ديت خامخا ورکول کيږي.

ولا نسلم إلخ: دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب دی چي عفو عن القطع دوی عفو عن القتل ګرځولې ده: د جواب حاصل دا دی چي عفو عن القطع عفو عن القتل نه ده او دا څنګه کېدلای سي!

حالانکي دلته زخم ترمرګه پوري سرايت کړی دی او ساري ګرځېدلی دی او ساري خو نه د قطع يو قسم دی او نه خاص د قطع صفت دی، بلکي ساري جلا او مستقل يو قسم دی او تر قطع لاندي داخل او شامل نه دی، نو صاحبين رَحِمَهُمَا الله چي ساري د قطع قسم ګڼي او عفو عن القطع دوی عفو عن القتل ګرځوي دا مورږ نه تسليموو، لهذا د قطع په معافی سره به قتل نه معاف کيږي، بلکي د قتل په عوض کي به پر قاطع قاتل ديت خامخا واجب وي.

بخلاف العفوعن الجناية إلخ: دا هم صاحبينو رَحِمَهُمَا الله ته جواب دی چي دوی د جنايت معافي په مثال کي پېش کړې ده، نو فرمايي چي دا هم صحيح نه دي؛ ځکه جنايت اسمِ جنس دی کوم چي د جنايت او جرم ټولو اقسامو لره شامل دی برابره ده هغه جنايت ساريه وي او که جنايت مقتصره وي، لهذا د جنايت معافي خو به د هغه ټولو قسمونو لره شامليږي، لېکن د قطع معافي به د قتل معافی لره نه شامليږي؛ ځکه په قطع او قتل کي هيڅ مناسبت او مطابقت نسته.

د دې په خلاف که مقطوع اليد په دې الفاظو معافي کړې وي چي زه د قاطع قطع يا زخم او له دغه قطع يا زخم څخه پېښېدونکي هر څه معاف کوم، نو په دې صورت کي د قطع او زخم سره قتل هم معاف کيږي؛ ځکه هغه صراحتاً د هر څه معافي کړې ده او دا معافي ساري او غيرِ ساري دواړو لره شامله ده. (احسن الهدايه)

## په مذکوره صورت که که قطع خطاءً وي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ كَانَ الْقَطْعُ خَطَأً او که چيري قطع [د لاس پرېکول] په خطاء سره سوي وي فَقَدْ أَجْرَاهُ مَجْرَى الْعَمَدِ فِي هٰذِهِ الْوُجُوْهِ وِفَاقًا وَخِلَافًا نو هغه امام محمد رَحِمَهُ الله په دې ټولو اتفاقي او اختلافي صورتونو کي د عمد قائم مقام ګرځولی دی أَذِنَ بِذٰلِكَ إِطْلَاقُهُ او د دې خبر ورکړی دی د امام محمد رَحِمَهُ الله اطلاق [يعني د جامع صغير مخکينی مطلق عبارت همدا ښيي] إِلَّا أَنَّهُ إِنْ كَانَ خَطَأً خو که قطع خطاءً وي فَهُوَ مِنَ الثُّلُثِ نو معافي به [د مال] له درېيمي حصې څخه وي وَإِنْ كَانَ عَمَدًا او که قطع عمداً وي فَهُوَ مِنْ جَمِيْعِ الْمَالِ نو معافي به له ټوله مال څخه وي لِأَنَّ مُوْجَبَ الْعَمَدِ الْقَوَدُ ځکه چي د عمد موجب قصاص دی وَلَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقُّ الْوَرَثَةِ او د قصاص سره د وارثانو حق نه متعلق کيږي لِمَا أَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ ځکه چي قصاص مال نه دی فَصَارَ كَمَا إِذَا أَوْصٰى بِإِعَارَةِ أَرْضِهِ نو داسي سو لکه څوک چي وصيتْ وکړي د خپلي ځمکي د عاريتاً ورکولو [چي زما ځمکه فلانکي ته په

عاريت ورکړئ!] أَمَّا الْخَطَأُ فَمُوْجَبُهُ الْمَالُ او کوم چي خطاء ده نو د هغه موجب مال دی وَحَقُّ الْوَرَثَةِ يَتَعَلَّقُ بِهِ او د مال سره د وارثانو حق متعلق کيږي فَيُعْتَبَرُ مِنَ الثُّلُثِ نو ځکه [د مال] له دريمي حصې څخه به معافي معتبره وي.

**اللغات**: ﴿الوجوه﴾ جمع د وَجْهٌ ده، د دې يوه معنیٰ ده: صورت. ﴿وفاقًا﴾ په اتفاقي توګه، بالاتفاق. ﴿أَذِن﴾ د سمع د باب ماضي ده، د دې په صله کي چي باء ذکر سي نو معنیٰ يې ده: خبر ورکول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کوم تفصيلات چي مخکي بيان سول. د هغوی تعلق د عمداً قطع اليد سره دی، لېکن که قاطع خطاءً د يو چا لاس پرېکړی وي، نو امام محمد رَحِمَهُ الله هغه هم په مخکيني ټولو صورتونو کي د حکم په اعتبار د عمداً قطع سره لاحقه کړې ده او د عمداً قطع اليد احکام او مسائل ستاسي مختنه ذکر سول. او خطاءً قطع د عمداً قطع سره ځکه لاحق کړل سوې ده چي امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي قطع د عمد او خطاء له وصف څخه مطلق ذکر کړې ده چي "ومن قطع يد رجل فعفا المقطوعة يده إلخ" (په دې کي د عمد او خطاء هيڅ قيد نسته)، نو ځکه مونږ هم په ټولو صورتونو کي خطاء د عمد سره لاحقه کړې ده او دواړه مو متحدُ الاحکام ګرځولي دي. خو د ديت واجبېدلو په هکله په عمد او خطاء کي څه فرق دی او هغه دا دی چي که قطع اليد خطاءً وي او بيا مقطوع اليد قطع معاف کړي، نو دا معافي د مال له ثلث (دريمي حصې) څخه معتبره ده. او که قطع اليد عمداً وي او مقطوع اليد معافي وکړي، نو دا معافي له ټوله مال څخه معتبره ده؛ ځکه د عمد حکم او موجب قصاص دی او د قصاص سره د وارثانو حق نه متعلق کيږي؛ ځکه قصاص مال نه دی او د وارثانو حق د مال سره متعلق کيږي، نو ځکه د عمد په صورت کي به معافي له ټوله مال څخه معافي وي. د دې مثال دا دی لکه يو څوک چي وصيت وکړي چي زما ځمکه دي فلانکي ته عاريتاً ورکول سي. نو دا وصيت په ټوله ځمکه کي نافذيږي؛ ځکه د عاريت په صورت کي د ځمکي منفعت ورکول مقصود دي، نه ځمکه ورکول (يعني د عاريت مقصد دا وي چي مستعير له هغه څخه څو وخت نفع واخلي او بيرته يې واپس کړي). لهذا دا مال (ځمکه) ورکول نه دي. نو ځکه په ټوله ځمکه کي به وصيت نافذيږي. د دې په خلاف که هغه داسي وصيت وکړي چي زما ځمکه دي فلانکي ته ورکول سي. نو بيا دا وصيت د ځمکي په ثلث (دريمه حصه) کي نافذيږي؛ ځکه چي اوس موصیٰ لهٗ ته ځمکه په ملکيت کي ورکول کيږي او ځمکه مال ده او د مال سره د وارثانو حق متعلق وي، لهذا اوس به د ځمکي سره د وارثانو حق متعلق وي او وصيت به د هغې په ثلث کي نافذيږي. نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم دي چي د عمداً قطع موجب قصاص دی او قصاص مال نه دی. نو ځکه په دې

صورت کې به معافي په ټوله مال کې نافذيږي. او د خطاءً قطع موجب ديت دی او ديت مال نه دی. لهذا د هغه سره به د وارثانو حق متعلق وي او په دې صورت کې به معافي د مال په ثلث کې نافذيږي.

## د لاس پرېکونکې ښځې د لاس پر ديت د نکاح کولو حکم

قَالَ: وَإِذَا قَطَعَتِ الْمَرْأَةُ يَدَ رَجُلٍ فرمايي: او کله چې ښځه د يو سړي لاس پرېکړي فَتَزَوَّجَهَا عَلَى يَدِهِ بيا دا سړی [مقطوع اليد] د هغې [قاطعه ښځې] سره د خپل لاس په عوض کې نکاح وکړي ثُمَّ مَاتَ بيا دا سړی مړ سي فَلَهَا مَهْرُ مِثْلِهَا نو د ښځې لپاره خپل مهرِ مثل دی وَعَلَى عَاقِلَتِهَا الدِّيَةُ او د هغې پر عاقله وو ديت واجب دی إِنْ كَانَ خَطَأً که قطع خطاءً وي وَإِنْ كَانَ عَمَدًا او که قطع عمداً وي فَفِيْ مَالِهَا نو بيا د ښځې په مال کې [ديت واجب] دی وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی لِأَنَّ الْعَفْوَ عَنِ الْيَدِ إِذَا لَمْ يَكُنْ عَفْوًا عَمَّا يَحْدُثُ مِنْهُ عِنْدَهُ ځکه کله چې د لاس معاف کول د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه څه معاف کول نه دي کوم چې له قطع څخه پېښېدونکي وي فَالتَّزَوُّجُ عَلَى الْيَدِ لَا يَكُوْنُ تَزَوُّجًا عَلَى مَا يَحْدُثُ مِنْهُ نو پر لاس نکاح کول به پر هغه څه نکاح کول نه وي کوم چې له قطع څخه پېښ سي [يا په بله وينا دا چې کله د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د مقطوع لاس په معاف کولو کې د هغه شي معافي داخله نه ده کوم چې د قطع په وجه پېښ سي (يعني قتل وغيره) نو د لاس په عوض کې نکاح کول به د هاغه شي په عوض کې نکاح کول نه وي].

**اللغات:** ﴿تزوجَ﴾ د تفعل د باب ماضي ده: نکاح کول، واده کول. ﴿عاقلة﴾ متعلقين او خاندان والا.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښځه د يو سړي لاس پرېکړي، نو پر دې ښځې د هغه سړي د لاس ضمان او ديت واجب دی. اوس که هغه سړی (مقطوعُ اليد) د همدغه ښځې سره نکاح وکړي او خپل د پرېکړل سوي لاس ضمان او ديت (کوم چې پر ښځې واجب دی) په مهر کې وټاکي. نو دا نکاح صحيح او جائز ده او پر ښځې چې د قطع اليد کوم ضمان واجب دی. دا د هغې د مهر عوض ګرځي. لېکن که تر نکاح وروسته د همدې قطع په وجه سړی مړ سي. نو څرنګه چې اوس د ښځې قطع د سرايت کولو په وجه په قتل بدله سوه نو ځکه په دې صورت کې د لاس ضمان کوم چې مهر ټاکل سوی وو. هغه باطليږي او نکاح بغير له مهره ګرځي او څرنګه چې له مهر ذکر کولو څخه بغير هم نکاح صحيح کيږي او په هغه صورت کې مهر مثل واجبيږي. نو ځکه په دې مسئله کې به هم دا نکاح صحيح کيږي او د ښځې لپاره به مهرِ مثل واجب وي. او د ښځې قطع اليد کوم چې په قتل بدله

سوې ده هغه که خطاءً قطع وي. نو د هغې پر عاقله وو دیت واجبیږي او که عمداً قطع وي. نو بیا پر ښځي په خپل مال کي دیت واجبیږي.

وهذا عند أبي حنيفة إلخ: فرمایي دا ټوله تفصیل د تاج الفقهاء حضرت امام اعظم رَحِمَهُ الله په نېز دی: ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز عفو عن القطع عفو عن القتل نه ده. نو ځکه د مقطوع لاس پر ضمان چي کومه نکاح سوې ده. دا نکاح به د هغه شي په عوض کي معتبره نه وي کوم چي له قطع څخه پیښ سوی دی یعني قتل (په لنډه توګه دا چي کله عفو عن القطع د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز عفو عن القتل نه ده نو د قطع الید پر ضمان چي کومه نکاح سوې ده. هغه نکاح به د قتل پر ضمان معتبره نه وي). بلکي هغه به صرف د لاس پر ضمان منحصره وي (او د قتل ضمان به د ښځي مهر ګرځول صحیح نه وي). او په مذکوره مسئله کي د مقطوع الید یعني د خاوند په مرګ سره تاکل سوی مهر باطل سو. نو ځکه د ښځي لپاره به مهر مثل واجبیږي لېکن د هغه سره پر ښځي د قتل دیت هم واجبیږي. (احسن الهدایه)

## د پورتنی مسئلي نور وضاحت

ثُمَّ الْقَطْعُ إِذَا كَانَ عَمَدًا بیا که قطع [د لاس پرېکول] قصداً سوي وي يَكُونُ هٰذَا تَزَوُّجًا عَلَى الْقِصَاصِ فِي الطَّرَفِ نو دا به د طرف [اندام] پر قصاص نکاح کول وي وَهُوَ لَيْسَ بِمَالٍ حال دا چي قصا مال نه دی فَلَا يَصْلُحُ مَهْرًا نو ځکه قصاص به د مهر جوړېدلو صلاحیت نه لري لَا سِيَّمَا عَلَى تَقْدِيرِ السُّقُوطِ په ځانګړې توګه د ساقطېدلو پر تقدیر [یعني خصوصاً د قصاص ساقطېدلو په صورت کي] فَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ نو ځکه مهر مثل به واجب وي وَعَلَيْهَا الدِّيَةُ فِي مَالِهَا او پر ښځي به په خپل مال کي دیت واجب وي لِأَنَّ التَّزَوُّجَ وَإِنْ كَانَ يَتَضَمَّنُ الْعَفْوَ ځکه نکاح کول که څه هم معافی لره متضمن دي عَلَى مَا نُبَيِّنُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ د هغه تفصیل مطابق چي موږ به یې ان شاء الله [وروسته] بیان کړو لٰكِنْ عَنِ الْقِصَاصِ فِي الطَّرَفِ فِي هٰذِهِ الصُّورَةِ لېکن هغه په دې صورت کي د طرف [اندام] له قصاص څخه معافي ده [یعني نکاح کول که څه هم معافی لره متضمن دي خو هغه معافي په دې (د عمد) په صورت کي قصاص فی الطرف لره متضمنه ده] وَإِذَا سَرَىٰ او کله چي قطع سرایت وکړي تَبَيَّنَ أَنَّهُ قَتْلُ النَّفْسِ نو دا خبره څرګنده سوه چي دا خو د نفس قتلول دي [قطع الید نه ده] وَلَمْ يَتَنَاوَلْهُ الْعَفْوُ او معافي قتل لره شامله نه وه فَتَجِبُ الدِّيَةُ نو ځکه دیت به واجب وي وَتَجِبُ فِي مَالِهَا لِأَنَّهُ عَمَدٌ او د ښځي په مالک

کي به [ځکه] واجب وي ځکه چي دا قطع عمد دی وَالْقِيَاسُ أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ او قياس دا دی چي قصاص واجب سي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي [مخکي] موږ دا بيان کړه وَإِذَا وَجَبَ لَهَا مَهْرُ الْمِثْلِ وَعَلَيْهَا الدِّيَةُ او کله چي د ښځي لپاره مهرِ مثل واجب سو او پر ښځي ديت واجب سو تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ إِنْ كَانَا عَلَى السَّوَاءِ. نو مقاصه [تبادله] به واقع کيږي که چيري ديت او مهرِ مثل سره برابر وي وَإِنْ كَانَ فِي الدِّيَةِ فَضْلٌ او که په ديت کي زياتوب وي تَرُدُّهُ عَلَى الْوَرَثَةِ نو ښځه به هغه زياتوب [زائد مقدار] د خاوند وارثانو ته واپس کوي وَإِنْ كَانَ فِي الْمَهْرِ فَضْلٌ او که په مهر کي زياتوب وي يَرُدُّهُ الْوَرَثَةُ عَلَيْهَا نو د خاوند وارثان به هغه ښځي ته واپس کوي وَإِذَا كَانَ الْقَطْعُ خَطَأً او کله چي قطع خطاء وي يَكُونُ هٰذَا تَزَوُّجًا عَلَى أَرْشِ الْيَدِ نو دا به د لاس پر ديت نکاح کول وي وَإِذَا سَرَىٰ إِلَى النَّفْسِ خو کله چي قطع د نفس وطرف ته سرايت وکړی تَبَيَّنَ أَنَّهُ لَا أَرْشَ لِلْيَدِ نو دا خبره څرګنده سوه چي لاس لره هيڅ ديت نه وو وَأَنَّ الْمُسَمّٰى مَعْدُومٌ او دا [خبره څرګنده سوه] چي ټاکل سوی مهر [ديت] معدوم دی فَيَجِبُ مَهْرُ الْمِثْلِ نو ځکه مهرِ مثل به واجب وي كَمَا إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى مَا فِي الْيَدِ لکه کله چي سړی د ښځي سره نکاح وکړي پر هغه شي کوم چي په لاس کي دی [مثلاً سړی ووايي چي زما په لاس کي کوم شی دی هغه زما له طرفه مهر دی] وَلَا شَيْءَ فِيهَا حال دا چي په لاس کي هيڅ شی نه وي وَلَا يَتَقَاصَّانِ او [دلته] به ديت او مهرِ مثل نه سره مقاصه کيږي لِأَنَّ الدِّيَةَ تَجِبُ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِي الْخَطَإِ وَالْمَهْرُ لَهَا ځکه [دلته] په قطعِ خطاء کي ديت پر عاقله وو واجب دی او مهرِ مثل د ښځي لپاره واجب دی.

**اللغات:** ﴿الطرف﴾ طرف، اندام، عضو. ﴿لا سيما﴾ خصوصاً، په ځانګړې توګه. ﴿يتضمن﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ضمناً شاملېدل. ﴿المقاصة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي سره بدلول، يو شی د بل سره مقابله کول، ادل بدل کول (مثلاً پر زيد د خالد لس درهمه قرض باندي وي. او بيا د خالد هم پر زيد لس درهمه قرض باندي سي، نو دوی خپل قرضونه سره ادل بدل کړي. دې ته مقاصه وايي). تبادله کول. ﴿فضل﴾ اضافه او زياتوب (اضافي او زائد مقدار).

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چي مخکي کومه مسئله بيان سوه. که په هغه کي ښځي عمداً د سړي لاس پرېکړی وي، نو پر هغه ښځي خو د لاس قصاص واجب دی. اوس که د دې قصاص په عوض کي مقطوع اليد د قاطعه ښځي سره نکاح وکړي، نو څرنګه چي قصاص د مال نه کېدلو په وجه د مهر او د بضع د عوض جوړېدلو صلاحيت نه لري، که څه هم قصاص موجود وي او ساقط سوی نه وي او څرنګه چي دلته قصاص ساقط سوی دی (د مهر ګرځولو په وجه). نو اوس به په درجه اولیٰ هغه د مهر جوړېدلو قابل نه وي، نو ګواکي دلته په نکاح کي د مهر ټاکل (تسميه) صحيح نه سوه (يا ګواکي مهر نه وټاکل سو) او په داسي صورت کي د ښځي لپاره مهر مثل واجبيږي. نو ځکه په دې مذکوره صورت کي به هم د ښځي لپاره مهر مثل ثابت او واجب وي.

او پر ښځي په خپل مال کي د مقتول خاوند د وارثانو لپاره ديت واجبيږي؛ ځکه دلته که څه هم مقطوع اليد (مقتول خاوند) د قطع په عوض کي نکاح کړې ده او دغه نکاح د دې ښځي د جرم معافی لره متضمنه او شامله ده، لېکن بيا هم پر ښځي ديت ځکه واجب دی چي کوم شي لره دا معافی شامله ده هغه دلته معدوم دی او کوم شی چي ثابت او متحقق هغه لره شامله نه ده. يا په بله وينا دا چي خاوند قطع معاف کړې ده حالانکي د سرايت کولو په وجه قطع په قتل بدله سوې ده (يعني د قطع له امله خاوند قتل سوی دی) او خاوند خو قتل نه دی معاف کړی دی، نو ځکه د قتل په وجه به پر ښځي ديت واجب وي، او څرنګه چي دا د عمد مسئله ده (يعني ښځي عمداً د هغه لاس پرېکړی دی)، نو ځکه دا ديت به د ښځي په خپل مال کي واجب وي.

والقياس إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله ښځي عمداً د سړي لاس پرېکړی دی او د هغه په وجه سړی مړ سوی دی، نو د قياس او عقل خو مطابق پر ښځي قصاص واجبېدل پکار دي؛ ځکه عمد د قصاص موجب دی، لېکن بيا هم دلته پر ښځي قصاص ځکه نه دی واجب کړی سوی چي د سړي له طرفه معافي سوې ده يعني هغه قطع معاف کړې وه. نو د دغه معافی په وجه د قصاص په واجبېدلو کي شبهه پيدا سوه. او تاسي ته ښه معلومه ده چي "الحدود تندرئ بالشبهات". صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په "على ما بيناه" سره همدې طرف ته اشاره کړې ده.

وإذا وجب لها مهر المثل إلخ: فرمايي کله چي دا خبره ثابته سوه چي په دې مسئله کي د قاطعه ښځي لپاره مهر مثل واجب دی او پر هغې د مقتول خاوند ديت واجب دی، نو اوس به دې ته کتل کېږي چي د مهر مثل او ديت مقدار سره برابر دی او که يو له بل څخه کم و زيات دي، که چيري د دواړو مقدار سره برابر وي مثلاً د دې ښځي مهر مثل پنځه زره درهمه وي او ديت هم دغومره وي، نو په دې صورت

کي به مقاصه او تبادله کیږي يعني مهر مثل د ديت او ديت د مهر مثل بدل ګرځي او حساب برابر او ختميږي (يا په بله وينا دا چي ښځه به د واجب ديت په بدله کي خپل مهر مثل د مقتول خاوند وار ثانو ته پرېږدي او هغوی به د واجب مهرمثل په بدله کي ديت و قاطعه ښځي ته پرېږدي نو په دې توګه به حساب سره برابر او ختم سي).
او که د ښځي مهر مثل کم وي او ديت زيات وي. نو ښځه به هغه زائد مقدار د خاوند وار ثانو ته ورکوي. او که ديت کم وي او مهر مثل زيات وي. نو د ديت له مقدار څخه بغير ما بقي مهر مثل به د خاوند وار ثان وښځي ته ورکوي. دا ټوله تفصيل هغه وخت دی کله چي ښځي د سړي لاس عمداً پرېکړی وي.

لېکن که خطاءً يې پرېکړی وي او بيا سړي د دغه ښځي سره نکاح کړې وي. نو څرنګه چي په دې صورت کي پر ښځي قصاص واجب نه دی بلکي د لاس ارش (ديت) پرې واجب دی. نو ځکه دا نکاح به د ارش په عوض کي وي. لېکن کله چي زخم سرايت وکړی او د سړي د مرګ سبب وګرځېدی نو دا ښکاره سوه چي د لاس په عوض کي ارش واجب نه وو. او څرنګه چي همدا ارش په مهر کي ټاکل سوی وو او دلته ارش معدوم سو. نو ښکاره ده چي مهر مسمىٰ (ټاکل سوی مهر) هم معدوم سو. لهذا اوس به د ښځي لپاره مهر مثل واجب وي (ځکه په داسي صورت کي مهر مثل واجبيږي). د دې مثال داسي دی لکه يو سړی چي د ښځي سره نکاح وکړي او ووايي چي کوم څه زما په لاس کي دي هغه مهر دی او ښځه يې ورسره ومني. لېکن د هغه په لاس کي هيڅ شی نه وي. نو څرنګه چي دلته هم مهر مثل واجبيږي ځکه مسمىٰ يعني په مهر کي ټاکل سوی شی معدوم دی. نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم مهر مسمىٰ معدوم دی. نو ځکه مهر مثل به واجب وي. او څرنګه چي دا د خطاء مسئله ده (يعني ښځي خطاء لاس ورپرېکړی دی). نو ځکه د خاوند د مړ کېدلو په عوض کي به د دې ښځي پر عاقله وو ديت واجب وي. نه پر ښځي په خپل مال کي. په همدې وجه به دلته مقاصه هم نه کیږي: ځکه دلته مهر مثل خو ښځي ته حاصل سوی دی او ديت د هغي پر عاقله وو واجب سوی دی او ښکاره ده چي د مهر مثل او ديت مقاصه او تبادله همغه وخت کېدلای سي کله چي ديت هم پر ښځي واجب وي.

## د پورتني مسئلي يو بل صورت

قَالَ: وَلَوْتَزَوَّجَهَا عَلَى الْيَدِ وَمَا يَحْدُثُ مِنْهَا فرمايي: او که مقطوعُ اليد د قاطعه ښځي سره پر لاس او له هغه څخه پر پېښېدونکي څه باندي نکاح وکړي أَوْعَلَى الْجِنَايَةِ يا پر جنايت [نکاح ور سره وکړي] ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذٰلِكَ بيا هغه [مقطوع اليد] د همدې قطع په وجه مړ سي وَالْقَطْعُ عَمَدٌ او قطع عمداً وي فَلَهَا مَهْرُمِثْلِهَا نو د ښځي لپاره خپل مهر مثل دی لِأَنَّ هٰذَا تَزَوُّجٌ عَلَى الْقِصَاصِ ځکه چي دا پر قصاص نکاح کول دي وَهُوَلَا يَصْلُحُ مَهْرًا او قصاص د مهر جوړېدلو صلاحيت نه لري فَيَجِبُ مَهْرُ

الْمِثْلِ نو ځکه مهر مثل به واجب وي عَلَىٰ مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ [مخکې] بيان کړی وَصَارَ كَمَا إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَىٰ خَمْرٍ أَوْ خِنْزِيرٍ او دا داسې سوه لکه د ښځې سره چې پر شرابو يا پر خنزير نکاح وکړي وَلَا شَيْءَ عَلَيْهَا او پر ښځې هيڅ شی واجب نه دی لِأَنَّهُ لَمَّا جَعَلَ الْقِصَاصَ مَهْرًا ځکه کله چې سړي قصاص مهر وټاکلی فَقَدْ رَضِيَ بِسُقُوطِهِ بِجِهَةِ الْمَهْرِ نو هغه د مهر په وجه د قصاص په ساقطېدلو راضي سو فَيَسْقُطُ أَصْلًا نو قصاص به بالکليه [له منځه] ساقطيږي كَمَا إِذَا أَسْقَطَ الْقِصَاصَ بِشَرْطِ أَنْ يَصِيرَ مَالًا لکه کله چې څوک پر دې شرط قصاص ساقط کړي چې هغه مال وګرځي فَإِنَّهُ يَسْقُطُ أَصْلًا نو [په دې صورت کې هم] قصاص بالکليه ساقطيږي.

**اللغات**: ﴿جهة﴾ اړخ، علت او سبب. جهة المهر: د مهر په وجه او اعتبار سره.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که ښځې عمداً د سړي لاس پرېکړی وي. لېکن بيا سړي د هغه ښځې سره په دې الفاظو نکاح کړې وي چې "د دغه قطع د ضمان (ديت) او له دغه قطع څخه د پېښېدونکي هر شي د ضمان په عوض کې زه ستا سره نکاح کوم" يا "زه د دې جنايت په عوض کې نکاح درسره کوم" (يا په بله وينا دا چې قطع و مايحدث منه مهر وټاکي يا جنايت مهر وټاکي) او بيا د همدې قطع په وجه خاوند مړ سي، نو په دې صورت کې به هم ښځې ته مهرِ مثل ورکول کېږي: ځکه کله چې د ښځې د قطع زخم په خاوند کې سرايت وکړی او خاوند مړ سو، نو پر ښځې قصاص واجب سو، خو خاوند د "قطع و مايحدث منه" په عوض کې په نکاح کولو سره ګواکي پر قصاص نکاح کړې ده، او قصاص مال نه دی، لهذا د هغه مهر ټاکل صحيح نه سوه. نو ځکه اوس به د ښځې لپاره مهرِ مثل واجب وي. د دې مثال داسې دی لکه يو څوک چې د شرابو يا خنزير په عوض کې د ښځې سره نکاح وکړي، نو مهرِ مثل واجبيږي او ښځې ته به مهرِ مثل ورکول کېږي، ځکه شراب او خنزير دواړه د مسلمان په حق کې مال نه دي، نو په مهر کې د هغوی ټاکل صحيح نه سوه (او د ټاکل سوي مهر د نه صحيح کېدلو په صورت کې مهرِ مثل واجبيږي)، نو همداسې په مذکوره مسئله کې هم د مال نه کېدلو په وجه په مهر کې د قصاص ټاکل صحيح نه سوه. نو ځکه دلته به هم قاطعه ښځې ته مهرِ مثل ورکول کېږي.

ولاشيء عليها [الخ]: فرمايي چې په مذکوره مسئله کې ښځې ته خو مهرِ مثل حاصليږي لېکن پر هغې د مقتول خاوند په عوض کې هيڅ شی هم نه واجبيږي، نه قصاص پرې واجبيږي او نه ديت: ځکه کله چې خاوند قصاص په مهر کې وټاکلی، نو خاوند د هغه په ساقطېدلو او ختمېدلو راضي سو او په

خپله خوښه يې خپل قصاص ساقط کړی، او د قصاص حکم دا دی چې کله يو وار ساقط سي نو بيا له بېخه ساقطيږي او د بدل وطرف ته نه ساقطيږي، نو ځکه دلته له بېخه قصاص ساقط سوی دی، لهذا اوس خو نه قصاص واجب دی او نه ديت او ضمان واجب دی. د دې مثال داسې دی لکه يو څوک چې ووايي زه پر دې شرط قصاص ساقطوم چې هغه مال وګرځي (يا په بله وينا دا چې په دې شرط قصاص معاف کوم چې هغه به مال ګرځول کيږي)، نو په دې صورت کي هم بالکليه قصاص ساقطيږي؛ ځکه د دې شرط مفهوم او مطلب دا دی چې وينه او خون مال وګرځي، او وينه په هيڅ آسماني دين کي مال نه ده، لهذا دا شرط باطل دی او کله چې شرط باطل سو نو له څه شرط څخه بغير قصاص له بېخه ساقط او معاف وګرځېدی، نو همداسې په مذکوره مسئله کي هم قصاص له بېخه ساقطيږي او د قصاص په عوض کي هيڅ شی نه واجبيږي.

*

## په پورتنۍ مسئله کي د خطاءً قطع په صورت کي د مهرِ مثل د ساقطېدلو بيان

وَإِنْ كَانَ خَطَأً او که قطعُ اليد خطاءً وي يُرْفَعُ عَنِ الْعَاقِلَةِ مَهْرُ مِثْلِهَا نو له عاقله وو څخه به د د ښځي د مهرِ مثل په مقدار ساقطول کيږي وَلَهُمْ ثُلُثُ مَا تَرَكَ وَصِيَّةً او کوم مقدار چې [د مهرِ مثل تر مقدار پرته له ديت څخه] پاته سي نو هغه د عاقله وو لپاره وصيت دی لِأَنَّ هٰذَا تَزَوُّجٌ عَلَى الدِّيَةِ ځکه چې دا پر ديت نکاح کول دي وَهِيَ تَصْلُحُ مَهْرًا او ديت د مهر جوړېدلو صلاحيت لري إِلَّا أَنَّهُ يُعْتَبَرُ بِقَدْرِ مَهْرِ الْمِثْلِ مِنْ جَمِيعِ الْمَالِ خو دا چې د مهرِ مثل تر مقداره پوري به له ټوله مال څخه معافي معتبره وي لِأَنَّهُ مَرِيضٌ مَرَضَ الْمَوْتِ ځکه چې هغه د مرض الموت مريض دی وَالتَّزَوُّجُ مِنَ الْحَوَائِجِ الْأَصْلِيَّةِ او نکاح کول له حوائجِ اصليه وو څخه ده وَلَا يَصِحُّ فِي حَقِّ الزِّيَادَةِ عَلَى مَهْرِ الْمِثْلِ او له مهرِ مثل څخه د زياتوب [زائد مقدار] په حق کي به معافي صحيح نه وي لِأَنَّهُ مُحَابَاةٌ ځکه دا معافي اد خاوند له طرفه] محاباة ده فَيَكُونُ وَصِيَّةً نو محاباة به وصيت وي وَيُرْفَعُ عَنِ الْعَاقِلَةِ او له عاقله وو څخه به [ځکه] مهرِ مثل ساقطول کيږي لِأَنَّهُمْ يَتَحَمَّلُونَ عَنْهَا ځکه چې عاقله د ښځي له طرفه [د ديت] تحمل کوي [او د ښځي ديت اداء کوي] فَمِنَ الْمُحَالِ أَنْ تَرْجِعَ عَلَيْهِمْ بِمُوجَبِ جِنَايَتِهَا نو دا ناممکنه ده چې ښځه د خپل جنايت د موجب په هکله پر دوی رجوع وکړي وَهٰذِهِ الزِّيَادَةُ وَصِيَّةٌ لَهُمْ او دا زياتوب [زائد مقدار] د عاقله وو لپاره وصيت دی لِأَنَّهُمْ مِنْ أَهْلِ الْوَصِيَّةِ ځکه دوی د وصيت اهل

دي لِمَا أَنَّهُمْ لَيْسُوا بِقَتَلَةٍ ځکه چي دوی قاتلان نه دي فَإِنْ كَانَتْ تَخْرُجُ مِنَ الثُّلُثِ بيا که زياتوب [زائد مقدار] له ثلث څخه ووځي تَسْقُطُ نو زياتوب ساقطيږي وَإِنْ لَمْ تَخْرُجْ او که نه ووځي يَسْقُطُ ثُلُثُهُ نو د زياتوب [زائد مقدار] ثلث ساقطيږي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي كَذٰلِكَ الْجَوَابُ فِيْمَا إِذَا تَزَوَّجَهَا عَلَى الْيَدِ چي همداسي جواب [او حكم] دی په هغه صورت کي کله چي سړی د ښځي سره پر مقطوع لاس نکاح وکړي لِأَنَّ الْعَفْوَ عَنِ الْيَدِ عَفْوٌ عَمَّا يَحْدُثُ مِنْهُ عِنْدَهُمَا ځکه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د مقطوع لاس معاف کول د هغه څه هم معاف کول دي کوم چي له هغه څخه پيښږي فَاتَّفَقَ جَوَابُهُمَا فِي الْفَصْلَيْنِ نو ځکه په دواړو صوروتونو کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله جواب يو دی.

**اللغات**: ﴿تصلح﴾ د كَرُم د باب مضارع ده: صلاحيت لرل، قابل كېدل. ﴿الحوائج الاصلية﴾ اصلي حاجتونه، بنيادي ضروريات. ﴿محاباة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي چي ځيني يې دا دي: څوک په يو شي سره خاصول، ميلان ورته کول، ورکړه او عطيه. ﴿يتحملون﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: زغمل او برداشت کول، په خپله ذمه اخيستل (په خپله غاړه اخيستل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که ښځي خطاءً د سړي لاس پرېکړی وي او بيا سړي د "قطع و ما يحدث منه" په عوض کي د هغې سره نکاح کړې وي او بيا د همدې قطع په وجه سړی (خاوند) مړ سوی وي، نو په دې صورت کي د ښځي پر عاقله وو د مقتول خاوند ديت واجبيږي؛ ځکه د قطع د خطاءً کېدلو په وجه دا نکاح پر ديت سوې ده او ديت مال دی او د دې صلاحيت لري چي په مهر کي وټاکل سي (لکه مخکي چي ذکر سوه)، او دلته به خاوند د مرضُ الموت مريض شمارل کيږي (د قطع د سرايت کولو په وجه)، او قاعده دا ده چي د مرضُ الموت مريض که داسي کار وکړي کوم چي د هغه په حوائجِ اصليه وو کي داخل وي، نو هغه له ټوله مال څخه معتبر کيږي، يعني په داسي معامله کي هغه د روغ سړي په حکم کي دی، او کومه معامله چي له حوائجِ اصليه وو څخه نه وي، نو په داسي معامله کي هغه مريض الموت شمارل کيږي او د هغه تصرف په ثلث المال (د مال په دريمه حصه) کي نافذيږي يعني داسي معامله د وصيت په درجه ګرځي، او نکاح کول له حوائجِ اصليه وو څخه ده. نو د ښځي مهرِ مثل به له ټوله مال څخه معتبر وي.

لنوه دا چې دلته د ښځي پر عاقله وو ديت واجب سو. نو اوس به دې ته کتل کيږي چې د ښځي په مهر مثل او ديت کي څومره فرق دی؟ نو که د ښځي مهر مثل اووه زره درهمه وي او ديت لس زره درهمه وي. نو له عاقله وو څخه د مهر مثل (اووه زره درهمو) په اندازه ديت ساقطيږي او کوم درې زره درهمه چې باقي پاته دي، هغه هم ساقط او معاف کېدل پکار دي ځکه چې خاوند ټوله ديت په مهر کي تاکلې دی. لېکن له مهر مثل (اووه زره درهمو) څخه په زائد مقدار کي د خاوند تصرف د مريض الموت تصرف دی چې هغه به د مال په ثلث (دريمه حصه) کي جاري کيږي. لهذا که د دې مړه خاوند سره د ديت له مابقي درې زره درهمو څخه بغير نور مال نه وي، نو له دغه مابقي ديت څخه يو ثلث (دريمه حصه) يعني زر درهمه نور هم ساقطيږي. او پاته دوه زره درهمه د ښځي پر عاقله وو واجبيږي کوم چې به د خاوند وارثانو ته ورکوي. او که له دې مابقي درې زره درهمو څخه بغير د مړه خاوند په ميراث کي مثلاً شپږ زره درهمه نور وي، نو څرنګه چې په دې صورت کي د ميراث ټوله مال نهه زره درهمه دي چې د هغوی ثلث درې زره درهمه دی. نو ځکه په دې صورت کي دا مابقي درې زره درهمه هم له عاقله وو څخه ساقطيږي. (احسن الهدايه)

ولايصح في حق الزيادة إلخ: د دې حاصل دا دی چې له مهر مثل څخه په زائد مقدار کي معافي لره اعتبار نسته او صحيح نه ده؛ ځکه دا د خاوند له طرفه عطيه ده نو دا وصيت ګرځي او د هغه شمېر د خاوند له ميراث څخه کيږي او د وصيت په هکله مخکي ذکر سوه چې هغه په ثلث المال (د مال په دريمه حصه) کي نافذيږي. (احسن الهدايه)

ويرفع عن العاقلة إلخ: د دې حاصل دا دی چې په دغه مسئله کي خو د قتل خطاء ديت د ښځي پر عاقله وو واجب دی چې همدوی به يې اداء کوي. خو د ښځي د مهر مثل په مقدار له عاقله وو څخه ديت ساقطيږي (لکه څه مخکي چې ذکر سوه) او دا سقوط چې څرنګه چې د عاقله وو په حق کي نافذيږي. همداسي د قاطعه ښځي په حق کي هم هغه نافذيږي. لهذا وروسته دا ښځه له خپلو عاقله وو څخه د خپل مهر مثل په مقدار د مال مطالبه نه سي کولای: ځکه چې همدا عاقله د هغې له طرفه ديت اداء کونکي دي او په همدې ديت سره د هغې جرم معاف کيږي. نو دا څنګه کېدلای سيً چې دا ښځه له خپلو محسنينو څخه د خپل جرم بدل او عوض واخلي. نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې له عاقله وو څخه په پوره توګه د مهر مثل مقدار ساقطيږي.

او هغه مال کوم چې د مهر مثل له مقدار څخه زائد دی (مثلاً درې زره درهمه) هغه د مړه خاوند له طرفه د قاطعه ښځي د عاقله وو لپاره وصيت دی او دا وصيت صحيح دی: ځکه عاقله يعني نږدې قريبان او خاندان والا د وصيت اهل دي ځکه چې هغوی د خاوند قاتلان نه دي. اوس د دې زائد مقدار په هکله تفصيل دا دی چې که له هغه څخه بغير د خاوند په ميراث کي دومره مال وي کوم چې د هغه

(زائد مقدار) دوچنده وي يعني شپږ زره درهمه وي. نو د دې زائد مقدار سره هغه نهه زره درهمه کيږي او د هغه يو ثلث يعني درې زره ساقطيږي. او که له دې زائد مقدار څخه بغير د خاوند نور هيڅ مال نه وي. نو په دې صورت کې د همدې زائد مقدار يو ثلث يعني زر درهمه ساقطيږي او مابقي دوه زره به د خاوند وارثانو ته ورکول کيږي. همدا مضمون او مقصد صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د "فإن كانت تخرج من الثلث تسقط" څخه تر آخره پوري بيان کړی دی.

وقال أبويوسف إلخ: فرمايي مخکې چې موږ کوم د "وهذا عند أبي حنيفة" قيد لګولی دی او مذکوره تفصيل مو د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک ګرځولی دی. د هغه وجه دا ده چې په مذکوره دواړه صورتونو کې (يعني کله چې قطع اليد خطاءً وي او نکاح پر لاس [يعني د مقطوع لاس پر ديت] باندې سوې وي. يا قطع اليد خطاءً وي او نکاح پر لاس وما يحدث منه أو الجناية باندې سوې وي. نو په دې دواړو صورتونو کې) چې کوم فرق دی. هغه صرف د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی. کنې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دواړو صورتونو کې يو حکم دی. ځکه "عفو عن اليد" د دوی په نيز "عفو عما يحدث منه" لره هم متضمنه او شامله ده. (احسن الهدايه)

## د قطع اليد په صورت تر قصاص اخيستلو وروسته د مرګ بيان

قَالَ: وَمَنْ قُطِعَتْ يَدُهُ فرمايي: او د کوم کس لاس چې پرېکړل سي فَاقْتُصَّ لَهُ مِنَ الْيَدِ نو د هغه لپاره د لاس قصاص واخيستل سي ثُمَّ مَاتَ بيا هغه کس مړ سي فَإِنَّهُ يُقْتَلُ الْمُقْتَصُّ مِنْهُ نو له چا څخه چې [د لاس] قصاص اخيستل سوی دی هغه به قتلول کيږي لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّ الْجِنَايَةَ كَانَتْ قَتْلَ عَمْدٍ ځکه [د مرګ په وجه] دا خبره څرګنده سوه چې جنايت قتل عمد وو وَحَقُّ الْمُقْتَصِّ لَهُ الْقَوَدُ او [څرګنده سوه] چې د چا لپاره [د لاس] قصاص اخيستل سوی دی د هغه حق [د قتل] قصاص وو وَاسْتِيفَاءُ الْقَطْعِ لَا يُوجِبُ سُقُوطَ الْقَوَدِ او قطع اليد اخيستل [يعني لاس ور پرېکول] د قصاص ساقطېدل نه واجبوي كَمَنْ كَانَ لَهُ الْقَوَدُ إِذَا اسْتَوْفَى طَرَفَ مَنْ عَلَيْهِ الْقَوَدُ لکه هغه کس چې د هغه لپاره قصاص واجب وي کله چې هغه د من عليه القصاص طرف [اندام] واخلي وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ﷺ أَنَّهُ

يَسْقُطُ حَقُّهُ فِي الْقِصَاصِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چي د هغه [مقتص له] حق په قصاص کي ساقطيږي لِأَنَّهُ لَمَّا أَقْدَمَ عَلَى الْقَطْعِ ځکه کله چي ده [مقتص له] پر قطع اقدام وکړى فَقَدْ أَبْرَأَهُ عَمَّا وَرَاءَهُ نو ده مقتص منه [ماعليه القصاص] له قطع څخه بغير نور ټه څخه بري کړى وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّمَا أَقْدَمَ عَلَى الْقَطْعِ ظَنًّا مِنْهُ أَنَّ حَقَّهُ فِيهِ او موږ وايو: چي ده [مقتص له] په دې گومان سره پر قطع اقدام کړى دى چي د ده حق صرف په قطع کي دى وَبَعْدَ السِّرَايَةِ تَبَيَّنَ أَنَّهُ فِي الْقَوَدِ او تر سرايت وروسته دا خبره څرگنده سوه چي د ده حق په قصاص کي دى فَلَمْ يَكُنْ مُبْرِئًا عَنْهُ بِدُونِ الْعِلْمِ بِهِ نو دئ به له قصاص څخه [دمن عليه القصاص] بري کونکي نه وي د قصاص له علم [خبر] څخه بغير [يعني په قصاص له خبرېدو څخه بغير به مقتص لهٗ د قصاص معاف کونکى نه وي].

**اللغات**: ﴿اقتص﴾ د افتعال د باب ماضي ده: قصاص اخيستل. ﴿أقدم﴾ د افعال د باب ماضي ده: اقدام کول. وړانديتوب کول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دى: ترلاسه کول. اخيستل. ﴿مبرئ﴾ د افعال د باب فاعل دى: بري کونکى، معاف کونکى.

**تشريح**: اول دا څو اصطلاحات زده کړئ!: ① مُقْتَصّ مِنْه: له چا څخه چي (دلاس) قصاص اخيستل سوى وي (يعني قاطع)، ② مُقْتَصّ مِنْه: د چا لپاره چي (دلاس) قصاص اخيستل سوى وي (يعني مقطوع اليد)، ③ مَنْ لَهُ الْقَوَد: د چا لپاره چي پر بل چا (د قتل) قصاص واجب وي (يعني مقطوع اليد مقتول)، ④ مَنْ عَلَيْهِ الْقِصَاص: پر چا چي قصاص واجب وي (يعني قاطع قاتل وغيره).

**صورت د مسئلې**: دا دى چي زيد مثلاً د خالد لاس عمداً پرېکړى چي په دې وجه پر زيد قصاص واجب سو. لهذا د زيد (قاطع) لاس قصاصاً پرېکړل سو. بيا د خالد (مقطوع اليد) دلاس زخم سرايت وکړى او خالد مړ سو. نو اوس به زيد د خالد په قصاص کي قتلول کيږي؛ ځکه اوس معلومه سوه چي د خالد د قصاص حق په نفس کي دى (قود)؛ ځکه همدا قصاص د قتل عمد موجب دى او تر اوسه صرف د زيد لاس پرېنکړل سوى دى او په لاس پرېکېدلو سره دا قصاص نه ساقطيږي. نو ځکه اوس به له هغه (زيد) څخه قصاص اخيستل کيږي.

د دې مثال بالکل همداسي دى لکه حامد چي عمداً يو سړى قتل کړي چي د هغه په وجه پر حامد قصاص واجب سي. بيا د مقتول سړي ولي د حامد لاس يا بل اندام پرېکړي، نو په دې صورت کي له حامد څخه قصاص نه ساقطيږي. لهذا قصاص به څني اخيستل کيږي، نو همدغسي به په مذکوره مسئله کي هم کيږي.

وعن أبي يوسف إلخ: امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي اوس له هغه (زيد) څخه د قصاص اخيستلو حق پاته نه سو؛ ځکه کله چي د خالد د لاس په عوض کي قصاصاً د زيد لاس پرېکړل سوی وو، نو ګواکي خالد له مابقي شيانو يعني له سرايت او قتل څخه زيد برى کړى وو، او کله چي يې هغه بري کړى دی، نو اوس به قصاص هم نه پرې لازميږي.

ونحن نقول إلخ: موږ په جواب کي ورته وايو چي د زيد لاس ځکه پرېکړل سوی وو چي د خالد حق همدا د لاس پرېکول وه، لېکن تر سرايت وروسته معلومه سوه چي د خالد حق خو قصاص دی، نو معافي به څنګه کيږي حال دا چي تر اوسه خالد ته د خپل حق خبر هم نسته، او پهٔ حق له خبرېدلو څخه بغير به حق څنګه معاف کړى سي!؟ (يا په بله وينا دا چي کله خالد له زيد څخه د قطع اليد قصاص اخيستى وو، نو هغه يې د بري کولو او له قتل څخه د زيد د معاف کولو په نيت نه وو اخيستى، بلکي خالد په دې ګومان د زيد لاس قصاصاً پرېکړى وو چي همدا زما حق دی خو کله چي زخم سرايت وکړى او خالد مړ سو، نو دا خبره ښکاره سوه چي د خالد حق خو قصاص في النفس دی او د لاس پرېکولو په وخت کي هغه نه په دې خبر وو، او نه هغه له دې قصاص څخه د زيد د بري کولو اراده کړې وه...، نو ځکه اوس به له زيد څخه قصاص اخيستل کيږي).

## پر قاطع د ديت لازمېدلو يوه مسئله

قَالَ: وَمَنْ قُتِلَ وَلِيُّهُ عَمْدًا فرمايي: او د چا ولي چي عمداً قتل کړى سي فَقَطَعَ يَدَ قَاتِلِهِ نو هغه ولي (وارث)] د خپل مقتول ولي د قاتل لاس پرېکړى ثُمَّ عَفَا بيا معافي [ورته] وکړي [يعني قصاص معاف کړي] وَقَدْ قُضِيَ لَهُ بِالْقِصَاصِ حال دا چي د هغه لپاره د قصاص فيصله سوې وي أَوْ لَمْ يُقْضَ يا يې فيصله نه وي سوې فَعَلَى قَاطِعِ الْيَدِ دِيَةُ الْيَدِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو پر لاس پرېکونکي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د لاس ديت واجب دی وَقَالَا[*]: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه هيڅ شی نسته لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى حَقَّهُ ځکه چي هغه خپل حق اخيستى دی فَلَا يَضْمَنُهُ نو ځکه هغه به يې نه ضامن کيږي [ضمان (ديت) به نه پرې لازميږي] وَهَذَا لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ إِتْلَافَ النَّفْسِ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا او دا [استيفاء الحق] ځکه دي چي ولي د نفس د ټولو اجزاؤ سره د نفس د اتلاف مستحق دی وَلِهَذَا لَوْ لَمْ يَعْفُ [۱] همدا وجه ده کهٔ ولي معافي نه وکړي [او زخم (قطع)

---

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن قوله قول المتون، كما قاله صاحب الكنز: وإن قطع يد القاتل وعفا، ضمن القاطع دية اليد. (كنز الدقائق ص:۴۹۶)، والمختار في المسائل هي مسئلة المتون. فيرجح تلك المسئلة. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۵]

سرايت وكړي يا يې نه وكړي] لَا يَضْمَنُهُ نو هغه نه ضامن كيږي [ضمان نه پرې لازميږي] وَكَذَا إِذَا سَرَى وَمَا بَرَأَ [۲] او همدارنګه [نه ضامن كيږي] كله چې زخم سرايت وكړي او جوړ نه سي أَوْ مَا عَفَا وَمَا سَرَى [۳] يا معافي نه وكړي او زخم سرايت نه وكړي أَوْ قَطَعَ ثُمَّ حَزَّ رَقَبَتَهُ قَبْلَ الْبُرْءِ أَوْ بَعْدَهُ [۴] يا د هغه لاس پرېكړي بيا تر جوړېدلو مخكې يا وروسته د هغه غاړه پرېكړي وَصَارَ كَمَا إِذَا كَانَ لَهُ قِصَاصٌ فِي الطَّرَفِ او دا داسي سو لكه د ولي لپاره چې په طرف [اندام] كي قصاص واجب وي فَقَطَعَ أَصَابِعَهُ ثُمَّ عَفَا خو ولي د هغه [قاطع] ګوتي ور پرېكړي او بيا معافي اورته [وكړي لَا يَضْمَنُ الْأَصَابِعَ نو ولي د ګوتو نه ضامن كيږي [ضمان نه پرې لازميږي].

**اللغات:** ﴿إِتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضايع كول، ختمول. ﴿حَزَّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: حَزَّ يَحُزُّ حَزًّا: قطع كول، پرېكول او غوڅول. ﴿أَصَابِع﴾ جمع د أُصْبُعُ او إِصْبَعُ ده: ګوتي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زيد عمداً حامد قتل كړی چې د هغه په وجه پر زيد قصاص واجب سو. او د حامد يو ځوی دی چې هغه يې وارث او ولي دی، نو خالد د قصاصاً قتلولو پر ځای د زيد (قاتل) لاس پرېكړی. برابره ده له فيصلې څخه مخكې يې پرېكړی يا وروسته، او بيا خالد زيد معاف كړي (چې تا ته زما د پلار قصاص معاف دی او ما ته بخښلی يې). نو په دې صورت كې د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې خالد به زيد ته د پرېكړل سوي لاس ديت وركوي. او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې ديت به نه وركوي.

**لهما إلخ:** د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې خالد خپل حق ترلاسه كړی دی (يعني د زيد لاس يې پرېكړی دی او بيا يې قصاص معاف كړی دی)، نو په هغه كې د ديت واجبولو څه مطلب دی!. كه خالد له زيد څخه قصاص اخيستي وای نو هم به جائز وای او پر زيد به هيڅ ضمان (تاوان) لازم نه وای. نو ځكه دلته به هم پر زيد هيڅ ضمان يعني ديت واجب نه وي.

**ولهذا لولم يعف إلخ:** صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د خپل مسلک په تائيد كي څلور مسئلې د استشهاد او مثال په توګه پيش كړې دي:

(۱)... كه د مقتول ولي د قاتل تر لاس پرېكولو وروسته هغه معاف نه كړي. نو پر هغه ضمان نه لازميږي. برابره ده زخم سرايت وكړي او كه يې نه وكړي.

۲... معاف يې نه كړي او زخم سرايت وكړي او قاتل مړ سي. نو هم ضمان نه لازميږي.

③... نه زخم سرايت وكړي او نه يې هغه معاف كړي. نو دلته هم ضمان نه لازميږي.

④... د مقتول ولي د قاتل د لاس پرېكولو ځخه وروسته د هغه غاړه هم پرېكړي او قتل يې كړي برابره ده تر اوسه د هغه د لاس زخم جوړ سوى وي او كه نه وي، نو په دې صورت كې هم ضمان نه لازميږي.

لهذا كله چې په دې ټولو صورتونو كې د مقتول پر ولي (خالد) ضمان نه لازميږي. نو همداسي به په مذكوره مسئله كې ديت هم نه لازميږي. او د دې مثال بعينه همداسي دى لكه زيد چې عمداً د حامد لاس پرېكړى وي او پر زيد قصاص واجب وي، لېكن حامد صرف د زيد ګوتې پرېكړي او بيا هغه معاف كړي، نو پر حامد د ګوتو ديت نه واجبيږي، نو همداسي په مذكوره صورت كې هم چې كله د مقتول ولي د قاتل لاس پرېكړي او بيا هغه معاف كړي، نو پر هغه به هم هيڅ ديت او ضمان نه واجبيږي. (احسن الهدايه)

## په پورتنى مسئله كې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ: أَنَّهُ اسْتَوْفَى غَيْرَ حَقِّهِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چې هغه [د مقتول ولي] د خپل حق غير اخيستى دى لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْقَتْلِ ځكه د هغه حق په قتل كې دى وَهٰذَا قَطْعٌ وَإِبَانَةٌ او دا پرېكول او جلا كول دي وَكَانَ الْقِيَاسُ أَنْ يَجِبَ الْقِصَاصُ او قياس دا وو چې قصاص واجب سي إِلَّا أَنَّهُ سَقَطَ لِلشُّبْهَةِ خو قصاص د شبهې په وجه ساقط سو فَإِنَّ لَهُ أَنْ يُتْلِفَهُ تَبَعًا ځكه ولي ته دا حق [هم] وو چې د تابع په توګه يې لاس تلف كړي واى وَإِذَا سَقَطَ او كله چې قصاص ساقط سو وَجَبَ الْمَالُ نو مال [ديت] به واجب وي وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ فِي الْحَالِ او مال ځكه فى الحاله [سمدستي] نه واجبيږي [بلكې تر لاس جوړېدلو وروسته واجبيږي] لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ يَصِيرَ قَتْلًا بِالسِّرَايَةِ ځكه دا احتمال سته چې قطع به د سرايت په وجه قتل وګرځي فَيَكُونُ مُسْتَوْفِيًا حَقَّهُ نو ولي به د خپل حق اخيستونكى وګرځي وَمِلْكُ الْقِصَاصِ فِي النَّفْسِ ضَرُورِيٌّ او په نفس كې ملكيت د ضرورت پر بناء ثابت دى لَا يَظْهَرُ إِلَّا عِنْدَ الِاسْتِيفَاءِ أَوِ الْعَفْوِ أَوِ الِاعْتِيَاضِ او دا ملكيت نه ښكاره كيږي مګر د قصاص اخيستلو يا معاف كولو يا عوض اخيستلو په وخت كې لِمَا أَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِيهِ ځكه دا [يعني له دوى ځخه هر يو] په ملكيت كې تصرف دى فَأَمَّا قَبْلَ ذٰلِكَ لَمْ يَظْهَرْ لِعَدَمِ الضَّرُورَةِ او پاته سو تر هغه مخكې د

ضرورت د نښتوالي په وجه ملکيت نه ښکاره کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا سَرَىٰ په خلاف د هغه صورت کله چي زخم سرايت وکړي [او د قتل سبب وګرځي] لِأَنَّهُ اِسْتِيفَاءٌ ځکه چي دا حق اخيستل دي [يعني په دې صورت کي هغه خپل حق ترلاسه کړی] وَأَمَّا إِذَا لَمْ يَعْفُ وَمَا سَرَىٰ او پاته سو کله چي هغه معافي نه وکړي او نه زخم سرايت وکړي قُلْنَا: إِنَّمَا يَتَبَيَّنُ كَوْنُهُ قَطْعًا بِغَيْرِ حَقٍّ بِالْبُرْءِ نو موږ [په جواب کي] وايو: چي د دې قطع نا حقه کېدل په برائت [جوړتيا] سره ښکاره کيږي [يعني دا قطع به هغه وخت ناحقه قطع وي کله چي زخم جوړ سي او بيا قطع وسي] حَتَّى لَوْ قَطَعَ وَمَا عَفَا وَبَرَأَ همدا وجه ده که ولي لاس پرېکړي او معافي نه وکړي او زخم جوړ سي الصَّحِيحُ أَنَّهُ عَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ نو صحيح دا ده چي دا [صورت] هم پر دغه اختلاف دی وَإِذَا قَطَعَ ثُمَّ حَزَّ رَقَبَتَهُ قَبْلَ الْبُرْءِ لو کله چي ولي لاس پرېکړي او بيا تر جوړېدلو مخکي د هغه غاړه پرېکړي فَهُوَ اِسْتِيفَاءٌ نو دا حق اخيستل دي [يعني هغه خپل حق ترلاسه کړی] وَلَوْ حَزَّ بَعْدَ الْبُرْءِ او که تر جوړېدلو وروسته يې پرېکړي فَهُوَ عَلَىٰ هٰذَا الْخِلَافِ نو دا هم پر دغه اختلاف دي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده وَالْأَصَابِعُ وَإِنْ كَانَتْ تَابِعَةً قِيَامًا بِالْكَفِّ او ګوتي که څه هم د قائم والي په اعتبار سره د ورغوي تابع دي فَالْكَفُّ تَابِعَةٌ لَهَا غَرَضًا لېکن د غرض [مقصد] په اعتبار سره ورغوی هم د ګوتو تابع دی بِخِلَافِ الطَّرَفِ په خلاف د طرف [اندام] لِأَنَّهَا تَابِعَةٌ لِلنَّفْسِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي طرف په هر اعتبار سره د نفس تابع دی.

**اللغات**: ﴿إبانة﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې باب يوه معنیٰ ده: جلا کول، بېلول. ﴿اعتياض﴾ د افتعال د باب مصدر دی: عوض اخيستل، بدله اخيستل. ﴿بُرْء﴾ مصدر دی: له فتح، سمع او کرُم ټولو څخه راځي: جوړېدل، روغېدل، شفاء ترلاسه کېدل. ﴿حَزَّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: پرېکول، غوڅول. ﴿غرض﴾ مقصد. ﴿الطرف﴾ اندام، عضو.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي څرنګه په دې مسئله کي د ولي حق قتل وو (چي زيد يې قصاصاً قتل کړي وای) لېکن هغه له خپل حق څخه بغير بل شي يعني د لاس پرېکول اختيار کړه. نو ځکه پر هغه به د لاس ديت واجب وي، بلکي د قياس تقاضا خو دا وه چي قصاص پري واجب سي (يعني د ولي لاس هم قصاصاً پرېکړل سي). لېکن څرنګه چي ولي (خالد) ته حق حاصل

وو چي هغه مجرم (زيد) يې قتل کړي واى او کله چي هغه مجرم قتل کړي واى نو د هغه په ضمن کي به د مجرم لاس هم تلف سوي واى. خو هغه (ولي) داسي نه وکړه بلکي يوازي يې لاس پرېکړى او په هغه کي يې شبه پيدا کړه. او د شبه په وجه د قصاص پر ځاى مال (ديت) واجبيږي. ليکن که د ولي د لاس پرېکولو په وجه دا مجرم وروسته مړ سي. نو ځرنګه چي ولي خپل حق ترلاسه کړى دى (يعني په خپل حق کي يې د هغه لاس پرېکړى دى). نو ځکه د مړ کېدلو په وجه پر ولي هيڅ ضمان نه واجبيږي.

او ځرنګه چي دلته دا احتمال سته چي د قطع زخم به سرايت وکړي او مجرم به مړ سي. نو په دې وجه به له ولي څخه في الحاله د لاس ديت نه اخيستل کيږي بلکي د زخم جوړېدلو تر وخت پوري به انتظار کيږي. که چيري هغه جوړ سي نو پر ولي ديت واجبيږي. او که جوړ نه سي بلکي مجرم مړ سي نو ديت نه واجبيږي.

<u>وملك القصاص إلخ</u>: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل دويم اړخ دى. حاصل يې دا دى چي شريعت د مقتول ولي ته کوم د قصاص اخيستلو حق او ملکيت ورکړى دى او د هغه لپاره يې د قصاص ملکيت ثابت کړى دى دا ملکيت د ضرورت پر بناء دى (احياءً وزجراً للناس). او دا مقرر او تسليم سوې قاعده ده چي "الضَّرُورَةُ تَتَقَدَّرُ بِقَدرِهَا" يعني کوم شى چي د ضرورت پر بناء ثابت وي، هغه د ضرورت تر اندازي پوري پاتيږي.

او بل دا چي دا مجرم آزاد دى او محترم دى (يعني د هغه د نفس او حق حفاظت لازم دي). خو د دې باوجود هم د ولي لپاره چي د قصاص کوم ملکيت ثابت سوى دى هغه مبني بر ضرورت دى. لنډه دا چي کله دا ملکيت د ضرورت پر بناء ثابت دى، نو ځکه د هغه اثبات به صرف هلته کول کيږي کله چي ولي خپل حق اخلي، او د هغه د حق اخيستلو درې صورتونه دي: ① قصاص واخلي. ② معاف يې کړي. ③ د هغه عوض واخلي؛ ځکه له دې صورتونو څخه چي ولي هر صورت اختيار کړي دا به په خپل ملکيت کي تصرف وي (او په خپل ملکيت کي د انسان تصرف معتبر دى). نو ځکه دا تصرف به معتبر وي، لېکن په کوم صورت کي چي له دې دريو اُمورو څخه يو شى هم نه وي، نو هلته به د ضرورت د نشتوالي په وجه ملک قصاص (کوم چي د ضرورت پر بناء ثابت دى) نه ثابتيږي. او کله چي ملک قصاص ثابت نه سو نو هغه د بل چا په حق کي تصرف سو. نو ځکه د دې ناحقه تصرف په وجه به پر هغه ضمان (ديت) ورکول واجب وي.

<u>بخلاف ما إذا سرىٰ إلخ</u>: د دې په خلاف که قطع اليد سرايت وکړي او د قتل سبب وګرځي نو ځرنګه چي اوس ولي خپل حق ترلاسه کړى دى. نو ځکه اوس به پر هغه هيڅ ضمان واجب نه وي.

وأما إذا لم يعف إلخ: صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي د خپل قول په تائيد کي کومي څلور مسئلې او صورتونه پېش کړي وه، دا له هغوی څخه د دریمي مسئلې جواب دی. دریمه مسئله دا وه چي د مقتول ولي نه معافي وکړي او نه زخم سرایت وکړي، نو په دې صورت کي د مقتول پر ولي ضمان (دیت) نه واجبیږي. دامام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د جواب حاصل دا دی چي صحیح ده، خو په دې سره ستاسي دلیل نیول صحیح نه دي، ځکه د سرایت نه کولو مطلب دا دی چي تر اوسه دا معلومه نه ده چي زخم به کوم حالت اختیار کړي (جوړ به سي که نه؟) خو تر اوسه دلته زخم جوړ سوی نه دی او کله چي زخم تر اوسه جوړ دی، نو دا احتمال سته چي مجرم به د دې زخم په وجه مړ سي نو پر ولي به ضمان لازم نه سي.

خلاصه د خبري دا چي دغه قطع ته به هغه وخت ناحقه قطع ویل کېدای کله چي زخم جوړ سوي وای او دلته خو جوړ سوی نه دی، او تر اوسه که څه هم هغه سرایت نه دی کړی لېکن احتمال خو یې سته چي سرایت وکړي، نو په دې وجه به تر اوسه دیت واجب نه وي.

کنې که چیري ولي د مجرم لاس پرېکړي او معافي هم نه ورته وکړي (یعني قصاص معاف نه کړي) او زخم جوړ سي، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله دلته هم دیت واجبوي او صاحبین یې نه واجبوي.

لنډه دا چي دا مسئله مختلف فیه ده او کله چي هغه مختلف فیه ده، نو ښکاره ده چي زموږ په خلاف په هغه دلیل نیول او په مثال کي پېشول به صحیح نه وي.

وإذا قطع ثم حز إلخ: دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د څلورمي مسئلې جواب دی، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي په څلورمه مسئله سره هم ستاسي دلیل نیول صحیح نه دي؛ ځکه هغه ستاسي د بیان په څېر مطلق نه ده بلکي تفصیل پکښي دی هغه دا چي که ولي تر لاس پرېکولو وروسته او تر جوړېدلو مخکي د هغه غاړه پرېکړي نو دلته ځکه دیت نه واجبیږي چي ولي خپل حق تر لاسه کړی، لېکن که تر جوړېدلو وروسته یې غاړه ورپرېکړي، نو امام صاحب رَحِمَهُ الله دلته هم هغسي فرمايي چي دیت واجبیږي. حال دا چي صاحبینو رَحِمَهُمَا الله قبل البرء او بعد البرء په دواړو صورتونو کي یو حکم لګولی دی.

لنډه دا چي دا مسئله هم مختلف فیه ده نو په دې سره به هم دلیل نیول صحیح نه وي.

والأصابع إلخ: صاحبینو رَحِمَهُمَا الله چي د ګوتو پرېکولو مسئله په مثال او دلیل کي پېشه کړې وه، د هغه په جواب کي فرمايي چي په دې سره هم دلیل نیول صحیح نه دي؛ ځکه په یوه اعتبار سره ګوتي د ورغوي (چمبې) تابع دي او په یوه اعتبار سره ورغوی تابع دی. ګوتي خو ځکه د ورغوي تابع

دي چې بغیر له ورغوي څخه د ګوتو قیام ممکن نه دی، او ورغوی ځکه د ګوتو تابع دی چې بغیر له ګوتو څخه د ورغوي مقصد او منفعت نه سي حاصلېدلای (یعني نیول او اخیستل)، او کله چې په یوه اعتبار سره ګوتي متبوع دي او ورغوی یې تابع دی، نو صرف د ګوتو په پرېکولو سره به د ولي حق حاصل سي (یعني کله چې ګوتي متبوع دي نو ښکاره ده چې که ولي د طرف (لاس) د قصاص په عوض کي ګوتي ورپرېکړي، نو د طرف (لاس) قصاص حاصل سو)، لیکن په لاس پرېکولو سره د نفس قصاص نه حاصلیږي: ځکه لاس خو په هر اعتبار سره د نفس تابع دی او د تابع تحصیل د متبوع تحصیل نه کیږي، خو د متبوع تحصیل د تابع تحصیل کیږي.

## د لاس په قصاص کي د مجرم د مړ کېدلو حکم او تفصیل

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي] فرمایي وَمَنْ لَهُ الْقِصَاصُ فِي الطَّرَفِ إِذَا اسْتَوْفَاهُ او د چا لپاره چې په طرف [اندام] کي قصاص وي کله چې هغه دا قصاص واخلي ثُمَّ سَرَىٰ إِلَى النَّفْسِ وَمَاتَ بیا زخم نفس ته سرایت وکړي او هغه مړ سي يَضْمَنُ دِيَةَ النَّفْسِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو هغه [من له القصاص فی الطرف] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د نفس د دیت ضمان کیږي وَقَالَا: لَا يَضْمَنُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ اسْتَوْفَى حَقَّهُ ځکه چې هغه [من له القصاص] خپل حق اخیستی دی وَهُوَ الْقَطْعُ او د هغه حق قطع [اندام پرېکول] دي وَلَا يُمْكِنُ التَّقْيِيدُ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ او د سلامتی په وصف سره مقیّد کول ممکن نه دي لِمَا فِيهِ مِنْ سَدِّ بَابِ الْقِصَاصِ ځکه په دې تقیید کي د قصاص د دروازې بندول سته إِذِ الِاحْتِرَازُ عَنِ السِّرَايَةِ لَيْسَ فِي وُسْعِهِ ځکه له سرایت څخه بچ کېدل د هغه په وس کي نه دي فَصَارَ كَالْإِمَامِ وَالْبَزَّاغِ وَالْحَجَّامِ وَالْمَأْمُورِ بِقَطْعِ الْيَدِ نو داسي سو لکه امام او نشتر لګونکی او ښکر لونکی او هغه کس چې د لاس پرېکولو حکم ورته سوی وي وَلَهُ: أَنَّهُ قَتَلَ بِغَيْرِ حَقٍّ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې من له القصاص هغه [مجرم] په ناحقه قتل کړی دی لِأَنَّ حَقَّهُ فِي الْقَطْعِ ځکه چې د ده حق په قطع کي دی وَهٰذَا وَقَعَ قَتْلًا او دا قتل واقع سوه وَلِهٰذَا لَوْ وَقَعَ ظُلْمًا همدا وجه ده که قطعُ الید ظلماً [په ناحقه] واقع سوي وای كَانَ قَتْلًا نو دا به قتل وای وَلِأَنَّهُ جُرْحٌ أَفْضَى إِلَى فَوَاتِ الْحَيَاةِ فِي مَجْرَى الْعَادَةِ او ځکه چې دا داسي زخم دی کوم چې عادتاً د ژوند فوتېدلو ته رسول کوي [یعني عموماً د مرګ سبب ګرځي] وَهُوَ مُسَمَّى الْقَتْلِ او همدا

مسمى د قتل ده [يعني همدې ته قتل وايي چي شى د مرګ سبب وګرځي] إِلَّا أَنَّ الْقِصَاصَ سَقَطَ لِلشُّبْهَةِ لېکن د شبه په وجه قصاص خو ساقط سو فَوَجَبَ الْمَالُ نو ځکه مال به واجب وي بِخِلَافِ مَا اسْتَشْهَدَا بِهِ مِنَ الْمَسَائِلِ په خلاف د هغه مسئلو چي په هغوى سره صاحبينو رَحِمَهُمَا الله استشهاد کړى دى إِلَّا أَنَّهُ مُكَلَّفٌ فِيهَا بِالْفِعْلِ ځکه چي فاعل په هغوى کي په فعل سره مکلف دى إِمَّا تَقَلُّدًا كَالْإِمَامِ كَمَا فِي غَيْرِهِ مِنْهَا يا خو د خليفه والي [او حاکم والي] په توګه لکه امام چي دى أَوْ عَقْدًا كَمَا فِي غَيْرِهِ مِنْهَا يا د عقد [عقدِ اجارې] په وجه لکه له هغه ځخه بغير په نورو مسئلو کي چي دي وَالْوَاجِبَاتُ لَا تَتَقَيَّدُ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ او واجبات د سلامتى په وصف سره نه متصف کېږي كَالرَّمْيِ إِلَى الْحَرْبِيِّ لکه د حربي طرف ته غشى غورځول وَفِيمَا نَحْنُ فِيهِ لَا الْتِزَامَ وَلَا وُجُوبَ او په کومه مسئله کي چي مورږ يو په هغه کي نه التزام سته او نه وجوب سته إِذْ هُوَ مَنْدُوبٌ إِلَى الْعَفْوِ ځکه چي په هغه کي معاف کول مندوب [او مستحسن] دي فَيَكُونُ مِنْ بَابِ الْإِطْلَاقِ نو ځکه دا به د اطلاق [اباحت] له باب ځخه وي فَأَشْبَهَ الْاِصْطِيَادَ نو دا د ښکار کولو سره مشابه سوه.

**اللغات**: ﴿الطرف﴾ اړخ، اندام، ﴿استوفى﴾ د استفعال ماضي ده: ترلاسه کول، اخيستل، ﴿احتراز﴾ د افتعال مصدر دى: بچ کېدل، ځان ساتل، ﴿البزاغ﴾ نشتر لګونکى، جرّاح، ("نشتر" هغه آلې ته وايي کوم چي تېره ځوکه لري او زخم يا دانه په ځيرل کېږي)، ﴿اصطياد﴾ د افتعال مصدر دى: ښکار کول.

**يادونه**: مذکوره عبارت د مبسوط عبارت دى او دا مسئله په مبسوط کي ذکر سوې ده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چي زيد مثلاً د حامد لاس عمداً پرېکړى چي د هغه په وجه پر زيد (مجرم) د لاس قصاص واجب سو، نو حامد په قصاص کي د هغه لاس پرېکړى لېکن دغه قطع د زيد په لاس کي سرايت وکړى چي د هغه په وجه بالآخره زيد (مجرم) مړ سو، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر حامد (کوم چي قصاصاً د مجرم لاس پرېکړى وو) ديت واجبېږي او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر حامد ديت نه واجبېږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چي حامد خو خپل حق اخيستى دى او دا حق اخيستل د هغه لپاره جائز دي، نو د حامد له طرفه هيڅ تعدى او ناحقه تصرّف موجود نه سو.

او پاته سوه دا خبره چي د حامد حق خو صرف د زيد لاس پرېکول وه او دلته زيد مړ سوی دی، نو صاحبين رَحِمَهُمَا الله د دې په جواب کي فرمايي چي دلته داسي قيد لګول چي د لاس پرېکولو په وجه دي زيد (مجرم) مړ نه سي او هـه دي صحيح سالم پاته سي، په دې قيد سره بالکل د قصاص دروازه بنديږي؛ ځکه دا خبره د حامد په وس کي نه ده. نو ځکه په دې سره مُکلف کول به ممکن هم نه وي.

**فصار إلخ**: صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په شريعت کي د دې ځو مثالونه ستـه :

① ... کـه امام يا د هغه نائب د يو مجرم لاس پرېکړي او زخم سرايت وکړي او مجرم مړ سي، نو پر امام هيڅ ضمان نه لازميږي.

② ... کـه نشتر لګونکی کس يو مريض تـه نشتر ولګوي چي د هغه پـه وجـه زخـم سرايت وکړي او مريض مړ سي، نو پر هغه ضمان نه لازميږي.

③ ... کـه د ښکر لګولو پـه وجـه سړی مړ سي نو پر ښکر لګونکي (حجام) هم ضمان نه لازميږي.

④ ... کـه يو مريض ډاکټر تـه ووايي چي زما د لاس اپرېشن او عمليات وکړه!، او ډاکټر د هغه د لاس اپرېشن وکړي او پـه دې وجـه مريض مړ سي، نو پر ډاکټر هيڅ ضمان نه لازميږي.

نو څرنګه چي پـه دې ټولو صورتونو کي ضمان نه لازميږي، نو همداسي بـه پـه مذکوره مسئلـه کي پر حقدار کس (يعني پر حامد کوم چي د زيد لاس ورپرېکړی وو او زيد مړ سوی دی. پر هغه بـه) ضمان يعني ديت نه لازميږي.

**وله إلخ**: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی، حاصل يې دا دی چي دلته د حقدار کس (حامد) حق قطع وه، خو هغه قتل کړی دی، لهذا هغه دلته ناحقه کار وکړی، نو ځکه پر هغه بـه ضمان (ديت) واجب وي؛ ځکه کـه څوک ظلماً (پـه ناحقه) د چا لاس پرېکړي او هغه زخم سرايت وکړي، نو اوس دې تـه قطع نه، بلکي قتل ويل کيږي او پر هغه د قتل احکام جاري کيږي.

او لـه زخـم څخه د سړي مړ کېدل خلاف عادت نه دي بلکي داسي کيږي چي لـه سخت زخـم څخه سړی مړ کيږي، او د کوم زخم په وجه چي څوک عادتاً او عموماً مړ کيږي، هاغـه تـه قتل ويـل کيږي، نو ځکه پر هغه بـه د قتل حکم جاري کيږي.

بلکي پـه دې صورت کي خو قصاص واجبېدل پکار دي، لېکن دلته شبهي پـه وجـه قصاص خو ساقط سو، نو ځکه مال (ديت) بـه واجب وي (يعني قياس خو همدا دی چي پر حقدار کس [حامد] باندي قصاص واجب سي ځکه چي د هغه د عمداً قطع اليد وجه مجرم [زيد] قتل سوی دی. لېکن اول د قطع اليد او بيا د هغه په سرايت سره د قتل واقع کېدلو وجه د قصاص په وجوب کي شبهه پيدا سوه. او په شبهي سره قصاص ساقطيږي. نو ځکه دلته خو پر هغه قصاص نه واجبيږي. لېکن ديت پرې واجبيږي).

بخلاف ما استشهدا به إلخ: له دې ځایه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د هغه څلورو مسئلو جواب ورکول سوی دی چې دوی په نیولی دی او په مثال کې یې پېش کړي ي. په لنډه توګه دجواب حاصل دا دی چې په هغوی سره دلیل نیول صحیح نه دي؛ ځکه په هغه ټولو مسئلو کې پرېکونکی کس مُکلف او مأمور دی او د مأمور په فعل کې سلامتي (سالم پاتېدل) ضروري نه دي؛ ځکه له هغوی څخه په اوله مسئله کې مأمور کېدل د شریعت له طرفه دي؛ ځکه چې هغه امام او باچا دی. او په آخري درېو مسئلو کې مأمور کېدل د عقد اجاره په وجه دي.

او په کوم صورت کې چې سړی مأمور او مکلف وي، نو د هغه فعل د سلامتۍ په وصف سره مقیّد نه وي، مثال یې دا دی لکه مجاهدین چې د حربي کفارو پر طرف غشي وغیره وغورځوي او په هغوی کې یو مسلمان هم پټ موجود وي او بیا یو غشی پر هغه ولګېږي او هغه مړ سي. نو پر مجاهدینو د هغه مسلمان ضمان (دیت) نه واجبیږي؛ ځکه مجاهدین شرعاً په جهاد سره مأمور او مکلف دي.

د دې په خلاف مذکوره مسئله (چې په هغه کې زموږ بحث شروع دی) دلته خو نه شرعاً وجوب سته او نه التزام سته. یعني د شریعت له طرفه قطع (لاس ورېرېکول) واجب دي او نه هغه پر ځان قطع لازم کړې ده. بلکې دلته معاف کول مندوب او مستحسن دي لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې دي ﴿وَأَنْ تَعْفُوْا أَقْرَبُ لِلتَّقْوىٰ﴾ (سورة البقرة: ۲۳۷)، نو ځکه دلته چې کومه قطع ده. هغه به د اباحت له باب څخه وي او د اباحت لپاره دا ضروري ده چې هغه به مقیّد بالسلامة وي یعني هغه مباح فعل به د سلامتۍ په وصف سره متصّف او مقیّد وي، د دې مثال داسې دی لکه ښکار کول چې مباح دي لېکن د هغه مقیّد بالسلامة کېدل ضروري دي، نو که ښکاري کس پر ښکار وار وکړي او غشی وغیره د ښکار پر ځای پر انسان ولګېږي، نو پر ښکاري کس دیت واجبیږي؛ ځکه چې د هغه وار د سلامتۍ وصف فوت کړی، نو همداسې په مذکوره مسئله کې هم د حقدار کس (حامد) قطع د سلامتۍ وصف فوت کړی، نو ځکه پر هغه به دیت واجبیږي. (اشرف الهدایه، احسن الهدایه)

فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ الشَّهَادَةِ فِي الْقَتْلِ

## (دا) باب په قتل کي د ګواهۍ (په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې قتل او د هغه سره اړوند احکام او مسائل بيان سول، اوس له دې ځايه د قتل په هکله د ګواهي ورکولو احکام او مسائل بيانوي؛ ځکه کله چي له قتل ځخه انکار کيږي، نو بيا ګواهي ورکولو ته ضرورت پېښيږي، نو شهادة في القتل د قتل تابع سو. او د تابع پړاو تر متبوع وروسته وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د قتل او قصاص له بيان ځخه وروسته باب الشهادی في القتل بيان کړی دی.

**که د مقتول له دوو وارثانو ځخه يو بيّنه پېش کړي او بل غائب وي (حکم او تفصيل)**

قَالَ (امام محمد رَحِمَهُ الله) فرمايي وَمَنْ قُتِلَ او څوک چي قتل کړی سي وَلَهُ ابْنَانِ او هغه لره دوه ځامن وي حَاضِرٌ وَغَائِبٌ [چي له معنوی ځخه] يو حاضر وي او بل غائب وي فَأَقَامَ الْحَاضِرُ الْبَيِّنَةَ عَلَى الْقَتْلِ بيا حاضر پر قتل بيّنه پېش کړي ثُمَّ قَدِمَ الْغَائِبُ بيا غائب راسي فَإِنَّهُ يُعِيدُ الْبَيِّنَةَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو هغه به بيّنه راګرځوي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [يعني هغه به دوباره بيّنه پېشوي] وَقَالَا ❁: لَا يُعِيدُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي بيّنه به نه راګرځوي وَإِنْ كَانَ خَطَأً او که قتل خطاء وي لَمْ يُعِدْهَا بِالْإِجْمَاعِ نو هغه [غائب] به بالاجماع بيّنه راګرځوي وَكَذٰلِكَ الدَّيْنُ يَكُونُ لِأَبِيهِمَا عَلَى آخَرَ او همدارنګه هغه قرض کوم چي د دوی د پلار پر بل چا باندي وي لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ: أَنَّ الْقِصَاصَ طَرِيقُهُ طَرِيقُ الْوِرَاثَةِ په اختلافي مسئله کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د قصاص طريقه د وراثت طريقه ده كَالدَّيْنِ لکه قرض وَهٰذَا لِأَنَّهُ عِوَضٌ عَنْ نَفْسِهِ او دا

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابراهيم الحلبي: فلو أقام احد ابني حجة بقتل أبيهما عمدًا والآخر غائب، لزم اعادتهما بعد عود الغائب، خلافاً لهما (ملتقى الأبحر ج:۴، ص:۳۳۴، ۳۳۵)، وقال صاحب الكنز: ولا يستفيد حاضر بحجته إذا أخوه غائب عن خصومته، فإن بعد لا بد من إعادته (ص:۳۹۶)، وهكذا في الهندية (ج:۶، ص:۱۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۵]

ځکه چي قصاص د مقتول د نفس عوض دی فَيَكُونُ الْمِلْكُ فِيْهِ لِمَنْ لَهُ الْمِلْكُ فِي الْمُعَوَّضِ نو په قصاص کي به د هاغه يوه ملکيت وي د کوم چا ملکيت چي په معوّض [نفس] کي وي كَمَا فِي الدِّيَةِ لکه څرنګه چي په ديت کي دی وَلِهٰذَا لَوِ انْقَلَبَ مَالًا په همدې وجه که قصاص په مال سره بدل سي يَكُوْنُ لِلْمَيِّتِ نو مال به د ميت لپاره وي وَلِهٰذَا يَسْقُطُ بِعَفْوِهِ بَعْدَ الْجُرْحِ قَبْلَ الْمَوْتِ او په همدې وجه تر زخم وروسته [او] تر مرګ مخکي د مړي په معاف کولو سره قصاص ساقطيږي فَيَنْتَصِبُ أَحَدُ الْوَرَثَةِ خَصْمًا عَنِ الْبَاقِيْنَ نو ځکه له وارثانو څخه به يو وارث د نورو وارثانو له طرفه خصم دربږي.

**اللغات:** ﴿البيّنة﴾ ګواهي. حجت او ثبوت. ﴿يعيد﴾ د افعال د باب مضارع ده: يو کار دويم ځل کول. راګرځول. ﴿المعوض﴾ د تفعيل له بابه د اسمِ مفعول صيغه ده: د کوم شي په بدله کي چي عوض ورکول سي. هغه ته "مُعوّض" وايي. ﴿انقلب﴾ د انفعال ماضي ده: اوښتل. بدلېدل. ﴿ينتصب﴾ د افتعال مضارع ده: دربدل. قايمېدل. ﴿خصم﴾ دعوه پېشونکی او فريقِ مخالف. د دې لفظ اطلاق پر مدعي او مدعیٰ عليه دواړو باندي کيږي (دوی يو د بل خصم دي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زيد عمداً حامد قتل کړی او د حامد (مقتول) دوه ځامن دي يو خالد دی او بل ساجد. خالد في الحاله موجود دی او ساجد يو ځای په سفر تللی دی. خالد (يعني حاضر وارث) پر قتل بيّنه پېش کړه چي زما پلار (حامد) همدې زيد وژلی دی او خالد د خپل ورور ساجد په ناموجوديت کي له زيد څخه د قصاص اخيستلو مطالبه وکړه. نو خالد ته د دې حق نسته. بلکي ساجد ته به انتظار کيږي او هغه چي هم راسي او بيّنه پېش کړي. بيا به قاضي د قصاص فيصله صادروي. نو د دې مطلب دا سو چي قاضي به د خالد (حاضر) بيّنه خو قبلوي. لېکن د قصاص فيصله به بالاجماع نه کوي او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله مسلک دی.

او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي اوس ساجد ته د جلا بيّنې پېشولو ضرورت نسته. بلکي د هغه تر راتګ وروسته به قاضي د قصاص فيصله کوي او له هغه څخه به د بيّنې پېشولو غوښتنه نه کوي.

او تر هغه وخته به زيد (قاتل) د متهم کېدلو په وجه بالاجماع قيدول کيږي (بندي کول کيږي).

وإن كان خطأً إلخ: او که زيد خطاءً حامد قتل کړی وي او د هغه حاضر ځوی يعني خالد بيّنه پېش کړي. نو په دې صورت کي بالاجماع غائب ځوی ساجد ته د بيّنې پېشولو ضرورت نسته. بلکي له هغه څخه بغير به قاضي فيصله کوي.

همدارنګه که پر يو چا د ميت (حامد) قرض باندي وي او خالد د هغه د قرض ثابتولو لپاره بينه پېش کړي، نو هم بالاجماع اوس ساجد ته د بينې پېشولو ضرورت پاته نه سو.

لنډه دا چي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله تر مينځ مذکوره اختلاف بس د قتل عمد په صورت کي دی.

لهما في الخلافية إلخ: د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله تر دليل مخکي د هغو يوه قاعده په ياد لرئ!. قاعده دا ده چي د وارثانو لپاره چي کوم حق ثابتيږي، هغه پر دوه قسمه دی: ① د خلافت په توګه، ② د وراثت په توګه (يعني دا حق يا د خلافت او نيابت په طريقه دوی ته ثابتيږي يا د وراثت په طريقه ور ته ثابتيږي).

د وراثت په توګه د حق ثابتېدلو مطلب دا دی چي اول دا حق د مورث (ميت) لپاره ثابت سي او بيا د مورث تر مرګ وروسته د هغه د وارثانو لپاره ثابت سي، او د خلافت په توګه د حق ثابتېدلو مطلب دا دی چي په دې حق کي د مورث له ملکيت ثابتېدلو څخه بغير د وارثانو ملکيت ثابت سي (يعني د وراثت په حق او ملکيت کي د مورث ملکيت ضروري دی. نه د خلافت په ملکيت کي)، او اُصول دا دی چي په کوم صورت کي د وارثانو ملکيت د وراثت په توګه ثابتيږي، هلته له وارثانو څخه هر يو وارث په خصومت (او دعوىٰ) کي د کُل قائم مقام شمېرل کيږي او له دوی څخه يو وارث د نور ټولو وارثانو له طرفه خصم جوړېدلای سي. لېکن د خلافت او نيابت په صورت کي يو وارث د نورو وارثانو له طرفه خصم نه سي جوړېدلای.

کله چي تاسي په دې قاعده ځان پوه کړئ! نو اوس عبارت بالکل آسانه سو چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دليل دا دی چي د مقتول د وارثانو لپاره د قصاص ثبوت د وراثت په طريقه سره دی (يعني د وارثانو لپاره د قصاص ملکيت د وراثت په توګه ثابتيږي)، نو ځکه يو وارث د نورو له طرفه خصم کېدلای سي، او کله چي يو خصم کېدلای سي، نو دوباره د بينې پېشولو ته ضرورت پاته نه سو، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به هم د مقتول پلار (حامد) له دوو ځامنو څخه يو ځوی (خالد) د غائب ځوی (ساجد) له طرفه نائب او خصم وي او د هغه پر بينه به قاضي د قاتل (زيد) په خلاف د قصاص فيصله کوي او غائب ته به د جلا بينې پېشولو هيڅ ضرورت نه وي.

او د دې دليل (چي د قصاص ملکيت د وراثت په توګه ثابتيږي) دادی چي قصاص خو په حقيقت کي د مقتول د نفس عوض دی نو د هغه په نفس کي چي د کوم چا حق وي. د هغه په عوض (قصاص) کي به هم د هاغه حق وي. لکه څرنګه چي په ديت کي هم دغه حکم دی چي هغه د وراثت په توګه ثابت دی په همدغه دليل سره. او لکه چي د قرض هم دغه حال دی چي اول هغه د ميت حق وي او بيا

د وراثت په توګه هغه د وارثانو لپاره ثابتيږي. او که قصاص د صلح وغيره په وجه مال وګرځي. نو هم په هغه کي اولاً د ميت حق ثابتيږي.

او د وراثت په توګه د ثابتېدلو يو څرګند دليل دا هم دی چي که ميّت تر زخمي کېدلو وروسته او تر مرګ مخکي قاتل معاف کړي، نو قصاص ساقطيږي. (اشرف الهدايه. احسن الهدايه)

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ: أَنَّ الْقِصَاصَ طَرِيْقُهُ الْخِلَافَةُ دُوْنَ الْوِرَاثَةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي قصاص د هنه طريقه د خلافت طريقه ده أَلَا تَرَىٰ أَنَّ مِلْكَ الْقِصَاصِ يَثْبُتُ بَعْدَ الْمَوْتِ آيا ته نه ګوري! چي د قصاص ملکيت تر مرګ وروسته ثابتيږي وَالْمَيِّتُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او مړی د قصاص د ملکيت [د قصاص مالک کېدلو] اهل نه دی بِخِلَافِ الدَّيْنِ وَالدِّيَةِ په خلاف د قرض او ديت لِأَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْمِلْكِ فِي الْأَمْوَالِ ځکه چي مړی په مالونو کي د ملکيت [مالک کېدلو] اهل دی كَمَا إِذَا نَصَبَ شَبَكَةً لکه څرنګه چي څوک جال ودروي فَتَعَلَّقَ بِهَا صَيْدٌ بَعْدَ مَوْتِهِ بيا د ده تر مرګ وروسته په هغه جال کي يو ښکار ونيول سي فَإِنَّهُ يَمْلِكُهُ نو دئ [ميّت] د هغه ښکار مالک کيږي وَإِذَا كَانَ طَرِيْقُهُ الْإِثْبَاتَ ابْتِدَاءً او کله چي د قصاص طريقه ابتداءً [د وارثانو لپاره] اثبات دی لَا يَنْتَصِبُ أَحَدُهُمْ خَصْمًا عَنِ الْبَاقِيْنَ نو له دوی څخه يو وارث به د نورو وارثانو له طرفه خصم نه دريږي فَيُعِيْدُ الْبَيِّنَةَ بَعْدَ حُضُوْرِهِ نو ځکه غائب وارث به تر خپل حاضرېدلو وروسته بيّنه راګرځوي.

**اللغات:** ﴿نصب﴾ د ماضي صيغه ده، له ضرب او نصر دواړو څخه اخي: درول، نصب کول.

﴿شبکة﴾ د ښکار جال، ځال (کوم چي د مرغانو او حيوانانو د نيولو لپاره درول کيږي).

**تشريح:** په دې عبارت کي د مخکني اختلافي مسئلې په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل ذکر سوی دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي د مقتول د وارثانو لپاره د قصاص ثبوت د خلافت په طريقه سره دی يعني د قصاص ملکيت د وارثانو لپاره د خلافت او نيابت په توګه ثابتيږي، او د خلافت أصول دا دی چي په هغه کي يو وارث د نورو وارثانو له طرفه خصم نه سي کېدلای (لکه په تېر عبارت کي چي د دې وضاحت وسو)، لهذا دلته به حاضر وارث (خالد) د غائب وارث (ساجد) له طرفه نائب او خصم نه وي، لهذا جلا بيّنې پېشولو ته ضرورت پاته سو، نو ځکه غائب

وارث (ساجد) چي کله حاضر سي نو جلا بينه به پېشوي او تر دې وروسته به قاضي د قصاص فيصله کوي.

او د دې دليل (چي د قصاص ملکيت د خلافت په توګه ثابتيږي) دا دی چي د قصاص ملکيت د فعل ملکيت دی، نه د مال (يعني قصاص يو فعل دی. مال نه دی)، او ميت خو د دې اهل دی چي د مال مالک جوړ سي لېکن د دې اهل نه دی چي د فعل مالک جوړ سي. لهذا قصاص داسي فعل دی کوم چي د ميّت تر مرګ وروسته ثابتيږي. نو په دې وجه ميّت د دې اهل نه دی چي هغه د قصاص مالک جوړ سي (لهذا کله چي داسي ده نو ښکاره ده چي په قصاص کي د وارث حق او ملکيت د خلافت په طريقه سره ثابتيږي ځکه مخکي ذکر سوه چي د خلافت په طريقه سره د حق ثابتېدلو مطلب دا دی چي په دې حق کي د مورث [ميت] له ملکيت ثابتېدلو څخه بغير د وارثانو ملکيت ثابت سي).

او پاته سو قرض او ديت، نو هغه خو مالونه دي افعال نه دي، نو ځکه ميت به د هغوی مالک وي او په هغوی کي به د وارث ملکيت د وراثت په توګه ثابتيږي.

او د دې خبري دليل چي ميّت د مال مالک کېدلای سي دا دی چي که حامِد د ښکار لپاره جال درولی وي او د هغه تر مرګ وروسته په دې جال کي يو ښکار ونيول سي، نو همدا ميّت (حامد) د هغه ښکار مالک کيږي. (اشرف الهدايه)

## د غائب وارث له طرفه د قاتل د معاف کېدلو د دعوې حکم

فَإِنْ كَانَ أَقَامَ الْقَاتِلُ الْبَيِّنَةَ أَنَّ الْغَائِبَ قَدْ عَفَا بيا که قاتل بينه پېش کړي چي غائب [ما ته] معافي کړې ده فَالشَّاهِدُ خَصْمٌ نو حاضر وارث خصم کيږي وَيَسْقُطُ الْقِصَاصُ او قصاص ساقطيږي لِأَنَّهُ ادَّعَى عَلَى الْحَاضِرِ سُقُوطَ حَقِّهِ فِي الْقِصَاصِ إِلَى مَالٍ ځکه چي قاتل په قصاص کي د حاضر وارث د حق ساقطېدلو دعویٰ کړې ده د مال وطرف ته [يا په بله وينا دا چي: د قاتل د دغه دعوې "چي غائب وارث زه معاف کړی يم" مطلب دا دی چي اوس حاضر وارث پر ما د قصاص حق نه لري بلکي صرف د مال (ديت) حق راباندي لري] وَلَا يُمْكِنُهُ إِثْبَاتُهُ إِلَّا بِإِثْبَاتِ الْعَفْوِ مِنَ الْغَائِبِ او قاتل لره د دې عوې ثابتول ممکن نه دي مګر د غائب له طرفه د معافی په ثابتولو سره فَيَنْتَصِبُ الْحَاضِرُ خَصْمًا عَنِ الْغَائِبِ نو ځکه حاضر به د غائب له طرفه خصم دريږي وَكَذَلِكَ عَبْدٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ قُتِلَ عَمْدًا او همدارنګه غلام کوم چي د دوو سړيانو تر مينځ مشترک وي چي هغه عمداً قتل کړی سوی وي وَأَحَدُ الرَّجُلَيْنِ غَائِبٌ او له هغه دوو سړيانو څخه يو غائب وي فَهُوَ عَلَى هَذَا نو هغه [هم] پر دغه اختلاف دي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هاغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی چې که د مقتول قاتل یعني زید په دلیل او بینه سره دا دعوی ثابت کړه چې غائب څوی یعني ساجد زه معاف کړی یم. نو په دې صورت کې د مقتول حاضر څوی یعني خالد به د ساجد له طرفه خصم شمېرل کېږي او د زید (قاتل) بینه به قبلول کېږي چې د هغه پر بناء د زید له ذمې څخه قصاص ساقطیږي او پر هغه دیت واجبیږي. او که تر دې وروسته ساجد حاضر سي او د معافی انکار وکړی (چې مانه دی معاف کړی) نو هغه لره اعتبار نسته بلکې دیت د مخکې په څېر پر زید واجب پاتیږي چې هغه به د خالد او ساجد تر مینځ نیم په نیمه تقسیمول کیږي.

و کذلك عبد بین إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د دوو کسانو مشترک غلام یو څوک عمداً قتل کړي او له هغه دوو کسانو (مالکانو) څخه یو حاضر وي او بل غائب وي او حاضر مالک پر قتل بینه پېش کړي. نو په دې صورت کې هم د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله هاغه اختلاف دی کوم چې مخکې ذکر سو. همدارنګه په دې صورت کې هم که قاتل د غائب مالک له طرفه پر معافی بینه پېش کړي (چې هغه زه معاف کړی یم). نو د دې هم هاغه حکم دی کوم چې اوس ذکر سو.

**سوال** : دلته خالد (حاضر) د ساجد (غائب) له طرفه څنګه خصم منل سوی دی؟.

**جواب** : ځکه چې زید (قاتل) دا دعوی کوي چې د خالد حق له قصاص څخه مال (دیت) ته منتقل سو او مال وګرځېدی (یا په بله وینا زید دا دعوی کوي چې پر ما اوس فقط دیت لازم دی. نه قصاص). او دا همغه وخت کېدلای سي کله چې زید دا ثابته کړي چې ساجد (غائب) زه معاف کړی یم. نو د ضرورت او مجبوری پر بناء دلته خالد د ساجد له طرفه خصم منل سوی دی او د خالد په موجودیت کې د زید بینه مقبوله او معتبره منل سوې ده. (اشرف الهدایه)

## که د مقتول له دریو وارثانو څخه دوه د معافی ګواهي ورکړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: فَإِنْ كَانَتِ الْأَوْلِيَاءُ ثَلَاثَةً فرمایي: او که د مقتول ولیان [وارثان] درې وي فَشَهِدَ اثْنَانِ مِنْهُمْ عَلَى الْآخَرِ أَنَّهُ قَدْ عَفَا او له دوی څخه دوه د هغه بل [دریم وارث] په خلاف دا ګواهي ورکړي چې هغه معافي کړې ده [یعني قصاص یې معاف کړی دی] فَشَهَادَتُهُمَا بَاطِلَةٌ نو د دوی دواړو ګواهي باطله ده وَهُوَ عَفْوٌ مِنْهُمَا او دا د دوی له طرفه معافي ده لِأَنَّهُمَا يَجُرَّانِ بِشَهَادَتِهِمَا إِلَى أَنْفُسِهِمَا مَغْنَمًا ځکه چې دوی دواړه د خپلې ګواهۍ په ذریعه خپلو ځانو ته نفع راکشوي وَهُوَ انْقِلَابُ الْقَوَدِ مَالًا او هغه قصاص په مال [دیت] سره بدلېدل دي فَإِنْ صَدَّقَهُمَا الْقَاتِلُ بیا که قاتل د دوی دواړو تصدیق

وکړي فَالدِّيَةُ بَيْنَهُمْ أَثْلَاثًا نو ديت د دوی [دريو سره وارثانو] تر مينځ په دريو حصو سره دی [يعني هريوه ته يو ثلث حاصليږي] مَعْنَاهُ: إِذَا صَدَّقَهُمَا وَحْدَهُ د دې مطلب دا دی چې کله يوازې قاتل د دوی تصديق کړی وي لِأَنَّهُ لَمَّا صَدَّقَهُمَا ځکه کله چې قاتل د دوی تصديق وکړی فَقَدْ أَقَرَّ بِثُلُثَيِ الدِّيَةِ لَهُمَا نو هغه د دوی دواړو لپاره د ديت د دوو ثلثو [دوو حصو] اقرار وکړی فَصَحَّ إِقْرَارُهُ نو ځکه د هغه اقرار صحيح دی إِلَّا أَنَّهُ يَدَّعِي سُقُوطَ حَقِّ الْمَشْهُودِ عَلَيْهِ لېکن څرنګه چې هغه د مشهود عليه [دريم وارث] د حق ساقطېدلو دعویٰ [هم] کوي وَهُوَ يُنْكِرُ حال دا چې مشهود عليه انکار کوي فَلَا يُصَدَّقُ نو ځکه د قاتل تصديق به نه کيږي وَيَغْرَمُ نَصِيبَهُ او قاتل به د هغه [مشهود عليه] د حصې ضامن کيږي.

**اللغات**: ﴿اولياء﴾ جمع د ولي ده: وليان. وارثان (احسن الهدايه). ﴿يجزان﴾ د نصر له بابه د تثنيه غائب مضارع صيغه ده: راکشول. را منتقل کول. ﴿مغنم﴾ منفعت. د غنيمت مال. ﴿مشهود عليه﴾ د چا په خلاف چې ګواهي ورکول سوې وي. ﴿يغرم﴾ د سمع د باب مضارع ده: تاوان (ضمان) پرې لازمېدل. تاوان پوره ته کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که زيد عمداً حامد قتل کړي او د حامد درې ځامن وارثان وه: خالد، ساجد، شاکر، او له هغوی څخه دوه ځامنو مثلاً خالد او ساجد دا ګواهي ورکړه چې زموږ دريم ورور يعني شاکر خپل حق او قصاص معاف کړی دی، نو امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې د خالد او ساجد ګواهي باطليږي او معافي د دوی له طرفه شمېرل کيږي نه د شاکر (دريم) له طرفه؛ ځکه د دغه ګواهۍ تر شا د دوی غلط مقصد کېدلای سي او هغه دا چې زموږ په ګواهۍ سره به قصاص ساقط سي نو ديت به واجب سي او موږ ته به مال حاصل سي، نو د دې غلط مقصد پر بناء به د دوی ګواهي نه قبلول کيږي بلکې خپله به د دوی له طرفه عفو شمېرل کيږي.

**يادونه**: په اصل کې د دې مسئلې څلور (۴) صورتونه دي چې هغوی په مذکوره عبارت او را روان عبارت کې ذکر سوي دي.

① ... يو صورت دا دی چې زيد (قاتل) او شاکر (يعني دريم ورور) دواړه د خالد او ساجد تصديق وکړي چې هو! خبره همداسې ده شاکر قصاص معاف کړی دی، نو څرنګه چې دلته شاکر د دوی تصديق کړی دی، نو ځکه په دې صورت کې شاکر ته له ديت څخه هيڅ شی نه حاصليږي. لېکن خالد او ساجد (ګواهي ورکونکو ورونو) ته د ديت دوې حصې (دوه ثلثه) حاصليږي.

②... دویم صورت دا دی چي زید او شاکر دواړه د دوی تکذیب وکړي، نو په دې صورت کي دوی (خالد او ساجد) ته هیڅ شی نه حاصلیږي او فقط شاکر ته د دیت یوه حصه (یو ثلث) حاصلیږي.

③... دریم صورت دی چي د دوی تصدیق فقط زید (قاتل) وکړي، او شاکر انکار وکړي (چي ما زید نه دی معاف کړی)، نو په دې صورت کي دریو سره ورونو (خالد، ساجد او شاکر) ته دیت حاصلیږي چي هغه به د دوی ترمینځ په دریو حصو سره تقسیمول کیږي یعني هر یوه ته به یوه حصه یا په بله وینا یو ثلث (دریمه حصه) ورکول کیږي (ځکه شی چي درې حصې کړل سي نو د هغه هري حصې ته یو ثلث وایي).

④... څلورم صورت دا دی چي شاکر د دوی تصدیق وکړي او قاتل یې تکذیب وکړي، نو په صورت کي دوی (خالد او ساجد) ته هیڅ شی نه حاصلیږي، فقط شاکر ته د دیت ثلث حاصلیږي. بیا به دا ثلث دوی دواړه له شاکر څخه اخلي؛ ځکه شاکر د دوی تصدیق کړی وو چي په دې سره شاکر د دې اقرار کونکی سو چي حق د همدوی دی.

نو ځکه مصنف رَحِمَهُ اللہ فرمایي:

فإن صدّقهما إلخ: دا د دریم صورت حکم دی چي په هغه کي دریو سره ورونو (یعني خالد، ساجد او شاکر) هر یوه د دیت یو ثلث حاصلیږي؛ ځکه کله چي زید (قاتل) د خالد او ساجد تصدیق وکړي، نو ګواکي د دوی لپاره یې د دوو ثلثو دیت اقرار وکړي، نو د زید دا اقرار خو صحیح دی. لیکن زید د خپل تصدیق (چي شاکر زه معاف کړی یم) په ضمن کي دا دعویٰ هم کوي چي د شاکر حق ساقط سو. حال دا چي شاکر د معافی انکار کوي چي ما نه دی معاف کړی او ګواکي دوی ټوله د شاکر حق ساقطول غواړي، نو ځکه په دې هکله به د زید (قاتل) قول معتبر نه وي او د شاکر د دیت حصه (یو ثلث) به هم پر زید واجب وي.

**که دریم وارث د دوی تردید وکړي نو څه حکم دی؟**

وَإِنْ كَذَّبَهُمَا او که هغه [دریم وارث] د دوی دواړو تکذیب وکړي فَلَا شَيْءَ لَهُمَا نو د دوی دواړو لپاره هیڅ شی نسته وَلِلْآخَرِ ثُلُثُ الدِّيَةِ او د هغه بل [دریم وارث] لپاره د دیت دریمه حصه ده مَعْنَاهُ: إِذَا كَذَّبَهُمَا الْقَاتِلُ أَيْضًا د دې مطلب دا دی: چي کله قاتل هم د دوی دواړو تکذیب وکړي وَهٰذَا لِأَنَّهُمَا أَقَرَّا عَلَى أَنْفُسِهِمَا بِسُقُوطِ الْقِصَاصِ او دا [حکم] ځکه دی چي دوی دواړو پر خپل نفس د قصاص ساقطیدلو اقرار کړی دی فَقُبِلَ نو ځکه دا اقرار به قبلول کیږي وَادَّعَيَا انْقِلَابَ نَصِيبِهِمَا مَالًا او دوی دواړو دا دعویٰ [هم] کړې ده چي د دوی حصه په مال [دیت] بدله سوې ده فَلَا يُقْبَلُ

إِلَّا بِحُجَّةٍ نو دا دعویٰ به نه قبلول کيږي مګر په حجت [او بينې] سره وَيَنْقَلِبُ نَصِيبُ الْمَشْهُوْدِ عَلَيْهِ مَالًا او د مشهود عليه [درېيم ورث] حصه په مال سره بدليږي لِأَنَّ دَعْوَاهُمَا الْعَفْوَ عَلَيْهِ وَهُوَ يُنْكِرُ ځکه چي د هغه [درېيم وارث] په خلاف د دوی د معافي دعویٰ [چي هغه قصاص معاف کړی دی] حال دا چي هغه انکار کوي بِمَنْزِلَةِ ابْتِدَاءِ الْعَفْوِ مِنْهُمَا فِي حَقِّ الْمَشْهُوْدِ عَلَيْهِ [نو دا دعویٰ] د دوی له طرفه د مشهود عليه [درېيم وارث] په حق کي د ابتداءً معاف کولو په درجه کي ده لِأَنَّ سُقُوطَ الْقَوَدِ مُضَافٌ إِلَيْهِمَا ځکه چي د قصاص سقوط همدوی دواړو ته منسوب دی وَإِنْ صَدَّقَهُمَا الْمَشْهُوْدُ عَلَيْهِ وَحْدَهُ او که يوازي مشهود عليه د دوی تصديق وکړي غَرِمَ الْقَاتِلُ ثُلُثَ الدِّيَةِ لِلْمَشْهُوْدِ عَلَيْهِ نو قاتل د مشهود عليه لپاره د ديت د ثلث [درېيمي حصې] ضامن کيږي لِإِقْرَارِهِ لَهُ بِذٰلِكَ ځکه چي قاتل د هغه لپاره د ديت د ثلث اقرار کړی دی.

**اللغات**: ﴿كَذَّبَ﴾ د تفعل له بابه ماضي ده. كَذَّبَ يُكَذِّبُ تَكْذِيبًا: تکذيب کول. دروغجن ګرځول. دروغجن بلل.

**تشريح**: د عبارت په اوله حصه کي د دويم صورت حکم ذکر سوی دی يعني که درېيم ورور يعني شاکر همدارنګه قاتل دواړه د خالد او ساجد (ګواهي ورکونکو) تکذيب وکړي؛ نو د خالد او ساجد حق ساقطيږي او مشهود عليه (يعني شاکر) ته د ديت يو ثلث حاصليږي؛ ځکه کله چي خالد او ساجد د شاکر په خلاف د معافي ګواهي ورکړه (چي شاکر قاتل [زيد] معاف کړی دی). نو ګواکي خالد او ساجد د خپل حق د ساقطېدلو اقرار وکړی او د انسان اقرار د هغه په حق کي حجت دی. نو ځکه د حق ساقطېدلو په هکله به د هغوی دا اقر مقبول وي او د هغوی له طرفه به قصاص ساقطيږي. او څرنګه چي د دې اقرار په ضمن کي خالد او ساجد دا دعویٰ هم کړې ده چي زموږ حق له قصاص څخه د ديت وطرف ته منتقل سوی دی، او هغوی پر دې دعویٰ بينه نه ده پېش کړې، نو ځکه د دا دعویٰ هم مقبوله نه ده او د هغوی حق په کلي توګه ساقطيږي.

د دې په خلاف چي هغوی د کوم يوه په خلاف ګواهي ورکړې ده يعني شاکر. هغه ته ثلث ديت حاصليږي؛ ځکه کله چي هغوی دواړو د قصاص معافي د شاکر وطرف ته منسوب کړه او شاکر د هغوی تکذيب او انکار وکړی (چي ما قاتل نه دی معاف کړی)، نو اوس د معافي نسبت د هغوی وطرف ته کيږي او دا به ګڼل کيږي چي همدا خالد او ساجد سر له شروع څخه له خپل طرفه قصاص معاف

کړې دی، نو ځکه د هغوی حق به ساقطيږي، او شاکر (مشهودعليه) کوم چې د معافي انکار کوي د هغه په مال (ديت) سره بدليږي نو هغه ته به په ديت کې خپله حصه (يو ثلث) ورکول کيږي.

وإن صدقهما إلخ: دا دآخري څلورم صورت حکم دی يعني چې شاکر (مشهودعليه) د خپل دواړو ورونو خالد او ساجد تصديق وکړي چې هو! ماد قاتل (زيد) معاف کړی دی، خو قاتل انکار کوي چې تازه نه يم معاف کړی. نو په دې صورت کې شاکر ته ثلث ديت (د ديت درېيمه حصه) حاصليږي يعني قاتل د شاکر (درېيم ورور) لپاره د ديت ديوه ثلث ضامن کيږي چې شاکر ته به يې ورکوي: ځکه کله چې قاتل د شاکر د معافي انکار وکړی (چې تازه نه يم معاف کړی) نو ګواکي د شاکر لپاره يې د ثلث ديت اقرار وکړی، نو ځکه د قاتل اقرار به د هغه په حق کې مقبول وي او په خپل اقرار کښې به مأخوذ وي او پر هغه به د ديت ثلث واجب وي.

**که دا ګواهي ورکړي چې د فلانکي د وهلو په وجه هغه صاحب فراش سو او په همدې کې مړ سو**

قَالَ: وَإِذَا شَهِدَ الشُّهُوْدُ فرمايي: او کله چې ګواهان دا ګواهي ورکړي أَنَّهُ ضَرَبَهُ فَلَمْ يَزَلْ صَاحِبَ فِرَاشٍ حَتّٰى مَاتَ چې فلانکي کس فلانکی ووهلی نو هغه [مضروب] مسلسل بستري سو تر دې چې مړ سو فَعَلَيْهِ الْقَوَدُ إِذَا كَانَ عَمَدًا نو پر هغه [ضارب] قصاص دی که چيري ضرب عمداً وي لِأَنَّ الثَّابِتَ بِالشَّهَادَةِ كَالثَّابِتِ مُعَايَنَةً ځکه کوم شی چې په ګواهي سره ثابت وي هغه داسي دی لکه په ليدنه سره چې ثابت وي وَفِي ذٰلِكَ الْقِصَاصُ او په دې صورت کې قصاص دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکي] چې موږ بيان کړه وَالشَّهَادَةُ عَلٰى قَتْلِ الْعَمَدِ تَتَحَقَّقُ عَلٰى هٰذَا الْوَجْهِ او په قتل عمد باندي ګواهي پر دغه طريقه متحقق کيږي لِأَنَّ الْمَوْتَ بِسَبَبِ الضَّرْبِ إِنَّمَا يُعْرَفُ ځکه د وهلو په سبب هغه وخت مرګ پېژندل کيږي إِذَا صَارَ بِالضَّرْبِ صَاحِبَ فِرَاشٍ حَتّٰى مَاتَ کله چې د وهلو په وجه هغه [مضروب] د بستر خاوند وګرځي تر دې چې مړ سي وَتَأْوِيْلُهُ إِذَا شَهِدُوْا أَنَّهُ ضَرَبَهُ بِشَيْءٍ جَارِحٍ او د دې تأويل دا دی چې کله ګواهانو دا ګواهي ورکړې وي چې ضارب هغه په زخمي کونکي شي سره وهلی دی.

**اللغات**: ﴿صَاحِب فراش﴾ د بستر خاوند، بستري، هغه کس چې زخم او تکليف يې دومره زيات سخت سي چې له ولاړي څخه يې وباسي او بستر لازم ونيسي، ﴿معاينة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: په ستر ګو ليدل، په خپله ليدل، مشاهده، ﴿يتحقق﴾ د تفعّل مضارع ده: ثابتېدل، موجودېدل.

**تشريح**: دعبارت حاصل دا دی چي څرنګه دستر ګو په ليدنه او په مشاهده سره يو خبر او معامله ثابتيږي، همداسي په ګواهۍ سره هم ثابتيږي. لهذا که ګواهانو دا ګواهي ورکړه چي زيد راغلی او حامد يې داسي ووهلی چي هغه له ولاړي څخه ووتی او مسلسل صاحب فراش سو چي بالآخره يې د هغه وهلو او زخمونو په وجه ساه دلاسه ورکړه. نو په دې صورت کي پر زيد (ضارب) قصاص واجبيږي، او دا تفصيل هغه وخت دی کله چي د زيد دغه وهل عمداً وي همدارنګه په وسله يا په بل تېره زخمي کونکي شي سره وي، کنې د دې او لکړي حکم جلا دی (کما مر).

لنډه دا چې کله ګواهانو مذکوره ګواهي ورکړه. نو ګواکي هغو د دې ګواهي ورکړه چي زيد عمداً قتل کړی دی او د قتل عمد سزا صرف قصاص دی.

## د قتل په ګواهۍ کي د ورځي يا آلې په هکله د اختلاف حکم

قَالَ: وَإِذَا اخْتَلَفَ شَاهِدَا الْقَتْلِ فرمايي: او کله چي د قتل دوه ګوهان اختلاف وکړي فِي الْأَيَّامِ أَوْفِي الْبَلَدِ [د قتل] په ورځو يا په ښار کي أَوْفِي الَّذِيْ كَانَ بِهِ الْقَتْلُ يا په هغه شي [آله] کي چي په هغه سره قتل سوی دی فَهُوَبَاطِلٌ نو دا ګواهي باطله ده لِأَنَّ الْقَتْلَ لَا يُعَادُ وَلَا يُكَرَّرُ ځکه چي قتل نه راګرځول کيږي او نه مکرّر کيږي [يعني څوک دوه ځله نه قتلول کيږي] وَالْقَتْلُ فِي زَمَانٍ أَوْفِي مَكَانٍ غَيْرُ الْقَتْلِ فِي زَمَانٍ أَوْ مَكَانٍ آخَرَ او په يوه زمانه يا په يوه ځای کي واقع سوی قتل په بله زمانه يا بله ځای کي له واقع سوي قتل څخه بغير جلا قتل دی [دواړه يو نه وي] وَالْقَتْلُ بِالْعَصَا غَيْرُ الْقَتْلِ بِالسِّلَاحِ او په لکړي سره قتلول په وسلې له قتلولو څخه بغير جلا قتل دی لِأَنَّ الثَّانِيْ عَمْدٌ وَالْأَوَّلَ شِبْهُ الْعَمْدِ ځکه چي دويم قتلِ عمد دی او اول شبهِ عمد دی وَيَخْتَلِفُ أَحْكَامُهُمَا او د دې دواړو احکام سره جلا دي فَكَانَ عَلٰى كُلِّ قَتْلٍ شَهَادَةٌ فَرْدٍ لهذا پر هر قتل به يوازي د يوه کس ګواهي وي وَكَذَا إِذَا قَالَ أَحَدُهُمَا: قَتَلَهُ بِعَصًا او همدارنګه که له دوی دواړو څخه يو ګواه ووايي: چي قاتل هغه په لکړي سره قتل کړی دی وَقَالَ الْآخَرُ: لَا أَدْرِيْ بِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلَهُ او بل ګواه ووايي: چي خبر نه يم په کوم شي سره يې قتل کړی دی فَهُوَبَاطِلٌ نو دا ګواهي باطله ده لِأَنَّ الْمُطْلَقَ يُغَايِرُ الْمُقَيَّدَ ځکه چي مطلق له مقيد څخه غير [او جلا] وي.

**اللغات**: ﴿لا يكرر﴾ د تفعيل له بابه د نفي مجهول صيغه ده: يو كار دوه ځله كېدل، څو ځله كېدل.

﴿يغاير﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: يو د بل غير كېدل (يو له بل څخه جلا كېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې دوو كسانو مثلاً خالد او ساجد دا ګواهي وركړه چې زيد حامد قتل كړی دی، لېكن د دوی په ګواهي كې اختلاف دی خالد وايي چې د جمعې په ورځ يې قتل كړی دی او ساجد وايي چې د شنبې (هفتې) په ورځ يې قتل كړی دی. يا خالد وايي چې په كندهار كې يې وژلی دی او ساجد وايي چې په قلات كې يې وژلی دی. يا خالد وايي چې په توره يې قتل كړی دی او ساجد وايي چې په لكړه يې قتل كړی دی، نو په دې ټولو صورتونو كې د دواړو ګواهي باطليږي؛ ځكه د هر قتل لپاره يوه ګواهي باقي پاتــه سوه (يعني څرنګه چې دلته دواړو د دوو جلا مختلفو قتلونو په هكله ګواه وركړې ده. نو د هرَ قتل په هكله صرف د يوه كس ګواهي ده)، لهذا د ګواهي نصاب پوره نه سو. نو ځكه دا ګواهي باطليږي.

ځكه دا خو ممكنه نه ده چې حامد دې دوه واره قتل سوی وي او د هر وار قتل دې له بل څخه جلا وي. همدارنګه د لكړې قتل هم د توري له قتل څخه جلا دی؛ ځكه په توري سره قتلول قتلِ عمد دي او په لكړي سره قتلول شبهِ عمد دی او د دواړو احكام سره جلا دي (لكه مخكې چې د دې وضاحت وسو).

وكذا إذا قال إلخ: همدارنګه كه خالد ووايي چې په لكړې سره يې وژلی دی او ساجدْ ووايي چې نور په خبر نه يم چې په څه بلا يې وژلی دی؟ نو دا ګواهي هم باطليږي: ځكه چې د مطلق حكم د مقيد له حكم څخه غير او جلا دی او دلته چې كوم يوه په لكړې سره د قتل شهادت (ګواهي) وركړې ده. د هغه شهادت مقيد دی او كوم يو چې وايي ما ته معلومه نه ده چې په څه شي سره يې وژلی دی. د هغه شهادت مطلق دی، او د دواړو حكم سره جلا دی، ځكه د مطلق قتل په صورت كې ديت د قاتل په مال كې واجبيږي او د مقيد قتل په صورت كې پر عاقله وو واجبيږي.

**د قتل په ګواهي كې كه ګواهان د قتل د آلې په هكله ناخبري ښكاره كړي (حكم او تفصيل)**

قَالَ: وَإِنْ شَهِدَا أَنَّهُ قَتَلَهُ فرمايي: او كه دوو ګواهانو دا ګواهي وركړه چې قاتل هغه قتل كړی دی وَقَالَا: لَا نَدْرِيْ بِأَيِّ شَيْءٍ قَتَلَهُ او دواړو وويل: موږ خبر نه يو [موږ ته معلومه نه ده] چې په كوم شي سره يې قتل كړی دی فَفِيْهِ الدِّيَةُ اِسْتِحْسَانًا نو په دې كې استحساناً ديت [واجب] دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا تُقْبَلَ هٰذِهِ الشَّهَادَةُ او قياس دا دی چې دا ګواهي به نه قبلول كيږي لِأَنَّ الْقَتْلَ يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ

الْآلَةِ ځکه چې قتل دآلې په بدلېدلو سره بدلېږي فَجُهِلَ الْمَشْهُوْدُ بِهٖ نو د کوم شي په باره کې چې ګواهي ورکول سوې ده [يعني قتل] هغه مجهول سو وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ أَنَّهُمْ شَهِدُوْا بِقَتْلٍ مُطْلَقٍ د استحسان دليل دا دی چې دوی د مطلق قتل ګواهي ور کړې ده وَالْمُطْلَقُ لَيْسَ بِمُجْمَلٍ او مطلق مجمل نه دی فَيَجِبُ أَقَلُّ مُوْجَبَيْهِ نو ځکه د قتل لـه دوو مقتضاوو [قصاص او ديت] څخه به کمترين يو واجبېږي وَهُوَ الدِّيَةُ چې هغه ديت دی وَلِأَنَّهٗ يُحْمَلُ إِجْمَالُهُمْ فِي الشَّهَادَةِ عَلٰى إِجْمَالِهِمْ بِالْمَشْهُوْدِ عَلَيْهِ سَتْرًا عَلَيْهِ او ځکه چې په دې ګواهي کې د ګواهانو اجمال [او اطلاق] په مشهود عليه باندې د پردې اچولو په غرض سره د دوی پر اجمال [احسان] باندې حمل کول کيږي وَأَوَّلُوْا كَذِبَهُمْ فِي نَفْيِ الْعِلْمِ بِظَاهِرِ مَا او ګواهانو د علم د نفي کولو په هکله [چې موږ ته معلومه نه ده] د خپل درواغو تأويل وکړی د هغه نص په ظاهر سره وَرَدَ بِإِطْلَاقِهٖ فِيْ إِصْلَاحِ ذَاتِ الْبَيْنِ کوم چې په اصلاح ذات البين کې د درواغو د اباحت [روايښت] په هکله وارد سوی دی وَهٰذَا فِيْ مَعْنَاهُ او دا [پر مشهود عليه پرده اچول] د هغه [اصلاح ذات البين] په معنیٰ سره دی فَلَا يَثْبُتُ الْاِخْتِلَافُ بِالشَّكِّ لهذا د شک په وجه به اختلاف [يعني د فعل او آلې اختلاف] نه ثابتيږي [يعني کله چې د دې احتمال هم سته چې ګواهان به په خبر وي خو د سَتر په توګه به يې اجمال کړی وي او د دې احتمال هم سته چې داسې به نه وي، نو شک واقع سو، او اختلاف په شک سره نه ثابتيږي] وَتَجِبُ الدِّيَةُ فِيْ مَالِهٖ او ديت د قاتل په مال کې واجبيږي لِأَنَّ الْأَصْلَ فِي الْفِعْلِ الْعَمَدُ ځکه چې په فعل کې اصل عمد دی فَلَا يَلْزَمُ الْعَاقِلَةَ نو ځکه دا ديت به پر عاقله وو نه لازميږي.

**اللغات:** ﴿مُوْجَبَيْهِ﴾ تثنيه د مُوْجَبٌ ده کوم چې د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی څه (هغه څه کوم چې د بل شي په واجب سي)، حکم، مقتضا. ﴿إجمال﴾ د افعال د باب مصدر دی: أَجْمَلَ يُجْمِلُ إِجْمَالًا: په مختصره او مبهمه توګه خبره کول (داسې کلام ذکر کول چې مراد يې مبهم وي). په کلام کې اختصار کول. داسې خبره کول چې د څو معناوو احتمال لري. د مجمل او مطلق فرق به د عبارت په آخر کې ذکر سي. ﴿ستر﴾ د نصر د باب مصدر دی: پټول، پرده ساتل. عيب او غلطي پټول (پرده پوشي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې دوو کسانو مثلاً خالد او ساجد د قتل ګواهي ورکړه چې زيد حامد قتل کړی دی، لېکن په کوم شي سره يې قتل کړی دی، په دې باره کې يې نا خبري ښکاره

کړه (چي په دې نو موږ خبر نه يو)، نو د قياس تقاضا دا ده چي دا ګواهي باطله ده او نه به قبلول کيږي: ځکه د ګواهانو په ګواهۍ کي د قتل د آلې هيڅ ذکر نسته حال دا چي د آلې په بدلېدلو سره د قتل حکم بدليږي، لهذا دلته مشهود به (قتل) مجهول دی او د مجهول شي په هکله ورکول سوي ګواهۍ لره هيڅ اعتبار نه وي، نو ځکه قياساً دا ګواهي باطله ده.

لېکن دلته قياس پرېښوول سوی دی او په استحسان عمل سوی دی او استحساناً دا ګواهي معتبره ده او قبلول کيږي به.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دليل دا دی چي کله ګواهانو د قتل د آلې له ذکر څخه بغير ګواهي ورکړه، نو دوی د مطلق قتل ګواهي ورکړه او پر مطلق عمل کول ممکن وي، لېکن په مجمل عمل کول ممکن نه وي او په مطلق کي اجمال نه وي؛ نو ځکه دلته به هم د ګواهانو مطلقه ګواهي استحساناً قبلول کيږي او د قتل اقلّ (کمتره) سزا او موجَب يعني ديت به واجبول کيږي.

او پاته سو د ګواهانو د اجمال او اطلاق (يعني د مطلقي ګواهۍ) محمل به دا وي چي دوی پر قاتل پرده اچول غواړي چي په دې توګه پر هغه احسان وکړي، او دلته که څه هم په دې ستر او احسان کي پر ګواهانو د کذب او درواغو الزام راجع کيږي، خو څرنګه چي دغه کذب او پرده پوشي د اصلاح ذات البين سره متعلق ده او د اصلاح ذات البين لپاره خو د صراحتاً کذب اجازه هم وارد سوې ده، نو ځکه دا شی د عار باعث نه دی لکه څرنګه چي په حديث کي دي "لَيْسَ بِكَذَّابٍ مَنْ يُصْلِحُ بَيْنَ اثْنَيْنِ" يعني په دوو کسانو کي صلح کونکی کس درواغجن نه دی، همدارنګه په يو بل حديث کي دي "إِنَّ إِصْلَاحَ ذَاتِ الْبَيْنِ أَعْظَمُ مِنْ عَامَةِ الصَّلَاةِ وَالصِّيَام" يعني د دوو خلګو تر مېنځ صلح کول له نفلي لمانځه او روژې څخه هم زيات ښه عمل دی، همدارنګه له دې څخه بغير نور هم په څو طريقو سره د اصلاحِ ذات البين فضيلت وارد سوی دی، او ښکاره خبره ده چي پر مجرم د قصاص پر ځای ديت واجبول هم اصلاح ذات البين دی، نو ځکه په هغه کي به د کذب او درواغو ګنجايش وي او له ګواهانو څخه به د خپل دې قول "لاندری بأی شیء قتله" په هکله هيڅ پوښتنه او مؤاخذه نه کيږي. لنډه دا چي په مطلق شهادت سره دلته اصل قتل ثابتيږي او څرنګه چي دا معامله د قتلِ عمد سره متعلق ده، نو ځکه دلته به د قاتل په ذاتي مال کي ديت واجبيږي، نه پر عاقله وو. (احسن الهدايه)

**فايده:** د مجمل او مطلق تر مېنځ فرق: مجمل هغه ته وايي چي په هغه کي د څو معناوو اشتباه وي او ذات معلوم نه وي؛ بيا که يو په دليل سره يو معنیٰ متعيّنه سي نو په هغه عمل کيږي. او مطلق هغه دی چي د هغه معنیٰ خو معلومه وي لېکن د هغه په ثبوت کي څو مختلف الاصناف افراد مندرج وي، نو

هر فرد چي واخيستل سي په مطلق عمل کيږي. لکه څرنګه چي د بني اسرائيلو د غوا حکم مطلق دی، برابره ده د هغې هر ډول رنګ وي يا هر څه عمر يې وي. لهذا پر هغه عمل ممکن دی. له همدې کبله په حديث کي راغلي دي چي د دغه حکم په وخت کي که بني اسرائيلو هره غوا قرباني کړې وای نو جائز به وای. لېکن دې ناپوهانو سختي وکړه نو الله ﷻ پر دوی سختي وکړه. (اشرف الهدايه)

## د دوو کسانو له طرفه د يوه قتل اقرار (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا أَقَرَّ رَجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنَّهُ قَتَلَ فُلَانًا فرمايي: او کله چي دوه سړيان له دوی څخه هر يو دا اقرار وکړي چي هاغه فلانکی قتل کړی دی [يعني هر يو وو ايي چي فلانی کس ما قتل کړی دی] فَقَالَ الْوَلِيُّ: قَتَلْتُمَاهُ جَمِيعًا نو ولي وو ايي: چي تاسي دواړو هغه قتل کړی دی فَلَهُ أَنْ يَقْتُلَهُمَا نو ولي ته حق سته چي دوی دواړه [قصاصا] قتل کړي وَإِنْ شَهِدُوا عَلَى رَجُلٍ أَنَّهُ قَتَلَ فُلَانًا او که دوی د يو سړي په خلاف ګواهي ورکړي چي هغه فلانکی قتل کړی دی وَشَهِدَ آخَرُونَ عَلَى آخَرَ بِقَتْلِهِ او نور ګواهان د بل سړي په خلاف د هغه [فلانکي] د قتل ګواهي ورکړي وَقَالَ الْوَلِيُّ: قَتَلْتُمَاهُ جَمِيعًا او ولي وو ايي: چي تاسي دواړو هغه قتل کړی دی: بَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُ نو دا ټوله باطليږي وَالْفَرْقُ أَنَّ الْإِقْرَارَ وَالشَّهَادَةَ يَتَنَاوَلُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وُجُودَ كُلِّ الْقَتْلِ وَوُجُوبَ الْقِصَاصِ او فرق دا دی چي اقرار او ګواهي له دوی څخه هر يو د ټوله قتل او د ټوله قصاص وجوب لره شامل دي وَقَدْ حَصَلَ التَّكْذِيبُ فِي الْأَوَّلِ مِنَ الْمُقَرِّلَهُ او په اول [د اقرار په صورت] کي د مقرلهٗ [ولي] له طرفه تکذيب حاصل سوی دی وَفِي الثَّانِي مِنَ الْمَشْهُودِلَهُ او په دويم [د ګواهی په صورت] کي د مشهود لهٗ [ولي] له طرفه [تکذيب حاصل سوی دی] غَيْرَ أَنَّ تَكْذِيبَ الْمُقَرِّلَهُ الْمُقِرَّ فِي بَعْضِ مَا أَقَرَّ بِهِ خو د مقر لهٗ [ولي] له طرفه د اقرار کونکي تکذيب کول په بعضي هغه خبره کي چي اقرار کونکي د هغه اقرار کړی دی [يعني مقرلهٗ (ولي) چي په بعضي خبره کي د اقرار کونکي سړي تکذيب کړی دی چي بلکي تاسي دواړو قتل کړی دی. دا تکذيب] لَا يُبْطِلُ إِقْرَارَهُ فِي الْبَاقِي په پاته خبره کي د هغه اقرار نه باطلوي وَتَكْذِيبُ الْمَشْهُودِلَهُ الشَّاهِدَ فِي بَعْضِ مَا شَهِدَ بِهِ او [د ګواهی په صورت کي] د مشهود لهٗ [ولي] له طرفه د ګواه تکذيب کول په بعضي هغه خبره کي چي هغه ګواهي ورکړې ده [يعني دا تکذيب چي تا نه، بلکي تاسي ټولو قتل کړی دی] يُبْطِلُ شَهَادَتَهُ أَصْلًا د هغه ګواهي بالکل باطلوي لِأَنَّ التَّكْذِيبَ تَفْسِيقٌ ځکه چي تکذيب [دراغجن بلل]

فاسق ګرځول دي وَفِسْقُ الشَّاهِدِ يَمْنَعُ الْقَبُوْلَ او د ګواه فاسق کېدل [د ګواهی] قبلېدل منع کوي أَمَّا فِسْقُ الْمُقِرِّ لَا يَمْنَعُ صِحَّةَ الْإِقْرَارِ خو د اقرار کونکي فاسق کېدل د اقرار صحيح کېدل نه منع کوي.

**اللغات**: ﴿تکذيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: دروغجن بلل (ګڼل)، دروغجن ګرځول.

﴿تفسيق﴾ مخکني صيغه ده: فاسق بلل او فاسق ګرځول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: په لنډه توګه صورت د مسئلې او حاصل د عبارت دا دی چې يو کس مثلاً زيد اقرار وکړي چې حامد ما قتل کړی دی او بل کس مثلاً خالد اقرار وکړي چې حامد ما قتل کړی دی. نو د حامد ولي او وارث وويل چې تاسي دواړو قتل کړی دی. نو په دې صورت کي ولي ته حق سته چې له زيد او خالد دواړو څخه قصاص واخلي. (دا د اقرار صورت دی. او د ګواهی د صورت حکم جلا دی چې هغه به لاندي ذکر سي)

او که زيد او خالد دواړو ګواهي ورکړه چې د حامد قتل فلانکي مثلاً ساجد کړی دی او دوو نورو کسانو مثلاً عُمر او بَکر ګواهي ورکړه چې د هغه قتل فلانکي مثلاً شاکر کړی دی. او د مقتول (حامد) ولي وويل چې دې ټولو ګوهانو په ګډه حامد قتل کړی دی. نو په دې صورت کي هغه له يوه څخه هم قصاص نه سي اخيستلای.

والفرق إلخ: دا د اقرار او ګواهی په مينځ کي د فرق وجه ده. حاصل يې دا دی چې د اقرار کونکو (زيد او خالد) اقرار دا ښيي چې ټوله قتل ديوه له طرفه دی. نه د دواړو له طرفه. لېکن ولي د دوی تکذيب وکړی نو د تکذيب په وجه صرف دوی فاسقان سول. او د فاسق اقرار صحيح پاتيږي. نو ځکه دواړه په قصاص کي قتلول کېدلای سي.

او د ګواهانو هر فريق دا ګواهي ورکړه چې قصاص پر فلانکي واجب دی، خو ولي د ګواهانو تکذيب هم وکړی او کله چې د دوی تکذيب وسو او دروغجن وګرځول سول نو دوی فاسقان سول. او د فاسق ګواهي نا معتبره او نا مقبوله ده. (اشرف الهدايه)

فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابٌ فِي اِعْتِبَارِ حَالَةِ الْقَتْلِ

(دا) باب د حالت قتل دا اعتبار کولو په بیان کي دی

**تشریح:** قتل اصل او بالذات دی او حالت قتل د هغه صفت او تابع دی، او ذوات له صفاتو څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله مخکي ذوات بیان کړل، اوس له دې ځایه صفات یعني د هغوی حالات بیانوي.

**که ویشتل سوی کس مرتد سي نو د قصاص حکم**

قَالَ: وَمَنْ رَمٰى مُسْلِمًا فرمايي: او څوک چي یو مسلمان په غشي سره وویلي [د مسلمان طرف ته غشی وغورځوي] فَارْتَدَّ الْمَرْمِيُّ إِلَيْهِ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ نو مرمي اليه [د چا طرف ته چي غشی غورځول سوی دی (یعني مسلمان) هغه] نعوذ بالله مرتد سي ثُمَّ وَقَعَ بِهِ السَّهْمُ بیا پر هغه غشی ولګیږي فَعَلَى الرَّامِيْ الدِّيَةُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر رامي [ویشتونکي کس] باندي دیت واجب دی وَقَالَا: لَا شَيْءَ عَلَيْهِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه هیڅ شی واجب نه دی لِأَنَّهُ بِالْاِرْتِدَادِ أَسْقَطَ تَقَوُّمَ نَفْسِهِ ځکه چي هغه [مرمي اليه] د مرتد کېدلو په وجه د خپل نفس متقوم والی ساقط کړی فَيَكُوْنُ مُبْرِئًا لِلرَّامِيْ عَنْ مُوْجَبِهِ نو هغه به د رمي له موجب [دیت] څخه د رامي بري کونکی وګرځي كَمَا إِذَا أَبْرَأَهُ بَعْدَ الْجَرْحِ قَبْلَ الْمَوْتِ لکه [په هغه صورت کي] کله چي تر زخمي کېدلو وروسته له مرګ څخه مخکي مرمي اليه هغه بري کړی وي وَلَهُ: أَنَّ الضَّمَانَ يَجِبُ بِفِعْلِهِ وَهُوَ الرَّمْيُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي ضمان د رامي په فعل سره واجبيږي او د هغه فعل رمي ده [یعني غشی ویشتل (غورځول)] إِذْ لَا فِعْلَ مِنْهُ بَعْدُ ځکه له رمي څخه وروسته د رامي له طرفه هیڅ فعل نسته [یعني تر رمي وروسته له هغه څخه بل فعل نه دی صادر سوی] فَتُعْتَبَرُ حَالَةُ الرَّمْيِ نو ځکه د رمي د حالت اعتبار به کیږي وَالْمَرْمِيُّ إِلَيْهِ فِيْهَا مُتَقَوَّمٌ او مرمي اليه د رمي په حالت کي

متقوّم دی [ځکه چي مسلمان دی] وَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ حَالَةُ الرَّمْيِ فِي حَقِّ الْحِلِّ همدا وجه ده چي [د ښکار] د حِلت په حق کي د رمي د حالت اعتبار کيږي حَتّٰى لَا يَحْرُمُ بِرِدَّةِ الرَّامِيْ بَعْدَ الرَّمْيِ تر دي چي تر رمي وروسته د رامي په مرتد کېدلو سره ښکار نه حراميږي وَكَذَا فِي حَقِّ التَّكْفِيْرِ او همدارنګه د کفاره ورکولو په حق کي حَتّٰى جَازَ بَعْدَ الْجُرْحِ قَبْلَ الْمَوْتِ تر دي چي له زخم وروسته تر مړ کېدلو مخکي کفاره ورکول جائز دي.

**اللغات:** ﴿رمْی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: غشی وغيره وېشتل، غورځول. ﴿مرمی إليه﴾ مَرْمِیّ د ضرب له بابه مفعول دی: د چا طرف ته چي غشی وېشتل (غورځول) سوی وي، څوک چي په غشي سره وېشتل سوی وي. ﴿متقوّم﴾ د تفعّل د باب مفعول دی: قيمت لرونکی، کوم شی چي په شريعت کي څه قيمت او ارزښت لري، هغه ته "متقوّم" وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک عمداً پر يو مسلمان غشی وغيره ور ايله کړي لېکن کوم وخت چي پر هغه غشی ولګيږي په هغه وخت کي مسلمان مرتد سوی وي (دمثال په توګه زيد مسلمان دی خو د مسلمانانو سره په ديني اُمورو کي اختلاف او منازعه کوي او د اختلاف په دوران کي خپل باطني کفر ښکاره کړي او حامد په دې خبر نه وي او حامد هغه په غشي يا توپنچه وغيره سره وويلي او د وار کولو په وخت کي د هغه ارتداد ښکاره نه وي خو د وار لګېدلو په وخت کي د هغه ارتداد ښکاره سوی وي، نو څه حکم دی؟)، صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي پر وېشتونکي کس (حامد) باندي هيڅ شی هم نه واجبيږي؛ د صاحبينو دليل دا دی چي د قصاص يا ديت واجبېدلو لپاره معصوم او متقوّم نفس قتلول شرط دي، حال دا چي په دې مسئله کي مرمی اليه (زيد) تر غشي لګېدلو مخکي د ارتداد په وجه د خپل نفس عصمت او تقوّم ساقط کړی دی او هغه په دې سره رامي کس (حامد) د رَمْي له موجب يعني له ديت څخه بري کړی دی، او که مرمی اليه خپل رامي کس د رَمْي له موجب څخه بري کړي، نو ښکاره ده چي په رامي باندي هيڅ شی نه واجبيږي نو ځکه په مذکوره مسئله کي به هم په رامي باندي هيڅ شی واجب نه وي.

د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي بل کس زخمي او ټپي کړي او د همدې زخم په وجه مجروح مړ سي، ليکن تر مړ کېدلو مخکي مجروح کس خپل جارح معاف کړي، نو پر جارح هيڅ ضمان نه واجبيږي، نو همداسي به دلته هم تر غشي لګېدلو مخکي د مرمی اليه د مرتد کېدلو په وجه پر رامي هيڅ ضمان نه واجبيږي.

ولـه أن الضمان إلخ: په دې سلسله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې د ضمان اجبېدلو بنياد او مدار د رامي په فعل (رَمْي) باندې دی او د فعل يعني د رَمْي په هکله قاعده دا ده چې په کوم حالت کې دا فعل رَمْي (غشی وغيره ويشتل) وسي. هاغه حالت لره اعتبار سته، د فعل عاقبت او انجام لره اعتبار نسته، او څرنګه چې په مذکوره مسئله کې د رامي د فعل (رمي) په وخت کې مرمی اليه مسلمان دی او د هغه نفس متقوّم دی، حال دا چې د مسلمان متقوّم النفس په وژلو سره ضمان واجبيږي، نو ځکه دلته به پر رامي ضمان يعني ديت واجبيږي. په همدې وجه فقهاؤ د ښکار د حلت او حُرمت په هکله د رمي د حالت اعتبار کړی دی مثلاً که يو مسلمان کس پر يو ښکار غشی ور ايله کړي او له غشي لګېدلو څخه مخکې هغه مسلمان مرتد سي، نو د هغه ښکار حلال دی؛ ځکه د رمی (غشي ويشتلو [ايله کولو]) په حالت کې هغه مسلمان وو. همدارنګه که څوک خطاءً پر يو مسلمان غشی ور ايله کړي او بيا له غشي لګېدلو څخه مخکې هغه مسلمان مرتد سي او رامي کفاره اداء کړي، نو دا کفاره اداء کول جائز او صحيح دي؛ ځکه اعتبار د رمي حالت لره دی او د رمي په حالت کې مرمی اليه مسلمان دی چې خطاءً د هغه په وژلو سره کفاره واجبيږي.

صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي چې که د "حتّٰی جاز بعد الجرح قبل الموت" پر ځای د "حتّٰی جاز التكفير بعد الرمي قبل الإصابة" عبارت راوړل سوي وای، نو ډېر به مناسب وای؛ ځکه دلته بحث له رمي او اصابت څخه دی، نه له جرح او موت څخه. (احسن الهدايه)

## په پورتنۍ مسئله کې د قصاص نه واجبېدلو اشکال او د هغه جواب

وَالْفِعْلُ وَإِنْ كَانَ عَمْدًا او فعل که څه هم عمد دی فَالْقَوَدُ سَقَطَ لِلشُّبْهَةِ خو قصاص د شبهې په وجه ساقط سو وَوَجَبَتِ الدِّيَةُ او ديت واجب سو وَلَوْ رَمٰى إِلَيْهِ وَهُوَ مُرْتَدٌّ او که د هغه طرف ته غشی وغورځوي حال دا چې هغه مرتد وي فَأَسْلَمَ نو هغه مسلمان سي ثُمَّ وَقَعَ بِهِ السَّهْمُ بيا پر هغه غشی ولګيږي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ فِي قَوْلِهِمْ جَمِيعًا نو د دوی ټولو د قول مطابق پر هغه هيڅ شی واجب نه دی وَكَذَا إِذَا رَمٰى حَرْبِيًّا او همدارنګه کله چې هغه يو حربي په غشي سره وويشتي فَأَسْلَمَ نو هغه مسلمان سي [بيا غشی پرې ولګيږي] لِأَنَّ الرَّمْيَ مَا انْعَقَدَ مُوجِبًا لِلضَّمَانِ لِعَدَمِ تَقَوُّمِ الْمَحَلِّ ځکه د محل د نا متقوّم والي په وجه رمي د ضمان واجبونکې نه ده منعقد سوې فَلَا يَنْقَلِبُ مُوجِبًا لِصَيْرُورَتِهِ مُتَقَوِّمًا بَعْدَ ذٰلِكَ نو ځکه تر رمي وروسته د نفس د متقوّم کېدلو په وجه به هغه [رمي] د ضمان واجبونکې نه ګرځي.

**تشريح:** د عبارت اوله حصه د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې په مذکوره مسئله کي چې کله رمي عمداً واقع سوې ده او د هاغه په وجه قتل هم سوی دی (زيد مرسوی دی). نو په رامي (حامد) باندي قصاص واجبېدل پکار دي، حال دا چې تاسو دلته ديت واجب کړی دی؟ آخر د دې څه وجه ده؟.

نو د همدې په جواب کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې فعل يعني رمي که څه هم عمداً واقع سوې ده، لېکن د رمي او اصابت (يعني د غشي ويشتلو او لګېدلو) د حالتونو تر مېنځ د اختلاف په وجه په هغه کي شبهه پيدا سوې ده او په شبهې سره حدود ساقطېږي، نو ځکه دلته قصاص ساقط سوی دی او د هغه پر ځای په رامي باندي ديت واجب سوی دی.

ولو رمى إليه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د رمي (غشي ويشتلو) په وخت کي مرمى اليه (زيد) مرتد وو لېکن د رمي د اصابت (غشي لګېدلو) په وخت کي هغه مسلمان سو يا د رمي په وخت کي مرمى اليه حربي وو او د اصابت په وخت کي هغه مسلمان سو، نو په دې دواړو صورتونو کي د هيڅ په نېز هم په رامي باندي ضمان نه واجبېږي؛ ځکه دلته د رمي په حالت کي مرمى اليه مرتد يا حربي دی او د هغه نفس متقوّم او معصوم نه دی، نو ځکه دلته د رمي فعل د ضمان موجب نه سو، لهذا تر رمي وروسته د مرمى اليه د مسلمان کېدلو او د هغه د نفس متقوّم کېدلو په وجه به دا رمي د ضمان موجب نه ګرځي او په رامي باندي به ديت وغيره نه واجبېږي. (احسن الهدايه)

## که غلام له قتلېدلو څخه مخکي آزاد سي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِنْ رَمَى عَبْدًا فرمايي: او څوک چې غلام وويلي فَأَعْتَقَهُ مَوْلَاهُ بيا خپل مالک هغه آزاد کړي ثُمَّ وَقَعَ السَّهْمُ بِهِ بيا پر هغه غشی ولګيږي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ لِلْمَوْلَى عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر رامي د مالک لپاره د غلام قيمت واجب دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي عَلَيْهِ فَضْلُ مَا بَيْنَ قِيمَتِهِ مَرْمِيًّا إِلَى غَيْرِ مَرْمِيٍّ چې پر رامي د مرمي غلام او د غير مرمي غلام د قيمتونو تر مېنځ چې کوم زياتوب [فرق] دی هغه واجب دی وَقَوْلُ أَبِي يُوسُفَ مَعَ قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی لَهُ: أَنَّ الْعِتْقَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې آزادېدل د سرايت ختمونکي دي وَإِذَا انْقَطَعَتْ او کله چې سرايت ختم سو [ودرېدی] بَقِيَ مُجَرَّدُ الرَّمْيِ نو محض رمي پاته سوه وَهُوَ جِنَايَةٌ يَنْتَقِصُ

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، انظر الكتاب المعرف بالقول الراجح [ج:۲، ص:۳۲۶]

بِهَا قِيمَةُ الْمَرْمِيِّ إِلَيْهِ او رمي داسي جنايت دی چي په هغه سره د مرمي اليه قيمت کميږي بِالْإِضَافَةِ إِلَى مَا قَبْلَ الرَّمْيِ له رمي څخه د مخکيني حالت وطرف ته په نسبت کولو سره فَيَجِبُ ذٰلِكَ نو ځکه هغه زياتوب [فرق] به واجب وي.

**اللغات**: ﴿السراية﴾ د ضرب د باب مصدر دی: سرايت کول. نفوذ کول. ﴿انقطعت﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: منقطع کېدل. پرېکېدل او شکېدل. درېدل. ﴿ينتقص﴾ د افتعال د باب مضارع ده: کمېدل. لږېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک پر غلام غشی ورايله کړي لېکن کوم وخت چي پر هغه غشی ولګيږي په دې وخت کي د غلام مالک هغه آزاد کړی وي. په لنډه وينا دا چي د رمي په حالت کي مرمی اليه غلام وي او د اصابت په حالت کي هغه آزاد سوی وي. نو د امام صاحب او امام ابويوسف رَحِمَهُمَا الله په نېز په رامي باندي د دې غلام قيمت واجبيږي چي هغه به د غلام مالک ته ورکول کيږي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دغه مرمي غلام او غيرِ مرمي غلام په قيمتونو کي چي کوم فرق وي، هغه پرې واجبيږي، مثلاً که د غيرِ مرمي (ناوېشتل سوي) غلام قيمت زر درهمه وي او د مرمي (وېشتل سوي) غلام قيمت اووه سوه درهمه وي، نو څرنګه چي دلته د دوی په قيمتونو کي دري سوه درهمه فرق دی. لهذا همدا درې سوه درهمه په رامي باندي د ضمان په توګه واجبيږي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کله تر رَمْي وروسته مالک غلام آزاد کړی. نو د آزادېدلو په وجه د رَمْي‌ زخم له سرايت کولو څخه ودرېدی؛ ځکه قبل العتق (تر آزادېدلو) مخکي د مرمي اليه (غلام) يو حالت وو او تر آزادي وروسته د هغه حالت بل دی، په بله وينا دا چي په مرمی اليه او مقتول دواړو کي محل سره جلا دی (د محل تبديلي پکښي ده)، نو ځکه بعد العتق د مرمي اليه د زخم د سرايت درېدلو په وجه د رامي له طرفه محض رمي پاته سوه (يعني لکه هغه چي صرف وېشتل [غشی غورځول] کړي وي، نه زخمي کول) او محض رمي جنايت دی چي په هغه سره د مرمي اليه په قيمت کي نقصان او کمي راغلې ده، نو ځکه دغه کمي به له رمي څخه د مخکي والا غلام د قيمت سره موازنه کيږي او کوم فرق چي پېږي وي هغه به په رامي باندي واجب وي. (احسن الهدايه)

## د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل

وَلَهُمَا: أَنَّهُ يَصِيرُ قَاتِلًا مِنْ وَقْتِ الرَّمْيِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي رامي د همدې رمي [غشي وېشتلو] له وخت څخه قاتل ګرځي لِأَنَّ فِعْلَهُ الرَّمْيُ ځکه د رامي فعل رمي ده وَهُوَ مَمْلُوكٌ

فِي تِلْكَ الْحَالَةِ او مرمي اليه په دې حالت کي مملوک [او غلام] دی فَتَجِبُ قِيمَتُهُ نو ځکه د هغه قيمت به واجب وي بِخِلَافِ الْقَطْعِ وَالْجَرْحِ په خلاف د پرېکولو او زخمي کولو لِأَنَّهُ إِتْلَافُ بَعْضِ الْمَحِلِّ ځکه چي دا [قطع او جرح] د بعضي محل تلفول دي وَأَنَّهُ يُوجِبُ الضَّمَانَ لِلْمَوْلَى او دا [د بعضي محل اتلاف] د مالک لپاره ضمان واجبوي وَبَعْدَ السِّرَايَةِ لَوْ وَجَبَ شَيْءٌ او تر سرايت وروسته که یو شی واجب سي لَوَجَبَ لِلْعَبْدِ نو د غلام لپاره به واجب سي فَتَصِيرُ النِّهَايَةُ مُخَالِفَةً لِلْبِدَايَةِ نو آخر به د شروع مخالف وګرځي أَمَّا الرَّمْيُ قَبْلَ الْإِصَابَةِ لَيْسَ بِإِتْلَافِ شَيْءٍ پاته سو رمي [د غشي] تر لګېدلو مخکي د يو شي تلفول نه دي [يعني په هغه کي د محل تلفېدل نسته] لِأَنَّهُ لَا أَثَرَ لَهُ فِي الْمَحَلِّ ځکه هغه [رمي] لره په محل کي هيڅ اثر نسته وَإِنَّمَا قَلَّتِ الرَّغَبَاتُ فِيهِ خو په مرمي اليه غلام کي به [د خلکو] رغبتونه کم سي فَلَا يَجِبُ بِهِ ضَمَانٌ نو د هغه په وجه به ضمان نه واجبيږي فَلَا تَتَخَالَفُ النِّهَايَةُ وَالْبِدَايَةُ نو آخر او شروع به سره مختلف نه سي فَتَجِبُ قِيمَتُهُ لِلْمَوْلَى نو ځکه د مالک لپاره به د دې غلام قيمت واجب وي وَزُفَرُ وَإِنْ كَانَ يُخَالِفُنَا فِي وُجُوبِ الْقِيمَةِ او امام زفر رَحِمَهُ الله که څه هم زموږ مخالفت کوي د قيمت واجبېدلو په باره کي نَظَرًا إِلَى حَالَةِ الْإِصَابَةِ د اصابت [غشي لګېدلو] حالت ته په کتلو سره فَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا حَقَّقْنَاهُ لېکن د ده په خلاف هغه څه حجت دي کوم چي موږ بيان کړه.

**اللغات:** ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضايع کول، له منځه وړل. ﴿إصابة﴾ مخکنی صيغه ده: رسېدل، لګېدل. ﴿الرغبات﴾ جمع د رغبة ده: خواهش او لېوالتيا، طلب او غوښتنه، مېلان.

**تشريح:** له دې ځايه د امام صاحب او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله دليل بيان سوی دی. حاصل يې دا دی چي زموږ په نېز د رمي وخت او حالت لره اعتبار دی او د رمي په وخت کي مرمی اليه مملوک او غلام دی، نو ځکه پر رامي به د مذکوره غلام قيت واجب وي. د دې په خلاف د قطع او جرح (زخمي کولو) مسئله ده نو په هغه سره د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل نيول او په قياس کي پېښول صحيح نه دي؛ ځکه په قطع او جرح سره خو د مقطوع او مجروح کس د محل بعضي حصه تلفيږي، او که د غلام د بدن بعضي حصه تلفه کړل سي نو پر مُتلِف (تلفونکي کس) د غلام د مالک لپاره ضمان واجبيږي،

لېکن که زخم سرایت وکړي نو بیا پر مُتلف هیڅ هم نه واجبیږي؛ ځکه د زخم تر سرایت کولو وروسته که موږ پر مُتلف (تلفونکي) باندې څه واجب کړو، نو هغه څه به غلام ته حاصل سي حال دا چي تر سرایت مخکښي چي کوم ضمان واجبیږي هغه مالک ته حاصلیږي، نو په دې حواله سره به ابتداء د انتهاء مخالفه سي؛ ځکه ابتداء (بدایه) د مالک لپاره ده او انتهاء (نهایه) د غلام لپاره ده او په دې کي د محل تبدیلي ده، او د محل بدلېدلو په صورت کي د زخم د سرایت ضمان نه واجبیږي، ځکه د مقیس یعني د مذکوره مسئلې او د مقیس علیه یعني د قطع او جرح د مسئلې تر مېنځ د محل د تبدیلۍ او عدمِ تبدیلۍ په حواله سره اختلاف دی، نو ځکه مذکوره مسئله د قطع او جرح پر مسئلې قیاسول صحیح نه دي.

پاته سو دا سوال چي په مقیس (یعني په مذکوره مسئله) کي د محل تبدیلي څنګه نسته؟، نو د هغه جواب دا دی چي پر غلام د غشي تر لګېدلو مخکښي د هغه د بدن هیڅ حصه نه ده زخمي سوې؛ ځکه تر لګېدلو مخکښي غشي د غلام بدن متأثره کړی نه دی، نو ځکه پر رامي به د غلام لپاره هیڅ ضمان واجب نه وي، ها! تر لګېدلو مخکښي د رامي د رمي اثر به فقط دا وي چي په مرمي الیه غلام کي به د خلکو رغبت کم سي او د رانیونکو زړه به نه ورغواړي، او محض رغبت کمېدل د ضمان موجب نه دي. لهٰذا د ضمان واجبېدلو په حواله سره دلته په ابتداء او انتهاء کي اختلاف نه دی راغلی، نو ځکه د رمي د حالت په اعتبار کولو سره به پر رامي د غلام قیمت واجب وي چي هغه به د ده مالک ته ورکول کیږي.

وزفر رَحِمَهُ اللهُ الخ: د دې حاصل دا دی چي د امام زفر په نېز په مذکوره مسئله کي دیت واجبیږي، ځکه امام زفر رَحِمَهُ الله د اصابت (غشي لګېدلو) د حالت اعتبار کوي، او دلته د اصابت په وخت کي غلام آزاد دی، نو ځکه پر رامي به د هغه دیت واجبیږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په خلاف زموږ بیان سوی دلیل حجت دی. (احسن الهدایه)

## د رجم د مستحق کس تر ویشتلو وروسته د یوه ګواه د رجوع کولو حکم.

قَالَ: وَمَنْ قُضِيَ عَلَيْهِ بِالرَّجْمِ فرمایي: او پر چا چي د رجم فیصله وسي فَرَمَاهُ رَجُلٌ بیا یو سړی هغه وویلي [د هغه طرف ته غشی وغورځوي] ثُمَّ رَجَعَ أَحَدُ الشُّهُوْدِ بیا یو د ګواهانو رجوع وکړي ثُمَّ وَقَعَ بِهِ السَّهْمُ بیا پر هغه غشی ولګیږي فَلَاشَيْءَ عَلَى الرَّامِيْ نو پر رامي [ویشتونکي] هیڅ شی واجب نه دی لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ حَالَةُ الرَّمْيِ ځکه معتبر د رمي حالت دی وَهُوَمُبَاحُ الدَّمِ فِيْهَا او د رمي په حالت کي د هغه وینه [او خون] مباح دی.

**اللغات:** ﴿رجم﴾ د نصر د باب مصدر دی: رجم کول، سنګسارول، مجرم په ډبرو قتلول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو کس مثلاً د زيد په خلاف څلورو ګواهانو دا ګواهي ورکړه چې هغه زنا کړې ده، نو قاضي د هغو پر ګواهی د مشهود عليه (زيد) په خلاف د رجم فيصله وکړه لهذا اوس هغه مباح الدم سو، او د قاضي تر فيصلې وروسته يو چا پر هغه غشی ورايله کړی خود غشي د لګېدلو څخه مخکې له هغه څلورو ګواهانو څخه يوه ګواه له خپلې ګواهۍ څخه رجوع وکړه. نو په دې صورت کې هم پر رامي (ويشتونکي) باندې هيڅ ضمان نه واجبيږي: ځکه زموږ په نېږد رمي حالت لره اعتبار دی او په دې حالت کې مرمي اليه مباح الدم دی او د مباح الدم کس په وژلو سره ضمان نه واجبيږي؛ نو ځکه پر مذکوره رامي به هيڅ ضمان نه واجبيږي. (احسن الهدايه)

**د رمي د حالت معتبر کېدلو يو مثال او نظير**

وَإِذَا رَمَى الْمَجُوسِيُّ صَيْدًا او کله چې مجوسي يو ښکار وويلي ثُمَّ أَسْلَمَ بيا اسلام راوړي ثُمَّ وَقَعَتِ الرَّمْيَةُ بِالصَّيْدِ بيا ويشتل سوی وار [غشی] پر ښکار ولګيږي لَمْ يُؤْكَلْ نو دا ښکار به نه خوړل کيږي وَإِنْ رَمَاهُ وَهُوَ مُسْلِمٌ او که ښکار وويلي حال دا چې هغه مسلمان وي ثُمَّ تَمَجَّسَ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ بيا نعوذ بالله هغه مجوسي سي أُكِلَ نو ښکار به خوړل کيږي لِأَنَّ الْمُعْتَبَرَ حَالُ الرَّمْيِ فِيْ حَقِّ الْحِلِّ وَالْحُرْمَةِ ځکه [د ښکار] د حلالوالي او حراموالي په هکله د رمي حالت معتبر دی إِذِ الرَّمْيُ هُوَ الذَّكَاةُ ځکه [په ښکار کې] همدا رمی حلالول [ذبح] ده فَتُعْتَبَرُ الْأَهْلِيَّةُ وَالْانْسِلَابُ بِهَا عِنْدَهُ نو د همدې رمي په وخت کې به [د ذبح] د اهل کېدلو او د اهليت د سلبېدلو [نه اهل کېدلو] اعتبار کول کيږي.

**اللغات:** ﴿الرمية﴾ ويشتل سوی (غورځول سوی) وار، غشی وغيره. ﴿تمجّس﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: مجوسي کېدل. ﴿ذکاة﴾ حلالول، د شرعي مطابق ذبح کول. ﴿انسلاب﴾ د انفعال د باب مصدر دی: سلب کېدل (مسلوب کېدل).

**تشريح:** د حالت رمی د معتبر کېدلو يو مثال دا هم دی چې که مجوسي کس يو ښکار په غشي سره وويلي او پر ښکار د غشي تر لګېدلو مخکې هغه مجوسي مسلمان سي، نو د هغه ښکار به نه خوړل کيږي؛ ځکه اعتبار د رمي حالت لره دی، او دلته د رمي (غشي ويشتلو) په وخت کې رامي مجوسي دی او د مجوسي ذبيحه حلاله نه ده، نو ځکه دلته د "لم يؤکل" حکم لګول سوی دی.

او که يو مسلمان کس ښکار وويلي او پر ښکار د غشي تر لګېدلو مخکې نعوذ بالله هغه مجوسيت اختيار کړي، نو په دې صورت کې به د هغه ښکار خوړل کيږي: ځکه د رمي په حالت کې هغه مسلمان دی او د ښکار د حلت او حرمت په هکله د رمي حالت لره اعتبار دی: ځکه د ښکار (صيد)

په باب کې ذبح او حلالول همدا رمي ده (لکه مخکې چې د دې وضاحت وسو)، نو ځکه د همدې رمې په وخت کې به د دې اعتبار کیږي چې رامي د ذبح اهل دی، که نه؟ که چیرې اهل وي نو ښکار به حلال دی او که اهل نه وي نو حلال نه دی.

## د پورتنۍ ضابطې یو بل مثال

وَلَوْ رَمَى الْمُحْرِمُ صَيْدًا او که محرم کس یو ښکار وویلي ثُمَّ حَلَّ بیا حلال سي فَوَقَعَتِ الرَّمْيَةُ بِالصَّيْدِ بیا ویشتل سوی وار [غشی] پر ښکار ولګیږي فَعَلَيْهِ الْجَزَاءُ نو پر رامي جزاء واجب ده وَإِنْ رَمَى حَلَالٌ صَيْدًا او که حلال کس یو ښکار وویلي ثُمَّ أَحْرَمَ بیا هغه محرم سي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه هیڅ شی واجب نه دی لِأَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا يَجِبُ بِالتَّعَدِّيْ ځکه چې ضمان د تعدی په وجه واجبیږي وَهُوَ رَمْيُهُ فِي حَالَةِ الْإِحْرَامِ او تعدی د احرام په حالت کې ویشتل دي وَفِي الْأَوَّلِ هُوَ مُحْرِمٌ وَقْتَ الرَّمْيِ او په اول صورت کې رامي د رمي په وخت کې محرم دی وَفِي الثَّانِيْ حَلَالٌ او په دویم صورت کې حلال دی فَلِهٰذَا افْتَرَقَا نو ځکه دواړې مسئلې سره جلا سوې.

**اللغات**: ﴿التعدی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: تجاوز او زیاتوب، نا حقه تصرف. ﴿أهلیة﴾ اهل کېدل، قابل کېدل.

**تشریح**: مخکې ذکر سوه چې د ضمان او دیت په واجبېدلو کې د رمي حالت لره اعتبار دی، نو په دې عبارت کې هم د هغه په هکله دوې مسئلې ذکر سوي دي: د اولې مسئلې حاصل دا دی چې که محرم کس (کوم چې په احرام کې وي) یو ښکار وویلي او پر ښکار د غشي تر لګېدلو مخکې رامي (محرم) حلال سي، نو پر هغه د ښکار جزاء واجبیږي؛ ځکه د رمي په وخت کې رامي محرم دی او محرم لره ښکار کول ممنوع دي، نو ځکه په دې صورت کې پر هغه جزاء واجب ده.

د دې په خلاف دویمه مسئله دا ده چې که حلال کس (کوم چې په احرام کې نه وي) یو ښکار وویلي او بیا پر ښکار د غشي تر لګېدلو مخکې هغه محرم سي، نو په دې صورت کې پر رامي جزاء نه واجبیږي؛ ځکه جزاء او ضمان د تعدی په وجه واجبیږي او تعدی په هغه صورت کې ثابتیږي کله چې د احرام په حالت کې ښکار وویشتل سي. او څرنګه چې دلته په اوله مسئله کې رامي (ویشتونکی کس) محرم دی، نو ځکه پر هغه جزاء واجب ده. لېکن په دویمه مسئله کې رامي حلال دی، نو ځکه پر هغه جزاء واجب نه ده. فقط والله أعلم وعلمه أتم



# كِتَابُ الدِّيَاتِ

## (دا) كتاب د "ديتونو" (په بيان كي) دى

**تشريح:** مخكې تر دې صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله د قصاص احكام بيان كړل، واس له دې ځايه د ديت احكام او مسائل بيانوي، څرنګه چې قصاص اصل دى او ديت د هغه نائب او بدل دى، نو ځكه يې اول د اصل مسائل بيان كړل، اوس د نائب مسائل بيانوي.

**د ديت لغوي او اصطلاحي معنى:** دِيَات جمع د دِيَةٌ ده، چې د هغه اصطلاحي معنىٰ ده: المال الواجب في إتلاف نفوس الآدميين يعني كوم مال او ضمان چې د انسان د نفس تلفولو (هلاكولو) په مقابله كې واجب سي، هغه ته ديت وايي.

او پاته سو له نفس څخه د كم (مادون النفس) مثلاً د اندام وغيره د تلفولو په مقابله كې چې كوم مال او ضمان واجب سي، هغه ته أرْش وايي.

او په حواله د احسن الهدايې ديت په لغت كې وركولو او اداء كولو ته وايي. (احسن الهدايه ج: ۱۵. ص: ۱۴۳)

### ديت په كوم قتل كې دى او پر چا واجب دى؟

قَالَ: وَفِي شِبْهِ الْعَمْدِ دِيَةٌ مُغَلَّظَةٌ عَلَى الْعَاقِلَةِ فرمايي: او په شبه عمد كې پر عاقله وو ديت مغلظه واجب دى وَكَفَّارَةٌ عَلَى الْقَاتِلِ او پر قاتل كفاره واجب ده وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي أَوَّلِ الْجِنَايَاتِ او د كتابُ الجنايات په اوله حصه كې مورږ د دې بيان كړى دى.

**اللغات:** ﴿مغلظة﴾ د تفعيل له بابه د مؤنث مفعول صيغه ده: سخت او سنګين. ﴿عاقلة﴾ د قاتل متعلقين او خاندان والا.

**تشريح:** **مسئله:** دا ده چې په قتلِ شبهِ عمد كې قصاص نسته. په هغه كې پر قاتل كفاره واجب ده. د قتلِ شبه عمد او د هغه د سزا بيان د كتابُ الجنايات د شروع په حصه كې په تفصيل سره ذكر سوى دى. او بل په دې قتل كې د قاتل پر عاقله وو ديت مغلظه يعني سل اوښان واجب دي چې په هغه كې به څلور قسمه اوښان وركول كيږي: ① ۲۵/ بنت مخاض، ② ۲۵/بنت لبون. ③ ۲۵/حقاق. ④۲۵/جذاع.

## د کفارې تفصیل

قَالَ: وَكَفَّارَتُهُ عِتْقُ رَقَبَةٍ مُؤْمِنَةٍ فرمايي: او د شبه عمد کفاره يو مؤغلام آزادول دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ﴾ [النساء: ۹۲] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: نو آزادول دي د يوه مؤمن غلام فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ بيا که غلام نه ومومي نو پرلپسې دوې مياشتې روژې نيول دي بِهٰذَا النَّصِّ د همدغه نص [آيت] په وجه وَلَا يُجْزِئُ فِيْهِ الْإِطْعَامُ او په دې کفاره کې خوراک ورکول کفايت نه کوي لِأَنَّهُ لَمْ يَرِدْ بِهِ نَصٌّ ځکه د هغه [اطعام] په هکله هيڅ نص نه دی وارد سوی وَالْمَقَادِيْرُ تُعْرَفُ بِالتَّوْقِيْفِ او مقدارونه په توقيف [د شريعت په صراحت کولو] سره معلوميږي وَلِأَنَّهُ جُعِلَ الْمَذْكُوْرُ كُلَّ الْوَاجِبِ بِحَرْفِ الْفَاءِ او ځکه چي د حرف فاء په وجه [په آيت کي] ذکر سوي شه [تحرير او صيام] کُل واجب گرځول سوي دي [چي ټوله واجب بس همدا دوه شيان دي] أَوْ لِكَوْنِهِ كُلَّ الْمَذْكُوْرِ يا د هغه ذکر سوي شه د کُل مذکور په وجه [هغه کُل واجب گرځول سوي دي] عَلَىٰ مَا عُرِفَ لکه څرنگه دا معلومه ده وَيُجْزِئُهُ رَضِيْعٌ أَحَدُ أَبَوَيْهِ مُسْلِمٌ او کفايت کوي په دې کفاره کي داسي شېرخواره بچی چي له مور و پلار څخه يې يو مسلمان وي لِأَنَّهُ مُسْلِمٌ بِهِ ځکه چي د هغه په وجه بچی هم مسلمان کيږي وَالظَّاهِرُ سَلَامَةُ الْأَطْرَافِ او [د هغه] د اندامونو سالم والی ښکاره دی وَلَا يُجْزِئُ مَا فِي الْبَطْنِ او په نفس کي موجود بچی کفايت نه کوي لِأَنَّهُ لَا تُعْرَفُ حَيَاتُهُ وَلَا سَلَامَتُهُ ځکه چي نه د هغه ژوند معلوم دی او نه يې سالم والی معلوم دی.

**اللغات:** ﴿لايجزئ﴾ د افعال له بابه د نفي صيغه ده: کافي کېدل، جائز کېدل. ﴿توقيف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: د يو څه په هکله د شارع صراحت (يعني چي الله تعالیٰ يا رسول الله ﷺ د يو شي څرگندونه کړې وي)، د شريعت له طرفه د يو شي ټاکل کېدل. ﴿رضيع﴾ شېر خواره بچی چي شيدې رودي (هغه کوچنی چي تر اوسه له تي څخه پرېکړی سوی نه وي او کله چي پرېکړی سي نو "فَطِيْم" ورته وايي).

﴿أطراف﴾ جمع د طَرَفٌ ده: اعضاء او اندامونه، د بدن برخي، لاس، پښه وغيره.

**تشريح:** مخکي چي ذکر سوه په قتلِ شبه عمد کي پر قاتل کفاره واجب ده، په دې عبارت کي د هغه کفارې بيان دی، تفصيل يې دا دی چي په شبهِ عمد کي چي کومه کفاره واجب ده. ① هغه اول

مؤمن غلام آزادول دي. ② او که مؤمن غلام ترلاسه نه کړی سي، نو بيا به قاتل پرلپسې دوې مياشتي روژې ونيسي؛ ځکه په آيت کي ذکر سوي دي: ﴿وَمَن قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً فَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ فَإِن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ﴾، په دې آيت کي چې څرنګه د کفارې مصداق او محل متعين سوی دی، همدغسي دا ترتيب هم پکښې ذکر سوی دی چې اول د مؤمن غلام آزادول دي او که هغه ترلاسه نه کړی سي نو پر دويم نمبر دوې مياشتي روژې نيول دي.

ولا يجزئ فيه الإطعام إلخ: فرمايي د شبه عمد په کفاره کي اطعام کفايت نه کوي، يعني مسکينانو ته په خوراک ورکولو سره دا کفاره نه اداء کيږي؛ ځکه د کفاراتو تعيين د شريعت له طرفه سوی دی او شريعت چې په دې سلسله کي کوم شيان متعيّن کړي دي، له هغوی څخه موږ ته د انحراف او اعراض هيڅ حق نسته، او د شبه عمد د کفارې په هکله د "إطعام" تذکره په هيڅ نصّ کي هم نسته، نو ځکه په هغه کي په اطعام سره کفاره نه اداء کيږي.

په دې سلسله کي بل دليل دا دی چې په عربي کي تر حرف فاء وروسته که جزاء ذکر سي، نو په هغه کي ضروري ده چې ټوله جزاء به ذکر سوې وي او د جزاء هيڅ حصه به پاته نه وي، کنې التباس به پيدا سي، او دلته چې په کوم نص (آيت) سره دليل نيول سوی دی، په هغه کي تر فاء "فَتَحْرِيرُ..." وروسته دوه شيان يعني تحرير الرقبه او صيام شهرين ذکر سوي دي، لهذا همدا دوه شيان به د قتلِ شبه عمد کفاره وي او اطعام به په دې کفاره کي نه داخليږي.

يا داسي دي وويل سي چې په دې نص (آيت) کي د قتلِ شبه عمد د کفارې بيان دی او څرنګه چې دا د ضرورت او حاجت مقام دی، نو ځکه پر داسي مواقع د کفارې ټوله تفصيل ذکر کول کيږي او هيڅ قسم او نوع يې نه پرېښوول کيږي، او قرآن کريم دلته د کفارې دوه قسمونه بيان کړي دي، نو له دې څخه معلومه سوه چې د قتلِ شبه عمد بل قسم يا صنف نسته، کنې هغه به هم ضرور بيان سوي وای.

ويجزئه رضيع إلخ: د دې حاصل دا دی چې د شبه عمد په کفاره کي چې کوم "رقبه مؤمنه" مطلوب ده، د هغه مسلمان والی او سالم الاعضاء کېدل شرط دي؛ همدا وجه ده که يو شېرخواره غلام چې د هغه له مور و پلار څخه يو مسلمان وي، نو په دې کفاره کي د هغه په آزادولو سره کفاره اداء کيږي: ځکه د "الولد يتبع خير الأبوين دينًا" په وجه هغه بچی د خپل مسلمان پلار يا مور په متابعت کي مسلملا ګڼل کيږي، او څرنګه چې هغه اوس موجود دی نو د هغه د اندامونو سلامتيا هم ښکاره ده، نو ځکه د قتل په کفاره کي د هغه آزادول جائز دي.

لېکن که بچی د مور په نس (خېټه) کي وي نو هغه د قتل په کفاره کي آزادول صحیح نه دي: ځکه کله چي تر اوسه هغه د مور په نس کي پټ دی. نو نه خو د هغه د ژوند څه درک سته او نه د هغه د اندامونو د سلامتیا صحیح علم سته. نو ځکه د هغه آزادول جائز نه دي.

## د قتلِ خطاء کفاره او د شبه عمد د دیت مقدار

قَالَ: وَهُوَالْكَفَّارَةُفِي الْخَطَأِ فرمایي: او همدا [یعني کوم چي موږ په شبهِ عمد کي بیان کړه: تحریر او صیام] د قتلِ خطاء کفاره هم ده لِمَا تَلَوْنَاهُ د هغه آیت په وجه کوم چي موږ تلاوت کړی وَدِيَتُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِي يُوْسُفَ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَرْبَاعًا او د شبهِ عمد دیت سل اوښان دي په څلورو حصو [څلورو قسمونو] سره [یعني د شبهِ عمد دیت څلور قسمه سل اوښان دي] خَمْسٌ وَعِشْرُوْنَ بِنْتَ مَخَاضٍ ① پنځویشت بنت مخاض دي وَخَمْسٌ وَعِشْرُوْنَ بِنْتَ لَبُوْنٍ ② او پنځویشت بنت لبون دي وَخَمْسٌ وَعِشْرُوْنَ حِقَّةً ③ او پنځویشت حقې دي وَخَمْسٌ وَعِشْرُوْنَ جَذَعَةً ④ او پنځویشت جذعې دي.

**اللغات:** ﴿أرباعًا﴾ په څلورو حصو سره، ﴿بنت مخاض﴾ یو کلنی اوښه چي دویم کال ته داخله سوې وي، ﴿بنت لبون﴾ دوه کلنی اوښه چي په دریم کال کي وي، ﴿حِقّة﴾ درې کلنی اوښه کوم چي په څلورم کال کي وي، ﴿جَذَعة﴾ څلور کلنی اوښه کوم چي په پنځم کال کي وي.

**تشریح:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي کومه کفاره د قتلِ شبهِ عمد ده، هاغه کفاره د قتلِ خطاء هم ده؛ ځکه په مخکیني آیت ﴿وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَأً الخ﴾ سره چي د کفارې کوم تفصیل بیان سوی دی، هغه خو قتلِ خطاء لره صراحتاً شامل دی، نو ځکه همدا د قتلِ خطاء هم کفاره گرځول سوې ده. او د قتلِ شبهِ عمد دیت سل اوښان دي، لېکن د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز هغوی به له دې څلورو قسمونو څخه وي یعني ① ۲۵/بنت مخاض، ② ۲۵/بنت لبون، ③ ۲۵/حقې، ④ او ۲۵/جذعې، دا ټوله سل اوښان سول. (همدا دیتِ مغلظه دی، مخکي چي وویل سوه چي د تغلیظ صفت به وروسته ذکر کړو، هاغه همدا دی).

او د بنت مخاض وغیره تفصیل په اوله هدایه کي د کتاب الزکاة په ضمن کي ذکر سوی دی.

## د دیت په مقدار کې د اختلاف بیان

وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَالشَّافِعِيُّ: أَثْلَاثًا ❁ امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې [د شبهِ عمد دیت] په دريو حصو سره [سل اوښان] دي [يعني درې قسمه سل اوښان دي] ثَلَاثُونَ جَذَعَةً ① دېرش جذعې دي وَثَلَاثُونَ حِقَّةً ② دېرش حقې دي وَأَرْبَعُونَ ثَنِيَّةً ③ او څلوېښت ثنيې دي كُلُّهَا خَلِفَاتٌ فِي بُطُونِهَا أَوْلَادُهَا هغوی [ثنيې] ټولې به حامله وي چې په نسونو کې به يې د هغوی بچې وي لِقَوْلِهِ ﷺ: ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي «أَلَا إِنَّ قَتِيلَ خَطَإِ الْعَمْدِ ❶ قَتِيلُ السَّوْطِ وَالْعَصَا وَفِيهِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ خبردار! د خطإ عمد [شبهِ عمد] مقتول هغه دی چې په دُرې او لکړې سره قتل کړی سوی وي او په هغه [شبهِ عمد] کې سل اوښان دي أَرْبَعُونَ مِنْهَا فِي بُطُونِهَا أَوْلَادُهَا» چې له هغوی څخه به څلوېښت داسې وي چې په نسونو کې يې بچې وي وَعَنْ عُمَرَ وَزَيْدٍ (رض) ثَلَاثُونَ حِقَّةً وَثَلَاثُونَ جَذَعَةً او له حضرت عمر او حضرت زيد رضی الله عنهما څخه نقل سوي دي دېرش حقې او دېرش جذعې وَلِأَنَّ دِيَةَ شِبْهِ الْعَمْدِ أَغْلَظُ او ځکه چې د شبهِ عمد ديت زيات سخت [او سنګين] دی وَذَلِكَ فِيمَا قُلْنَا او تغليظ په همغه صورت کې دی کوم چې موږ ذکر کړی وَلَهُمَا قَوْلُهُ ﷺ ❷: «فِي نَفْسِ الْمُؤْمِنِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ» او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: د مسلمان په نفس کې سل اوښان دي وَمَا رَوَيَاهُ غَيْرُ ثَابِتٍ. او کوم حديث چې امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله روايت کړی دی هغه غير ثابت دی لِاخْتِلَافِ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فِي صِفَةِ التَّغْلِيظِ ځکه د تغليظ په صفت کې د صحابه وو اختلاف دی وَابْنُ مَسْعُودٍ ﷺ قَالَ بِالتَّغْلِيظِ أَرْبَاعًا او حضرت ابن مسعود ﷺ

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَاالله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ‌الله: ودية شبه العمد مائة من الإبل أرباعًا... (رد المختار ج:۵، ص:۴۰۶)، وكذا في ملتقى الأبحر (ج:۴، ص:۳۴۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۴۷]

❶ تخريج: أخرجه ابن ماجة بمعناه في كتاب الديات، باب دية شبه العمد، حديث رقم:۲۶۲۷. و ابوداؤد بمعناه في كتاب الديات، باب في الخطإ شبه العمد، حديث رقم:۴۵۴۷.

❷ تخريج: أخرجه ابو داؤد بمعناه في كتاب الديات، باب الدية كم هي؟، حديث رقم:۴۵۴۱ بمعناه. والبيهقي في سننه الكبرى، حديث رقم:۷۲۵۵.

د تغليظ قائل دی په څلورو حصو [څلورو قسمونو] سره كَمَا ذَكَرْنَا لکه څرنګه چې موږ ذکر کړه وَهُوَ كَالْمَرْفُوْعِ او دا قول د مرفوع حديث په څېر دی [که څه هم هغه موقوف دی خو د حديثِ مرفوع په څېر دی. لأن المقادير لا تعرف بالرأی] فَيُعَارَضُ بِهِ نو په هغه سره به معارضه راسي [يا په بله وينا دا چې نو هغه به د امام شافعي وغيره د روايت کړده حديث معارض سي].

**اللغات**: ﴿جَذَعة﴾ څلور کلنۍ اوښه کوم چې پنځم کال ته داخله سوې وي، ﴿حِقّة﴾ درې کلنۍ اوښه کوم چې څلورم کال ته داخله سوې وي. ﴿ثنية﴾ پنځه کلنۍ اوښه کوم چې شپږم کال ته داخله سوې وي. ﴿خلفات﴾ جمع د خلفة ده، حامله اوښې ته ويل کيږي، ﴿تغليظ﴾ د تفعيل مصدر دی: مغلظ والی. سخت او سنګين کېدل. ﴿يعارض﴾ د مفاعلې د باب مضارع مجهوله ده: معارض کېدل. مقابل کېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې د قتلِ شبه عمد ديت خو زموږ او د شوافعو ټولو په نيز سل اوښان دي، لېکن په مورږ کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دا ضروري ده چې هغه سل به له څلورو قسمونو څخه وي، خو د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز د دې سلو اوښانو صرف درې قسمه کېدل ضروري دي، هغه په دې توګه چې ۳۰ به جذعه اوښان وي، ۳۰ به حقه اوښان وي او ۴۰ به ثنيه اوښان وي، او د دې څلوېښتو ثنيه اوښانو حامله کېدل ضروري دي (او ثنيه هغه ماده اوښې ته وايي چې په شپږم کال کي داخله سوې وي)؛ د امام شافعي او امام محمد رَحِمَهُمَا الله دليل دا حديث دی: "ألا إن قتيل خطإ العمد قتيل السوط والعصا، وفيه مائة من الإبل أربعون منها في بطونها أولادها". او بل دا چې له حضرت عمر او حضرت زيد بن رضی الله عنهما څخه هم ۳۰ حقې او ۳۰ جذعې د قتلِ شبه عمد په ديت کي نقل سوي دي، نو له دې څخه هم همدا څرګنديږي چې د شبهِ عمد ديت کوم چې سل اوښان دي هغه به له دريو قسمونو څخه وي.

په دې هکله عقلي دليل دا دی چې د شبهِ عمد په ديت کي تغليظ دی چې د ټولو په نيز په هغه کي تغليظ کيږي، او تغليظ په همغه صورت کي متحقق کيږي کله چې د اوښانو اقسام درې وي. په همدې وجه خو د قتلِ خطاء په ديت کي پنځه قسمه اوښان واجب کړل سوي دي. د دې لپاره چې تغليظ پکښې رانه سي.

ولهما قوله عليه السلام إلخ: د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی "في نفس المؤمن مائة من الإبل" چې د مؤمن په نفس کي سل اوښان واجب دي، په دې حديث سره دوی په دې توګه دليل نيسي چې په دې کي علی

الاطلاق (په مطلقه توګه) ویل سوي دي چي دیت سل اوښان دي او له دې څخه هیڅ بحث پکښي نسته چي هغوی به درې یا څلور قسمونه او صنفونه وي. لهذا د قاعدې مطابق خو د ټولو په نیز مطلق سل اوښان د شبه عمد دیت کېدل پکار دي، لیکن موږ دلته د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په طرز عمل سره د دیت سل اوښان پر څلورو قسمونو تقسیم کړي دي.

او پاته سو هغه حدیث چي امام شافعي او امام محمد رَحِمَهُمَا الله دلیل په نیولی دی، نو هغه ثابت حدیث نه دی؛ ځکه د تغلیظ په هکله د صحابه وو اختلاف دی او که تغلیظ په دریو قسمونو سره کېدلای نو په هغه کي به د صحابه وو اختلاف نه وای، له دې څخه معلومه سوه چي دا حدیث ثابت نه دی او کله چي ثابت نه دی، نو د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه قول به د حدیث مرفوع په درجه کي وي او هغه به د امام شافعي او امام محمد رَحِمَهُمَا الله د روایت کړه حدیث سره معارض وي. او د تعارض او معارضې په وخت کي په ادنیٰ باندي عمل کېږي ځکه چي ادنیٰ متیقن وي (او ادنیٰ او اخف هغه دی. د کوم چي موږ قائل یو). او ښکاره ده چي ادنیٰ د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په قول سره ثابتېږي، نو ځکه هم هغه به متعین وي.

او بل عقلاً هم دا په فهم کي راځي چي د شبه عمد په دیت کي چي کوم سل اوښان واجب دي، هغوی دي څلور قسمه وي؛ ځکه کله چي په هغه کي د صحابه وو اختلاف سوی دی، نو ښکاره ده چي په هغه سره به په دې تغلیظ کي تخفیف کېږي. (احسن الهدایه)

## د دیت تغلیظ فقط د اوښانو سره خاص دی

قَالَ: وَلَا يَثْبُتُ التَّغْلِيظُ إِلَّا فِي الْإِبِلِ خَاصَّةً فرمایي: او تغلیظ نه ثابتېږي مګر په خاصه توګه په اوښانو کي لِأَنَّ التَّوْقِيفَ فِيهِ ځکه توقیف [یعني د شریعت له طرفه صراحت] صرف د اوښانو په هکله دی فَإِنْ قُضِيَ بِالدِّيَةِ فِي غَيْرِ الْإِبِلِ نو که له اوښانو څخه بغیر په بل څه سره د دیت فیصله وکړی سي لَمْ تَتَغَلَّظْ نو دیت به مغلظه نه وي لِمَا قُلْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی قَالَ: وَقَتْلُ الْخَطَأِ تَجِبُ بِهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ فرمایي: او د قتل خطاء په وجه واجبېږي پر عاقله وو دیت وَالْكَفَّارَةُ عَلَى الْقَاتِلِ او پر قاتل کفاره لِمَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ مخکي بیان کړی.

**اللغات:** ﴿تغلیظ﴾ د تفعیل مصدر دی: مغلظ والی، سخت او سنګین کېدل. ﴿توقیف﴾ مخکني صیغه ده: د تفعیل د باب مصدر دی: د یو څه په هکله د شارع صراحت (یعني چي الله تعالیٰ یا رسول الله ﷺ د یو شي په هکله څرګندونه کړې وي)، د شریعت له طرفه د یو شي ټاکل کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې په قتلِ شبه عمد کې ديت مغلظه واجبيږي، او تغليظ صرف په اوښانو سره ثابتيږي؛ ځکه شريعت مطهره تغليظ د اوښانو سره خاص کړی دی او پر همدې اجماع منعقد سوې ده چې تغليظ به په اوښانو کې وي؛ لهذا که له اوښانو څخه بغير يو بل شی د قتلِ شبه عمد په ديت کې واجب کړی سي، نو تغليظ نه ثابتيږي؛ ځکه شريعت تغليظ په همدې اوښانو کې متعيّن کړی دی، او د شريعت له طرفه په متعين شده شيانو کې قياس لره هيڅ دخل نه وي. صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په "لما قلنا" سره همدې طرف ته اشاره کړې ده.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې په قتلِ خطاء کې ديت هم واجب دی او کفاره هم واجب ده، خو فرق يې دا دی چې ديت پر عاقله وو واجب دی او کفاره پر قاتل واجب ده، چې د دې تفصيل د كتابُ الجنايات په شروع کې ذکر سو، فلا نعيدهٰهنا.

## د قتلِ خطاء د ديت بيان

قَالَ: وَالدِّيَةُ فِي الْخَطَإِ مِائَةٌ مِنَ الْإِبِلِ أَخْمَاسًا فرمايي: او په قتلِ خطاء کې سل اوښان دي په پنځو حصو [پنځو قسمونو] سره [يعني په هغه کې پنځه قسمه سل اوښان واجب دي] عِشْرُوْنَ بِنْتَ مَخَاضٍ ① شل بنت مخاض وَعِشْرُوْنَ بِنْتَ لَبُوْنٍ ② شل بنت لبون وَعِشْرُوْنَ ابْنَ مَخَاضٍ ③ شل ابن مخاض وَعِشْرُوْنَ حِقَّةً ④ شل حقې وَعِشْرُوْنَ جَذَعَةً ⑤ او شل جذعې وَهٰذَا قَوْلُ ابْنِ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه او دا د ابن مسعود رضي الله عنه قول دی وَأَخَذْنَا نَحْنُ وَالشَّافِعِيُّ بِهِ لِرِوَايَتِهِ او موږ او امام شافعي رَحِمَهُ الله د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه قول د هغه د دې روايت په وجه اختيار کړی دی أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم [1] قَضٰى فِي قَتِيْلٍ قُتِلَ خَطَأً أَخْمَاسًا عَلٰى نَحْوِ مَا قَالَ چې نبي ﷺ د قتلِ خطاء په مقتول کې په پنځو حصو [پنځو قسمونو] سره فيصله وکړه د هغه طرز مطابق کوم چې ابن مسعود رضي الله عنه فرمايلي دي وَلِأَنَّ مَا قُلْنَاهُ أَخَفُّ او ځکه کوم څه چې موږ ووېل هغه سپک [او ادنیٰ] دي فَكَانَ أَلْيَقَ بِحَالَةِ الْخَطَإِ نو هغه به د قتلِ خطاء د حالت زيات لايق وي لِأَنَّ الْخَاطِئَ مَعْذُوْرٌ ځکه چې خطا کېدونکی کس معذوره دی غَيْرَ أَنَّ عِنْدَ الشَّافِعِيِّ يُقْضٰى بِعِشْرِيْنَ ابْنَ لَبُوْنٍ مَكَانَ ابْنِ مَخَاضٍ خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د

ابن مخاض پر ځای به د شلو ابن لبون اوښانو فیصله کول کیږي وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ [لېکن] د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت هغه حدیث دی کوم چې موږ روایت کړی دی.

**اللغات:** ﴿بنت مخاض﴾ یو کلنې اوښه چې دویم کال ته داخله سوې وي. ﴿بنت لبون﴾ دوه کلنې اوښه چې په درېیم کال کې وي، ﴿أخف﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: سپک، ﴿أليق﴾ دا هم د اسم تفضیل صیغه ده: زیات لائق، زیات مناسب.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د قتلِ خطاء په دیت کې پنځه قسمه سل (۱۰۰) اوښان واجب دي چې د هغوئ تفصیل دا دی: ۲۰/بنت مخاض، ۲۰/بنت لبون، ۲۰/ابن مخاض، ۲۰/حقې او ۲۰/جذعې. همدا زموږ مسلک دی او امام شافعي رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی؛ او همدا د ابن مسعود ﷺ قول دی؛ او د دې قول د اختیارولو وجه زموږ له طرفه دا ده چې د ابن مسعود ﷺ دا قول د نبي کریم ﷺ د هغه قول سره مطابق دی چې په هغه کې د قتل خطاء د مقتول لپاره د پنځه قسمه سلو اوښانو فیصله سوې ده او په هغه کې د اوښانو همداغه پنځه قسمونه مذکور دي کوم چې د ابن مسعود ﷺ په قول کې ذکر سوي دي.

غیر أن إلخ: د دې حاصل دا دی چې د قتلِ خطاء په دیت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز هم پنځه قسمه اوښان خو واجب دي، لېکن د اوښانو په نوع کې هغه زموږ مخالف دی، د هغه په نیز د ابن مخاض اوښانو پر ځای ابن لبون اوښان واجب دي، خو د ابن مسعود ﷺ قول او د هغه روایت کړه حدیث (چې په هغه سره موږ دلیل نیولی دی) د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت او دلیل دی؛ ځکه په هغه دواړو کې ابن مخاض ذکر دی، نه ابن لبون.

## په سرو او سپینو زرو کې د دیت مقدار

قَالَ: وَمِنَ الْعَيْنِ أَلْفُ دِيْنَارٍ فرمايي: او [د قتلِ خطاء دیت] له سرو زرو څخه زر دیناره دي وَمِنَ الْوَرِقِ عَشَرَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ او له سپینو زرو څخه لس زره درهمه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مِنَ الْوَرِقِ اِثْنَا عَشَرَ أَلْفًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې له سپینو زرو څخه دوولس زره درهمه دي لِمَا رَوَى ابْنُ عَبَّاسٍ (رض) أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ [1] قَضَى بِذٰلِكَ ځکه ابن عباس رضی الله عنهما روایت کړی دی چې

نبي كريم ﷺ د همدې [دوولس زره درهمو] فيصله وكړه وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنْ عُمَرَ رضي الله عنه او زموږ دليل هغه حديث دى كوم چې له حضرت عمر رضي الله عنه څخه روايت سوى دى «أَنَّ النَّبِيَّ عليه السلام قَضَى بِالدِّيَةِ فِي قَتِيلٍ بِعَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ» [2] چې نبي كريم ﷺ په يوه مقتول كس كې د ديت په هكله د لس زره درهمو فيصله وكړه وَتَأْوِيلُ مَا رَوَى او كوم حديث چې ابن عباس (رض) روايت كړى دى [چې په هغه سره امام شافعي دليل نيولى دى] د هغه تاويل دا دى أَنَّهُ قَضَى مِنْ دَرَاهِمَ كَانَ وَزْنُهَا وَزْنَ سِتَّةٍ چې نبي كريم ﷺ په هغه دراهمو سره [د دوولس زره درهمو] فيصله كړې وه چې د هغوى وزن "وزن سته" وو وَقَدْ كَانَتْ كَذَلِكَ او د شروع په زمانه كې همداسې وه [يعني د اسلام په شروع كې همدا وزن سته رائج وو چې فيصله او معامله به په هغه سره كېدله].

**اللغات:** ﴿العين﴾ مراد: سره زر، ﴿الورق﴾ سپين زر، ﴿قتيل﴾ د نصر له بابه د صفت صيغه ده: قتل كړى سوى، مقتول. ﴿وزن سته﴾ د دراهمو يو معلوم او ټاكل سوى وزن وو كوم چې د اسلام په شروع كې رائج وو، بيا حضرت عمر رضي الله عنه "وزن سبعه" متعين او مقرر كړى او په آخر كې همدا "وزن سبعه" مشهور او رائج پاته سو. وزن سبعة: تعريف يې مخكې تېر سو چې "وزن سبعه" دا دى چې لس درهمه د اوو (۷) مثقالو سره برابر وي، په دې صورت كې يو درهم د يوه مثقال اووه حصې (۰.۷) كېږي يعني له يوه مثقال څخه څه كميږي، د "وزن سبعه والا" د يوه درهم وزن تقريباً درې (۳) گرامه كيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه څوک په سرو زرو سره د قتلِ خطاء ديت اداء كول وغواړي، نو هغه به د مقتول وارثانو ته زر (۱۰۰۰) ديناره وركوي، او كه په سپينو سره د هغه اداء كول وغواړي، نو زموږ په نيز به لس زره (۱۰۰۰۰) درهمه اداء كوي، لېكن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز به دوولس (۱۲۰۰۰) زره درهمه اداء كوي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا هغه روايت دى چې په هغه كې د بنو عدي قبيلې د يوه مقتول كس د ديت په هكله نبي كريم ﷺ د دوولس زرو درهمو فيصله كړې ده. لهذا كله چې صاحبِ شريعت ﷺ د دوولس زرو درهمو فيصله كړې ده، نو ښكاره خبره ده چې په سپينو زرو سره د قتلِ خطاء د ديت اداء كولو مقدار به همدغه وي.

ولنا ما روى عن عمر رضي الله عنه إلخ: په دې سلسله كې زموږ دليل هغه حديث دى كوم چې له حضرت عمر رضي الله عنه څخه نقل سوى دى چې نبي كريم ﷺ د يوه مقتول د ديت په هكله د لس زره درهمو فيصله وكړه. نو له دې حديث څخه معلومه سوه چې د قتلِ خطاء ديت له سپينو زرو څخه لس زره درهمه دى.

---

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الديات، باب الدية كم هي، حديث: ۴۵۴۲. (احسن الهدايه)

وتأويل ما روى إلخ: څرنګه چې زموږ او دامام شافعي رَحِمَهُ الله د پېش کرده حديثونو په مينځ کې تعارض دی، نو دلته صاحب د هدايې دامام شافعي رَحِمَهُ الله د پېش کرده حديث جواب ورکړی دی. حاصل يې دا دی چې د اسلام په شروع کې د لسو دراهمو وزن شپږ مثقاله وو يا په بله وينا د شپږو مثقالو سره برابر وو. بيا د شپږو مثقالو په حساب د دوو لس زره درهمو وزن د وروستنې مثقالو په حساب د لس زره درهمو سره برابر کېدی؛ ځکه د حضرت عمر رضي الله عنه تر زمانې پورې "وزن ستّه" جاري وو يعنې د شپږو مثقالو په وزن سره به دراهم چلېدل، لېکن وروسته حضرت عمر رضي الله عنه دا وزن ختم کړی او لس دراهم يې د "وزن سبعه" يعنې داُوو مثقالو برابر وګرځول او د ټولو مملکتو او هيوادو لپاره يې همدا وزن مقرر کړی، او څرنګه چې د حضرت عمر رضي الله عنه دا فيصله د ټولو صحابه وو په موجوديت کې سوې وه، نو ځکه هغې د اجماع شکل اختيار کړی.

لنډه دا چې زموږ او دامام شافعي تاکل سوی مقدار د مآل او انجام په اعتبار سره يو مقدار دی، صرف د زمانې او د درهم د وزن په بدلون سره په هغه کې هم بدلون راغلی دی. (احسن الهدايه)

## ديت په نورو شيانو سره اداء کېدلای سي، که نه؟ (د ائمه وو قولونه)

قَالَ: وَلَا تَثْبُتُ الدِّيَةُ إِلَّا مِنْ هٰذِهِ الْأَنْوَاعِ الثَّلَاثَةِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ فرمايي: او ديت نه ثابتيږي مګر له همدې دريو قسمونو څخه دامام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَقَالَا ●: مِنْهَا وَمِنَ الْبَقَرِ مِائَتَا بَقَرَةٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې [ثابتيږي] له دې دريو قسمونو څخه [همدارنګه] له غويانو څخه دوه سوه غويان وَمِنَ الْغَنَمِ أَلْفَا شَاةٍ او له پسونو څخه زر پسونه وَمِنَ الْحُلَلِ مِائَتَا حُلَّةٍ كُلُّ حُلَّةٍ ثَوْبَانِ او له جوړو څخه دوه سوه جوړې کالي، چې هره جوړه به دوې کپړې وي لِأَنَّ عُمَرَ رضي الله عنه هٰكَذَا جَعَلَ عَلٰى أَهْلِ كُلِّ مَالٍ مِنْهَا ځکه حضرت عمر رضي الله عنه له دوی څخه په هر مال والا باندې همداسې مقرر کړي وه وَلَهُ: أَنَّ التَّقْدِيْرَ إِنَّمَا يَسْتَقِيْمُ بِشَيْءٍ مَعْلُوْمِ الْمَالِيَّةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې تقدير [اندازه تاکل] په همغه شي سره صحيح کېږي چې د هغه ماليت معلوم وي وَهٰذِهِ الْأَشْيَاءُ مَجْهُوْلَةُ الْمَالِيَّةِ او دغه شيان [غويی، پسه، جوړه] مجهول ماليت والا دي وَلِهٰذَا لَا يُقَدَّرُ

---

● القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: والصحيح ما ذهب إليه الإما كما في المصر ـ (رد المحتار ج:۵، ص:۴۰۷)، وكذا قال العلامة وهبة الزحيلي:..... ورأي أبي حنيفة هو الصحيح في مذهبه (الفقه الاسـلامي. ج:۶، ص:۳۰۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۴۸]

بِهَا ضَمَانٌ په همدې وجه په دې شيانو سره د ضمان اندازه نه ټاکل کيږي وَالتَّقْدِيْرُ بِالْإِبِلِ عُرِفَ بِالْآثَارِ الْمَشْهُوْرَةِ او په اوښانو سره اندازه ټاکل په داسې آثارو سره معلوم سوي دي کوم چې مشهور دي وَعَدِمْنَاهَا فِيْ غَيْرِهَا او له اوښانو څخه بغير په نورو کي موږ دغه آثار معدوم موندلي دي وَذَكَرَ فِي الْمُعَاقِلِ او امام محمد رَحِمَهُ الله په کتابُ المعاقل کي ذکر کړي دي أَنَّهُ لَوْصَالَحَ عَلَى الزِّيَادَةِ عَلَى مِائَتَيْ حُلَّةٍ أَوْ مِائَتَيْ بَقَرَةٍ چې که څوک له دوو سوو جوړو يا له دوو سوو غويانو څخه پر زياتو صلح وکړي لَا يَجُوْزُ نو دا جائز نه دي وَهٰذَا آيَةُ التَّقْدِيْرِ بِذٰلِكَ او دا په هغوی سره [د ديت] د اندازه ټاکولو علامه ده ثُمَّ قِيْلَ: هُوَ قَوْلُ الْكُلِّ بيا ويل سوي دي: چې دا د ټولو قول دی فَيَرْتَفِعُ الْخِلَافُ نو اختلاف به ختم سي وَقِيْلَ: هُوَ قَوْلُهُمَا او ويل سوي دي: چې دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی.

**اللغات**: ﴿أنواع﴾ جمع د نَوْع ده: قسمونه. ﴿الغنم﴾ د "غَنَم" لفظ اسم جنس دی، مذکر او مؤنث دواړو لره شامليږي، همدارنګه د پسه، ميږې، سېرلي او بزې ټولو لپاره استعماليږي، واحد يې من غير لفظه شَاةٌ دی (معجم لغة الفقهاء). ﴿البقر﴾ همدارنګه "بَقَر" هم اسمِ جنس دی چې پر مذکر او مؤنث دواړو يې اطلاق کيږي، واحد يې بَقَرَةٌ دی، لکه څرنګه چې صاحب د معجم وايي: البقر اسم جنس، والبقرة تقع على الذكر والانثى. ﴿الحُلَّة﴾ نوي کالي، جوړه، جمع: حُلَل. ﴿عَدِمْنَا﴾ د سمع له بابه د جمع متکلم صيغه ده: نېستول، ورکول، نه موندل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قتلِ شبه عمد او د قتلِ خطاء ديت فقط په اوښانو يا په سرو زرو يا سپينو زرو سره اداء کېدلای سي، او له دغه دريو انواعو څخه بغير په بله نوع مثلاً په غواوو، پسونو وغيره سره ديت نه سي اداء کولای، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د ديت اداينه دانواعِ ثلاثه وو سره خاص نه ده، بلکي له هغوی څخه بغير په غواوو، پسونو او د کاليو په جوړو سره هم ديت اداء کېدلای سي، لهذا که څوک په غواوو، غويانو سره د هغه اداء کول وغواړي، نو دوه سوه غواوي او غويان به ورکوي، او د پسونو په صورت کي به زر (۱۰۰۰) پسونه ورکوي او د کاليو په صورت کي به دوه سوه جوړې کالي ورکوي او هره جوړه به پر دوو کپړو مشتمله وي چې هغه زموږ د عُرف مطابق په دې زمانه کي يو کميس او يو پرتوګ کيږي. په دې اختلاف کي امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دي. (بنايه)

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چي حضرت عمر رضی الله عنه د خپل خلافت په دور کي د مذکوره مالونو پر مالکانو په همدې ترتیب او حساب سره دیت مقرر کړی وو. لکه څرنګه چي له حضرت شعبي څخه نقل سوي دي "أنَّ عُمَرَ رضی الله عنه وَضَعَ الدِّيَاتَ على أهل الذهب ألفَ دينارٍ وعلى أهل الورق عشرةَ آلاف درهمٍ وعلى أهل الإبل مائةً من الإبل وعلى أهل البقر مائتي بقرةٍ وعلى أهل الشاة ألفَ شاةٍ وعلى أهل الحُلل مائتي حُلَّة" (عنایه او بنایه). ترجمه یې څرګنده ده. دا تقدیر او اندازه ټاکل د صحابه کرامو په موجودیت کي سوې وه، نو هغه ته د اجماع درجه حاصله سوه. لنډه دا چي له دې څخه معلومه سوه چي غویان، پسونه وغیره هم په دیت کي ورکول کېدلای سي او د دیت اداینه او جواز فقط په سرو یا سپینو زرو او اوښانو کي منحصر نه دی.

ولہ أن التقدیر إلخ: له دې ځایه د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل بیان سوی دی، حاصل یې دا دی چي د یو شي تقدیر (اندازه ټاکل) په هماغه شي سره صحیح دي چي د هغه قیمت او مالیت معلوم وي. او د دراهمو او دنانیرو مالیت معلوم دی او بالکل څرګند دی، نو ځکه په هغوی سره د دیت تقدیر خو صحیح دی، لېکن څرنګه چي د غواوو، پسونو او د کالیو د جوړو مالیت مجهول دی، نو ځکه د هغوی په ذریعه د دیت اندازه ټاکل صحیح نه دي، او دا جهالت په اوښانو کي هم موجود دی. لهذا په هغوی سره هم د دیت تقدیر نه صحیح کېدل پکار دي، لېکن بیا هم موږ ځکه په اوښانو سره د دیت تقدیر صحیح ګرځولی دی چي د اوښانو د تقدیر په هکله ځو احادیث نقل سوي دي او هغوی ټوله مشهور حدیثونه دي، نو ځکه د هغوی په مقابله کي موږ عقل او قیاس پرې ایښی دی او په اوښانو سره د دیت اندازه ټاکل مو صحیح ګرځولي دي. او پاته سو د کالیو د جوړو او د پسونو وغیرها په باره کي مشهور حدیث خو پرېږده! موضوع حدیث هم موږ نه دی ترلاسه کړی، نو ځکه په دې شیانو سره د دیت تقدیر موږ منع کړی دی.

وذکر فی المعاقل إلخ: په دې سره یې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د مسلک په تائید کي یوه مسئله ذکر کړې ده. فرمایي چي امام محمد رَحِمَهُ الله د مبسوط په کتابُ المعاقل کي دا مسئله لیکلې ده چي که د مقتول وارثان د قاتل سره تر دوو سوو پر زیاتو غواوو یا جوړو باندي صلح وکړي، نو دا صلح جائز نه ده. نو له دې څخه هم دا څرګندیږي چي د دوو سوو غواوو یا جوړو مقدار شرعي تقدیر دی او په دې مقدار سره د دیت تقدیر (اندازه ټاکل) صحیح دي، لهذا امام صاحب رَحِمَهُ الله چي هغوی له تقدیر څخه خارجوی، دا صحیح نه دي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې تر دوو سوو پر زياتو غواوو يا جوړو باندې د صلح د عدمِ جواز (نه جائز کېدلو) قول متفق عليه دی يعني د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نېز پر هغه صلح جائز نه ده. او کله چې دا د ټولو قول دی. نو اختلاف هم ختم سو. لېکن صحيح قول دا دی چې دا عدمِ جواز فقط د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی او د دې حضراتو اختلاف باقي دی. لهذا د کتابُ المعاقل مسئله چې کله د امام صاحب په نېز تسليم نه ده. نو بيا هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په خلاف پېشول صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

## د ښځې ديت د سړي له ديت څخه نيم دی (تفصيل)

قَالَ: وَدِيَةُ الْمَرْأَةِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ دِيَةِ الرَّجُلِ فرمايي: او د ښځې ديت د سړي د ديت نيمايي دی وَقَدْ وَرَدَ هٰذَا اللَّفْظُ مَوْقُوفًا عَلٰى عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَمَرْفُوعًا إِلَى النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] او دغه لفظ پر حضرت علي رضي الله عنه موقوف او تر نبي ﷺ پورې مرفوع وارد سوی دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: مَا دُوْنَ الثُّلُثِ لَا يُتَنَصَّفُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: کوم چې د ديت له ثلث څخه کم وي هغه به نه نيمايي کېږي وَإِمَامُهُ فِيْهِ زَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ رضي الله عنه او په دې هکله د هغه امام زيد بن ثابت رضي الله عنه دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَاهُ بِعُمُوْمِهِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت هغه حديث دی کوم چې موږ روايت کړی دی د خپل عموم په وجه [يعني زموږ روايت کړه حديث د خپل عموم په وجه د هغه په خلاف حجت دی] وَلِأَنَّ حَالَهَا أَنْقَصُ مِنْ حَالِ الرَّجُلِ او څکه چې د ښځې حالت د سړي له حالت څخه زيات ناقص [کم] دی وَمَنْفَعَتُهَا أَقَلُّ او د ښځې منفعت کمتر دی وَقَدْ ظَهَرَ أَثَرُ النُّقْصَانِ بِالتَّنْصِيْفِ فِي النَّفْسِ او د نقصان [کمی] اثر د ښځې د نفس [د ديت] په نيمولو کې ښکاره سوی دی فَكَذَا فِيْ أَطْرَافِهَا وَأَجْزَائِهَا نو همداسې به د ښځې په اطرافو او اجزاوو کې [هم دا اثر ښکاره کېږي] اِعْتِبَارًا بِهَا وَبِالثُّلُثِ وَمَا فَوْقَهُ په نفس او په ثلث او له ثلث څخه په ما فوق باندې په قياسولو سره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د ښځې ديت مطلقاً د سړي د ديت نصف دی، برابره ده په نفس کې وي يا په اطرافو او اندامو کې وي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې په نفس کې زه هم درسره متفق يم، لېکن کله چې ديت په اندامو کې وي، نو دې ته به کتل کېږي چې په هغه اندام کې د نفس د ديت نصف واجب دی او که ثلث يا تر هغه کم واجب دی، که چېرې نصف يا ثلث

[1] تخريج: اخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب الدّيات، حديث رقم: ۱۶۳۰۹ بمعناه.

واجب وي، نو په هغه کي هم ستاسي سره متفق يم چي د ښځي ديت به د سړي د ګټيت نصف وي، لېکن که يو اندام داسي وي چي په هغه کي د سړي د ديت له ثلث څخه هم کم ديت واجبيږي (کما سيجئ)، نو هلته به تنصيف نه کيږي بلکي د سړي او ښځي ديت به سره برابر وي او د ښځي ديت به د سړي د ديت نصف نه وي.

په دې باره کي امام شافعي رَحِمَهُ الله د زيد بن ثابت په فرمان سره دليل نيولى دى، يعني د هغه تقليد يې کړى دى (حال دا چي دامام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د صحابي تقليد حجت نه دى).

زموږ دليل دا حديث دى "دية المرأة على النصف من دية الرجل"، دا حديث موقوفاً او مرفوعاً دواړه ډوله نقل سوى دى او دا حديث د خپل عموم په وجه دامام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت دى.

ولأن حالها إلخ: زموږ عقلي دليل دا دى چي د ښځي حالت د سړي له حالت څخه ناقص او کمتر دى او د ښځي منفعت د سړي له منفعت څخه کم دي، لهذا دا نقصان او کمي به په ديت کي هم ښکاره کيږي.

او بل کله چي امام شافعي رَحِمَهُ الله د نفس په ديت کي تنصيف او نقصان تسليموي، همدارنګه د اطرافو او اندامونو په ديت کي د ديت په ثلث او له هغه څخه په زيات کي هم تنصيف او نقصان تسليموي، نو بيا په ما دون الثلث (تر ثلث په کمه) کي د عدمِ تسليم څه وجه ده!، بلکي پر ثلث وغيره په قياسولو سره به په ما دون الثلث ديت کي هم تنصيف کيږي او په هغه کي به هم د نقصان او کمي اثر ښکاره کيږي. (اشرف الهدايه، احسن الهدايه)

## د مسلمان او ذمي ديت سره برابر دى (د ائمه وو قولونه)

قَالَ: وَدِيَةُ الْمُسْلِمِ وَالذِّمِّيِّ سَوَاءٌ فرمايي: د مسلمان او ذمي ديت سره برابر دى وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: دِيَةُ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ أَرْبَعَةُ آلَافِ دِرْهَمٍ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د يهودي او نصراني ديت څلور زره درهمه دى وَدِيَةُ الْمَجُوسِيِّ ثَمَانُ مِائَةِ دِرْهَمٍ او د مجوسي ديت اته سوه درهمه دى وَقَالَ مَالِكٌ: دِيَةُ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ سِتَّةُ آلَافِ دِرْهَمٍ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د يهودي او نصراني ديت شپږ زره درهمه دى لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: «عَقْلُ الْكَافِرِ نِصْفُ عَقْلِ الْمُسْلِمِ»

[1] تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الدّيات، باب ما جاء في دية الكفار، حديث رقم: ۱۴۱۳.

ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: چي د كافر ديت د مسلمان د ديت نصف دى وَالْكُلُّ عِنْدَهُ اِثْنَا عَشَرَ أَلْفًا او د مسلمان ټوله ديت د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز دوولس زره درهمه دی. وَلِلشَّافِعِيِّ مَا رُوِيَ ❷: «أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ جَعَلَ دِيَةَ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ أَرْبَعَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل هغه روايت دی: چي نبي ﷺ د نصراني او يهودي ديت څلور زره درهمه مقرر کړی وَدِيَةَ الْمَجُوسِيِّ ثَمَانَ مِائَةِ دِرْهَمٍ» او د مجوسي ديت يې اته سوه درهمه مقرر کړی وَلَنَا قَوْلُهُ ﷺ ❸: «دِيَةُ كُلِّ ذِي عَهْدٍ فِي عَهْدِهِ أَلْفُ دِينَارٍ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: د هر ذمي ديت کله چي هغه په خپل عهد ذمه کي وي زر ديناره دی وَكَذٰلِكَ قَضَى أَبُوبَكْرٍ وَعُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او همداسي فيصله کړې ده حضرت ابو بکر او حضرت عمر (رض) وَمَا رَوَاهُ الشَّافِعِيُّ لَمْ يُعْرَفْ رَاوِيهِ او کوم حديث چي امام شافعي رَحِمَهُ الله روايت کړی دی د هغه رواي معلوم نه دی وَلَمْ يُذْكَرْ فِي كُتُبِ الْحَدِيثِ او د حديثو په کتابو کي ذکر سوی نه دی وَمَا رَوَيْنَاهُ أَشْهَرُ مِمَّا رَوَاهُ مَالِكٌ او هغه حديث کوم چي موږ روايت کړی دی دا له هغه حديث څخه مشهور دی کوم چي امام مالک رَحِمَهُ الله روايت کړی دی فَإِنَّهُ ظَهَرَ بِهِ عَمَلُ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ځکه پر همدې د صحابه وو (رض) عمل ښکاره سوی دی.

**اللغات:** ﴿عقل﴾ د ضرب له بابه اسمِ مصدر دی. د دې باب يوه معنیٰ ده: ديت، عَقَلَ يَعْقِلُ عَقْلًا: ديت اداء کول، عاقله کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زموږ په نيز د مسلمان او ذمي دواړو ديت سره برابر دی، يعني له سپينو زرو څخه لس زره (۱۰۰۰۰) درهمه او له سرو زرو څخه زر (۱۰۰۰) ديناره، ليکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز که ذمي يهودي يا نصراني وي نو د هغه ديت څلور زره (۴۰۰۰) درهمه دی. او که مجوسي وي نو د هغه ديت اته سوه (۸۰۰) درهمه دی. امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چي که ذمي يهودي يا نصراني وي، نو د هغه ديت شپږ زره (۶۰۰۰) درهمه دی.

❷ تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب الديات، حديث رقم:۱۶۳۳۸.
❶ تخريج: أخرجه الترمذي في كتاب الديات، باب:۸، حديث رقم:۲۰۱۴ بمعناه.

د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا حدیث دی "عَقل الکافر نصف عقل المسلم" چې د کافر دیت د مسلمان د دیت نصف دی او څرنګه چې د امام مالک رَحِمَهُ الله په نیز د مسلمان پوره دیت دوولس زره درهمه دی، نو ښکاره ده چې د هغه نصف شپږ زره درهمه به د کافر دیت وي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا روایت دی "أن النبی صلی الله علیه وسلم جعل دیة الیهودی والنصرانی أربعة آلاف درهم ودیة المجوسی ثمان مائة درهم". له دې څخه معلومه سوه چې د یهودي دیت څلور زره درهمه او د مجوسي دیت اته زره درهمه دی.

ولنا قوله إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې سلسله کې زموږ دلیل د نبي کریم ﷺ دا فرمان دی "دیة کل ذی عهد فی عهده ألف دینار" یعني هر ذمي چې تر څو پر خپل عهد ذمه باندي قائم وي (یعني د ذمي سره چې مسلمانانو کوم د ذمي والي تړون او معامله کړې وي چې ذمي به د دې شرطونو مطابق په دارُالاسلام کي اوسیږي. نو تر څو چې ذمي دا تړون مات نه کړي او د حربیانو لار اختیاره نه کړي) تر هغه وخته د ذمي دیت زر دیناره دی، او همدا د مسلمان دیت هم دی، له دې څخه په واضحه توګه معلومه سوه چې د مسلمان او ذمي دیت سره برابر دی.

اوس په دې مسئله کې ټوله درې قولونه سول او درې سره قولونه په حدیث قولي سره مدلل دي. نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د احنافو قول ته د ترجیح ورکولو لپاره د هغه په تائید کې د شیخینو رضی الله عنهما فیصله پېشوي چې شیخینو یعني حضرت ابو بکر او حضر عمر رضی الله عنهما به هم دغه فیصله کوله چې د مسلمان او ذمي دیت سره برابر دی. لکه څرنګه چې امام محمد رَحِمَهُ الله په کتاب الآثار کې د هیثم بن ابو الهیثم په حواله سره دا روایت نقل کړی دی "أن النبی صلی الله علیه وسلم و أبا بکر وعمر وعثمان رضی الله عنهم قالوا: دیة المُعَاهِد دیة الحُرّ المسلم" یعني د نبي کریم ﷺ او د شیخینو او د حضرت عثمان رضی الله عنهم فرمان دا وو چې د معاهد یعني د ذمي به هغومره دیت وي کوم چې د آزاد مسلمان دیت دی.

وما رواه الشافعي إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د روایت جواب ورکوي فرمایي چې د هغه رواي مجهول دی. لهذا په هغه سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل نیول صحیح نه دي.

پاته سو د امام مالک رَحِمَهُ الله روایت. نو د هغه جواب دا دی چې زموږ روایت له هغه څخه مشهور او معروف هم دی او د هغه مطابق صحابه کرامو رضی الله عنهم عمل هم کړی دی، او د یو روایت د ترجیح لپاره د صحابه وو عمل کافي دی. فقط والله اعلم وعلمه اتم

# فَصْلٌ فِيمَا دُونَ النَّفْسِ

دا فصل له نفس څخه دکم (اطرافو) د ديت په بيان کي دی

**تشريح**: مخکي تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د نفس د ديت احکام او مسائل بيان کړل، اوس له دې ځايه د ما دون النفس يعني د اطرافو او اندامونو د ديت احکام بيانوي، ځرنګه چي نفس اصل او متبوع دی او اندامونه د نفس تابع دي او متبوع له تابع څخه مخکي وي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د متبوع د احکامو بيان د تابع د احکامو او مسائلو له بيان څخه مخکي کړی دی. (احسن الهدايه)

## د بدن په غړو او اندامونو کي د ديت بيان

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَفِي النَّفْسِ الدِّيَةُ او په نفس کي ديت [واجب] دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او مونږ [مخکي] دا ذکر کړي دي قَالَ: وَفِي الْمَارِنِ الدِّيَةُ فرمايي: او د پزي په نرمۍ کي ديت دی وَفِي اللِّسَانِ الدِّيَةُ او په ژبه کي ديت دی وَفِي الذَّكَرِ الدِّيَةُ او په ذکر کي ديت دی وَالْأَصْلُ فِيهِ مَا رَوَى سَعِيدُ بْنُ الْمُسَيِّبِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ[1] او اصل په دې باره کي هغه حديث دی کوم چي سعيد بن مسيب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کړی دی چي نبي کريم ﷺ وفرمايل «فِي النَّفْسِ الدِّيَةُ وَفِي اللِّسَانِ الدِّيَةُ وَفِي الْمَارِنِ الدِّيَةُ» په نفس کي ديت دی، په ژبه کي ديت او د پزي په نرمۍ کي ديت دی وَهَكَذَا هُوَ فِي الْكِتَابِ الَّذِي او همدغسي دا [حکم] دی په هغه خط کي كَتَبَهُ رَسُولُ اللهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کوم چي رسول الله ﷺ د حضرت عمرو بن حزم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لپاره ليکلی وو وَالْأَصْلُ فِي الْأَطْرَافِ أَنَّهُ إِذَا فَوَّتَ جِنْسَ مَنْفَعَةٍ عَلَى الْكَمَالِ او د اطرافو په هکله اصل [قاعدهٔ کليه] دا ده چي که هغه په بشپړه توګه د طرف [اندام] جنس منفعت فوت کړي أَوْ أَزَالَ جَمَالًا

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى في كتاب عمرو بن حزم، حديث رقم: ۷۲۵۵. كما مرّ في كتاب الزكاة. وهكذا قال الزيلعي. (احسن الهدايه)

مَقْصُوْدًا فِي الْآدَمِيِّ عَلَى الْكَمَالِ يا په بشپړه توګه د انسان مقصود جمال [او حُسن] زائل کړي يَجِبُ كُلُّ الدِّيَةِ نو ټوله ديت واجبيږي لِإِتْلَافِهِ النَّفْسَ مِنْ وَجْهٍ ځکه هغه من وجه [په يوه اعتبار سره] نفس تلف کړی دی وَهُوَ مُلْحَقٌ بِالْإِتْلَافِ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ تَعْظِيمًا لِلْآدَمِيِّ او هغه [من وجه د نفس تلفول] د انسان د تعظيم په خاطر د من کل وجه تلفولو سره لاحق کړل سوي دي أَصْلُهُ قَضَاءُ رَسُولِ اللهِ ﷺ بِالدِّيَةِ كُلِّهَا فِي اللِّسَانِ وَالْأَنْفِ [او] د دې دليل د نبي کريم ﷺ فيصله ده په ټوله ديت سره په ژبه او پزه کي.

**اللغات**: ﴿مارن﴾ د پزي نرمه حصه. نرمی. ﴿الذکر﴾ د تناسل آله. نارينه اندام. ﴿أطراف﴾ جمع د طَرَفٌ ده: اعضاء او اندامونه. د بدن غړي او برخي. لکه لاس. پښه او داسي نور. ﴿جمال﴾ ښکلا. هغه صفت کوم چي په شي کي ملحوظ او نفس يې غوره ګڼي او د نفس د سرور باعث وي.

**تشريح**: امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د نفس په قتلولو کي خو ديت واجب دی چي د هغه پوره تفصيل مخکي بيان سو (چي که څوک خطاءً قتل وکړي. نو ديت واجبيږي...). لهذا دلته د هغه د راګرځولو ضرورت نسته (او په دې فصل کي مصنف رَحِمَهُ الله د نفس ذکر يا خو تمهيداً کړی دی يا په مذکوره حديث سره يې د تبرک حاصلولو په غرض کړی دی: ځکه متن بعينه د حديث الفاظ دي).

او دلته اصل مسئله دا ده چي د پزي د نرمۍ يا د ژبي په پرېکولو سره هم پر قاطع ديت واجب دی او د ديت واجبېدلو په هکله اصل او بنياد د حضرت سعيد بن المسيب رَحِمَهُ الله دا روايت دی "أن النبي ﷺ قال: في النفس الدية وفي اللسان الدية وفي المارن الدية". همدارنګه د اهل يمن وطرف ته چي نبي کريم ﷺ د حضرت عمرو بن حزم رضي الله عنه په لاس کوم خط لېږلی وو. په هغه کي هم د لسان. مارن وغيره د ديتونو همدا بيان وو. لهذا دا خبره ثابته سوه چي د لسان. ذکر او مارن په پرېکولو سره ديت واجبيږي. (احسن الهدايه)

والأصل في الأطراف إلخ: د اطرافو او اندامونو په پرېکولو باندي د ديت واجبېدلو په هکله يوه قاعدهٔ کليه بيانوي فرمايي که د انسان د يو جزء او اندام په پرېکولو سره په کامله توګه د هغه مقطوع جزء او اندام منفعت فوت سي. يا په هغه جزء سره چي کوم جمال او حسن مقصود وي. هغه ختم سي. نو د هغه جزء او اندام په پرېکولو باندي ټوله ديت واجبيږي: ځکه د هر جزء منفعت ختمول او معدوم کول من وجه داسي دي لکه نفس تلفول او هلاکول. او من وجه د نفس تلفولو ته د انسانيت په احترام او تعظيم کي د من کلّ وجه تلفولو درجه ورکول سوې دې (يعني د انسان د يوه جزء منفعت تلفول او من وجه

نفس هلاکول داسې دي لکه د ټوله نفس هلاکول. همدا د احترام انساني تقاضا ده). او د کامل نفس په هلاکولو سره ټوله دیت واجبیږي، لهذا په دې سره به هم ټوله دیت واجبیږي. او بل دا چې صاحب شریعت حضرت محمد ﷺ هم د ژبې او پزې په پرېکولو باندې پوره دیت واجب کړی دی. کوم چې زموږ لپاره سند او دلیل دی. (احسن الهدایه)

## په اندامونو کې د دیت تفصیل (په پورتنی قاعده باندې متفرع کېدونکې فروع)

وَعَلٰى هٰذَا يَنْسَحِبُ فُرُوْعٌ كَثِيْرَةٌ او پر دغه اصل [قاعدهٔ کلیه] ډېر فروع متفرع کیږي فَنَقُوْلُ: فِي الْأَنْفِ الدِّيَةُ نو موږ وایو: چې په پزه کې دیت [واجب] دی لِأَنَّهٗ أَزَالَ الْجَمَالَ عَلَى الْكَمَالِ ځکه قطع [پرېکولو] په بشپړه توګه جمال زائل کړی وَهُوَ مَقْصُوْدٌ او همدا جمال مقصود دی وَكَذَا إِذَا قَطَعَ الْمَارِنَ أَوِ الْأَرْنَبَةَ او همدارنګه که د پزې نرمی یا سرمه پرېکړي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَلَوْ قَطَعَ الْمَارِنَ مَعَ الْقَصَبَةِ او که د پزې نرمی د پزې د هډوکي سره پرېکړي لَا يُزَادُ عَلٰى دِيَةٍ وَاحِدَةٍ نو پر یوه دیت به زیاتوب نه کیږي لِأَنَّهٗ عُضْوٌ وَاحِدٌ ځکه چې دا یو اندام [یو غړی] دی وَكَذَا اللِّسَانُ او همدارنګه ژبه [چې د هغې په پرېکولو سره هم دیت واجبیږي] لِفَوَاتِ مَنْفَعَةٍ مَقْصُوْدَةٍ وَهُوَ النُّطْقُ ځکه مقصود منفعت فوت سو چې هغه خبري کول دي وَكَذَا فِي قَطْعِ بَعْضِهٖ إِذَا مَنَعَ الْكَلَامَ او همدارنګه د ژبې د بعضې حصې په پرېکولو کې [هم دیت واجبیږي] کله چې دا پرېکول خبري منع کړي [یعني انسان پر تکلم قادر پاته نه سي] لِتَفْوِيْتِ مَنْفَعَةٍ مَقْصُوْدَةٍ وَإِنْ كَانَتِ الْاٰلَةُ قَائِمَةً ځکه چې مقصود منفعت یې فوت کړی که څه هم آله [ژبه] موجوده ده وَلَوْ قَدَرَ عَلَى التَّكَلُّمِ بِبَعْضِ الْحُرُوْفِ او که هغه [مقطوع بعض اللسان] د بعضي حروفو پر ویلو قادر وي قِيْلَ: يُقْسَمُ عَلٰى عَدَدِ الْحُرُوْفِ نو ویل سوي دي: چې هغه [دیت] به د حروفو پر شمېر [یعني پر ټولو حروفو] تقسیمول کیږي [کوم چې ۲۸ دي] وَقِيْلَ: عَلٰى عَدَدِ حُرُوْفٍ تَتَعَلَّقُ بِاللِّسَانِ او ویل سوي دي [یعني بل قول دا دی]: چې د هغه حروفو پر شمېر به تقسیمول کیږي کوم چې د ژبې سره متعلق دي [چې هغه ۱۶ دي] فَبِقَدْرِ مَا لَا يَقْدِرُ يَجِبُ نو د هغه حروفو په اندازه چې هغه [مقطوع بعض اللسان] پر هغوی قادر نه وي دیت به واجبیږي وَقِيْلَ: إِنْ قَدَرَ عَلٰى أَدَاءِ أَكْثَرِهَا او ویل سوي دي: چې که هغه د اکثر حروفو پر

اداء کولو قادر وي يَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ نو حکومة عدل واجبيږي لِحُصُولِ الْإِفْهَامِ مَعَ الِاخْتِلَالِ ځکه د مختل والي باوجود افهام [پوهول] حاصل دي وَإِنْ عَجَزَ عَنْ أَدَاءِ الْأَكْثَرِ او که هغه د اکثر حروفو له اداء کولو څخه عاجزه وي يَجِبُ كُلُّ الدِّيَةِ نو ټوله ديت واجبيږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّهُ لَا تَحْصُلُ مَنْفَعَةُ الْكَلَامِ ځکه ښکاره همدا ده چې د خبرو منفعت نه حاصليږي وَكَذَا الذَّكَرُ او همدارنګه ذکر لِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ مَنْفَعَةُ الْوَطْءِ وَالْإِيلَادِ ځکه د هغه [د پرېکولو] په وجه فوتيږي د وطي او زېږولو منفعت [چې پر وطي او د بچي پر زېږولو به قادر نه وي] وَاسْتِمْسَاكُ الْبَوْلِ وَالرَّمْيِ بِهِ او د متيازو ټينګولو او په فشار [او توپ] سره د متيازو کولو منفعت [چې د متيازو پر کنټرولو او په فشار سره د هغوی پر کولو به قادر نه وي بلکې هسې به يې پر ورنو بهيږي] وَدَفْقِ الْمَاءِ او د اوبو [مني وو] غورځولو منفعت [چې مني به يې په توپ سره نه وځي...] وَالْإِيلَاجِ الَّذِي هُوَ طَرِيقُ الْإِعْلَاقِ عَادَةً او د دخول کولو [ذکر داخلولو] منفعت کوم چې عادتاً د حامله کولو [بلاربولو] طريقه ده [يعني په ښځې به دخول هم نه سي کولای. حالانکې همدا ذکر داخلول د ښځې د حامله کولو او بچي زېږولو فطري او عمومي ذريعه ده. ځکه سَحق او مړل عموماً د علوق سبب نه ګرځي] وَكَذَا فِي الْحَشَفَةِ الدِّيَةُ كَامِلَةً او همدارنګه د ذکر په سر کې پوره ديت [واجب] دی لِأَنَّ الْحَشَفَةَ أَصْلٌ فِي مَنْفَعَةِ الْإِيلَاجِ وَالدَّفْقِ ځکه چې د ذکر سر د دخول کولو او د اوبو غورځولو په منفعت کې اصل دی وَالْقَصَبَةُ كَالتَّابِعِ لَهُ او قصبه [ډنډه] داسې ده لکه د ذکر د سر تابع.

**اللغات**: ﴿ينسحب﴾ د انفعال د باب مضارع ده: راکښېدل. مراد: متفرع کېدل. ﴿جمال﴾ مخکې يې معنیٰ ذکر سوه. ښکلا. هغه صفت کوم چې په شي کې ملحوظ او نفس يې غوره ګڼي او د نفس د سرور باعث ګرځي. ﴿الأرنبة﴾ سرېزه. ﴿اختلال﴾ د افتعال د باب مصدر دی: مختل کېدل. متغير کېدل. خرابي او ګډوډ پکښې راتلل. ﴿إفهام﴾ د افعال د باب مصدر دی: بل څوک پوهول. په يو څه د چا سر ور خلاصول. ﴿استمساك﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ټينګول. نيول. ﴿حكومة عدل﴾ د عدل فيصله. د دې وضاحت مخکې وسو او د فصل في الشجاج په آخري عبارت کې په تفصيل سره د حکومة عدل تفسير او مطلب بيان سوی دی. فصل في الشجاج څو فصلونه وروسته ذکر سوی دی. ﴿الرمی﴾ د ضرب د باب مصدر دی: ويشتل. لېري غورځول. مراد: په فشار او توپ سره کول. ﴿دفق﴾ د نصر د باب مصدر دی: (اوبه) په تېزي سره بهېدل. غورځېدل. توپ وهل. ﴿إيلاج﴾ د

افعال د باب مصدر دی: (ذکر) دننه کول. داخلول. ﴿إعلاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: حامله کول. بلاربول. ﴿القصبة﴾ مراد ځني له حشفې څخه را لاندې نور ذکر دی. يا په بله وينا د ذکر ډنډه.

**تشريح:** څه مخکې چې د اندام او جزء په پرېکولو باندې د ديت واجبېدلو په هکله کومه قاعدهٔ کُليه بيان سوه، فرمايي چې پر هاغه قاعده ډېر فروعات او جزئيات متفرع دي. له هغوی څخه يوه جزئيه دا ده چې که څوک د چا پزه پرېکړي، نو پر قاطع (پرېکونکي) باندې د نفس ټوله ديت واجبيږي؛ ځکه په پزه پرېکېدلو سره د مخ جمال زايليږي او د مخ ښکلا او حُسن له منځه ځي. همدارنګه که د پزې نرمې يا پوره سرېمه پرېکړي. نو په دې ټولو صورتونو کې پر قاطع ديت واجبيږي؛ ځکه په دوی کې د هر جزء په پرېکولو سره حُسن او جمال هم له منځه ځي او پر مقصود منفعت هم اثر پرېوځي. او که د پزې نرمې د پزې د هډوکي سره ټوله پرېکړي. نو صرف يو ديت واجبيږي: ځکه چې ټوله پزه يو عضو او اندام دی او د عضوِ واحد په پرېکولو باندې صرف يو ديت واجبيږي.

وکذا اللسان إلخ: فرمايي که څوک د يو چا ژبه پرېکړي، نو هم پر قاطع ټوله ديت واجبيږي؛ ځکه په ژبه پرېکېدلو سره د تکلم او خبرو کولو منفعت فوتيږي او همدا فواتِ منفعت د ديت واجبېدلو سبب دی.

وکذا في قطع بعضه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که څوک د يو چا د ژبې بعضې حصه پرېکړي، نو د دې حکم دا دی چې که هغه کس په خبرو کولو باندې قادر پاتې نه سي، نو پر قاطع ټوله ديت واجبيږي که څه هم آله يعني ژبه موجوده وي؛ ځکه همدا تکلم د ژبې منفعتِ مقصوده دی او هغه ختم سو، لهذا پر قاطع به ټوله ديت واجب وي.

ولو قدر على التكلم إلخ: فرمايي د ژبې د بعضې حصې تر پرېکولو وروسته که هغه کس د بعضو حروفو پر ويلو قادر وي، نو ديت به د حروفو پر شمېر تقسيمول کيږي. د عربي ژبې حروف ټوله ۲۸ (اته ويشت) دي، اوس که دا مقطوع بعض اللسان د ۱۴ حروفو پر ويلو قادر وي لېکن پاتې ۱۴ حروف نه سي ويلای. نو څرنګه چې هغه د نيمايي حروفو له تکلم څخه عاجز دی. نو ځکه پر قاطع به نيم ديت واجبيږي. همدا د ائمه ثلاثه وو قول دی. (بنايه)

وقيل على حروف إلخ: په دې سلسله کې بل قول دا دی چې ديت به فقط پر هغو حروفو تقسيمول کيږي چې د هغوی تعلق د ژبې سره وي يا په بله وينا دا چې مخرج يې د ژبې سره متعلق وي. او هغه ټوله شپاړس (۱۶) حروف دي چې د هغوی تفصيل دا دی: الف، ت، ث، ج: د، ذ، ر، ز، س، ش، ص، ض، ط، ظ، ل، ن. اوس که دا مقطوع بعض اللسان په دغه حروفو کې مثلاً د ۸ حروفو له اداء کولو څخه عاجزه وي، نو نيم ديت واجبيږي او نيم ساقطيږي.

وقيل إلخ: د بعضي مشايخو رايه دا ده چي که دا مقطوع اللسان دا کثره حروفو پر ويلو قادر وي او څه حروف نه سي اداء کولای، نو حکومة عدل واجبيږي وقد مرّ بيانه: ځکه په دې صورت کي د اختلاف باوجود هغه په تفهيم او د بل چا په پوه کولو باندي دی او د ژبي منفعت مقصود نه دی زايل سوی. د دې په خلاف که هغه د اکثره حروفو له اداء کولو څخه عاجزه وي، نو بيا پر قاطع ټوله ديت واجبيږي: ځکه اوس ښکاره همدا ده چي د ژبي منفعت مقصوده (يعني تکلم او نطق) فوت سو، نو د "للأکثر حکم الکل" والا قاعدې پر بناء به اوس پر قاطع ټوله ديت واجب وي.

وکذا الذکر إلخ: دا مسئله هم پر مخکني قاعدهٔ کُليه باندي متفرع ده. حاصل يې دا دی چي که څوک د بل چا ذکر پرېکړي، نو په دې صورت کي پر قاطع ټوله ديت واجبيږي: ځکه ښکاره خبره ده چي د ذکر د پرېکېدلو په وجه د انسان ډېر منافع فوتيږي او ضايع کيږي لکه څرنګه چي په عبارت کي مذکوره دي، نو ځکه پر قاطع به ټوله ديت واجب وي.

وکذا في الحشفة إلخ: فرمايي که څوک د بل چا حشفه (د ذکر سر) ورپرېکړي، نو هم پر قاطع ټوله ديت واجبيږي، برابره ده د حشفې لاندي ډنډه (ذکر) باقي وي يا هغه هم پرېکړل سوې وي: ځکه په ذکر کي حشفه ډېر اهم رول لري او د ايلاج، ادخال، دفق وغيره منفعت د هغهِ سره متعلق دي او همدا شيان په ذکر کي اصل او مقصود دي، او د حشفې په پرېکولو سره دا ټوله زايليږي، نو ځکه د هغه پر قاطع به هم ټوله ديت واجب وي. او پاته سوه تر حشفې لاندي ډنډه (قصبه) نو هغه د حشفې تابع ده. لهذا د حشفې تر پرېکولو وروسته د هغې وجود يا عدمِ وجود د ديت په وجوب کي مانع او مخل نه ګرځي. (احسن الهدايه)

## د حواس خمسه وو ديت

قَالَ: وَفِي الْعَقْلِ إِذَا ذَهَبَ بِالضَّرْبِ الدِّيَةُ فرمايي: او په عقل کي کله چي هغه د وهلو په وجه زائل سي ديت [واجب] دی لِفَوَاتِ مَنْفَعَةِ الْإِدْرَاكِ ځکه د ادراک [او احساس] منفعت فوت سو إِذْ بِهِ يَنْتَفِعُ بِنَفْسِهِ فِي مَعَاشِهِ وَمَعَادِهِ ځکه د همدې عقل په ذريعه انسان په خپل ځان سره نفع حاصلوي د خپل ژوندون او آخرت په باره کي وَكَذَا إِذَا ذَهَبَ سَمْعُهُ أَوْ بَصَرُهُ أَوْ شَمُّهُ أَوْ ذَوْقُهُ او همدارنګه کله چي [د وهلو په وجه] د هغه د اورېدلو قوت يا د ليدلو قوت [ديد] يا د بو يېولو قوت يا د څکلو قوت ختم سي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهَا مَنْفَعَةٌ مَقْصُودَةٌ ځکه له دوی څخه هر يو مقصود منفعت دی وَقَدْ رُوِيَ

أَنَّ عُمَرَ ﷺ قَضٰى بِأَرْبَعِ دِيَاتٍ فِي ضَرْبَةٍ وَاحِدَةٍ او روايت سوى دى چي حضرت عمر ﷺ د داسي يو ځل وهلو په هکله د څلورو ديتونو فيصله کړې وه ذَهَبَ بِهَا الْعَقْلُ وَالْكَلَامُ وَالسَّمْعُ وَالْبَصَرُ ځکه چي د هغه په وجه عقل، کلام، سمع او بصر ختم سوي وه.

**اللغات:** ﴿إدراک﴾ د افعال د باب مصدر دى: درک کول، فهمول، حسول. ﴿معاش﴾ ژوندون او د ژوندون وسيله، وزمان التماس العيش. ﴿المعاد﴾ د آخرت ژوند، آخرت. ﴿شم﴾ بوېيول (په پزي سره بوى معلومول او حسول). د بوېيولو قوت. ﴿ذوق﴾ څکل (خوند کتل)، د څکلو قوت.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى که څوک يو سړي پر سر ووهي او د هغه بېچاره عقل زايل او ختم سي، نو پر ضارب ديت واجبيږي؛ ځکه د عقل په زايلېدلو سره د ادراک او احساس منفعت او قوت ختميږي؛ ځکه د همدې عقل په ذريعه انسان د ښه او بد تر مينځ تميز کوي او د همدې عقل په ذريعه انسان د دنيا او آخرت منافع او ښېګڼې ترلاسه کوي، لهذا د عقل زوال د منفعت مقصوده زوال دى. او د منفعت مقصوده پر زايلونکي ټوله ديت واجبيږي. نو ځکه د عقل پر زايلونکي به هم ټوله ديت واجب وي.

وكذا إذا ذهب إلخ: د دې حاصل دا دى چي که پر سر د وهلو په وجه د مضروب له قوت سامعه، قوت باصره، قوت شامه او قوت ذائقه څخه يو قوت زائل سي، نو هم پر ضارب ټوله ديت واجبيږي؛ ځکه له دوى څخه هر يو منفعت مقصوده دى. او که دا څلور سره قوتونه ختم او زايل سي، نو پر ضارب څلور ديتونه واجبيږي؛ ځکه له دوى څخه هر قوت جلا، جلا منفعت مقصوده لره متضمن دى. او تر ټولو څرګند دليل دا دى چي فاروق اعظم حضرت عمر ﷺ د يوه کس په هکله د څلورو ديتونو فيصله جاري کړې وه؛ ځکه يو سړي يې پر سر په ډبره وهلى وي چي د هغه په وجه د سړي عقل او د هغه د سمع، بصر او ذوق منافع زائل سوي وه. نو له دې څخه په واضحه توګه معلومه سوه چي دا ټوله جلا، جلا منفعتونه دي او له دوى څخه د هر منفعت فوتول او زايلول د ديت کامله مُوجِب دى. (احسن الهدايه بحواله بنايه)

## د ږيري او ورېښتانو د ديت بيان

قَالَ: وَفِي اللِّحْيَةِ إِذَا حُلِقَتْ فَلَمْ تَنْبُتِ الدِّيَةُ فرمايي: او په ږيره کي کله چي هغه وخرول سي او بيا را شنه نه سي ديت [واجب] دى لِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ مَنْفَعَةُ الْجَمَالِ ځکه په دې سره د جمال منفعت فوتيږي قَالَ: وَفِي شَعْرِ الرَّأْسِ الدِّيَةُ او د سر په ورېښتانو کي ديت [واجب] دى لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړى وَقَالَ مَالِكٌ وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ: تَجِبُ فِيهِمَا حُكُومَةُ عَدْلٍ امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دى: چي په دې دواړو [الحيه او شعر الرأس] کي

حکومة عدل واجبيږي لِأَنَّ ذٰلِكَ زِيَادَةٌ فِي الْآدَمِيِّ ځکه چې دا دواړه په انسان کې زائد [او اضافي] دي وَلِهٰذَا يُحْلَقُ شَعْرُ الرَّأْسِ كُلُّهُ وَاللِّحْيَةُ بَعْضُهَا فِي بَعْضِ الْبِلَادِ په همدې وجه په بعضې ښارونو کې د سر ټوله وربښتان او د ږيرې بعضې حصه خرول کيږي وَصَارَ كَشَعْرِ الصَّدْرِ وَالسَّاقِ او دا د سينې او پنډۍ د وربښتانو په شان شو وَلِهٰذَا يَجِبُ فِي شَعْرِ الْعَبْدِ نُقْصَانُ الْقِيمَةِ په همدې وجه د غلام په وربښتانو کې د قيمت نقصان [کمې] واجبيږي وَلَنَا: أَنَّ اللِّحْيَةَ فِي وَقْتِهَا جَمَالٌ او زموږ دليل دا دی: چې ږيره په خپل وخت کې جمال ده وَفِي حَلْقِهَا تَفْوِيتُهُ عَلَى الْكَمَالِ او د هغې په خرولو کې په کامله توګه د جمال فوتول ستَه فَتَجِبُ الدِّيَةُ نو ځکه ديت به واجبيږي كَمَا فِي الْأُذُنَيْنِ الشَّاخِصَتَيْنِ لکه په دواړو [دباندينې] غوږو کې کوم چې راوتلي [راپورته سوي] وي [چې د هغوی په پرېکولو سره هم ديت واجبيږي، ځکه چې په دې کې على الكمال جمال فوتيږي] وَكَذَا شَعْرُ الرَّأْسِ جَمَالٌ او همدارنګه د سر وربښتان جمال دي أَلَا تَرَىٰ أَنَّ مَنْ عَدِمَهُ خِلْقَةً آيا ته نه ګورې! چې کوم څوک په پيدايشي توګه د سر وربښتان نه لري يَتَكَلَّفُ فِي سَتْرِهِ هغه د سر په پټولو کې تکلف کوي بِخِلَافِ شَعْرِ الصَّدْرِ وَالسَّاقِ په خلاف د سينې او پنډۍ د وربښتانو لِأَنَّهُ لَا يَتَعَلَّقُ بِهِ جَمَالٌ ځکه چې د هغوی سره هيڅ جمال متعلق نه وي وَأَمَّا لِحْيَةُ الْعَبْدِ او کوم چې د غلام ږيره ده فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَجِبُ فِيهَا كَمَالُ الْقِيمَةِ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په هغې کې کامل قيمت واجبيږي وَالتَّخْرِيجُ عَلَى الظَّاهِرِ أَنَّ الْمَقْصُودَ بِالْعَبْدِ الْمَنْفَعَةُ بِالِاسْتِعْمَالِ دُونَ الْجَمَالِ او د ظاهر روايت مطابق تخريج [وجه] دا ده چې مقصود په غلام کې د استعمال [خدمت اخيستلو] منفعت وي، نه جمال بِخِلَافِ الْحُرِّ په خلاف د آزاد کس.

**اللغات:** ﴿جمال﴾ ښکلا، هغه صفت کوم چې په شي کې ملحوظ او نفس يې غوره ګڼي او د نفس د سرور باعث وي، ﴿الشاخصين﴾ تثنيه د شَاخِصٌ ده، د فتح له بابه د فاعل صيغه ده: هغه څه کوم چې له خپل ځايه بهر راوتلی وي، راپورته سوی، راښکاره.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د بل چا ږيره يا د سر وربښتان ور خروي او داسې يې وخروي چې بيا وربښتان راشنه نه سي، نو زموږ په نيز پر خرونکي کس باندې د نفس ټوله ديت

واجبیږي، یعني د دې هر یوه په خرولو سره پر هغه دیت واجبیږي چې که دواړه ور وخروي نو دوه جلا دیتونه پرې واجبیږي؛ ځکه بږیره او وربڼتان دواړه د انسان په حق کې د جمال او زینت باعث دي او د هغوی په خریلو سره د انسان ښکلا او ګلا ختمیږي، نو ځکه زموږ په نېز د دې هر یوه ور خرول د دیت مُوجب دي.

د دې په خلاف د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز د بږیري یا د سر د وربڼتانو په ور خرولو سره حکومة عدل واجبیږي. نه دیت؛ د هغه دلیل دا دی چې دیت د اجزاء مُقوّمه وو د یو جزء په زایلولو سره واجبیږي، او بږیره او د سر وربڼتان د انسان له اجزاء مُکمّله وو څخه دي یعني دوی د انسان په بدن کې د زوائدو او فُضلې حیثیت لري او په حکومة عدل سره د دوی تدارک او تلافي کېدلای سي، نو ځکه د دوی پر ختمونکي به صرف حکومة عدل واجب وي، دیت به پرې واجب نه وي.

ولهذا یحلق إلخ: پر دې خبره چې بږیره او د سر وربڼتان په بدن کې زائد او اضافي دي، د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله له طرفه دوه مثالونه پېش کړل سوي دي: ①... په بعضي ښارو کې خلک د سر ټوله وربڼتان خريي، همدارنګه ځیني ښارونه داسي دي چې خلک یې څه بږیره خريي او څه نه خريي لکه د سعودي خلک چې اکثره همداسي طرز اختیاروي. اوس ښکاره ده که د بږیري او وربڼتانو خریل د جمال باعث وای نو خلکو به بږیره او وربڼتان داسي له منځه نه وړلای، معلومه سوه چې دا شیان د انسان په جسم کې زائد دي، او څرنګه چې د سینې او پنډۍ وربڼتان په بدن کې زائد دي او د هغوی په ورخرولو سره هیڅ جمال نه فوتیږي، نو همداسي د بږیري او د سر د وربڼتاونو په ورخرلو سره هم په جمال کې کمي نه راځي، لهذا دا شیان به مُوجِب د ضمان نه وي، خو د دې حرکت د تدارک او تلافي لپاره به پر حَالِق (خرونکي) باندي حکومة عدل واجبول کیږي.

②... د دې حضراتو له طرفه بل مثال دا دی چې که یو څوک د غلام وربڼتان وخروي، نو پر هغه "نقصان قیمت" (د قیمت کمي) واجبیږي یعني د هغه په وجه چې د غلام قیمت څومره کم سوي وي د هغه تاوان پرې واجبیږي یا په بله وینا دا چې د محلوق او غیر محلوق غلام د قیمت فرق پرې واجبیږي (مثلاً که د غیر محلوق غلام قیمت ۱۰۰۰ درهمه وي او د محلوق غلام قیمت ۹۰۰ درهمه وي، نو پر هغه ۱۰۰ درهمه واجبیږي)، احناف هم د دې قائل دي او همدې ته حکومة عدل وایي. لهذا کله چې په غلام کې د احنافو په نېز حکومة عدل واجب دی، نو په آزاد کس کې هم همدا حکومة عدل واجبېدل پکار دي.

ولنا إلخ: په دې سلسله کې زموږ دلیل دا دی چې د بږیري په زمانه کې پر مخ بږیره کېدل جمال دي او د زینت او ښکلا باعث دي، او د هغه په خریلو سره د بږیري ټوله جمال ختمیږي. نو ځکه په هغه کې به ټوله دیت واجبیږي، د دې مثال دا دی لکه دواړه غوږونه چې بهر راوتلي دي نو که څه هم انسان په هغه

سره او بدل نه کوي بلکې دننه د غوږ د سوري او پردې په ذريعه اوربدل کوي. خو بيا هم د دې بهرني غوږونو په پرېکولو سره ټوله ديت واجبېږي؛ ځکه د غوږونو ټوله جمال ختميږي.

همدارنګه د سر وربښتان هم باعث د جمال دي او د سر زينت او ښکلا بلل کيږي. همدا وجه ده د کوم چا پر سر چې وربښتان نه وي (يا په بله وينا پک او نزله يې ختلې وي)، هغه د خپل سر پټولو کوښښ کوي.

بخلاف شعرالصدر الخ: پاتــه سوه هغه وربښتان کوم چې پر سينه او پنډۍ باندې وي. په هغوی سره هيڅ جمال مقصود نه وي، نو په دې وجه په هغوی کې ديت هم نه واجبېږي. لهذا امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله چې ږيره او د سر وربښتان پرهغوی قياسوي، دا قياس مع الفارق دی.

وأما لحية العبد الخ: او پاتــه سوه د غلام ږيره نو پر هغه د آزاد ږيره قياسول هم صحيح نه دي. ځکه په نوادر کې له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوی دی چې په دې صورت کې هم د غلام ټوله قيمت واجبېږي، نه حکومة عدل، لهذا کله چې په دې مسئله کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله اختلاف دی، نو دا هم د هغه په خلاف په قياس کې پېښول او دليل په نيول صحيح نه دي.

خو ظاهر روايت دا دی چې "نقصان قيمت" واجبېږي، نو په دې صورت کې به د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه جواب دا وي چې په آزاد کس کې جمال مقصود وي او په غلام کې د خدمت منفعت مقصود وي چې هغه د ږيرې په خرولو سره نه ختميږي بلکې ښکاره خبره ده چې تر هغه وروسته هم موجود پاتېږي، نو په دې وجه په غلام کې نقصان قيمت واجب دی او په آزاد کس کې ټوله ديت واجب دی. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د بريتونو، کوسه ږيرې او وروځو د ديت بيان

قَالَ: وَفِي الشَّارِبِ حُكُومَةُ عَدْلٍ فرمايي: او په بريت کې حکومة عدل [واجب] دی هُوَ الْأَصَحُّ همدا صحيح ده لِأَنَّهُ تَابِعٌ لِلِّحْيَةِ ځکه چې بريت د ږيرې تابع دی فَصَارَ كَبَعْضِ أَطْرَافِهَا نو بريت د ږيرې د بعضي حصې په څېر سو وَلِحْيَةُ الْكَوْسَجِ إِنْ كَانَ عَلَى ذَقَنِهِ شَعَرَاتٌ مَعْدُودَةٌ او د کوسه ږيره [د هغه حکم دا دی چې] که د هغه پر زنه څو وربښتان وي فَلَا شَيْءَ فِي حَلْقِهِ نو د هغه په خرولو کې هيڅ شی نسته لِأَنَّ وُجُودَهُ يَشِينُهُ وَلَا يَزِينُهُ ځکه د څو وربښتانو وجود هغه عيبداره کوي او ښايسته کوي يې نه وَإِنْ كَانَ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ او که تر هغه زيات وربښتان وي وَكَانَ عَلَى الْخَدِّ وَالذَّقَنِ جَمِيعًا او پر

باړخو او زنه دواړو باندي وي لِكِنَّهُ غَيْرُ مُتَّصِلٍ لېکن هغوی سره متصل [الکېدلي] نه وي فَفِيْهِ حُكُوْمَةُ عَدْلٍ نو په هغه کي حکومة عدل [واجب] دی لِأَنَّ فِيْهِ بَعْضَ الْجَمَالِ ځکه په هغه کي څه جمال سته وَإِنْ كَانَ مُتَّصِلًا او که سره متصل وي فَفِيْهِ كَمَالُ الدِّيَةِ نو په هغه کي کامل ديت [واجب]دی لِأَنَّهُ لَيْسَ بِكَوْسَجٍ ځکه چي دا کوسه نه دی وَفِيْهِ مَعْنَى الْجَمَالِ او په هغه کي د جمال معنیٰ سته وَهٰذَا كُلُّهُ إِذَا فَسَدَ الْمَنْبَتُ او دا ټوله خبره هغه وخت ده کله چي د وربښتانو د راشنه کېدلو ځای خراب سي فَإِنْ نَبَتَتْ لېکن که ږيره [او وربښتان] بيا راشنه سي حَتَّى اسْتَوَىٰ كَمَا كَانَ تر دې چي برابره سي لکه [مخکي] چي وه لَا يَجِبُ شَيْءٌ نو هيڅ شی نه واجبيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ أَثَرُ الْجِنَايَةِ ځکه د جنايت اثر پاته نه سو وَيُؤَدَّبُ عَلَى ارْتِكَابِهِ مَا لَا يَحِلُّ خو هغه [حالق] ته به ادب [او تعزير] ور کول کيږي د داسي کار د کولو په وجه کوم چي روا نه دی وَإِنْ نَبَتَتْ بَيْضَاءَ او که سپينه ږيره راشنه سي فَعَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ أَنَّهُ لَا يَجِبُ شَيْءٌ فِي الْحُرِّ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په آزاد کس کي هيڅ شی نه واجبيږي لِأَنَّهُ يَزِيْدُهُ جَمَالًا ځکه دا د هغه په جمال کي اضافه راولي وَفِي الْعَبْدِ تَجِبُ حُكُوْمَةُ عَدْلٍ او په غلام کي حکومة عدل واجبيږي لِأَنَّهُ يَنْقُصُ قِيْمَتُهُ ځکه دا د هغه قيمت کموي وَعِنْدَهُمَا تَجِبُ حُكُوْمَةُ عَدْلٍ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز [په دواړو کي] حکومة عدل واجبيږي لِأَنَّهُ فِي غَيْرِ أَوَانِهِ يَشِيْنُهُ وَلَا يَزِيْنُهُ ځکه بې وخته سپينه ږيره هغه عيبداره کوي او نه يې ښايسته کوي وَيَسْتَوِي الْعَمْدُ وَالْخَطَأُ او عمد او خطاء دواړو سره برابر دي [يعني څرنګه چي د سر او ږيري د عمداً ورخرولو په صورت کي ديت واجبيږي، نو همداسي د خطاءً ورخرولو په صورت کي هم ديت واجبيږي. او د عمداً په صورت کي قصاص نه واجبيږي چي قصاصاً د هغه سر يا ږيره هم وخرول سي] عَلَى هٰذَا الْجُمْهُوْرُ جمهور پر همدغه تحقيق دي وَفِي الْحَاجِبَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو وروځو کي ديت [واجب] دی وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ الدِّيَةِ او په يوه وروځه کي نيم ديت [واجب] دی وَعِنْدَ مَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ تَجِبُ حُكُوْمَةُ عَدْلٍ او د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حکومة عدل واجبيږي وَقَدْ مَرَّ الْكَلَامُ فِيْهِ فِي اللِّحْيَةِ او په دې هکله خبره د ږيري په بيان کي تېره سوه.

**اللغات:** ﴿الشارب﴾ بریت. جمع: شَوَارِب. ﴿حکومة عدل﴾ مخکې د دې وضاحت وسو او د فصل فی الشجاج په آخري عبارت کې په تفصيل سره د حکومة عدل تفسير او مطلب بيان سوی دی، چې هغه به ان شاء الله تعالیٰ څه وروسته راسي. ﴿کوسج﴾ کوسه. څوکړ. نور وضاحت به يې په تشريح کې وسي. ﴿يشينه﴾ د ضرب مضارع ده: عيبداره کول. بدرنګه کول. خرابول. ﴿منبت﴾ د نصر له بابه د ظرف صيغه ده: د راشنه کېدلو ځای. د وربښتانو د راپورته کېدلو ځای او سوري. ﴿يؤدّب﴾ د تفعيل له بابه د مضارع مجهولې صيغه ده. أَدَّبَ يُؤَدِّبُ تَأْدِيْبًا: ادب ښوول. او د دې باب يو معنیٰ ده: سزا ورکول. لکه څرنګه چې صاحب د مصباح دا دواړي معناوي داسې بيان کړي دي: أَدَّبْتهُ أَدَبًا: عَلَّمْته رِيَاضَةَ النَّفْسِ وَمَحَاسِنَ الأَخْلَاقِ. وَمِنْهُ قِيْلَ أَدَّبْتهُ تَأْدِيبًا إِذَا عَاقَبْته عَلَى إِسَاءَتِهِ لِأَنَّهُ سَبَبٌ يَدْعُو إِلَى حَقِيقَةِ الأَدَبِ. ﴿الحاجبين﴾ تثنيه د حَاجِبٌ ده: وروځه (د سترګو د پاسه وېښتان).

**تشريح:** په دې عبارت کې څلور مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که څوک د بل بریتونه وخروي، نو د اصح قول مطابق په دې صورت کې حکومة عدل واجب دی؛ ځکه بریت د ږیري تابع دی، لهذا څرنګه چې د ږیري د يو طرف او حصې په خرولو سره حکومة عدل واجبيږي، نو همداسې به د بریت په خرولو سره هم حکومة عدل واجبيږي او همدا معتمد او مستند قول دی. په "هو الأصح" سره امام قدوري رَحِمَهُ الله د بعضې مشايخو له هغه قول څخه احتراز کړی دی کوم چې بریتونه عليحده جزء او جلا عضو ګڼي او په هغه کې پوره ديت واجبوي. (بنايه ج: ۱۲، ص: ۲۲۴)

(۲)... دويمه مسئله د کُوسه د ږیري سره متعلق ده. کوسه يا څوکړ هغه کس ته وايي چې د ږیري زمانه يې پوره سوې وي خو بيا يې هم ږيره پوره نه وي راغلې، بلکې رنګړې او سپکه ږيره يې وي. دلته د هغه درې صورتونه ذکر سوي دي:

①... که د کوسه پر زنه څو وربښتان وي نو څرنګه چې هغوی د جمال او ښکلا باعث نه دي بلکې لا بد ښکاري، لهذا که څوک دا ور وخروي، نو پر هغه هيڅ شی نه واجبيږي.

②... که د کوسه د ږیري وربښتان څه زيات وي يعني پر زنه يې هم وي او پر باړخوګانو يې هم لېکن سره متصل نه وي، نو په دې صورت کې حکومة عدل واجبيږي؛ ځکه په دې کې څه جمال وو چې په خرولو سره هغه هم فوت سو.

(۳)... که ورېښتان يې څه زيات وي او سره متصل (لګېدلي) هم وي. نو د هغوی په خرولو سره ټوله ديت واجبيږي؛ ځکه اوس هغه کوسه (څوکړ) نه دی او په دې ږيره کې کامل جمال وو کوم چې حالق ورختم کړی. نو ځکه اوس پر هغه ټوله ديت واجب دی.

**وهذا كله إلخ:** فرمايي د برېت، ږيرې وغيره په مذکوره ټولو صورتونو کې حکومة عدل او ديت هغه وخت واجبيږي کله چې يې ورېښتان په داسې توګه ورخرولي وي چې بيا يې د راشنه کېدلو امکان نه وي او بيا راشنه نه سي بلکې ګردسره د ورېښتانو مَنبت خراب سي. او که ورېښتان بېرته راشنه او راپورته سي. نو هيڅ شی نه واجبيږي؛ ځکه چې د جنايت اثر باقي پاته نه سو.

خو د دې غلط فعل او ناوړه حرکت په وجه به هغه ته تعزير ورکول کيږي.

او که تر خرولو وروسته سپينه ږيره راشنه سي. نو که هغه کس آزاد وي. نو هيڅ شی نه واجبيږي؛ ځکه سپينه ږيره د آزاد کس په جمال کې اضافه راولي، او که غلام وي، نو حکومة عدل واجبيږي؛ ځکه سپينه ږيره د غلام په قيمت کې کمي راولي او ارزښت يې کميږي. دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دواړو صورتونو کې حکومة عدل واجبيږي؛ ځکه د ږيرې سپينېدل هغه وخت د جمال او زينت باعث وي کله چې دا په خپل وخت کې وي. او بې وخته بد او د بدرنګۍ باعث وي.

بيا په دې تفصيل کې عمداً يا خطاءً خرول دواړه سره برابر دي او د دواړو حکم يو دی. همدا د جمهورو فقهاؤ قول دی.

**وفي الحاجبين إلخ:** (۴)... د عبارت څلورمه او آخري مسئله دا ده چې که څوک د بل چا دواړه وروځي وخروي نو ټوله ديت واجبيږي. او که يوه وروځه وخروي نو نيم ديت واجبيږي، په دې شرط چې بيا د وروځو ورېښتان راشنه نه سي. دا حکم زموږ په نېز دی. لېکن د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کې هم حکومة عدل واجبيږي؛ ځکه دوی حضرات ورېښتان يو زائد شی ګڼي. نور بحث او دليلونه د ږيرې په بيان کې تېر سوه. (اشرف الهدايه)

## د سترګې، شونډې، لاس او پښې وغيرها د ديت بيان

قَالَ: وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ فرمايي: او په دواړو سترګو کې ديت دی وَفِي الْيَدَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو لاسو کې ديت دی وَفِي الرِّجْلَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو پښو کې ديت دی وَفِي الشَّفَتَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو شونډو کې ديت دی وَفِي الْأُذُنَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو غوږو کې ديت دی وَفِي الْأُنْثَيَيْنِ الدِّيَةُ او په دواړو خصيو [خوټو] کې ديت دی كَذَا رُوِيَ فِي حَدِيثِ[1] سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ السَّلَامُ له

---

[1] تخريج: أخرجه عبد الرزاق في المصنف ج۹ ص [illegible]

نبي ﷺ څخه د سعيد بن مسيب رَحِمَهُ الله په حديث کي همداسي نقل سوي دي قَالَ: وَفِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ نِصْفُ الدِّيَةِ فرمايي: او له دې شيانو [او اندامو] څخه په هر يوه کي نيم ديت دى [مثلاً که يوه پښه ورپرېکړي نو نيم ديت پرې واجب دى] وَفِيمَا كَتَبَهُ النَّبِيُّ ﷺ لِعَمْرِو بْنِ حَزْمٍ او کوم خط چي نبي کريم ﷺ د عمرو بن حزم رضي الله عنه لپاره ليکلى وو په هغه کي دي «وَفِي الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ الدِّيَةِ» او په دواړو سترګو کي ديت دى او په يوه سترګه کي نيم ديت دى وَلِأَنَّ فِي تَفْوِيتِ الِاثْنَيْنِ مِنْ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ تَفْوِيتَ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ أَوْ كَمَالِ الْجَمَالِ او ځکه چي له دې شيانو څخه د دوو [مثلاً د دواړو پښو] په فوتولو کي د جنس منفعت يا کامل جمال فوتول سته فَيَجِبُ كُلُّ الدِّيَةِ نو ځکه ټوله ديت به واجبيږي وَفِي تَفْوِيتِ إِحْدَاهُمَا تَفْوِيتُ النِّصْفِ او له دوى څخه د يوه په فوتولو کي د نصف [نيم منفعت يا نيم جمال] فوتول سته فَيَجِبُ نِصْفُ الدِّيَةِ نو ځکه نيم ديت به واجبيږي.

**اللغات:** «المنفعة» نفع او فايده، دفاعي طاقت. «جِنْسُ الْمَنْفَعَةِ» د نفع او فايدې جنس (د يو جزء او اندام هغه قوت چي په هغه سره انسان يو نفع اخلي او يو کار په اداء کوي. مثلاً د سترګو ديد چي په دې سره انسان د ليدلو نفع اخلي او د ليدني. کتني کار په کوي او مثلاً د لاس د نيولو قوت او د پښې د تګ قوت چي په هغې سره تګ راتګ کوي)، «أُنْثَيَيْنِ» او أُنْثَيَان: خصيتين. خوټې.

**تشريح:** عبارت څرګند او آسانه دى چي مطلب يې له ترجمې څخه هم ښکاره دى، خلاصه د کلام دا چي چيري د دوو اندامونو مثلاً د دواړو لاسونو يا دواړو پښو په پرېکولو سره يو پوره ديت واجبيږي، هلته د يوه اندام په پرېکولو سره نيم ديت واجبيږي: د سعيد بن مسيب رَحِمَهُ الله په روايت او د حضرت عمرو بن حزم رضي الله عنه په خط کي همداسي نقل سوي دي. او أصول دا دى چي کله د جنس منفعت يا د کمال جمال په فوت کولو او ختمولو سره ټوله ديت واجبيږي، نو د هغوى د نصف په زايلولو سره نصف ديت واجبيږي. (اشرف الهدايه)

## د ښځې د تيو (تيانو) د ديت بيان

قَالَ: وَفِي ثَدْيَيِ الْمَرْأَةِ الدِّيَةُ فرمايي: او د ښځي په دواړو تيو کي ديت [واجب] دى لِمَا فِيهِ مِنْ تَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ ځکه په دې کي د جنس منفعت فوتول سته وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ دِيَةِ الْمَرْأَةِ او په يوه تي کي د ښځي نيم ديت [واجب] دى لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړى

بِخِلَافِ ثَدْيَي الرَّجُلِ په خلاف د سړي د دواړو تيو حَيْثُ تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ چې [په هغه کې] حکومة عدل واجبيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ وَالْجَمَالِ ځکه په هغه کې د جنس منفعت او جمال فوتول نسته وَفِي حَلَمَتَيِ الْمَرْأَةِ الدِّيَةُ كَامِلَةً او د ښځي د تيو په سرونو کي پوره ديت [واجب] دی لِفَوَاتِ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْإِرْضَاعِ وَإِمْسَاكِ اللَّبَنِ ځکه [بچي ته] د شيدو ورکولو [تي ورکولو] او د شيدو ټينګولو منفعت فوت سو وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُهَا او د يوه تي په سر کي نيم ديت [واجب] دی لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی [چي په دې کي د نصف جنس منفعت فوتول سته].

**اللغات:** ﴿ثَدي﴾ په اصل کي ثَدْيَيْنِ وو، نون د اضافت په وجه ساقط سو: دواړه تي (تيان)، ﴿حَلَمَتَيِ﴾ (بفتح اللام) تثنيه د حَلَمَةٌ ده: د تي سر، کوم چي د غټي دانې په څېر وي، ﴿إمساک﴾ د افعال د باب مصدر دی: نيول، راګرځول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که د ښځي دواړه تيان پرېکړل سي. نو د ښځي ټوله ديت واجبيږي؛ ځکه جنس منفعت فوت سو. او که يو تی يې پرېکړل سي. نو د ښځي نيم ديت واجبيږي: د مخکيني دليل په وجه.

**بخلاف إلخ:** د دې په خلاف که د سړي دواړه تيان پرېکړل سي. نو په دې صورت کي صرف حکومة عدل واجبيږي: ځکه چي د سړي نه له تيو څخه شيدې راوځي چي جنس منفعت يې فوت سي او نه تيان د سړي لپاره د جمال باعث دي. خو څرنګه چي د دوی په پرېکولو سره د انسان يو جزء ضايع کيږي. نو ځکه د هغه د تلافۍ لپاره حکومة عدل واجب دی.

**وفي حلمتي:** فرمايي که د ښځي د تيانو سرونه پرېکړل سي (چي د هغه په ذريعه شيدې راوځي) نو په دې صورت کي د ښځي ټوله ديت واجبيږي، او که د يوه تي سر يې پرېکړل سي نو نيم ديت واجبيږي؛ ځکه د تي له سر څخه بغير نه بچي ته شيدو کول کېدلای سي او نه شيدې په تيو کي درېدلای سي بلکي دا دواړه منفعتونه له منځه ځي. نو ځکه په دې صورت کي پر قاطع ديت واجب دی.

## د سترګو د بانوګانو د ديت بيان

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَفِي أَشْفَارِ الْعَيْنَيْنِ الدِّيَةُ فرمايي: او د سترګو په څېرمو کي پوره ديت دی وَفِي إِحْدَاهَا رُبُعُ الدِّيَةِ او د دوی په يوه څېرمه کي د ديت څلورمه حصه ده قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: يَحْتَمِلُ أَنَّ مُرَادَهُ الْأَهْدَابُ مَجَازًا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: احتمال سته چي [له أشفار څخه] د

مصنف رَحِمَهُ الله مراد باڼوګان وي مجازاً كَمَا ذَكَرَهُ مُحَمَّدٌ فِي الْأَصْلِ لكه څرنګه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط كي ذكر كړي دي لِلْمُجَاوِرَةِ د مجاورة [او اتصال] په وجه كَالرَّاوِيَةِ لِلْقِرْبَةِ لكه رَاوِيَه د ژي [مشک] لپاره وَهِيَ حَقِيقَةٌ فِي الْبَعِيرِ حال دا چي رَاوِيَه په اوښ كي حقيقت ده [يعني لفظ د رَاوِيَه په حقيقت كي د اوښ لپاره مستعمل دی. خو د ژي او اوښ د مجاورت او اتصال په وجه د ژي لپاره هم استعمالول كيږي] وَهٰذَا لِأَنَّهُ يَفُوتُ بِهِ الْجَمَالُ عَلَى الْكَمَالِ او دا [حکم] ځکه دی چي په دې سره په كامله توګه جمال فوتيږي وَجِنْسُ الْمَنْفَعَةِ او جنس منفعت [هم] فوتيږي وَهِيَ مَنْفَعَةُ دَفْعِ الْأَذٰى وَالْقَذٰى عَنِ الْعَيْنِ او هغه له ستركي څخه د ضرر او د ګرز [او خاشاكو] د ليري كولو منفعت دی إِذْ هُوَ يَنْدَفِعُ بِالْهُدْبِ ځکه چي هغه په باڼه سره ليري كيږي وَإِذَا كَانَ الْوَاجِبُ فِي الْكُلِّ كُلَّ الدِّيَةِ او كله چي په ټولو باڼوګانو كي ټوله ديت واجب دی وَهِيَ أَرْبَعَةٌ او باڼوګان څلور دي كَانَ فِي أَحَدِهَا رُبُعُ الدِّيَةِ نو په يوه باڼه كي به د ديت څلورمه حصه واجب وي وَفِي ثَلَاثَةٍ مِنْهَا ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهَا او په درېو باڼو كي به د ديت درې څلورمي واجب وي وَيَحْتَمِلُ أَنْ يَكُونَ مُرَادُهُ مَنْبَتَ الشَّعْرِ او احتمال سته چي [له أشفار څخه] د مصنف رَحِمَهُ الله مراد د باڼوګانو د راشنه كېدلو ځاى [يعني څېرمي] وي وَالْحُكْمُ فِيهِ هٰكَذَا او په هغه كي هم دغه حكم دی وَلَوْ قَطَعَ الْجُفُونَ بِأَهْدَابِهَا او كه باڼوګان د پردو سره پرېكړي فَفِيهِ دِيَةٌ وَاحِدَةٌ نو په دې كي يو ديت [واجب] دی لِأَنَّ الْكُلَّ كَشَيْءٍ وَاحِدٍ ځکه چي ټوله د يوه شي په څېر دي وَصَارَ كَالْمَارِنِ مَعَ الْقَصَبَةِ او دا داسي سو لكه د پزي نرمى د پزي د هډوكي سره [پرېكول].

**اللغات**: ﴿أشفار﴾ جمع د شُفْر ده. په اصل كي د ستركو څېرمي ته وايي، او أهْدَاب باڼوګانو ته وايي خو يو د بل پر ځاى هم استعماليږي. نور وضاحت به يې په تشريح كي وسي. لكه څرنګه چي صاحب د مصباح رَحِمَهُ الله ويلي دي: شُفْرُ الْعَيْنِ حَرْفُ الْجَفْنِ الَّذِي يَنْبُتُ عَلَيْهِ الْهُدْبُ، وَالشَّعْرُ الْهُدْبُ وَالْجَمْعُ أَشْفَارٌ مِثْلُ قُفْلٍ وَأَقْفَالٍ (يعني شُفْر د ستركي د پردې آخري طرف ته وايي چي پر هغه باڼه راشنه كيږي چي په پښتو كي ورته څېرمه وايي. او باڼه ته هُدْب وايي). ﴿مجاورة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: متصل كېدل. ور سره لګېدل. جو ختېدل. ﴿هُدْب﴾ باڼه (د يوه طرف يعني دلور يا لاندي طرف باڼوګان). جمع: أهْدَاب. ﴿القذى﴾ ګرز (باريكه خاوره). خيره او ګندګي.

﴿الجفون﴾ جمع د جَفنٌ ده: د ستر ګو پرده. د لاندي او لوړ طرف. لکه څرنګه چي د صاحب د معجم الوسيط غفر نه نه وېلي دي: اَلجَفنُ غِطَاءُ العَينِ مِن اَعلَاهَا وَ اَسفَلِهَا، وَالجَمعُ جُفُونٌ وَ قَد يُجمَعُ عَلىٰ أَجفَانٍ.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي أَشفَار جمع د شُفـر ده چي د هغه اصل معنىٰ ده: څيرمه (زېړمه) يعني د سترګي د پردې هغه ځای چي بانوګان پرې راشنه وي. او أَهدَاب جمع د هُدبٌ ده چي د هغه معنىٰ ده: بانوګان. لېکن څرنګه چي د دې دواړو (څيرمي او بانې) تر مينځ د مجاورت او اتصال تعلق دی کوم چي د مجازِ مرسل علاقه ده. نو ځکه يو د بل په معنىٰ سره استعمالول کيږي. لکه څرنګه چي رَاوِيَة په اصل کي هغه اوښ ته وايي چي د اوبو ژی (مشک) پرې راوړل کيږي. لېکن مجازاً رَاوِيَة د اوبو د ژي لپاره هم استعمالول کيږي: ځکه چي د دې دواړو (اوښي او ژي) تر مينځ د مجاورت تعلق دی.

لهذا د قدوري په متن کي د "أَشفَار" د لفظ مراد بانوګان هم کېدلای سي او څيرمي هم. لنډه دا چي حکم د دواړو يو دی. بانوګان مجموعتاً څلور وي او د هغوی څيرمي هم څلور وي. نو که څوک د يو چا ټوله بانوګان وکاږي نو پوره ديت واجبيږي. او که د يوې سترګي د لوړ يا لاندي طرف يوه بانه يې ټوله وکاږي، نو د پوره ديت څلورمه حصه واجبيږي: ځکه د يوې بانې په کاږلو او پرېکولو سره د منفعت څلورمه حصه فوتيږي. وقِس علىٰ هٰذا.

وهذا لأنه إلخ: يعني د بانوګانو د کاږلو او پرېکولو په وجه ټوله ديت ځکه واجبيږي چي په دې سره جنس منفعت هم فوت سو او جمال هم فوت سو. د بانوګانو منفعت ښکاره دی چي د سترګو د حفاظت ذريعه ده چي د همدوی په وجه سترګه له ګنده او مُضرو شيانو څخه ساتل کيږي. مثلاً ګرز او دُوړه، خاشې او داسي نور چي د بانو په وجه هغوی سترګي ته نه سي رسېدلای.

ولو قطع الجفون إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د بانوګانو سره د سترګو پردې هم پرې کړل سي. نو که څه هم دلته قاطع دوه شيان پرې کړې دي خو پر هغه يو ديت واجبيږي: ځکه بانوګان او د هغوی څيرمي او پردې ټوله د يوه شي او يوه اندام په څېر دي او د يوه اندام په فوت کولو سره دوه ديته نه واجبيږي. لکه څرنګه چي د پزي نرمې او د پزي هډوکی که دواړه يو ځای پرې کړل سي، نو هم يو ديت واجبيږي که څه هم دا دوه شيان دي (لکه مخکي چي ذکر سوه). نو همداسي به په مذکوره صورت کي هم يو ديت واجبيږي. (اشرف الهدايه. احسن الهدايه)

## د ګوتو د دیت بیان

قَالَ وَفِي كُلِّ إِصْبَعٍ مِنْ أَصَابِعِ الْيَدَيْنِ وَالرِّجْلَيْنِ عُشْرُ الدِّيَةِ فرمايي: او په هره ګوته کي د دوارو لاسونو او دوارو پښو له ګوتو څخه د دیت لسمه حصه [واجب] ده [کوم چي لس اوښان کیږي] لِقَوْلِهِ الطَّيِّلا: [1] «فِي كُلِّ إِصْبَعٍ عَشْرٌ مِنَ الْإِبِلِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: په هره ګوته کي لس اوښان دي وَلِأَنَّ فِي قَطْعِ الْكُلِّ تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ او ځکه چي د ټولو ګوتو په پرېکولو کي د جنس منفعت فوتول سته وَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ او په هغه کي پوره دیت دی [یعني په کُل ګوتو (یا په تفویت د جنس منفعت) کي کامل دیت واجب دی] وَهِيَ عَشْرٌ او ګوتي لس دي فَتَنْقَسِمُ الدِّيَةُ عَلَيْهَا نو دیت به پر ګوتو تقسیمیږي.

**اللغات:** ﴿إِصْبَع﴾ او أُصْبُع: ګوته، جمع أَصَابِع. ﴿تفويت﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فوتول. ضايع کول. ﴿تنقسم﴾ د انفعال د باب مضارع ده: منقسم کېدل. تقسيمېدل.

**تشريح:** څرنګه چي په یوه لاس او یوه پښه کي پنځه ګوتي دي او په دوارو کي لس ګوتي دي. او په دوارو لاسو، یا د هغوی په لسو ګوتو کي ټوله دیت واجبیږي، او هره ګوته د ټولو ګوتو عُشر یعني لسمه حصه ده، نو ځکه په هره ګوته کي به د ټوله دیت لسمه حصه (لس اوښان) واجبیږي. نور عبارت واضح دی.

## ګوتي ټوله سره برابري دي او د ګوتي د بندونو دیت

قَالَ: وَالْأَصَابِعُ كُلُّهَا سَوَاءٌ فرمايي: او ګوتي ټولي سره برابري دي لِإِطْلَاقِ الْحَدِيثِ د حدیث د مطلقوالي په وجه وَلِأَنَّهَا سَوَاءٌ فِي أَصْلِ الْمَنْفَعَةِ او ځکه چي په اصل منفعت کي ټولي ګوتي سره برابري دي فَلَا تُعْتَبَرُ الزِّيَادَةُ فِيهِ نو ځکه په هغه کي به زیاتوب معتبر نه وي كَالْيَمِينِ مَعَ الشِّمَالِ لکه راسته لاس د چپه لاس سره وَكَذَا أَصَابِعُ الرِّجْلَيْنِ او همدارنګه د دوارو پښو ګوتي لِأَنَّهُ يَفُوتُ بِقَطْعِ كُلِّهَا مَنْفَعَةَ الْمَشْيِ ځکه د هغوی ټولو په پرېکولو سره د تګ منفعت فوتیږي فَتَجِبُ الدِّيَةُ كَامِلَةٌ نو ځکه پوره دیت به واجبیږي ثُمَّ فِيهِمَا عَشْرُ أَصَابِعَ بیا په دې دوارو [لاسونو او پښو] کي لس ګوتي وي فَتَنْقَسِمُ الدِّيَةُ عَلَيْهَا أَعْشَارًا نو ځکه دیت به پر لسو ګوتو په لسو حصو سره

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الديات، باب ديات الأعضاء، حديث رقم: ۴۵۵۶. والنسائي في كتاب القسامة، ... حديث رقم: ۴۵۰۳.

تقسيميږي قَالَ: وَفِيْ كُلِّ إِصْبَعٍ فِيْهَا ثَلَاثَةُ مَفَاصِلَ فرمايي: او په هر هغه ګوته کي چي درې بندونه پکښې وي فَفِيْ أَحَدِهَا ثُلُثُ دِيَةِ الْإِصْبَعِ نو د هغې په يوه بند کي د ګوتي د ديت دريمه حصه [واجب] ده وَمَا فِيْهَا مِفْصَلَانِ او په کومه ګوته کي چي دوه بندونه وي فَفِيْ أَحَدِهِمَا نِصْفُ دِيَةِ الْإِصْبَعِ نو د هغې په يوه بند کي د ګوتي نيم ديت واجب دی وَهُوَ نَظِيْرُ اِنْقِسَامِ دِيَةِ الْيَدِ عَلَى الْأَصَابِعِ او دا پر ګوتو د لاس د ديت تقسيمېدلو نظير [او مثال] دی [کوم چي څه مخکي ذکر سو].

**اللغات**: ﴿اطلاق﴾ د افعال د باب مصدر دی: مطلق کېدل، مطلقوالی. ﴿أعشارًا﴾ جمع د عُشْرٌ. ده: په لسو حصو سره، په لسمو حصو سره. ﴿مفاصل﴾ جمع د مِفْصَلٌ ده: بند، د دوو هډوکو د يو ځای کېدلو ځای. ﴿نظير﴾ مثال، مشابه، جمع: نَظَائِر.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي په مخکيني حکم کي ټولي ګوتي سره برابري دي، د غټې او کوچنۍ ګوتي ترمينځ هيڅ فرق نسته؛ ځکه په مذکوره حديث کي مطلق د إصبع لفظ ذکر سوی دی چي "في كل إصبع عشر من الإبل"، لهذا د حديث د مطلق والي په وجه به دا حکم هري ګوتي لره شامل وي او په هره ګوته کي به د ټوله ديت عُشر يعني لسمه حصه (لس اوښان) واجب وي. په دې هکله عقلي دليل دا دی چي د نيولو په منفعت کي ټولي ګوتي سره برابري دي، څرنګه چي په راسته او چپه لاس کي فرق نسته چي دواړه نيول کولای سي، همداسي د دواړو لاسو په ګوتو کي هم فرق نسته، لهذا د ديت په حکم کي به ټولي سره برابري وي.

وكذا أصابع الرجلين إلخ: يعني کوم حکم چي د لاسو د ګوتو دی، هاغه حکم د پښو د ګوتو هم دی، لهذا که څوک د يو چا د پښو ټولي ګوتي پرېکړي، څرنګه چي په دې سره د تللو او ګرځېدلو منفعت فوت سو، نو ځکه ټوله ديت واجبيږي، او که يوه ګوته ورپرېکړي نو د ديت لسمه حصه (لس اوښان) واجبيږي، لکه څرنګه چي د لاس په ګوتو کي همدا حکم دی.

وفي كل إصبع إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه د لاس ديت پر ګوتو تقسيميږي، همداسي به د ګوتيَ ديت د هغې پر بندونو تقسيميږي، مثلاً د يوې ګوتي ديت د ټوله ديت عُشر (لسمه حصه) ده. نو په کومه ګوته کي چي درې بندونه وي د هغې د يوه بند ديت د ګوتي د ديت ثلث (دريمه حصه) ده. لهذا که د هغې يو بند پرېکړل سي، نو د ګوتي د ديت يو ثلث (دريمه حصه) به واجبيږي. او په کومه ګوته کي چي دوه بنده وي چي هغه بټه ګوته ده، د هغې د يوه بند ديت د ګوتي د ديت نصف (نيمه

حصه) يعني د ګوتي نيم ديت دی، لهذا که د هغې يو بنديږ پرېکړل سي نو د ګوتي نيم ديت به واجبيږي (کوم چې پنځه اوښان کيږي).

## د غاښونو او داړو ديت

قَالَ: وَفِي كُلِّ سِنٍّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ فرمايي: او په هر غاښ کي پنځه اوښان [واجب] دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] فِي حَدِيثِ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ رضي الله عنه ځکه د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه په حديث کي نبي ﷺ فرمايلي دي «وَفِي كُلِّ سِنٍّ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ» او په هر غاښ کي پنځه اوښان دي وَالْأَسْنَانُ وَالْأَضْرَاسُ كُلُّهَا سَوَاءٌ او غاښونه او اضراس ټوله سره برابر دي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د دې حديث د مطلقوالي په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلِمَا رُوِيَ فِي بَعْضِ الرِّوَايَاتِ [2]: وَالْأَسْنَانُ كُلُّهَا سَوَاءٌ او ځکهپه بعضي رواياتو کي نقل سوي دي: چي ټوله غاښونه سره برابر دي وَلِأَنَّ كُلَّهَا فِي أَصْلِ الْمَنْفَعَةِ سَوَاءٌ او ځکه چي په اصلِ منفعت کي ټوله غاښونه سره برابر دي فَلَا يُعْتَبَرُ التَّفَاضُلُ نو ځکه [په غاښو کي] به د تفاضل اعتبار نه کيږي [لکه ځيني حضرات چي يې کوي چي طواحن پر ضواحکو افضل ګڼي ځکه د طواحنو منفعت زيات دی. داسي به نه کيږي. لأن كلها في أصل المنفعة سواء] كَالْأَيْدِي وَالْأَصَابِعِ لکه لاسونه او ګوتي [چي په هغوی کي هم تفاضل معتبر نه دی] وَهٰذَا إِذَا كَانَ خَطَأً او دا [حکم] هغه وخت دی کله چي د غاښ کښل [قلع] خطاءً وي فَإِنْ كَانَ عَمْدًا لېکن که عمداً وي فَفِيهِ الْقِصَاصُ نو په هغه کي قصاص [واجب] دی وَقَدْ مَرَّ فِي الْجِنَايَاتِ او دا [بحث] په كتابُ الجنايات کي تېر سوی دی.

**اللغات:** ﴿تفاضل﴾ د تفاعل مصدر دی: يو پر بل افضل کېدل، يو له بل څخه زيات‌ېدل، کمي بيشي.

﴿أضراس﴾ جمع د ضَرْسٌ ده: د زامي غاښونه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د هر غاښ ديت پنځه اوښان دي، لهذا څوک چي د چا هر څو غاښونه مات کړي (خطاءً)، نو پر هغه د هر غاښ په بدله کي پنځه اوښان واجبيږي؛ ځکه له حضرت ابو موسیٰ اشعري رضي الله عنه چي کوم حديث نقل سوی دی په هغه کي بعينهٖ همدغه الفاظ موجود دي "وفي

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الديات، باب دية الأسنان، حديث رقم: ۲۶۵۰. (احسن الهدايه)

[2] تخريج: أبو داؤد في كتاب الديات، باب:۱۸، حديث رقم: ۴۵۶۰. (احسن الهدايه)

كل سِنٍ خمسٌ من الإبل" او څرنګه چې لفظ د "سِنٍ" اسم جنس دی، نو ځکه هغه هر ډول غاښو لره شامل دی. برابره ده هغه ثنایا وي، رباعي وي. اضراس وي او که نواجذ یا طواحن وي د ټولو حکم یو دی چې د هر غاښ په دیت کې پنځه اوښان دي.

په دې سلسله کې دلیل دا دی چې د حضرت اشعري رضي الله عنه حدیث مطلق دی او په هغه کې د غاښونو هیڅ تفصیل نسته، دویم دلیل دا دی چې په بعضي روایاتو کې د "والأسنان کلها سواء" مضمون هم وارد سوی دی، لکه څرنګه چې حضرت عکرمه د ابن عباس رضی الله عنهما دا حدیث نقل کړی دی: "الثنیة والضرس سواء والأسنان کلها سواء" یعني د ثنایا، اضراسو او ټولو غاښونو حکم سره برابر دی.

او په دې هکله عقلي دلیل دا دی چې د خوړلو، خوراک ژوولو او پرېکولو په منفعت کې ټوله غاښونه سره برابر دي، لهذا څرنګه چې لاسونه او ګوتې په منفعت کې سره مساوي دي او په هغوی کې تفاضل معتبر نه دی، نو همداسې به په غاښونو کې هم تفاضل معتبر نه وي.

وهذا إذا كان خطأً الخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د دیت واجبېدلو په هکله زموږ بیان سوی تفصیل په هغه صورت کې دی کله چې د غاښ ماتول او کنډل وغیره خطاءً واقع سوي وي، لېکن که هغه عمداً وي، نو بیا په هر صورت کې قصاص واجبیږي (چې قصاصاً به د هغه غاښ هم کنډل کیږي).

## د بعضي ځانګړو صورتونو دیت

قَالَ: وَمَنْ ضَرَبَ عُضْوًا فرمایي: او څوک چې یو اندام ووهي [یعني یو څوک پر یو اندام ووهي] فَأَذْهَبَ مَنْفَعَتَهُ نو د هغه منفعت ور ختم کړي فَفِيهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ نو په هغه کې پوره دیت [واجب] دی كَالْيَدِ إِذَا شَلَّتْ لکه لاس چې کله هغه شل سي وَالْعَيْنِ إِذَا ذَهَبَ ضَوْؤُهَا او لکه سترګه چې کله د هغې دید ختم سي لِأَنَّ الْمُتَعَلَّقَ تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ لَا فَوَاتُ الصُّورَةِ ځکه مُتعلَّق [یعني د کوم شي سره چې پوره دیت مُتعلِق کیږي] هغه د جنسِ منفعت فوتول دي، نه د صورت فوتېدل وَمَنْ ضَرَبَ صُلْبَ غَيْرِهِ او څوک چې بل څوک پر ملا ووهي فَانْقَطَعَ مَاؤُهُ نو د هغه اوبه [مني] وچ سي يَجِبُ الدِّيَةُ نو دیت واجبیږي لِتَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ ځکه چې جنسِ منفعت فوت کړی سو وَكَذَا لَوْ أَحْدَبَهُ او همدارنګه که [پر ملا د وهلو په وجه] هغه کوپ کړي [ملا یې ور چوغه کړي] لِأَنَّهُ فَوَّتَ جَمَالًا عَلَى الْكَمَالِ ځکه چې هغه [ضارب] په پوره توګه جمال فوت کړی دی وَهُوَ اسْتِوَاءُ الْقَامَةِ او هغه [جمال] د قد

سیده والی دی فَلَوْزَالَتِ الْحُدُوْبَةُ بیا که کوپـوالی [چوغوالی] زائل سي لَاشَيْءَ عَلَيْهِ نو پر هغه [ضارب] هیڅ شی نسته لِزَوَالِهَا لَا عَنْ أَثَرٍ ځکه کوپـوالی بغیر له اثره زائل سو.

**اللغات:** ﴿أذهب﴾ د افعال له بابه د ماضي صیغه ده: بېول. ختمول. ﴿شلّت﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: شلېدل (شل کېدل). فلج کېدل. یعني وچېدل او له حرکته وتـل. ناکاره کېدل. ﴿صُلب﴾ د ملا هډوکی. ملا. شا. ﴿أحدب﴾ د افعال د باب ماضي ده: کوپـول. چوغی کـول (چوغول). مـلا ورکـږول. شـا ورټيټـول. ﴿فـوّت﴾ د تفعيـل د بـاب ماضـي ده: فوتـول. ضـایع کـول. ﴿استواء﴾ د افتعال د باب مصدر دی (نه د استفعال): برابر والی. سیده والی. ﴿الحدوبـة﴾ کوپـوالی. چوغی والی (چوغوالی). د ملا ټيټوالی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو سړی بل څوک پر یو اندام ووهي او د هغه اندام منفعت ور ختم کړي، باقي اندام پر خپل حال پاته وي، نو هم پر ضارب ټوله دیت واجبیږي. مثلاً که څوک پر لاس ووهي چي د هغه په وجه لاس شل سي، یا پر سترګه یې ووهي او د هغې دید ختم سي. نو په دې صورت کي پر ضارب ټوله دیت واجبیږي که څه هم لاس او سترګه موجود وي او د جسم څخه جلا سوي نه وي؛ ځکه په اندامو کي د هغوی منفعت مقصود وي او د همدې منفعت د زایلېدلو سره دیت متعلق کیږي، د صورت او ظاهري شکل سره دیت نه متعلق کیږي. او څرنګه چي دلته ضارب د اندام منفعت ختم کړی دی، نو ځکه پر هغه به ټوله دیت واجب وي.

ومن ضرب صلب إلخ: فرمایي چي که څوک بل کَس پر ملا ووهي چي د هغه په وجه یې مني وچ او ختم سي. نو دلته هم پر ضارب ټوله دیت واجبیږي؛ ځکه چي ضارب د مضروب کس د توالد وتناسل منفعت زایل کړی دی چي تر دې وروسته به هغه د بچي پر زېږولو قادر نه وي.

وکذا لو أحدبه إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څوک د بل چا پر ملا (شا) داسي کاري وار وکړي او داسي یې ووهي چي هغه کوپ او چوغی کړي یعني ملا یې ورکږه کړي. نو هم پر ضارب ټوله دیت واجبیږي: ځکه د قد و قامت مستقیم والی او د ملا سیده والی د جمال باعث دی او د هغې په کږولو او ټيټولو سره په کامله تو د ملا (شا) جمال فوتیږي. نو ځکه دیت به واجبیږي. لېکن که تر وهلو څو ورځي وروسته د مضروب کس ملا سیده سي او کوږ والی (چوغوالی) یې ختم سي، نو بیا پر ضارب هیڅ شی نه واجبیږي: ځکه چي اوس د هغه د ضرب اثر بالکل معدوم سو. خو د آینده لپاره له داسي ناوړه حرکت څخه د منع کولو لپاره به هغه ته مناسبه سزا ورکول کیږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# فَصْلٌ فِي الشِّجَاجِ

## (دا) فصل د سر او مخ د زخمونو په بيان کي دی

**تشريح**: شِجَاج جمع د شَجَّةٌ ده چي د هغه معنیٰ ده: د سر او مخ زخم. د دې فصل تعلق هم د ما دون النفس سره دی. لېکن څرنګه چي د سر او مخ د زخمونو مسائل ډېر دي، نو ځکه هغوی په جلا فصل کي بيانول کيږي.

د سر او د مخ له زخم څخه بغير عام زخم ته "جَرَاحَة" وايي چي جمع يې جَرَاحَات ده.

### د سر او مخ د زخم قسمونه

قَالَ: الشِّجَاجُ عَشَرَةٌ فرمايي: د سر او مخ زخمونه لس دي الْحَارِصَةُ وَهِيَ الَّتِي تَحْرِصُ الْجِلْدَ أَيْ تَخْدِشُهُ [۱] حارصه او دا هغه زخم دی چي څرمن [پوستکی] وګرړوي وَلَا تُخْرِجُ الدَّمَ او وينه نه را وباسي وَالدَّامِعَةُ وَهِيَ الَّتِي تُظْهِرُ الدَّمَ وَلَا تُسِيلُهُ [۲] دامعه او دا هغه زخم دی کوم چي وينه ښکاره کړي خو هغه ونه بهوي كَالدَّمْعِ مِنَ الْعَيْنِ لکه اوښکي په سترګه کي وَالدَّامِيَةُ وَهِيَ الَّتِي تُسِيلُ الدَّمَ [۳] داميه او دا هغه زخم دی کوم چي وينه وبهوي وَالْبَاضِعَةُ وَهِيَ الَّتِي تَبْضَعُ الْجِلْدَ أَيْ تَقْطَعُهُ [۴] باضعه او دا هغه زخم دی کوم چي څرمن پرېکړي وَالْمُتَلَاحِمَةُ وَهِيَ الَّتِي تَأْخُذُ فِي اللَّحْمِ [۵] متلاحمه او دا هغه زخم دی کوم چي په غوښه کي ننوځي [غوښه ونيسي] وَالسِّمْحَاقُ وَهِيَ الَّتِي تَصِلُ إِلَى السِّمْحَاقِ [۶] سمحاق او دا هغه زخم دی کوم چي تر سمحاق پوري ورسيږي وَهِيَ جِلْدَةٌ رَقِيقَةٌ بَيْنَ اللَّحْمِ وَعَظْمِ الرَّأْسِ او سمحاق هغه نری [باريک] پوستکی دی کوم چي د غوښو او د سر د هډوکي په مېنځ کي وي وَالْمُوضِحَةُ وَهِيَ الَّتِي تُوضِحُ الْعَظْمَ أَيْ تُبَيِّنُهُ [۷] موضحه او دا هغه زخم دی چي هډوکی څرګند کړي [ښکاره کړي] وَالْهَاشِمَةُ وَهِيَ الَّتِي تَكْسِرُ الْعَظْمَ [۸] هاشمه او دا هغه زخم

دی کوم چې هډوکی مات کړي وَالْمُنَقِّلَةُ وَهِيَ الَّتِي تُنَقِّلُ الْعَظْمَ بَعْدَ الْكَسْرِ أَيْ تُحَوِّلُهُ [۹] منقله او دا هغه زخم دی کوم چې تر ماتولو وروسته هډوکی منتقل کړي [هډوکی بې ځایه کړي] وَالْآمَّةُ وَهِيَ الَّتِي تَصِلُ إِلَى أُمِّ الرَّأْسِ [۱۰] آمه او دا هغه زخم دی چې تر اُم الرأس پورې ورسیږي وَهُوَ الَّذِي فِيهِ الدِّمَاغُ او اُم الرأس هغه ځای دی چې په هغه کښې دماغ وي.

**اللغات**: ﴿تحرص﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع صیغه ده په معنیٰ سره د تخدش: یعني ګرږول (ګرول)، پوستکی اړول، توږل. ﴿تبضع﴾ مخکنۍ صیغه ده: ټوټه ټوټه پرېکول.

**تشریح**: په دې عبارت کې د سر او مخ د زخم اقسام بیان سوي دي. نو فرمايي چې د سر او مخ د زخمونو شمېر لس دی چې د هغوی تفصیل دا دی: ① ... که د وهلو په وجه صرف د سر یا د مخ څرمن وګرږل سي، وینه نه را ووځي، نو داسي زخم ته "حَارِصَة" وايي، ② ... که د وهلو په وجه وینه راووځي لېکن نه وبهیږي، لکه په سترګو کې موجوده اوښکې. نو داسي زخم ته "دَامِعَة" وايي، ③ ... او که زخم وینه هم راوباسي، نو دې ته "دَامِيَة" زخم وايي، ④ ... او که زخم ژور شي، څرمن او غوښه پرې کړي، نو دې ته "بَاضِعَة" خم وايي، ⑤ ... او که زخم په غوښو کې دننه جوړ سي یا په بله وینا دا چې زخم دننه غوښه وخوري، نو دې ته "مُتَلَاحِمَة" زخم وايي، ⑥ ... او که زخم د غوښې او د سر د هډوکي په مینځ کې تر باریک پوستکي پوري ورسیږي، نو دې ته "سِمْحَاق" زخم وايي. ⑦ ... او که د زخم په وجه د سر یا د مخ هډوکی ښکاره سي، نو دې ته "مُوْضِحَة" زخم وايي، ⑧ ... او که زخم داسي وي چې هډوکی مات کړي، نو دې ته "هَاشِمَة" زخم وايي، ⑨ ... او که زخم هډوکی مات کړي او هغه وښوروي هم او له خپل ځای څخه ایسته کړي، نو دې ته "مُنَقِّلَة" زخم وايي. ⑩ ... او که زخم بالکل تر اُم الرأس پوري ورسیږي، نو دې ته "آمَّة" زخم وايي، او اُم الرأس د سر هغه ځای ته وايي چې په هغه کښې دماغ قرار لري. دا ټوله لس قسمونه سوه چې د هغوی احکام به په راروانو عبارتونو کې ذکر سي (او یو داسي زخم دی چې بالکل تر دماغه پوري ورسیږي. هغه ته "دَامِغَة" زخم وايي چې هغه به هم څه وروسته بیان سي).

## د "موضحه" زخم د قصاص حکم

قَالَ: فَفِي الْمُوْضِحَةِ الْقِصَاصُ فرمايي: نو په موضحه زخم کي قصاص دی إِنْ كَانَتْ عَمَدًا [په دې شرط] که هغه عمداً وي لِمَا رُوِيَ «أَنَّهُ ﷺ [1] قَضَى بِالْقِصَاصِ فِي الْمُوْضِحَةِ» ځکه روايت سوی دی: چي نبي ﷺ په موضحه زخم کي د قصاص فيصله وکړه وَلِأَنَّهُ يُمْكِنُ أَنْ يَنْتَهِيَ السِّكِّيْنُ إِلَى الْعَظْمِ فَيَتَسَاوَيَانِ او ځکه دا ممکنه ده چي چاړه هډوکي ته ورسيږي نو هغوی دواړه به برابر سي فَيَتَحَقَّقُ الْمُسَاوَاتُ نو برابري به ثابته سي.

**اللغات:** ﴿ينتهي﴾ د افتعال د باب مضارع ده: رسېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د شجاج کوم لس قسمونه ذکر سول، له هغوی څخه فقط په اووم قسم يعني په مُوضِحة زخم کي پر ضارب او جارح قصاص واجبيږي په دې شرط چي زخم عمداً وي. په موضحه زخم کي د قصاص واجبېدلو اول نقلي دليل دا حديث دی "قال رسول الله ﷺ: لا طلاق قبل ملك، ولا قصاص فيما دون الموضحة من الجراحات" چي نه د نکاح تر ملکيت (يعني تر نکاح کېدلو) مخکي طلاق واقع کيږي او نه له موضحه زخم څخه بغير په نورو زخمونو کي قصاص واجب دی. له دې حديث څخه معلومه سوه چي قصاص صرف په موضحه زخم واجب دی.

دويم دليل دا دی چي د قصاص مدار پر مساوات دی او د شجاج د لسو قسمونو څخه صرف په موضحه کي قصاص ممکن دی؛ ځکه په موضحه زخم کي هډوکی ښکاره کيږي يعني زخم تر هډوکي پوري رسيږي، او دا ښکاره خبره ده چي د جارح د مخ يا د سر تر هډوکي پوري هم چاړه رسول او هډوکی يې ښکاره کول ممکن دي، يا په بله وينا دا چي په موضحه زخم سره د جارح زخمي کول ممکن دي او په هغه کي د زياتوب امکان نسته. نو ځکه په موضحه زخم کي به قصاص واجب وي.

## له "موضحه" څخه بغير په نورو زخمونو کي قصاص نسته

قَالَ: وَلَا قِصَاصَ فِي بَقِيَّةِ الشِّجَاجِ فرمايي: او د سر او مخ په نورو زخمونو کي قصاص نسته لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ فِيهَا ځکه په هغوی کي د مساوات اعتبار کول ممکن نه دي لِأَنَّهُ لَا حَدَّ يَنْتَهِي السِّكِّيْنُ إِلَيْهِ ځکه يو داسي حدّ نسته چي هغه حدّ ته چاړه ورسيږي او ودرېږي وَلِأَنَّ

[1] تخريج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، حديث رقم: ۱۶۱۰۳. (احسن الهدايه)

فِيْمَا فَوْقَ الْمُوْضِحَةِ كَسْرَ الْعَظْمِ او ځکه چي له موضحه څخه پرته زخمونو کي د هډوکي ماتول
سته وَلَا قِصَاصَ فِيْهِ او په هډوکي ماتولو کي قصاص نسته وَهٰذَا رِوَايَةٌ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا له امام
صاحب رحمه الله څخه يو روايت دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞ فِي الْأَصْلِ وَهُوَ ظَاهِرُ الرِّوَايَةِ او امام محمد رحمه
الله په مبسوط کي فرمايلي دي او همدا ظاهر روايت [هم] دی يَجِبُ الْقِصَاصُ فِيْمَا قَبْلَ الْمُوْضِحَةِ چي
له موضحه څخه په مخکي زخمونو کي قصاص واجب دی لِأَنَّهُ يُمْكِنُ اِعْتِبَارُ الْمُسَاوَاةِ فِيْهِ ځکه
په هغوی کي د مساوات اعتبار کول ممکن دي اِذْ لَيْسَ فِيْهِ كَسْرُ الْعَظْمِ ځکه چي په هغوی کي د
هډوکي ماتول نسته وَلَا خَوْفُ هَلَاكٍ غَالِبٍ او نه د غالب هلاکت بېره پکښي سته فَيُسْبَرُ غَوْرُهَا
بِمِسْبَارٍ نو د هغه زخم ژور والي دي په يو پليته [ياسلايي] سره معلوم کړی سي ثُمَّ تُتَّخَذُ حَدِيْدَةٌ
بِقَدْرِ ذٰلِكَ بيا دي د هغه په اندازه يو اوسپنه ترلاسه کړل سي فَيُقْطَعُ بِهَا مِقْدَارُ مَا قَطَعَ نو په
هغه سره دي دومره مقدار پرېکړل سي کوم چي جارح پرېکړی وي فَيَتَحَقَّقُ اِسْتِيْفَاءُ الْقِصَاصِ نو
د قصاص اخيستل به ثابت سي.

**اللغات**: ﴿ينتهي﴾ دافتعال د باب مضارع ده: رسېدل. انتها ته رسېدل او درېدل. ﴿يُسْبَر﴾ د نصر له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده. د دې باب يوه معنیٰ ده: د زخم د ژور والي مقدار معلومول. ﴿مِسْبَار﴾ له مخکيني باب څخه اسم آله ده: هغه پلته (پليته) يا سلايي او کوچنی لرګي چي د هغه په ذريعه د زخم ژور والی معلومول کيږي. يا په بله وينا د زخم د مقدار معلومولو پليته. لکه څرنګه چي صاحب د مصباح وايي: سَبَرْتُ الْجُرْحَ سَبْرًا. أي: تَعَرَّفْتُ عُمْقَهُ، وَالسِّبَارُ وَالْمِسْبَارُ فَتِيْلَةٌ وَنَحْوُهَا تُوْضَعُ فِي الْجُرْحِ لِيُعْرَفَ عُمْقُهُ.

﴿اتخذ﴾ دافتعال د باب ماضي ده. دا باب أخذ په معنیٰ سره دی چي د هغه ډيري معناوي دي: اخيستل. ترلاسه کول. همدارنګه تېره کول هم د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده. (معجم الوسيط)

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي قصاص فقط په موضحه زخم کي واجبيږي. له موضحه څخه بغير نه تر هغه په مخکي شپږو قسمونو کي قصاص سته او نه په وروسته دريو قسمونو کي قصاص سته؛ ځکه د قصاص مدار پر مساوات دی او له موضحه څخه بغير د شجاج په نورو قسمونو کي د مساوات اعتبار او رعايت کول ممکن نه دي؛ ځکه له موضحه څخه مخکي چي کوم شپږ

---

۞ القول الراجح: هو قول محمد رحمه الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۴۸]

قسمونه دي. په هغوی کي خو کي حد او انتها نه معلومېږي چي جارح هغومره ځوږ او زخمي کړل سي څومره چي هغه مجروح زخمي کړی دی. او په آخري درېو قسمونو کي هډوکي ماتول کېږي. او د هډوکي ماتولو په صورت کي قصاص نسته (لکه مخکي چي ذکر سو.)؛ ځکه په دې صورت کي هم بالکل د مساوات او مماثلت اعتبار ممکن نه دی چي د زیاتوب امکان پکښي سته. نو ځکه د مساوات د عدمِ اعتبار په وجه په نورو قسمونو کي قصاص نسته. او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د حسن بن زیاد رَحِمَهُ الله روایت دی. همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی.

**وقال محمد إلخ**: د دې حاصل دا دی چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي لیکلي دي چي له موضحه څخه مخکي چي کوم شپږ قسمونه دي یعني حارصه، دامعه، دامیه، متلاحمه او سمحاق. په هغوی کي هم قصاص واجب دی؛ ځکه چي په هغوی کي د جارح او مجروح په زخمونو کي د مساوات اعتبار کول ممکن دي؛ ځکه یو خو په هغوی کي هډوکی نه ماتول کېږي او بل دا چي هغه معمولي زخمونه وي نو د هغوی په قصاص اخیستلو کي غالباً د هلاکت بېره هم نه وي. نو ځکه په هغه قسمونو کي به قصاص واجب وي. او د هغه طریقه به دا وي چي په یو سلایي سره به د مجروح د زخم مقدار او ژور والی معلومول کېږي او تر دې وروسته به د سلایي د هغه مقدار او ژور والي په اندازه په یوه تېره اوسپنه سره قاطع زخمي کول کېږي او هغومره مقدار به ځني پرېکول کېږي څومره چي هغه له مجروح څخه پرېکړی دی. لنډه دا چي په دې توګه قصاص اخیستل ممکن دي. نو ځکه په هغوی کي به هم قصاص واجب وي.

## د نورو زخمونو حکم

قَالَ وَفِيمَا دُونَ الْمُوْضِحَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ فرمایي: او له موضحه څخه په کم نورو زخمونو کي حکومةِ عدل [واجب] دی [أي فيما دون الموضحة أثرا و شجا حكومة عدل] لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهَا أَرْشٌ مُقَدَّرٌ ځکه چي په هغوی کي یو تاکل سوی دیت نسته وَلَا يُمْكِنُ إِهْدَارُهُ او نه د هغه ضایع کول [او معاف کول] ممکن دي فَوَجَبَ اعْتِبَارُهُ بِحُكْمِ الْعَدْلِ نو ځکه په حکومةِ عدل سره د هغه اعتبار کول واجب سوه وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنِ النَّخَعِيِّ وَعُمَرَ بْنِ عَبْدِ الْعَزِيزِ او همدا له ابراهیم نخعي او عمرو بن عبدالعزیز رَحِمَهُمَا الله څخه منقول دي.

**اللغات**: ﴿أرش﴾ تاوان، ضمان، جرمانه. هغه مال او دیت کوم چي له نفس څخه د کم (یعني د مادون النفس) جنایت په بدله کي واجبېږي. ﴿إهدار﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضایع کول چي هیڅ بدله یې نه واخیستل سي (معاف کول). ﴿مأثور﴾ د نصر له بابه د مفعول صیغه ده: منقول. نقل کړی سوی.

**تشریح**: مخکې مصنف رَحِمَهُ الله وویل چې له موضحه څخه بغیر د سر او مخ په نورو زخمونو کې قصاص نسته. دلته دا رابښيي چې په هغوی کې هدر او معافي هم نسته؛ ځکه داسې کول د انسان د احترام او د هغه د مقام خلاف دي. او له موضحه څخه بغیر د شجاج د نورو قسمونو په هکله په شریعت کې یو ټاکل سوی دیت هم نسته. نو ځکه شریعت د هغوی د تلافي او تدارک لپاره حکومة حدل واجب کړی دی او همدا فیصله له حضرت ابراهیم نخعي او حضرت عمر بن عبد العزیز رَحِمَهُ الله څخه هم نقل سوې ده چې هغه په دې مسئله کې زموږ لپاره سند او دلیل ده. (احسن الهدایه)

## د خطاء او عمد فرق

قَالَ: وَفِي الْمُوْضِحَةِ إِنْ كَانَتْ خَطأً نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ فرمايي: او په موضحه زخم کې که چیرې هغه خطاءً وي د دیت لسمه حصه [واجب] ده وَفِي الْهَاشِمَةِ عُشْرُ الدِّيَةِ او په هاشمه زخم کې د دیت لسمه حصه [واجب] ده وَفِي الْمُنَقِّلَةِ عُشْرُ الدِّيَةِ وَنِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ او په منقله زخم کې د دیت لسمه حصه او د لسمې حصې نصف [واجب] ده وَفِي الْآمَّةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ او په آمه زخم کې د دیت دریمه حصه [واجب] ده وَفِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ او په جائفه زخم کې د دیت دریمه حصه ده فَإِنْ نَفَذَتْ بیا که جائفه زخم بلې خوا ته ووځي فَهُمَا جَائِفَتَانِ نو هغه دوه جائفه زخمونه دي فَفِيهِمَا ثُلُثَا الدِّيَةِ نو په دوی کې د دیت دوه ثلثه [دوې دریمې حصې] دي لِمَا رُوِيَ فِي كِتَابِ عَمْرِو بْنِ حَزْمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ[1] ځکه د عمرو بن حزم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په خط کې نقل سوي دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل «وَفِي الْمُوْضِحَةِ خَمْسٌ مِنَ الْإِبِلِ او په موضحه زخم کې پنځه اوښان دي وَفِي الْهَاشِمَةِ عَشْرٌ او په هاشمه زخم کې لس اوښان دي وَفِي الْمُنَقِّلَةِ خَمْسَةَ عَشَرَ او په منقله زخم کې پنځلس اوښان دي وَفِي الْآمَّةِ وَيُرْوَى الْمَأْمُومَةُ ثُلُثُ الدِّيَةِ» او په آمه زخم (او په یوه روایت کې دي چې په مأمومه زخم) کې د دیت ثلث [دریمه حصه] ده وَقَالَ عَلَيْهِ السَّلَامُ[2]: «فِي الْجَائِفَةِ ثُلُثُ الدِّيَةِ» [همدارنګه] نبي ﷺ فرمایلي دي: چې په جائفه زخم کې د دیت ثلث دی وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ حَكَمَ فِي جَائِفَةٍ نَفَذَتْ

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد فی كتاب الدیات، باب دية الأعضاء، حديث رقم:۴۵۶۶. والبيهقي في السنن الكبرى، حديث رقم ۱۶۲۱۴

[2] تخریج: أخرجه البيهقي في السنن الكبرى، حديث رقم:۱۶۲۱۸.

إِلَى الْجَانِبِ الْآخَرِ بِثُلُثَيِ الدِّيَةِ او له حضرت ابو بکر رضي الله عنه څخه روايت دي چي ده په هغه جائفه زخم کي کوم چي بل طرف ته ووځي د ديت د دوو ثلثو فيصله وکړه وَلِأَنَّهَا إِذَا نَفَذَتْ او ځکه کله چي جائفه زخم بل طرف ته ووځي نَزَلَتْ مَنْزِلَةَ جَائِفَتَيْنِ نو هغه د دوو جائفه زخمونو په منزله ګرځي إِحْدَاهُمَا مِنْ جَانِبِ الْبَطْنِ يو له دننه طرف څخه وَالْأُخْرَىٰ مِنْ جَانِبِ الظَّهْرِ او بل له دباندېني طرف څخه [يا په بله وينا دا چي يو زخم د اندام د نس له طرفه څخه او بل د هغه د شا له طرف څخه] وَفِي كُلِّ جَائِفَةٍ ثُلُثُ الدِّيَةِ او په هر جائفه زخم کي د ديت ثلث دی فَلِهٰذَا وَجَبَ فِي النَّافِذَةِ ثُلُثَا الدِّيَةِ نو ځکه په نافذه [بل طرف ته وتونکي زخم] کي د ديت دوه ثلثه واجب سوه.

**اللغات:** ﴿الجائفة﴾ مراد: هغه زخم کوم چي جوف (دننه حصې) ته ورسيږي. برابره ده هغه د نس دننه ته ورسيږي يا د سر وغيره دننه ته ورسيږي، لکه څرنګه چي څه وروسته صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله به هم د دې يادونه وکړي، ﴿نفذت﴾ د نصر له بابه د ماضي صيغه ده، د دې باب يوه معنیٰ ده: سوری کول او بل طرف ته وتل، سرايت کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د شجاج له اقسامو څخه په موضحه زخم کي صرف د عمد په صورت کي قصاص واجب دی، او که چيري موضحه زخم خطاءً وي (يعني يو څوک خطاءً د بل چا سر يا مخ داسي زخمي کړي چي هډوکی يې ښکاره سي)، نو په دې صورت کي د ديت د عُشر نصف يعني شلمه حصه واجب ده چي هغه پنځه اوښان کيږي (ځکه د ديت عُشر لس اوښان دي نو ښکاره ده چي د عشر نصف پنځه اوښان کيږي).

او څرنګه چي له موضحه څخه بغير د شجاج په نورو قسمونو کي قصاص واجب نه دی، نو ځکه په هغوی کي د عمد او خطاء تر مينځ هيڅ فرق نسته او په دواړو صورتونو کي پر جارح او قاطع ديت واجبيږي، نو په "هَاشِمَه" زخم کي د ديت عُشر (لسمه حصه) واجب ده يعني لس اوښان. په "مُنَقِّله" زخم کي د ديت عُشر او نصف عُشر دواړه واجب دي چي د هغه مقدار پنځلس اوښان دي. په "آمّه" زخم کي د ديت يو ثُلث يعني دريمه حصه واجب ده چي د هغه مقدار درو دېرش (۳۳) اوښان او ديوه اوښ درو برشمه (۳۳٪) حصه ده. او همدا حکم د هغه زخم هم دی کوم چي جائفه غير نافذه وي يعني د سر يا د نس يا د ملا يا سينې هغه زخم چي جوف او دننه نس ته ورسيږي (يا په بله وينا چي

دننه ولاړ سي) خو بلې خوا ته نه ووځي، نو په هغه کې هم د ديت يو ثلث واجب دی او که جائفه زخم سرايت وکړي يعني بلې خواته ووځي (آرپار سي). نو بيا په هغه کې د ديت دوه ثلثه واجب دي.

لما روی في کتاب عمرو إلخ: يعني امام قدوري رَحِمَهُ الله چې په موضحه، هاشمه او منقله وغيرها کې د ديت کوم ترتيب او تفصيل بيان کړی، دا د هغه تفصيل عين مطابق کوم چې نبي کريم ﷺ د عمرو بن حزم رضي الله عنه په خط کې ليکلی وو، لکه څرنګه چې د هغه مضمون په کتاب کې مذکور دي او د مصنف رَحِمَهُ الله عبارت د هغه مضمون سره مطابق دی.

او په جائفه زخم کې د ديت د ثلث واجبدلو دليل دا حديث دی "في الجائفة ثلث الدية" دا هم په کتاب کې مذکور دی. او د جائفه نافذه زخم دليل د حضرت ابو بکر رضي الله عنه هغه فيصله ده چې د هغه مضمون په کتاب کې موجود دی او دا ټوله دلائل څرګند او واضح دي چې په هغوی کې هيڅ تعقيد او ستونزه نسته.

د جائفه نافذه زخم په هکله عقلي دليل دا دی چې کله جائفه زخم بل طرف ته ووځي او له يوه طرف څخه بل طرف هم زخمي کړي، نو اوس د ظاهر او باطن په اعتبار سره دوه جائفه زخمونه جوړ سول او څرنګه چې په يوه جائفه زخم کې د ديت يو ثلث (دريمه حصه) واجب ده، نو ځکه په دوو جائفه زخمونو کې به د ديت دوه ثلثه واجب وي. (احسن الهدايه)

## په زخمونو کې د امام محمد رَحِمَهُ الله ترتيب

وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ جَعَلَ الْمُتَلَاحِمَةَ قَبْلَ الْبَاضِعَةِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې هغه متلاحمه تر باضعه زخم مخکې ګرځولې دی وَقَالَ: هِيَ الَّتِي يَتَلَاحَمُ فِيهَا الدَّمُ وَيَسْوَدُّ او فرمايلي يې دي: چې متلاحمه هغه زخم دی چې وينه پکښې جمع سي او توره سي وَمَا ذَكَرْنَاهُ بَدْءًا مَرْوِيٌّ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او کوم چې موږ په شروع کې ذکر کړي دي هغه له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي وَهٰذَا الِاخْتِلَافُ عِبَارَةٌ لَا يَعُوْدُ إِلَى مَعْنًى وَحُكْمٍ خو دا صرف د عبارت اختلاف دی کوم چې د معنیٰ او حکم وطرف ته نه ګرځي.

**اللغات**: ﴿يتلاحم﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: زخم ډکېدل، يتلاحم الدم: وينه پکښې جمع کېدل.
﴿يَسْوَدُّ﴾ د اِفْعِلَال د باب مضارع ده: تورېدل، تور ګرځېدل.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د شجاج په اقسامو کې چې موږ باضعه زخم پر متلاحمه زخم مخکې کړی دی، دا ترتيب په حقيقت کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت

سوی دی. لېکن د امام محمد رَحِمَهُ الله ترتیب هم له دې څخه جلا دي او هغه د متلاحمه تعریف هم جلا کړی دی: ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په هکله روایت دا دی چې هغه متلاحمه تر باضعه مخکې بیان کړې دی او د متلاحمه تعریف يې دا کړی دی چې په زخم کې وینه جمع سي او توره وګرځي (یا په بله وینا دا چې وینه پکښې یخې او توره سي) او نه وبهېږي. خو مصنف رَحِمَهُ الله فرمایي چې دا صرف د عبارت او الفاظو اختلاف دی او په داسې اختلاف سره پر معنیٰ او مطلب اثر نه لوېږي. لهذا کوم مطلب چې موږ د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د عبارت بیان کړی دی. هاغه د امام محمد رَحِمَهُ الله په عبارت کې هم جاري کېږي. (احسن الهدایه)

**یادونه**: لا یعود إلى معنى وحکم: یعني د عبارت او الفاظو په اختلاف سره په معنیٰ او حکم کې اختلاف نه رځي. یعني په حکومة عدل کې د دواړو حکم مساوي دی. بس فرق يې صرف دومره دی چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د متلاحمه مشتق منهٔ الذهاب في اللحم دی (یعني چې زخم په غوښه کې ولاړ سي یا په بله وینا غوښه وخوري). او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د هغه مشتق منهٔ التحام دی کوم چې د اجتماع په معنیٰ سره دی (یعني چې په زخم کې دننه وینه جمع او یخې سي او توره وګرځي).

## د "دامغه زخم" بیان

وَبَعْدَ هٰذَا شَجَّةٌ أُخْرَىٰ تُسَمَّى الدَّامِغَةُ او تر دې [یعني تر آمه زخم] وروسته یو زخم بل هم سته چې هغه ته دامغه زخم ویل کېږي وَهِيَ الَّتِيْ تَصِلُ إِلَى الدِّمَاغِ او دا هغه زخم دی کوم چې دماغ ته ورسیږي وَإِنَّمَا لَمْ يَذْكُرْهَا لِأَنَّهَا تَقَعُ قَتْلًا فِي الْغَالِبِ او امام محمد رَحِمَهُ الله هغه ځکه نه دی ذکر کړی چې هغه غالباً قتل واقع کېږي [یعني عموماً د قتل سبب ګرځي] لَا جِنَايَةً مُقْتَصِرَةً مُنْفَرِدَةً بِحُكْمٍ عَلىٰ حِدَةٍ نه داسې جنایت مقتصره [یعني هغه داسې جنایت نه واقع کېږي] چې له جلا څخه د هغه علیحده ذکر وکړی سي.

**اللغات**: ﴿مقتصر﴾ د افتعال د باب فاعل دی: محدود. منحصر. ﴿منفردة﴾ د انفعال د باب فاعل دی: یوازینی. علیحده. ﴿على حدة﴾ جلا. مستقل.

**تشریح**: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د شجاج د لسو قسمونو څخه علاوه یو بل قسم هم سته چې هغه ته دامغه وایي: ځکه د دې زخم اثر بالکل تر دماغه پوري رسیږي. لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله دا قسم په مبسوط کې نه دی بیان کړی دی. او د دې وجه دا ده چې د دامغه زخم په وجه عموماً

مجروح کس مړ کیږي او دا زخم په قتل بدلیږي او د مجروح کس د بچ کېدلو امکان دړې پکښې وي او د قتل حکم ټولو ته معلوم دی، نو ځکه په علیحده توګه د دامغه حکم بیانولو ته ضرورت محسوس نه سو. (احسن الهدایه)

## مذکوره زخمونه د سر او مخ سره خاص دي

ثُمَّ هٰذِهِ الشِّجَاجُ تَخْتَصُّ بِالْوَجْهِ وَالرَّأْسِ لُغَةً بیا دغه شجاج د مخ او سر سره خاص دي د لغت په اعتبار وَمَا كَانَ فِي غَيْرِ الْوَجْهِ وَالرَّأْسِ يُسَمَّى جِرَاحَةً او کوم زخم چي له مخ او سر څخه بغیر په بل ځای کي وي هغه ته جراحت ویل کیږي وَالْحُكْمُ مُرَتَّبٌ عَلَى الْحَقِيقَةِ فِي الصَّحِيحِ او د صحیح قول مطابق حکم پر حقیقت لغویه باندي مرتب کیږي حَتّٰى لَوْ تَحَقَّقَتْ فِي غَيْرِهِمَا نَحْوُ السَّاقِ وَالْيَدِ همدا وجه ده چي که زخم له مخ او سر څخه بغیر بل ځای کي موجود وي لکه پنډۍ او لاس لَا يَكُونُ لَهَا أَرْشٌ مُقَدَّرٌ نو د هغه زخم لپاره ټاکل سوی دیت نه ثابتیږي وَإِنَّمَا تَجِبُ حُكُومَةُ الْعَدْلِ بلکي صرف حکومة عدل واجبیږي لِأَنَّ التَّقْدِيرَ بِالتَّوْقِيفِ ځکه [د دیت] ټاکل کېدل په توقیف [یعني د شریعت په صراحت] سره کیږي وَهُوَ إِنَّمَا وَرَدَ فِيمَا يَخْتَصُّ بِهِمَا او توقیف [د شریعت صراحت] د هماغه زخم په هکله وارد سوی دی کوم چي د مخ او سر سره خاص وي، وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا وَرَدَ الْحُكْمُ فِيهَا لِمَعْنَى الشَّيْنِ الَّذِي يَلْحَقُهُ بِبَقَاءِ أَثَرِ الْجِرَاحَةِ او ځکه په دې زخمونو [شجاج] کي چي کوم حکم وارد سوی دی دا د هغه عیب [او بدرنګی] په موجه دی کوم چي لاحق سي زخمي [مشجوج] ته د زخم د اثر پاتېدلو په وجه وَالشَّيْنُ يَخْتَصُّ بِمَا يَظْهَرُ مِنْهَا فِي الْغَالِبِ او عیب په زخمونو کي د هغه زخم سره خاص دی کوم چي غالباً ښکاره [لڅ] وي وَهُوَ الْعُضْوَانِ هٰذَانِ لَا سِوَاهُمَا او هغه همدا دوه اندامونه دي [یعني مخ او سر]، نه ماسوا د دوی. [ځکه غالباً (عموماً) همدا مخ او سر ښکاره او لڅ پرېښول کیږي. نه نور اندامونه]

**اللغات:** ﴿توقیف﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: د شریعت صراحت، یعني چي شارع د یو شي صراحت او ټاکنه کړې وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د لغوي معنیٰ او مطلب په اعتبار سره شجه هغه زخم ته وایي کوم چي په مخ یا سر کي وي، او له مخ یا سر څخه بغیر د بل ځای زخم ته جَرَاحَة وایي. او په شریعت کي چي د یو شي په هکله کوم حکم واردیږي هغه پر حقیقي معنیٰ مرتب کیږي او د حقیقي معنی

مطابق حکم لګول کیږي. او څرنګه چې دلته شریعت د دیت کوم احکام بیان کړي دي هغه د شجاج پر اقسامو مرتب دي. نو ځکه له شجاج څخه بغیر د لاس. پښې ... پر زخمونو به دا احکام نه مرتب کیږي؛ ځکه د مذکوره احکامو مورد هغه زخمونه دي کوم چې په مخ یا سر کې ولګیږي (یعني شجاج)، لهذا داسې به نه کیږي چې په قیاس او عقل سره د بل ځای په زخمونو کې هم دا احکام نافذ کړل سي؛ ځکه داسې احکام د شریعت په صراحت کولو (توقیف) سره معلومیږي او په هغه کې د قیاس وغیره هیڅ ګنجایش نه وي، او شریعت مذکوره احکام د شجاج یعني د مخ او سر د زخمونو سره خاص کړي دي، لهذا د بل اندام په زخمونو کې به مذکوره احکام نه جاري کیږي، خو په هغوی کې حکومة عدل واجبیږي او د هغه په ذریعه به یې تلافي کیږي.

ولأنه إنما ورد الحکم إلخ: عقلي دلیل دا دی چې د شجاج یعني د سر یا مخ د هر زخم تر جوړېدلو وروسته هم د هغه اثر باقي پاتیږي او د همدې اثر پاتېدلو په وجه سر یا مخ عیبداره کیږي او بدرنګي پکښې راځي، او عیب او بدرنګي د همغه اندامونو د زخمو سره مخصوص دي کوم چې زیاتره وخت لڅ او ښکاره پرېښوول کیږي، او تاسي ته معلومه ده چې له انساني اندامو څخه مخ او سر عموماً ښکاره پرېښوول کیږي، نو ځکه د همدې دوو ځایو د زخم په محض اثر سره به مجروح کس معیوب شمېرل کیږي او د شریعت مذکوره احکام به صرف پر همدوی مرتب او منطبق کیږي، او له دوی څخه بغیر نور اندامونه عموماً پټ ساتل کیږي، نو ځکه په هغوی کې خو به نه عیب ښکاره کیږي او نه به د هغه زخمونو سره مذکوره احکام متعلق کیږي. (احسن الهدایه)

## د زامو حکم او بیان

وَأَمَّا اللَّحْيَانِ او کوم چې دواړې زامې دي فَقَدْ قِيلَ: لَيْسَا مِنَ الْوَجْهِ نو ویل سوي دي چې هغوی له مخ څخه نه دي وَهُوَ قَوْلُ مَالِكٍ او همدا د امام مالک رَحِمَهُ الله قول دی حَتَّى لَوْ وُجِدَ فِيهِمَا مَا فِيهِ أَرْشٌ مُقَدَّرٌ تر دې چې که په زامو کې داسي زخم موجود سي چې په هغه کې تاکل سوی دیت وي لَا يَجِبُ الْمُقَدَّرُ نو هغه ټاکل سوی دیت نه واجبیږي وَهٰذَا لِأَنَّ الْوَجْهَ مُشْتَقٌّ مِنَ الْمُوَاجَهَةِ او دا ځکه چې وجهه [مخ] له مواجهت [مخامخ کېدو] څخه مشتق دی وَلَا مُوَاجَهَةَ لِلنَّاظِرِ فِيهِمَا او کتونکي کس لره په زامو کې مواجهت نسته إِلَّا أَنَّ عِنْدَنَا هُمَا مِنَ الْوَجْهِ خو زموږ په نېز زامې له مخ څخه دي لِاتِّصَالِهِمَا بِهِ مِنْ غَيْرِ فَاصِلَةٍ ځکه دوی بغیر له څه فاصلې د مخ سره متصله دي وَقَدْ يَتَحَقَّقُ فِيهِ مَعْنَى الْمُوَاجَهَةِ أَيْضًا او په دې کې د مواجهت [مخامخ کېدو] معنیٰ هم ثابتیږي وَقَالُوا:

الْجَائِفَةُ تَخْتَصُّ بِالْجَوْفِ او مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي جائفه زخم د جوف سره خاص دی جَوْفِ الرَّأْسِ أَوْ جَوْفِ الْبَطْنِ [برابره ده] د سر جوف وي يا د نس جوف وي.

**اللغات**: ﴿اللحيان﴾ تثنيه د لَحیٌ ده: زامه، ژامه، برغښي. ﴿مُقدّر﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: اندازه کړی سوی، ټاکل سوی. ﴿المواجهة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: مخ د مخ سره مقابله کول، مخامخ کېدل (مخامخ والی). ﴿جوف﴾ د شي دننه حصه، دننه خاليګاه.

**تشريح**: زامه (ژامه) په مخ کي داخله ده، که نه؟ په دې هکله د فقهاؤ اختلاف دی. د امام مالک رَحِمَهُ الله او بعضي مشايخو رايه دا ده چي زامه په مخ کي داخله نه ده. تر دې چي که د شجاج له اقسامو څخه هر زخم په زامه کي واقع سي، نو په دې زخم کي هغه ديت نه واجبيږي کوم چي د شجاج په اقسامو کي ټاکل سوی دی؛ ځکه هغه ديت د شجاج يعني د مخ او سر د زخمونو سره خاص دی او زامه په مخ کي داخله نه ده. ځکه وَجْه (مخ) له مواجهت (مخامخ والي) څخه مشتق ده او مخ ته په همدې بناء وَجْه ويل کيږي چي دا حصه کتونکي ته مخامخ راځي، خو زامي کتونکي ته مخامخ نه راځي. نو ځکه زامي به په وَجْه يعني په مخ کي داخله نه وي او د مخ د زخمونو چي کوم ديت دی هغه به د زامي په زخم کي نه نافذيږي.

إلا أن عندنا إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي زموږ په نيز زامي په مخ کي داخله دي، ځکه چي زامي له څه فاصلې او بېلتون څخه بغير د مخ سره متصله دي. او په زامو کي هم د مواجهت معنی موجوده ده. لهذا زامي به په مخ کي داخله او شامله وي او کوم حکم چي د مخ د زخمونو دی. هاغه حکم به د زامي د زخمونو هم وي.

وقالوا الجائفة إلخ: فرمايي جائفه هغه زخم ته وايي کوم چي جوف ته ورسيږي، برابره ده د سر جوف ته ورسيږي او که د نس جوف ته ورسيږي، له دې څخه معلومه سوه چي د جوف په اعتبار سره جائفه زخم هم په شجاج کي داخل دی. خو شَجَّة د سر او مخ د زخم سره خاص ده (يعني خاص د سر يا مخ زخم ته وايي)، او جائفه عام ده کوم چي له سر څخه بغير د نس، ملا او سينې زخم لره هم شامله ده. له همدې څخه دا خبره هم ښکاره سوه چي دلته د جائفه ذکر پر خپل محل دی او بې ځايه نه دی چي پر هغه اعتراض او نيوکه وسي. (احسن الهدايه)

## د حکومة عدل تفسير او تشريح

وَتَفْسِيرُ حُكُومَةِ الْعَدْلِ عَلَى مَا قَالَهُ الطَّحَاوِيُّ او د حکومة عدل تفسير لکه څرنګه چي امام طحاوي رَحِمَهُ الله ويلي دي دا دی أَنْ يُقَوَّمَ مَمْلُوكًا بِدُونِ هٰذَا الْأَثَرِ چي د مملوک قيمت دي ولګول سي بغيرله دغه اثر څخه [يعني يو وار دي د زخم له اثر څخه بغير د غلام قيمت ته اندازه ولګول سي] وَيُقَوَّمُ وَبِهِ هٰذَا الْأَثَرُ او بيا دي د دغه اثر سره د هغه قيمت ولګول سي ثُمَّ يَنْظُرُ إِلَى تَفَاوُتِ مَا بَيْنَ الْقِيمَتَيْنِ بيا دي د دواړو قيمتونو تر مينځ تفاوت ته وکتل سي فَإِنْ كَانَ نِصْفَ عُشْرِ الْقِيمَةِ نو که هغه تفاوت [د غلام] د قيمت د لسمي حصې نصف وي يَجِبُ نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ نو د ديت د لسمي حصې نصف واجبيږي وَإِنْ كَانَ رُبْعَ عُشْرٍ او که [د قيمت] د لسمي حصې ربع [څلورمه حصه] وي فَرُبْعُ عُشْرٍ نو د څلورمي حصې ربع واجبيږي وَقَالَ الْكَرْخِيُّ: يُنْظَرُ كَمْ مِقْدَارُ هٰذِهِ الشَّجَّةِ مِنَ الْمُوضِحَةِ او امام کرخي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دې ته به وکتل کيږي چي د دغه زخم مقدار څو دی له موضحه زخم څخه [يعني د دغه زخم مقدار به د موضحه زخم سره پرتله کيږي] فَيَجِبُ بِقَدْرِ ذٰلِكَ مِنْ نِصْفِ عُشْرِ الدِّيَةِ نو د ديت د لسمي حصې څخه به د هغه په اندازه واجبيږي لِأَنَّ مَا لَا نَصَّ فِيهِ يُرَدُّ إِلَى الْمَنْصُوصِ عَلَيْهِ ځکه د کوم شي په هکله چي نص نه وي هغه د منصوص عليه طرف ته واپس کول کيږي.

**اللغات**: ﴿يُقَوَّم﴾ د تفعيل له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: قيمت لګول او ټاکل، د قيمت اندازه لګول. ﴿منصوص عليه﴾ د کوم شي په باره کي چي نص وارد سوی وي.

**تشريح**: مخکي څو ځله ستاسي ذهن ته د حکومة عدل اصطلاح تېره سوې ده. په دې عبارت کي د سر او مخ له زخمونو څخه په موضحه زخم کي د حکومة عدل تفسير او مطلب بيانوي چي له هغه څخه په نورو ځايو کي هم د حکومة عدل مطلب په فهم کي راځي، دلته مصنف رَحِمَهُ الله دوه تفسيرونه بيان کړي دي چي له هغوی څخه اول تفسير د امام طحاوي رَحِمَهُ الله دی، حاصل يې دا دی چي د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د بيان مطابق د حکومة عدل مطلب دا دی چي د غير مجروح غلام د قيمت او د مجروح غلام د قيمت په مينځ کي چي کوم فرق وي هاغه حکومت عدل دی، مثلاً که د غير مجروح غلام قيمت ۱۰۰۰ درهمه وي او د مجروح غلام قيمت ۹۵۰ درهمه وي نو په دواړو کي چي کوم ۵۰ درهمه فرق دی، داغه حکومکة عدل دی او دا پنځوس درهمه د غير مجروح غلام د ټوله

قيمت د عُشر نصف دی يعني شلمه حصه يې ده، نو ځکه د ټوله ديت نيم عُشر يعني شلمه حصه به واجب وي چې د هغه مقدار پنځه اوښان دي او که د مجروح غلام او غير مجروح غلام تر مينځ فقط ۲۵ درهمه فرق وي، نو څرنگه چې دا د غلام د قيمت څلويښتمه حصه ده، نو ځکه د ديت به هم څلويښتمه حصه واجب وي چې د هغه مقدار دوه نيم اوښان دي، لنډه دا چې د مجروح او غير مجروح غلام په قيمتونو کې چې څومره فرق وي، په هاغه حساب سره به په ديت کې هم فرق کول کيږي.

**په بله وينا**: د امام طحاوي رَحِمَهُ الله د قول مطلب دا دی چې مثلاً يو آزاد کس زخمي کړل سو، نو اوس به دې ته کتل کيږي چې که بالفرض هغه غلام وای نو له دغه زخم څخه بغير به د هغه قيمت څومره وای يعني قيمت ته به يې اندازه لګول کيږي، بيا مثلاً که په اندازه لګولو سره دا معلومه سوه چې د هغه قيمت به زر درهمه وای او د دغه زخم په وجه به د هغه قيمت پنځوس درهمه کم سوي وای او ۹۵۰ درهمه به وای، نو په دواړو قيمتونو کې پنځوس درهمه فرق راغلی او دا پنځوس درهمه د هغه د ټوله قيمت د عُشر نصف يعني شلمه حصه ده، نو په داسي صورت کې د ټوله ديت نصف عُشر يعني پنځه اوښان واجبيږي، او که د دوی تر مينځ صرف پنځويشت درهمه فرق راووځي، نو بيا د ديت څلويښتمه حصه واجبيږي يعني دوه نيم اوښان، وقِس عَلیٰ هذا.

**وقال الکرخی إلخ**: د حکومة عدل د تفسير په باره کې د امام کرخي رَحِمَهُ الله د قول حاصل دا دی چې د کوم شي په هکله نص موجود نه وي (يا په وينا دا چې کوم شی غير منصوص وي)، نو د هغه د حکم معلومولو طريقه دا ده چې هغه به د منصوص عليه شي وطرف ته گرځول کيږي او د هغه سره به يې حساب لګوي او د هغه مطابق به يې مقدار متعيّنول کيږي.

نو دلته د مُوضحه نص په هکله نصّ موجود دی چې په موضحه زخم کې نصف عُشر واجب دی کوم چې پنځه اوښان دي، نو اوس به دې ته کتل کيږي چې کوم زخم په سر کې واقع سوی دی په هغه زخم او موضحه زخم کې څومره فرق دی، که چيري هغه زخم تر موضحه نصف کم وي (يعني تر موضحه زخم نيمايي کم او کوچنی وي)، نو بيا د نصف عُشر هم نصف يعني رُبع عشر (يا په بله وينا دا چې د عُشر څلورمه حصه) واجبول کيږي کوم چې دوه نيم اوښان کيږي، او که هغه زخم تر موضحه زخم ډېر کم او کوچنی وي مثلاً هغه د موضحه زخم پنځمه حصه کيږي نو بيا به د نصف عُشر پنځمه حصه يعني فقط يو اوښ واجبول کيږي، وقس عليٰ هٰذا چې په همدې حساب او تناسب سره به د ديت فيصله کيږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)



# فَصْلٌ

(دا) فصل (له سر او مخ څخه بغیر د نورو زخمونو په بیان کي) دی

**تشریح:** څرنګه چي اطراف او اعضاء د وضع او حکم په اعتبار له سر او مخ څخه جلا دي، نو ځکه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د هغوی احکام او مسائل په جلا فصل کي بیان کړي دي.

## د ګوتو د دیت مقدار

وَفِي أَصَابِعِ الْيَدِ نِصْفُ الدِّيَةِ او د یوه لاس په ټولو [پنځو] ګوتو کي نیم دیت [واجب] دی لِأَنَّ فِي كُلِّ إِصْبَعٍ عُشْرُ الدِّيَةِ ځکه چي په هره ګوته کي د دیت لسمه حصه [واجب] ده عَلَى مَا رَوَيْنَا د هغه حدیث مطابق کوم چي موږ [مخکي] روایت کړی فَكَانَ فِي الْخَمْسِ نِصْفُ الدِّيَةِ نو ځکه په پنځو ګوتو کي به نیم دیت [واجب] وي وَلِأَنَّ فِي قَطْعِ الْأَصَابِعِ تَفْوِيتَ جِنْسِ مَنْفَعَةِ الْبَطْشِ او ځکه چي د ټولو ګوتو په پرېکولو کي د جنسِ منفعت فوتول ستنه وَهُوَ الْمُوجِبُ او همدا [جنسِ منفعت فوتول] د دیت واجبونکي دي عَلَى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه فَإِنْ قَطَعَهَا مَعَ الْكَفِّ او که ټولي ګوتي د ورغوي سره پرېکړي فَفِيهِ أَيْضًا نِصْفُ الدِّيَةِ نو په دې کي هم نیم دیت [واجب] دی لِقَوْلِهِ الطَّيْلاً [1] : وَفِي الْيَدَيْنِ الدِّيَةُ وَفِي إِحْدَاهُمَا نِصْفُ الدِّيَةِ د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: او په [پرېکولو د] دواړو لاسو کي دیت دې او په یوه لاس کي نیم دیت دی وَلِأَنَّ الْكَفَّ تَبَعٌ لِلْأَصَابِعِ او ځکه چي ورغوی د ګوتو تابع دی لِأَنَّ الْبَطْشَ بِهَا ځکه چي نیول د همدې ګوتو په ذریعه کیږي.

**اللغات:** ﴿البطش﴾ مصدر دی، له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: نیول (په لاس سره یو شی نیول او اخیستل). ﴿الكف﴾ ورغوی، د لاس تلی.

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی چي د دیت په حکم کي شریعت دواړه لاسونه یو اندام ګرځولي دي همدارنګه د دواړو لاسونو لس سره ګوتي یې یو اندام ګڼلي دي، اوس ښکاره ده چي که څوک د

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الديات، باب ديات الأعضاء، حديث رقم:۴۵۶۵.

دواړو لاسونو لس سره ګوتي پرېکړي، نو پر هغه به ټوله دیت واجب وي او که د یوه لاس پنځه سره ګوتي پرېکړي، نو پر هغه به نصف دیت واجب وي؛ ځکه په هره ګوته کي د دیت عُشر (لسمه حصه) واجب ده کوم چي لس اوښان کیږي، لهذا په پنځو ګوتو کي به د دیت نصف یعني نیم دیت واجب وي او نیم دیت پنځوس اوښان کیږي.

ولأن البطش إلخ: په دې هکله بل دلیل دا دی چي که د یوه لاس پنځه سره ګوتي پرېکړل سي، نو په دې سره د یو شي د نیولو او را اخیستلو منفعت بالکل ختمیږي او د یو اندام جنس منفعت فوتول د دیت موجب دي، لېکن څرنګه چي د یوه لاس د ګوتو په پرېکولو سره نیم منفعت فوتیږي. نو ځکه دیت به هم نیم واجب وي.

فإن قطعها إلخ: د دې حاصل دا دی چي که څو د یوه لاس د ګوتو سره ورغوی هم پرېکړي، نو په دې صورت کي هم نیم دیت واجبیږي او هغه نیم دیت د ګوتو عوض کیږي، پاته سو ورغوی نو د هغه په عوض کي نور دیت نه واجبیږي؛ ځکه دلته د بطش (نیولو) منفعت فوت سوی دی او ورغوی د بطش په منفعت کي د ګوتو تابع دی او د تابع په عوض کي ضمان (تاوان) نه واجبیږي. نو ځکه په دې صورت کي فقط د قطع الأصابع ضمان واجب دی، او د قطع الکف په عوض کي هیڅ شی نه واجبیږي.

## د لیځي پر نیمایي د لاس پرېکولو بیان

وَإِنْ قَطَعَهَا مَعَ نِصْفِ السَّاعِدِ او که ګوتي پرېکړي سره د نیمایي لیځي فَفِي الْأَصَابِعِ وَالْكَفِّ نِصْفُ الدِّيَةِ نو [د طرفینو په نیز] په ګوتو او ورغوي کي نیم دیت دی وَفِي الزِّيَادَةِ حُكُومَةُ عَدْلٍ او له هغه څخه په زیات کي [یعني په لیځه کي] حکومة عدل دی وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي يُوسُفَ او همدا له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دی وَعَنْهُ ❁ أَنَّ مَا زَادَ عَلَى أَصَابِعِ الْيَدِ وَالرِّجْلِ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روایت دا دی چي د لاس او پښې کوم مقدار چي پر ګوته زائد دی فَهُوَ تَبَعٌ إِلَى الْمَنْكِبِ وَإِلَى الْفَخِذِ نو هغه [د ګوتو] تابع دی تر اوږو او ورنو پوري لِأَنَّ الشَّرْعَ أَوْجَبَ فِي الْيَدِ الْوَاحِدَةِ نِصْفَ الدِّيَةِ ځکه چي شریعت په یوه لاس کي نیم دیت واجب کړی دی وَالْيَدُ اسْمٌ لِهَذِهِ الْجَارِحَةِ إِلَى الْمَنْكِبِ او لاس [له ګوتو څخه] تر اوږې پوري د دغه آلې نوم دی فَلَا يُزَادُ عَلَى تَقْدِيرِ

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما قول المتون، ولها الترجيح عند عدم ترجيح الصريح. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۹]

الشَّرۡعِ نو ځکه پر شرعي تقدير به زياتوب نه کيږي وَلَهُمَا: أَنَّ الْيَدَ آلَةٌ بَاطِشَةٌ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي لاس د نيولو والا آله ده [چي په هغه سره شيان نيول کيږي او را اخيستل کيږي] وَالْبَطْشُ يَتَعَلَّقُ بِالْكَفِّ وَالْأَصَابِعِ دُونَ الذِّرَاعِ او نيول د ورغوي او ګوتو سره متعلق دي، نه د ذراع سره فَلَمْ يُجْعَلِ الذِّرَاعُ تَبَعًا فِي حَقِّ التَّضْمِينِ نو ځکه د ضمان [ديت] لازمولو په حق کي به ذراع تابع نه ګرځول کيږي وَلِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى أَنْ يَكُونَ تَبَعًا لِلْأَصَابِعِ او ځکه چي د دې هيڅ وجه نشته چي ذراع [او ليڅه] د ګوتو تابع وګرځول سي لِأَنَّ بَيْنَهُمَا عُضْوًا كَامِلًا ځکه د دوی دواړو تر مينځ يو کامل اندام [ورغوی] موجود دی وَلَا إِلَى أَنْ يَكُونَ تَبَعًا لِلْكَفِّ او نه د دې څه وجه سته چي ذراع د ورغوي تابع سي لِأَنَّهُ تَابِعٌ ځکه چي ورغوی تابع دی وَلَا تَبَعَ لِلتَّبَعِ او تابع لره تابع نه وي.

**اللغات**: ﴿ساعد﴾ ليڅه. مابين المرفق الى الكف من الاعلى (يعني له څنګلو څخه تر ورغوي پوري د دغه حصې پورتني او ښکارني طرف ته ساعد وايي). ﴿الذراع﴾ لاس د ګوتو له سرو څخه تر څنګلي پوري. مابين المرفق إلى أطراف الأصابع. ﴿حكومة عدل﴾ د عدل فيصله. د دې وضاحت مخکي وسو (د فصل فى الشجاج په آخر کي). ﴿باطشة﴾ د نصر او ضرب له بابه د واحد مؤنث فاعل صيغه ده: نيونکی. را اخيستونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د يو چا لاس د ليڅي پر مينځ پرېکړي چي د هغه سره ورغوی او ګوتي ټوله پرېکړل سي، نو په دې سلسله کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي په ګوتو او ورغوي کي خو نيم ديت واجب دی او په ليڅه کي حکومة عدل واجب دی او همدا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت هم دی.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دی چي په دې صورت کي فقط نيم ديت واجب دی. نور هيڅ څه واجب نه دي؛ ځکه په لاس او پښه کي ګوتي اصل دي او د لاس د ګوتو سره چي کوم ورغوی، ليڅه او بازو دي هغه تر اوږې پوري ټوله دګوتو تابع دي (په لنډه وينا دا چي ذراع او بازو ټوله د ګوتو تابع دی)، همدارنګه په پښه کي ګوتي اصل دي او د ګوتو د پاسه چي کومه حصه ده هغه تر ورنو پوري د پښې د ګوتو تابع ده. لهذا کله چي د ورغوي او ليڅي حصه د ګوتو تابع ده. نو دلته به صرف د ګوتو د پرېکولو په بدله کي ديت واجبيږي، او له هغه څخه بغير د قطع الكف والساعد په وجه به ديت يا حکومة عدل نه واجبيږي؛ ځکه هغوی د ګوتو تابع دي او د تابع لپاره ضمان نه واجبيږي.

ولهما إلخ: د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي لاس د نيولو آله ده او د نيولو کار په ګوتو او ورغوي دواړو سره ترسره کيږي. او پاته سو ذراع يعني ليڅه او بازو نو د نيولو سره د هغه تعلق نسته. لهذا د ضمان واجبيدلو په حق کي به ذراع د ګوتو تابع نه ګرځول کيږي؛ ځکه د تابع ګرځولو لپاره يوه معقوله وجه پکاره ده او دلته د دې هيڅ وجه نسته چي ذراع د ګوتو تابع وګرځول سي؛ ځکه د ذراع او ګوتو تر مينځ ورغوی حائل دی او د دې هم هيڅ وجه نسته چي ذارع د ورغوي تابع وګرځول سي؛ ځکه ورغوی خو خپله د ګوتو تابع دی او تابع لره تابع نه کيږي. نو ځکه په ضمان واجبيدلو کي به ذراع نه خو د ګوتو تابع ګرځول کيږي او نه د ورغوي. او کوم نيم ديت چي واجب دی، هغه به صرف د ګوتو په عوض کي وي او د ذراع لپاره به جلا حکومة عدل واجب وي. (احسن الهدايه)

## له مروند څخه د لاس پرېکولو بيان

قَالَ: وَإِنْ قَطَعَ الْكَفَّ مِنَ الْمِفْصَلِ فرمايي: او که ورغوی له بند [مروند] څخه پرېکړي وَفِيْهَا إِصْبَعٌ وَاحِدَةٌ او په هغه کي يوه ګوته وي فَفِيْهِ عُشْرُ الدِّيَةِ نو په دې کي د ديت لسمه حصه [واجب] ده وَإِنْ كَانَ إِصْبَعَيْنِ او که دوې ګوتي وي فَالْخُمُسُ نو خمس [واجب] دی وَلَا شَيْءَ فِي الْكَفِّ او په ورغوي کي هيڅ شی نسته وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دي وَقَالَا❁ : يُنْظَرُ إِلَى أَرْشِ الْكَفِّ وَالْإِصْبَعِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: د ورغوي او ګوتي ضمان [او ديت] ته به کتل کيږي فَيَكُوْنُ عَلَيْهِ الْأَكْثَرُ نو پر هغه [قاطع] به اکثر يو واجب وي [يعني د کوم يوه د ارش مقدار چي زيات وي، هغه پر قاطع واجبيږي] وَيَدْخُلُ الْقَلِيْلُ فِي الْكَثِيْرِ او قليل به په کثير کي داخليږي لِأَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى الْجَمْعِ بَيْنَ الْأَرْشَيْنِ ځکه د دواړو ضمانونو جمع کولو لره هيڅ وجه نسته [يعني ممکن نه دي] لِأَنَّ الْكُلَّ شَيْءٌ وَاحِدٌ ځکه ټوله يو شی دي وَلَا إِلَى إِهْدَارِ أَحَدِهِمَا او نه له دوی څخه ديوه د ضمان هدر ګرځولو [معاف کولو] لره څه وجه سته لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَصْلٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه له دوی دواړو [کف او أصابع] څخه هر يو په يوه اعتبار سره اصل دی فَرَجَّحْنَا بِالْكَثْرَةِ نو ځکه موږ په کثرت سره [اکثر يو لره] ترجيح ورکړه وَلَهُ: أَنَّ الْأَصَابِعَ أَصْلٌ وَالْكَفُّ تَابِعٌ حَقِيْقَةً وَشَرْعًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د حقيقت او شرع دواړو په اعتبار سره ګوتي اصل دي او

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵۰]

ورغوی تابع دی لِأَنَّ الْبَطْشَ يَقُوْمُ بِهَا ځکه چې نيول په همدې ګوتو سره قائميږي [واقع کيږي] وَأَوْجَبَ الشَّرْعُ فِي إِصْبَعٍ وَاحِدَةٍ عَشْرًا مِنَ الْإِبِلِ او شرع [شريعت] په يوه ګوته کي لس اوښان واجب کړي دي وَالتَّرْجِيْحُ مِنْ حَيْثُ الذَّاتِ وَالْحُكْمِ أَوْلَى مِنَ التَّرْجِيْحِ مِنْ حَيْثُ مِقْدَارِ الْوَاجِبِ او د ذات او حکم په اعتبار ترجيح ورکول غوره دي د مقدار واجب په اعتبار له ترجيح ورکولو څخه.

**اللغات:** ﴿مفصل﴾ بند، د دوو هډوونو د يو ځای کېدلو ځای، ﴿أرش﴾ ضمان او جرمانه، ديت (يعني هغه ديت کوم چې د ما دون النفس والا جنايت په بدله کي لازم سي).

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که څوک له بند او مړوند څخه د بل چا ورغوی پرېکړي او په هغه ورغوي کي صرف يوه ګوته وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر قاطع صرف د يوې ګوتي ديت يعني د ديت عُشر (لسمه حصه) واجبيږي چې د هغه مقدار لس اوښان دي او که په ورغوي کي دوې ګوتي وي، نو پر قاطع د ديت خمس (پنځمه حصه) واجبيږي يعني شل اوښان.

د دې په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې د ورغوي ضمان او د ګوتو ضمان (ديت) به د يو بل سره اندازه کول کيږي او د کوم يوه ضمان چې زيات وي، هاغه پر قاطع واجبيږي، مثلاً د يوې ګوتي ديت د ديت عُشر دی يعني لس اوښان، او د يوازي ورغوي ضمان حکومة عدل دی يعنيو که فقط ورغوی پرېکړل سوي وای نو پر قاطع به حکومة عدل واجبېدای (کوم چې د ګوتي له ديت څخه کمېدلای هم سي او زياتېدلای هم سي)، نو اوس به دې ته کتل کيږي چې په لسو اوښانو او حکومة عدل کي د کوم يوه مقدار زيات دی، هريو چې زيات وي نو هاغه به واجبول کيږي او قليل به په کثير کي داخلول کيږي.

لکه يو څوک چې د بل چا سر زخمي کړي چې د هغه په وجه يې ورېښتان هم ورژيږي، نو دلته هم اکثر مقدار واجب دی او قليل په کثير کي داخليږي، نو همداسي به په مذکوره صورت کي هم کيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې دلته دا خو ممکنه نه ده چې د ګوتي ديت جلا ځني واخيستل سي؛ ځکه دواړه د يوه شي په څېر دی، لهذا د ورغوي ديت بعينه د ګوتي ديت دی او د ګوتي ديت بعينه د ورغوي ديت دی، لنډه دا چې دوی دواړه د يوه شي (شئ واحد) په څېر دي، نو ځکه ترجيح بالکثرة به کيږي (چې د کوم يوه مقدار زيات وي، هغه لره به ترجيح وي او هاغه به واجبول کيږي).

او دا هم ممکنه نه ده چې فقط د يوه په ديت اکتفاء وسي او د بل يوه ديت هدر او معاف وګرځول سي، ځکه په يوه اعتبار دوی دواړه سره جلا او هر يو اصل دي، ورغوی په دې اعتبار اصل دی چې ګوتې په هغه سره قائم دي او ګوتې په دې اعتبار اصل دي چې اصل د بطش (نيولو) منفعت د همدوی په وجه حاصل دی.

لهذا کله چې اول او دويم دواړه صورتونه باطل وګرځېدل، نو ځکه موږ کثرت لره ترجيح ورکړه او هغه مو راجح او واجب کړی او قليل مو په کثير کې داخل وګرځوی.

ولـه إلـخ: د امام صاحب دليل دا دی چې حقيقت او شريعت دواړو په اعتبار سره ګوتې اصل دي او ورغوی تابع دی، ګوتې حقيقتاً ځکه اصل دي چې په همدوی سره د نيولو منفعت حاصليږي، او شرعاً ځکه اصل دي چې شريعت د يوې ګوتې لپاره د لسو اوښانو ديت مقرر کړی دی، د دې په خلاف ورغوی خو نه د ګوتو په مقابله کې حقيقتاً اصل دی او نه د قطع الکف په بدله کې د شريعت له طرفه څه ديت ټاکل سوی دی، بلکې د هغه په بدله کې په قياس سره حکومت عدل واجبول کيږي ځکه په کوم صورت کې چې تقدير شرعاً ثابت نه وي، نو هغه تقدير په قياس او رايه سره ثابتيږي (او په کوم څه چې کې شرعاً تقدير ثابت وي، هغه په نص سر ثابتيږي، چې هغه دلته قطع الاصابع دی چې ديت يې شرعاً يعني په نص سره ثابت دی)، او قياس د نص نه سې معارض کېدلای، نو په کوم يوه کې چې تقدير شرعي وي، هغه ته به پر مقدار قياسي ترجيح حاصله وي، او أصول دا دی چې د حقيقيت او حکم شرعي په اعتبار سره شي ته ترجيح ورکول له دې څخه ډېر غوره دي چې د مقدار واجب يعني د قلت او کثرت په اعتبار سره ترجيح ورکول سي، او څرنګه چې ګوتې د حقيقت او شريعت دواړو په اعتبار سره اصل دي، نو ځکه په ديت واجبېدلو کې به هم ګوتې اصل وي او د ګوتې چې کوم ديت وي، صرف هابه پر قاطع واجب وي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## که په لاس کې درې ګوتې وي نو د هغه حکم

وَلَوْكَانَ فِي الْكَفِّ ثَلَاثَةُ أَصَابِعَ او که په ورغوي کې درې ګوتې وي يَجِبُ أَرْشُ الْأَصَابِعِ نو د ګوتو ديت واجبيږي وَلَا شَيْءَ فِي الْكَفِّ بِالْإِجْمَاعِ او په ورغوي کې بالاتفاق هيڅ شی نسته لِأَنَّ الْأَصَابِعَ أُصُولٌ فِي التَّقَوُّمِ ځکه په متقوّم والي کې ګوتې اصل دي وَلِلْأَكْثَرِ حُكْمُ الْكُلِّ او اکثر لره د کل حکم حاصل دی فَاسْتَتْبَعَتِ الْكَفَّ نو [هغه درې] ګوتې به ورغوی [د ځان] تابع وګرځوي كَمَا إِذَا كَانَتِ الْأَصَابِعُ قَائِمَةً بِأَسْرِهَا لکه کله چې ټولې ګوتې قائمه [موجوده] وي قَالَ: وَفِي الْإِصْبَعِ الزَّائِدَةِ

حُكُومَةُ عَدۡلٍ فرمايي: په زائده ګوته كي حكومة عدل واجب دى. تَشۡرِيفًا لِلۡآدَمِيِّ د انسان د تعظيم [او احترام] په خاطر لِأَنَّهُ جُزۡءٌ مِنۡ يَدِهِ ځکه زائده ګوته [هم] د انسان د لاس يو جزء ده وَلٰكِنۡ لَا مَنۡفَعَةَ فِيهِ وَلَا زِينَةَ ليكن په هغې كي نه څه منفعت سته او نه ښکلا سته وَكَذٰلِكَ السِّنُّ الشَّاغِيَةُ او همدارنګه زائد غابښ [د هغه هم دغه حکم دى] لِمَا قُلۡنَا د هغه دليل په وجه کوم چي [اوس] موږ ذکر کړی [يعني لأنه جزء من يده... فالسن الشاغية جزء من فمه...].

**اللغات**: ﴿التقوم﴾ د تفعل د باب د مصدر دى: متقوّم كېدل (قيمتداره كېدل). ارزښتمن كېدل.

﴿استتبعت﴾ د استفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: د يو شي د تابع كولو طلب كول. تابع ګرځول. ﴿تشريف﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: تعظيم كول. عزت وركول. ﴿الشاغية﴾ د سمع له بابه د مؤنث فاعل صيغه ده: زائد غابښ (اضافي غابښ). كما قال صاحب الحاشية: الشاغية: الزائدة أي التي يخالف نبتها نبت غيرها من الأسنان (يعني چي له نورو غابښونو څخه زائد وي او له هغوى څخه بېل او عليحده راوتلى وي).

**تشريح**: دا عبارت د مخكيني عبارت سره مربوط دى، حاصل يې دا دى چي كه په ورغوي كي درې ګوتي وي، نو بالاجماع درې (۳) اوښان واجبيږي او د ورغوي په عوض كي هيڅ شى نه واجبيږي؛ ځکه دا خو مُسلمه قاعده ده چي په تقوّم كي همدا ګوتي اصل دي او دلته اكثره ګوتي موجوده دي: ځکه درې د پنځو اكثره حصه ده، نو ځکه ګوتي به ورغوى د خپل ځان تابع كړي. لكه څرنګه چي كه ټولي ګوتي موجوده وي، نو بيا هم صرف پنځه اوښان واجبيږي او د ورغوي په بدله كي هيڅ شى نه واجبيږي.

- قال في الإصبع الزائدة إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه د چا په يوه لاس كي شپږ ګوتي وي. بيا يو څوک مثلاً خالد هغه شپږمه زائده ګوته ور پريكړي، نو څرنګه چي د هغې سره نه منفعت متعلق دى او نه په هغې كي جمال او ښکلا سته، نو ځکه ارش خو نه واجبيږي خو څرنګه چي هغه زائده ګوته هم د انسان د لاس جزء ده، نو د تكريم انساني او د انسان د تعظيم په خاطر په هغه كي حكومة عدل واجبيږي.

همدا حكم د زائد غابښ هم دى، مثلاً د چا د يوه غابښ پر ځاى دوه غابښه راشنه سوي وي، بيا خالد هغه زائد غابښ ور وكاږي، نو دلته هم پر خالد حكومة عدل واجبيږي، د همدې پورتني دليل په وجه.

وَفِيْ عَيْنِ الصَّبِيِّ وَذَكَرِهٖ وَلِسَانِهٖ إِذَا لَمْ تُعْلَمْ صِحَّتُهٗ حُكُوْمَةُ عَدْلٍ او د بچي په سترګه، ذکر او ژبه کي کله چي د هغه [هر یوه] روغوالی معلوم نه وي حکومة عدل [واجب] دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ فِيْهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په هغه [يعني په سترګه. ذکر او ژبه (هر يوه)] کي پوره دیت واجب دی لِأَنَّ الْغَالِبَ فِيْهِ الصِّحَّةُ ځکه په هغه کي روغوالی غالب دی فَأَشْبَهَ قَطْعَ الْمَارِنِ وَالْأُذُنِ نو دا د پزي د نرمۍ او د غوږ پرېکولو سره مشابه سوه وَلَنَا: أَنَّ الْمَقْصُوْدَ مِنْ هٰذِهِ الْأَعْضَاءِ الْمَنْفَعَةُ او زموږ دليل دا دی: چي له دې اندامونو څخه منفعت مقصود دی فَإِنْ لَمْ تُعْلَمْ صِحَّتُهَا لېکن که د دوی روغوالی معلوم نه وي لَا يَجِبُ الْأَرْشُ الْكَامِلُ بِالشَّكِّ نو د شک په وجه پوره دیت نه واجبيږي وَالظَّاهِرُ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً لِلْإِلْزَامِ او ظاهر [غالب] د شي لازمولو لپاره د حجت جوړېدلو صلاحيت نه لري بِخِلَافِ الْمَارِنِ وَالْأُذُنِ الشَّاخِصَةِ په خلاف د پزي د نرمۍ او د راپورته سوي غوږ [یا په بله وینا دا چي په خلاف د نرمۍ او د غوږ د پورتنۍ حصې] لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ هُوَ الْجَمَالُ ځکه [له دوی څخه] مقصود جمال وي وَقَدْ فَوَّتَهٗ عَلَى الْكَمَالِ او قاطع دا جمال په کامله توګه فوت کړی دی وَكَذَا لَوِ اسْتَهَلَّ الصَّبِيُّ او همدارنګه که بچی وژاړي [نو په دې صورت کي هم حکومة عدل واجبيږي] لِأَنَّهٗ لَيْسَ بِكَلَامٍ ځکه ژړل کلام نه دي وَإِنَّمَا هُوَ مُجَرَّدُ صَوْتٍ بلکي هغه خو محض يو آواز دی وَمَعْرِفَةُ الصِّحَّةِ فِيْهِ بِالْكَلَامِ او په ژبه کي د روغوالي [يعني دژبي د روغتيا] پېژندنه په کلام سره کيږي وَفِي الذَّكَرِ بِالْحَرَكَةِ او په ذکر کي د روغوالي پېژندنه په حرکت سره کيږي وَفِي الْعَيْنِ بِمَا يُسْتَدَلُّ بِهٖ عَلَى النَّظَرِ او په سترګه کي د روغوالي پېژندنه په هغه شي سره کيږي چي په هغه سره پر ليدلو دليل ونيول سي [چي سترګه ليدل کولای سي] فَيَكُوْنُ حُكْمُهٗ بَعْدَ ذٰلِكَ حُكْمَ الْبَالِغِ فِي الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ نو تر ذې وروسته به د بچي حکم د بالغ حکم وي په عمد او خطاء [دواړو صورتونو] کي.

**اللغات**: ﴿الشاخصة﴾ د فتح له بابه د مؤنث فاعل صيغه ده: هغه څه کوم چي له خپل ځايه بهر راوتلی وي، راپورته سوی، را ښکاره. ﴿استهل﴾ د استفعال د باب ماضي ده: د پيدايښت په وخت کي د بچي چيغه وهل، د پيدايښت پر مهال د کوچني ژړل او آواز ايستل.

**تشريح**: دعبارت حاصل دا دی چي که د يو کوچني بچي په هکله دا معلومه وي چي هغه ليدل يا خبري کولای سي يا ذکر يې حرکت کولای سي، نو دا د سترګي او ژبي او ذکر د روغوالي او صحت نښه ده، نو ځکه په داسي صورت کي بالاتفاق پوره ديت واجبيږي.

لېکن که تر اوسه د هغوی روغوالی او صحت معلوم سوی نه وي بيا يو څوک هغه ور پرېکړي، نو په دې صورت کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، هغه فرمايي چي څرنګه دلته غالب او ښکاره همدا ده چي دغه اندامونه به روغ وي، نو پر همدې بنياد لکه د پزي په نرمۍ او په غوږ کي چي ديت واجبيږي، نو همداسي به په مذکوره اندامو (سترګه، ژبه او ذکر) کي هم ديت واجبيږي.

ولنا إلخ: زموږ مسلک دا دی چي ديت نه واجبيږي، بلکي حکومة عدل واجبيږي، په دې هکله زموږ دليل دا دی چي په سترګه، ذکر او ژبه کي منفعت مقصود دی، او د دوی منفعت هغه وخت حاصليږي کله چي يې روغوالی معلوم وي (يعني چي دا معلومه وي چي د بچي سترګه، ژبه او ذکر کار کولای سي او روغ رمټ دي)، او دلته د هغوی روغتيا معلومه نه ده، نو ښکاره ده چي له هغوی څخه د منفعت تحقق او صدور به هم معلوم نه وي، بلکي پکښي شک دی او د شک په وجه پوره ديت نه سي واجبول کېدای. نو ځکه دلته به د حکومة عدل په وجوب اکتفا کيږي.

پاته سو د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا دليل چي غالب او ښکاره همدا ده چي دغه اندامونه به روغ وي، نو زموږ له طرفه د هغه جواب دا دی چي غالب او ظاهر حجت خو کېدلای سي، لېکن د هغه په وجه پر بل چا حکم نه سي لازمول کېدای، يعني هغه د إلزام لپاره حجت نه دی.

بخلاف المارن إلخ: او امام شافعي رَحِمَهُ الله چي مذکوره صورت د پزي پر نرمۍ او پر غوږ قياس کړی دی، نو دا قياس مع الفارق دی؛ ځکه د دواړو مقصود سره جلا دی، او د مذکوره اندامونو (يعني د ژبي وغيره) مقصود منفعت دی او د هغوی منفعت تر اوسه معلوم نه دی؛ ځکه چي تر اوسه د هغوی روغتيا نه ده معلومه سوې، او پاته سو نرمۍ او غوږ نو هغوی خو په بدن کي راپورته سوي حصې دي چي مقصود يې جمال دی او بچي ته په هغوی سره جمال حاصل دی، او قاطع په کامله توګه دا جمال فوت کړی دی، نو ځکه د نرمۍ او غوږ پرېکولو په صورت کي پوره ديت واجبيږي.

وكذالك لو استهلّ إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د پيدايښت په وخت کي بچي چيغه وکړي او وژاړي، او له دې څخه بغير په بله ذريعه د هغه د ژبي روغتيا او صحت معلوم نه سي، نو په دې صورت کي صرف حکومة عدل واجبيږي؛ ځکه دا ژړا او محض يو آواز دی، څه کلام خو نه دی، او د ژبي

روغوالي په كلام سره معلوميږي او د ذكر روغتيا په ښوربنت سره معلوميږي او د سترګي روغتيا په داسي شي سره معلوميږي چي په هغه سره د سترګي پر ديد او ليدنه دليل ونيول سي.

او كله چي د دې مذكوره اندامونو سلامتي معلومه سي. نو بيا د بچي حكم د بالغ كس د حكم په څېر دى. لهذا د عمداً پرېكولو په صورت كي به قصاص او د خطاءً پرېكولو په صورت كي به ديت واجبيږي.

**د سر د زخم په وجه عقل ختمېدل (حكم او تفصيل)**

قَالَ: وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا فرمايي: او څوک چي د يو سړي سر ور زخمي كړي فَذَهَبَ عَقْلُهُ أَوْ شَعْرُ رَأْسِهِ نو د هغه عقل ختم سي يا يې د سر وربښتان ختم سي دَخَلَ أَرْشُ الْمُوْضِحَةِ فِي الدِّيَةِ نو د موضحه ارش [هم] په ديت كي داخليږي لِأَنَّ بِفَوَاتِ الْعَقْلِ تَبْطُلُ مَنْفَعَةُ جَمِيعِ الْأَعْضَاءِ ځكه د عقل فوتېدلو په وجه د ټولو اندامونو منفعت فوتيږي فَصَارَ كَمَا إِذَا أَوْضَحَهُ فَمَاتَ نو داسي سو لكه څوک چي په يو چا كي موضحه زخم جوړ كړي [يا په بله وينا دا چي په موضحه زخم سره يې زخمي كړي] او هغه مړ سي وَأَرْشُ الْمُوْضِحَةِ يَجِبُ بِفَوَاتِ جُزْءٍ مِنَ الشَّعْرِ او د موضحه ارش د وربښتانو د څه حصې په فوتېدلو سره واجبيږي حَتّٰى لَوْ نَبَتَ تر دې چي كه هغه څه وربښتان [بيرته] راشنه سي يَسْقُطُ نو ارش ساقطيږي وَالدِّيَةُ بِفَوَاتِ كُلِّ الشَّعْرِ او ديت د ټولو وربښتانو په فوتېدلو سره واجبيږي وَقَدْ تَعَلَّقَا بِسَبَبٍ وَاحِدٍ او دا دواړه [ارش او ديت] د يوه سبب سره متعلق دي فَدَخَلَ الْجُزْءُ فِي الْجُمْلَةِ نو ځكه جزء به په كل كي داخليږي كَمَا إِذَا قَطَعَ إِصْبَعَ رَجُلٍ لكه كله چي د يو سړي ګوته پرېكړي فَشُلَّتْ يَدُهُ نو د هغه سړي لاس شل سي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَدْخُلُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي [د موضحه ارش په ديت كي] نه داخليږي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا جِنَايَةٌ فِيمَا دُوْنَ النَّفْسِ ځكه له دوى دواړو څخه هر يو په ما دون النفس كي جنايت دى فَلَا يَتَدَاخَلَانِ نو ځكه په دوى كي به تداخل نه كيږي كَسَائِرِ الْجِنَايَاتِ لكه نور جنايات [يعني لكه په نورو جناياتو كي چي تداخل نه كيږي] وَجَوَابُهُ مَا ذَكَرْنَاهُ او د دې جواب هاغه دى كوم چي موږ ذكر كړى دى.

**اللغات**: ﴿شج﴾ د ماضي صيغه ده. له نصر او ضرب دواړو څخه راځي: سر يا مخ زخمي كول (يعني هغه زخمي كولو او ماتولو ته وايي كوم چي په سر يا مخ كښي واقع سي. دلته مراد سر زخمي كول دي د عقل په

قرينه سره). ﴿يتداخلان﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب مضارع صيغه ده: يو په بل کي داخلېدل، يو په بل ننوتل.

**تشريح**: د عبارت له تشريح څخه مخکي په دې اُصول ځان پوه کړئ! چي که د ضمان سبب يو وي او د جنايت محل هم يو وي او بيا هغه جنايت په خپل محل کي متعدي سي يعني بل جنايت وګرځي، نو زموږ په نېز صرف يو ضمان واجبيږي يعني له دواړو ضمانو څخه چي کوم يو اکثر وي، هغه واجبيږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د هر جنايت جلا ضمان واجبيږي. په بله وينا دا چي زيد مثلاً د بل چا پر يو اندام جنايت وکړی مثلاً زخمي يې کړی، لېکن هغه جنايت دوه شيان ختم کړل چي له هغوی څخه د يوه ارش کم وو او د بل ارش زيات وو، نو په دې صورت کي اقل په اکثر کي (يا په بله وينا جزء په کُل کي) داخليږي، برابره ده هغه جنايت عمداً وي او که خطاءً وي. او که جنايت پر دوو جلا، جلا حصو واقع سي، نو تداخل نه کيږي، بلکي د هر يوه ارش جلا، جلا واجبيږي برابره ده جنايت عمداً وي او که خطاءً وي. دا تفصيل زموږ (يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله وغيره) په نېز دی. لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي دلته تداخل نه کيږي بلکي د هر جنايت جلا ارش واجبيږي.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي که زيد خطاءً د خالد سر ورمات او زخمي کړی، نو د سر ماتولو په وجه خو پر هغه (زيد) د موضحه ديت واجب دی کوم چي د ديت نيم عُشر دی (يعني د ديت د لسمي حصې نصف کوم چي پنځه اوښان کيږي)، لېکن که د همدې زخم په وجه د مشجوج (خالد) عقل ختم سو يا د هغه د سر وروېښتان ختم سوه، نو بيا پر شاج (زيد) باندي ټوله ديت واجبيږي، او ځرنګه چي په ټوله ديت کي د دې زخم ديت يعني د ديت نيم عُشر هم داخل دی او هغه له ټوله ديت څخه کم (اقل) دی، نو ځکه دا نيم عُشر هم په دې ديت کي داخليږي (تداخل پکښي کيږي)، او د هغه په بدله کي جلا هيڅ شی نه واجبيږي يعني له ديت څخه بغير نور نيم ديت زموږ په نېز نه واجبيږي؛ ځکه کله چي د مشجوج (خالد) عقل ختم سو نو د ټولو اعضاؤ منافع فوت سول چي په هغوی کي سر هم داخل دی کوم چي مات کړی سوی دی، او ځرنګه چي ديت د ټوله عقل په بدله کي دی او کُل دی، نو ځکه په دې کُل کي جزء يعني د سر ماتولو چي کوم ارش دی هغه هم پکښي داخليږي، د دې مثال داسي دی لکه زيد چي په خالد کي موضحه زخم جوړ کړی، نو پر زيد خو د ديت نيم عشر واجب سو، لېکن که د نيم عشر تر اداء کولو مخکي هغه زخم سرايت وکړی او خالد مړ سو، نو اوس نيم عُشر نه واجبيږي، بلکي ټوله ديت واجبيږي او په دې ټوله ديت کي د ديت نيم عُشر هم داخليږي (يعني تداخل پکښي کيږي، نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم تداخل کيږي).

وأرش الموضحة إلخ: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په کُل کي د جزء داخلېدلو نور وضاحت کوي فرمايي چي د موضحه ارش او ضمان سمدستي واجب نه دی بلکي پر دې خبره موقوف دی چي په آينده کي وربېنتان راشنه نه سي، لېکن که څه وربېنتان ختم سي او وروسته بير ته راشنه سي نو د موضحه ارش ساقطيږي، او ديت هم د ټولو وربېنتانو په دايمي توګه ختمېدلو سره واجبيږي؛ او څرنګه چي دلته د موضحه ارش او ديت دواړه په يوه سبب سره واجبيږي يعني د وربېنتانو د فوتېدلو په وجه او دواړه په يوه محل کي ثابتيږي يعني په سر کي، نو جزء يعني د موضحه ارش به په کُل يعني د ټولو وربېنتانو په ديت کي داخليږي، او جزء عليحده نه واجبيږي. د دې مثال داسي دی لکه څوک چي د بل چا ګوته پرېکړي، نو ښکاره ده چي پر قاطع ديوې ګوتي ديت يعني د ديت عُشر واجب دی (کوم چي لس اوښان کيږي)، لېکن که دا زخم سرايت وکړي او د هغه لاس فلج او شل سي، نو بيا پر قاطع د ټوله لاس ديت يعني نيم ديت واجب دی (کوم چي پنځوس اوښان کيږي) او د ګوتي چي کوم ديت دی (يعني لس اوښان) هغه د لاس په ديت کي داخليږي؛ ځکه هغه اقل دی او د لاس ديت اکثر دی، نو ځکه اقل په اکثر کي داخليږي يعني تداخل پکښي کيږي (نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم تداخل کيږي).

وقال زفر إلخ: په شروع کي موږ وويل چي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز دلته تداخل نه کيږي يعني اقل په اکثر کي نه داخليږي بلکي د هغه په نېز د هر جنايت جلا ارش او ضمان واجبيږي؛ د هغه دليل دا دی چي دا هريو جنايت د ما دون النفس جنايت دی چي په هغه کي تداخل نه کيږي، نو ځکه د هر يوه حکم به جلا وي او د هر جنايت به عليحده ضمان واجب وي.

لېکن زموږ له طرفه امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب دا دی چي صاحبه! دلته د ضمان سبب هم متحد دی او محل هم متحد دی، نو ځکه اقل به د اکثر به تابع کيږي او په هغه کي به داخليږي، او د اقل لپاره به جلا ارش او ضمان نه واجبيږي. (احسن الهدايه)

**يادونه**: صاحب د اشرف الهدايې وايي چي په "وأرش الموضحة يجب بفوات إلخ" کي له موضحه څخه اصطلاحي موضحه زخم مراد نه دی کنې د هغه دارش مدار خو پر وربېنتانو نه دی همدارنګه د وربېنتانو په راشنه کېدلو يا د زخم په ختمېدلو سره د هغه ارش نه ختميږي، بلکي دلته ضروري ده چي له موضحه څخه د هغه وربېنتانو ختمېدل مراد کړی سي کوم چي څه ختم سي او راشنه نه سي چي په هغه کي حکومة عدل واجب دی، او که راشنه سي نو هيڅ شی نه واجبيږي، له ديت څخه مراد د ټولو وربېنتانو ديت دی، اوس مسئله ښکاره سوه چي که د زخم په وجه څه وربېنتان ختم سي بيا د زخم د اثر په وجه ټوله وربېنتان ختم سي، نو په دې صورت کي ټوله ديت واجبيږي، او اول يعني د څه وربېنتانو د ختمېدلو په وجه چي کوم حکومة عدل واجب وو، څرنګه چي هغه اقل وو، نو هغه په اکثر (ديت) کي داخليږي.

او دا هم ممکنه ده چې له موضحه څخه هغه زخم مراد کړی سي کوم چې ما دون الموضحه (يعني تر موضحه کم زخم) وي چې په هغه کې محض پوستکی واوړي او څه وربښتان ختم سي او بيا د هغه داثر په وجه ټوله وربښتان ختم سي، نو څرنګه چې دلته په اول کې (يعني د څه وربښتانو په وجه) حکومة عدل واجب وو او په دويم کې ديت واجب سو. لهذا کله چې ديت ورکول سي نو حکومة عدل هم په هغه کې داخليږي. له دې تأيل څخه بغير مسئله نه حل کيږي. (اشرف الهدايه)

## که د زخم په وجه ديد او د اورېدلو او خبرو قوت ختم سي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ ذَهَبَ سَمْعُهُ أَوْ بَصَرُهُ أَوْ كَلَامُهُ فرمايي: او که [د موضحه زخم په وجه] د هغه د اورېدلو قوت يا د ليدلو قوت [ديد] يا د خبرو قوت ختم سي فَعَلَيْهِ أَرْشُ الْمُوضِحَةِ مَعَ الدِّيَةِ نو پر زخمي کونکي [شاج] باندې د ديت سره د موضحه زخم ارش هم [واجب] دی قَالُوْا: هٰذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ مشايخ رَحِمَهُمُ الله: چې دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ ❁ أَنَّ الشَّجَّةَ تَدْخُلُ فِيْ دِيَةِ السَّمْعِ وَالْكَلَامِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چې شجه [زخم] د سمع او کلام په ديت کې داخليږي وَلَا تَدْخُلُ فِيْ دِيَةِ الْبَصَرِ ليکن د بصر [ديد] په ديت کې نه داخليږي وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ كُلًّا مِنْهَا جِنَايَةٌ فِيْمَا دُوْنَ النَّفْسِ د اول روايت دليل دا دی چې له دوی څخه هر يو داسې جنايت دی کوم چې په ما دون النفس کې دی وَالْمَنْفَعَةُ مُخْتَصَّةٌ بِهِ او منفعت د هر يوه سره خاص دی فَأَشْبَهَ الْأَعْضَاءَ الْمُخْتَلِفَةَ نو دا د اعضاء مختلفه وو سره مشابه سوه بِخِلَافِ الْعَقْلِ په خلاف د عقل لِأَنَّ مَنْفَعَتَهُ عَائِدَةٌ إِلَىٰ جَمِيْعِ الْأَعْضَاءِ ځکه چې د هغه منفعت ټولو اعضاوو [اندامونو] ته راجع دی عَلٰى مَا بَيَّنَّا لکه څرنګه چې [مخکې] موږ بيان کړه وَوَجْهُ الثَّانِيْ أَنَّ السَّمْعَ وَالْكَلَامَ مُبْطَنٌ او د دويم روايت دليل دا دی چې سمع او کلام باطني [مخفي] شيان دي فَيُعْتَبَرُ بِالْعَقْلِ نو دوی به پر عقل قياسول کيږي وَالْبَصَرُ ظَاهِرٌ او بصر [ديد] يو ظاهري شی دی فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو ځکه هغه به د عقل سره نه لاحقول کيږي.

**اللغات:** ﴿سَمْع﴾ د اورېدلو قوت، ﴿بصر﴾ د ليدلو قوت، ديد، ﴿مُبْطن﴾ پټ او نا ښکاره، مخفي.

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأنه قول المتون، قال العلامة ابو البركات النسفي رَحِمَهُ الله: وإن ذهب سمعه أو بصره أو كلامه لا (أى لا يدخل ارش الموضحة). [القول الرجح:۲، ص:۳۵۱]

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زید مثلاً د خالد سر زخمي کړی او هغه زخم "شجه موضحه" وګرځېدی (یا په بله وینا دا چې د زخمي کېدلو په وجه د هغه د سر هډوکی ښکاره سوه)، اوس که د دې زخم سره د اوریدلو یا خبرو یا د لیدلو قوت (دید) هم ختم سي، نو تداخل به کیږي، که نه؟، د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول د عدمِ تداخل دی چې تداخل به نه کیږي، او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روایتونه دي: په یوه روایت کې هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی او په دویم روایت کي د هغه په نېز تفصیل دی، هغه دا چې له مذکوره دریو قوتونو څخه د قوت بصر د ختمیدلو په صورت کي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی خو د قوت سمع او کلام د ختمېدلو په صورت کي هغه د تداخل قائل دی.

اوس د دواړو روایتونو دلیل ته ګورئ!:

وجه الأول إلخ: د عدمِ تداخل والا روایت دلیل دا دی چې له دغه دریو ځواوو څخه په هر یوه کي چې کوم جنایت دی، دا جنایت فیما دون النفس دی او له دوی څخه د هر یوه منفعت یوازي د هغه سره خاص دی، یعني خبري کول یوازي د ژبي کار دی او اورېدل د قوت سمع کار دی او لیدل د سترګو کار دی، لهذا دوی د اعضاء مختلفه (مختلفو اندامونو) سره مشابه سوه او په اعضاء مختلفه وو کي تداخل نه کیږي، نو ځکه دلته به هم تداخل نه کیږي، بلکي د دوی د ختمېدلو دیت به جلا ورکول کیږي او د موضحه زخم ارش به جلا ورکول کیږي.

او د عقل ختمېدلو په صورت کي (کوم چې مخکي ذکر سو، هلته) یې د تداخل قول ځکه اختیار کړی وو چې د عقل منفعت د ټوله بدن وطرف ته راجع دی او دلته داسي نه ده، بلکي هر قوت په خپل مخصوصه دائره کي کار کوي.

وجه الثاني إلخ: د دویم روایت دلیل دا دی چې قوت سمع او قوت کلام د عقل په څېر باطني او مخفي شیان دي، نو ځکه دوی به پر عقل قیاسول کیږي او هغه حکم به پکښي لګول کیږي کوم چې د عقل زایلېدلو په صورت کي دی. او پاته سو دید (بصر) نو هغه یو ظاهري قوت دی، لهذا هغه به پر مخفي شي یعني پر عقل نه قیاسول کیږي او د عقل سره به نه لاحقول کیږي بلکي په هغه کي به عدمِ تداخل اختیارول کیږي.

**بالواسطه د سترګو د ختمېدلو حکم او تفصیل**

قَالَ: وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ فرمایي: او په جامع صغیر کي دي وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا مُوضِحَةً او څوک چې په یو سړي کي موضحه زخم جوړ کړی [یا په بله وینا دا چې په موضحه زخم سره یې زخمي کړي] فَذَهَبَتْ عَيْنَاهُ نو د هغه سړي دواړه سترګي ختمي سي فَلَا قِصَاصَ فِي ذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام

صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې کي قصاص نسته قَالُوْا: وَيَنْبَغِيْ أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِيهِمَا مشايخ رَحِمَهُمُالله فرمايي: پکار دا ده چي په دې دواړو کي ديت واجب سي وَقَالَا [1]: فِي الْمُوْضِحَةِ الْقِصَاصُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په موضحه کي قصاص [واجب] دى قَالُوْا: وَيَنْبَغِيْ أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِي الْعَيْنَيْنِ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: پکار دا ده چي په دواړو سترګو کي ديت واجب سي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که زيد مثلاً د خالد سر ور زخمي وکړی چي د هغه په وجه دا زخم موضحه وګرځېدی او د هغه په اثر سره د خالد (مشجوج) د دواړو سترګو ديد هم ختم سو، نو په دې صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر زيد (شاج) باندي د موضحه زخم ارش او د دواړو سترګو ديت واجب دی. همدا د "وينبغي أن تجب الدية فيهما" په جمله سره بيان سوي دي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په موضحه زخم کي قصاص او په سترګو کي ديت واجب دی. همدا د "وينبغي أن تجب الدية فهما" په جمله سره بيان سوي دي، اصل مسئله همدا ده.

لنډه دا چي امام قدوري رَحِمَهُ الله د جامع صغير عبارت خو نقل کړی دی لېکن په پوره توګه يې نه دی نقل کړی، همدا وجه ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په قول کي هغه نه د ارش او ديت واجبېدلو عبارت درج کړی دی او نه يې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په قول کي په سترګو کي د ديت واجبېدلو عبارت ذکر کړی دی، اصل مسئله همداسي ده کوم چي ذکر سوه، او پاته سوه د فريقينو دلائل نو هغه به ان شاء الله څه وروسته ذکر سي. (احسن الهدايه)

## له پورتني بند څخه د ګوتي پرېکېدلو حکم

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَإِنْ قَطَعَ إِصْبَعَ رَجُلٍ مِنَ الْمِفْصَلِ الْأَعْلَى فرمايي: او که د يو سړي ګوتي له پورتني بند څخه پرېکړي فَشُلَّ مَا بَقِيَ مِنَ الْإِصْبَعِ أَوِ الْيَدِ كُلِّهَا بيا پاته ګوته يا ټوله لاس شل سي لَا قِصَاصَ عَلَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ نو پر هغه [قاطع] له دې څخه د هيڅ شي قصاص نسته وَيَنْبَغِيْ أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِي الْمِفْصَلِ الْأَعْلَى او پکار دا ده چي په پورتني بند کي ديت واجب سي وَفِيمَا بَقِيَ حُكُوْمَةُ عَدْلٍ او په پاته حصه کي حکومة عدل واجب سي وَكَذٰلِكَ لَوْ كَسَرَ سِنَّ رَجُلٍ او

---

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵۲]

همدارنګه کله چي د يو سړي غاښ ور مات کړي فَاسْوَدَّ مَا بَقِيَ بيا پاته غاښ تور سي وَلَمْ يَحْكِ خِلَافًا او امام محمد رَحِمَهُ الله [په دې مسئله کي] اختلاف نه دی نقل کړی وَيَنْبَغِي أَنْ تَجِبَ الدِّيَةُ فِي السِّنِّ كُلِّهِ او پکار دا ده چي په ټوله غاښ کي ديت واجب سي.

**اللغات**: ﴿مفصل﴾ بند، ﴿لم يحك﴾ د ضرب له بابه د جحد معلوم صيغه ده: حکايت کول، نقل کول.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی چي که زيد د خالد ګوته پر اول پورتني بند پرېکړي او د دې قطع په وجه هغه ګوته ټوله شله او ناکاره سي يا ټوله لاس شل سي، نو په دې صورت کي پر قاطع (زيد) قصاص نسته، خو د ګوتي په اول پورتني بند کي ديت واجب دی (يعني د ديت د نيم عُشر [پنځو اونښانو دريمه حصه) او د ګوتي او لاس مابقي حصه کوم چي شله سوې ده په هغې کي حکومة عدل واجب دی.

همدارنګه که څوک د بل چا د غاښ بعضي حصه ماته کړي چي د هغه په وجه ټوله غاښ تور او خراب سي، نو په دې صورت کي هم قصاص واجب نه دی، خو د ټوله غاښ ديت واجب دی. دا مسئله د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله تر مينځ متفق عليه ده، په همدې وجه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله دا وضاحت کړی دی چي "ولم يحك خلافًا". (احسن الهدايه)

## په غيرِ مشروعُ القصاص زخمونو کي د قصاص د مطالبې حکم

وَلَوْ قَالَ: أَقْطَعُ الْمِفْصَلَ وَأَتْرُكُ مَا يَبِسَ او که [مجني عليه (مظلوم)] ووايي: چي زه صرف بند پرېکوم او کومه حصه چي وچه سوې ده هغه پرېږدم [قصاص يې نه اخلم] أَوْ أَكْسِرُ الْقَدْرَ الْمَكْسُورَ وَأَتْرُكُ الْبَاقِيَ يا زه [د غاښ] مات کړی سوی مقدار ماتوم او پاته مقدار پرېږدم لَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه [مجني عليه] ته د دې حق نسته لِأَنَّ الْفِعْلَ فِي نَفْسِهِ مَا وَقَعَ مُوْجِبًا لِلْقَوَدِ ځکه دا فعل بذات خود د قصاص واجبونکی نه دی واقع سوی فَصَارَ كَمَا لَوْ شَجَّهُ مُنَقِّلَةً نو داسي سو لکه په هغه کي چي منقله زخم جوړ کړي فَقَالَ: أَشُجُّهُ مُوضِحَةً وأَتْرُكُ الزِّيَادَةَ نو هغه [مجني عليه] ووايي: چي زه په هغه کي موضحه زخم جوړوم او زياتوب [زائد مقدار] پرېږدم.

**اللغات**: ﴿يَبِس﴾ د سمع د باب ماضي ده: وچېدل، ناکاره کېدل، ﴿أكسر﴾ د ضرب له بابه د واحد متکلم مضارع صيغه ده: ماتول، ﴿القَوَد﴾ قصاص.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې په کوم زخم کې قصاص مشروع نه وي، که مجنی علیه (یعنې پر چا چې د داسې زخم جنایت شوی دی، که هغه) په داسې زخم کې له جارح څخه د قصاص مطالبه وکړي چې جارح دې هم داسې زخمي کړی سي، نو د هغه دا مطالبه صحیح نه ده، مثلاً که زید د خالد ګوته پر پورتنې بند پرېکړه او بیا د دې زخم په وجه د خالد ما بقي ګوته یا ټوله لاس شل او فلج سو، نو خالد (مجني علیه) وویل چې ما ته دې اجازه راکول سوې چې زه هم د زید (جارح) ګوته پر پورتنې بند پرېکړم او ما بقي مقدار زه معاف کوم (وربخښم)، نو خالد ته د دې حق نسته. همدارنګه که زید د خالد څه غاښ مات کړی چې د هغه په وجه پاته غاښ تور او خراب سو، نو خالد وویل چې زه هم د زید هغومره غاښ ماتوم څومره چې هغه مات کړی دی او نور چې زما غاښ څومره تور سوی دی هغه معاف کوم، نو دلته هم خالد ته د دې حق نسته.

د دې مثال "شجه منقله" ده چې په هغه کې قصاص مشروع او جائز نه دی، نو که زید مثلاً د خالد سر ورمات کړی چې د هغه په وجه زخم شجه منقله وګرځېدی (یعنې تر ماتېدلو وروسته د سر هډوکی نقل او بې ځایه هم سو)، نو خالد وویل چې ما ته دې اجازه راکول سي چې زه فقط د زید سر دومره مات کړم چې هغه "شجه موضحه" وګرځي (یعنې چې صرف هډوکی یې ښکاره سي او بې ځایه نه سي، چې په هغه کې قصاص جائز دی) او زائد مقدام معاف کوم، نو خالد ته د دې حق نسته او هغه ته به اجازه نه ورکول کیږي؛ ځکه په منقله زخم کې قصاص جائز نه دی او هغه له شروع څخه د قصاص مُوجِب نه دی، نو وروسته به څنګه د قصاص اجازه ورکول سي!، لهذا وروسته به هم هغه د قصاص مُوجِب نه ګرځول کیږي.

**د فریقینو دلائل**

لَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ: أَنَّ الْفِعْلَ فِيْ مَحَلَّيْنِ په اختلافي مسئله کې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې فعل په دوو ځایونو کې دی فَيَكُوْنُ جِنَايَتَيْنِ مُبْتَدَأَتَيْنِ نو ځکه دا فعل به دوه جلا، جلا جنایتونه وي فَالشُّبْهَةُ فِيْ إِحْدَاهُمَا لَا تَتَعَدّٰى إِلَى الْأُخْرٰى نو له دوی څخه د یوه شبهه به بل یوه ته نه متعدي کیږي كَمَنْ رَمٰى إِلٰى رَجُلٍ عَمَدًا لکه څوک چې یو سړي ته غشی عمداً وغورځوي [یعنې سړي په غشي سره عمداً وویلي] فَأَصَابَهُ وَنَفَذَ مِنْهُ إِلٰى غَيْرِهِ فَقَتَلَهُ نو غشی پر هغه ولګیږي او له هغه څخه د بل سړي وطرف ته ووځي نو هغه هم قتل کړي يَجِبُ الْقَوَدُ فِي الْأَوَّلِ نو په اول کې قصاص واجب دی [او د دویم سړي په قتل کې دیت واجب دی] وَلَهُ: أَنَّ الْجِرَاحَةَ الْأُوْلٰى سَارِيَةٌ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې اول زخم ساري [سرایت کونکی] دی وَالْجَزَاءُ بِالْمِثْلِ او جزاء په مثل سره وي

وَلَيْسَ فِي وُسْعِهِ السَّارِيُ او د هغه [مجروح] په وس کي ساري زخم جوړول نسته [يعني زخم ساري کول او نه کول د انسان د وس خبره نه ده] فَيَجِبُ الْمَالُ نو ځکه مال به واجبيږي وَلِأَنَّ الْفِعْلَ وَاحِدٌ حَقِيْقَةً او ځکه چي په حقيقت کي فعل يو دی وَهُوَ الْحَرَكَةُ الْقَائِمَةُ او هغه [فعل] هغه حرکت دی کوم چي [د زخمي کولو په وخت کي] قائم وو وَكَذَا الْمَحَلُّ مُتَّحِدٌ مِنْ وَجْهٍ او همدارنګه محل هم په يوه اعتبار سره متحد دی لِاتِّصَالِ أَحَدِهِمَا بِالْآخَرِ ځکه يو محل د بل محل سره متصل دی فَأَوْرَثَتْ نِهَايَتُهُ شُبْهَةَ الْخَطَإِ فِي الْبِدَايَةِ نو د فعل آخر په شروع کي د خطاء شبهه پيدا کړه بِخِلَافِ النَّفْسَيْنِ په خلاف د دوو نفسونو لِأَنَّ أَحَدَهُمَا لَيْسَ مِنْ سِرَايَةِ صَاحِبِهِ ځکه له دوی څخه يو د خپل ملګري د سرايت کولو په وجه نه دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا وَقَعَ السِّكِّيْنُ عَلَى الْإِصْبَعِ او په خلاف د هغه صورت کله چي چاړه پر ګوته ولوېږي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِعْلًا مَقْصُوْدًا ځکه هغه داسي فعل نه دی کوم چي مقصود وي [يعني کوم چي حاصل او ثابت سوی وي د اول فعل په اثر سره].

**اللغات:** ﴿سارية﴾ د ضرب له بابه د مؤنث فاعل صيغه ده: سرايت کونکی، نفوذ کونکی.

**تشريح:** څه مخکي اختلافي مسئله ذکر سوه چي د هغې عبارت دا وو "ومن شج رجلا موضحة فذهب عيناه فلا قصاص في ذلك عند أبي حنيفة... وقالا في الموضحة القصاص" يعني په هغه مسئله کي د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نيز قصاص واجب نه دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا اللهُ په نيز په موضحه زخم کي قصاص او په سترګو کي ديت واجب دی، هلته د دې وضاحت وسو، دلته د هغه مسئلې په هکله د طرفينو رَحِمَهُمَا اللهُ دليل بيانوي.

حاصل د دليل دا دی چي په دې مسئله کي د شاج (زيد) په فعل (زخمي کولو) سره دوه ځايونه متأثر سوي دي: يو سر او بل دواړي سترګي، او د محل تعدّد د جنايت تعدّد ثابتوي (يا په وينا دا چي د محل او ځای دوه والی د جنايت دوه والی ثابتوي)، نو ځکه په دې مسئله کي به دوې سزاوي واجب وي يو قصاص او بل ديت.

**سوال:** کله چي هغه (زيد) د سترګو د ختمولو اراده کړې نه ده، نو په دې سره شبهه پيدا سوه، او په شبهې سره قصاص ساقطيږي. لهذا په دې مسئله کي به هم قصاص ساقطيږي او نه به واجبول کيږي؟

**جواب:** موږ په سترګو کي قصاص نه واجبوو، بلکي صرف په موضحه زخم کي قصاص واجبوو چي په هغه کي هيڅ شبهه نسته، او د سترګو ختمولو د جنايت شبهه د موضحه زخم وطرف ته نه متعدي کيږي او په هغه کي له قصاص څخه مانع نه ګرځي.

د دې مثال بعينه همداسې دی چې زيد مثلاً خالد په غشي (يا مرمۍ) سره وويشتی او غشی د خالد تر بدن ووتی او پر حامد هم ولګېدی او هغه يې هم قتل کړي. نو په دې صورت کې پر زيد (قاتل) د خالد لپاره قصاص واجب دی او د حامد لپاره ديت واجب دی. ځکه چې د حامد په قتل کې شبهه ده.

خلاصه د کلام دا چې د حامد د قتل شبهه د خالد و قتل ته نه متعدي کيږي يا په بله ينا دا چې دا شبهه پر زيد له قصاص واجبېدلو څخه مانع نه ده، نو همداسې په مذکوره مسئله کې هم چې د ستر ګو ديد ختم سوی دی په هغه کې که څه هم شبهه ده، لېکن دا شبهه په موضحه زخم کې له قصاص واجبېدلو څخه مانع نه ده.

ولـه أن الجراحة إلخ: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی، حاصل يې دا دی چې د مذکوره مسئلې له دوا ړو صورتونو څخه نه په اول صورت کې قصاص واجب دی او نه په دويم صورت کې، بلکې په دويم صورت کې ديت او په اول صورت کې ارش واجب دی؛ ځکه قصاص د مساوات تقاضا کوي او مساوات پکښې ضروري دی او چيري چې مساوات ناممکن وي، هلته قصاص نه لازميږي. او په مذکوره مسئله کې مساوات معدوم دی؛ ځکه په دې مسئله کې اول زخم ساري دی، اوس که مو ږ قصاص واجب کړو نو دا ضروري ده چې دويم زخم به هم ساري کول کيږي، حالانکې د زخم ساري کول او نه ساري کول د انسان په وس کې نه دي بلکې په هغه کې څه کمي وزياتوب خامخا کيږي، او د کمي و زياتوب په وجه مساوات فوتيږي. لهذا دلته قصاص متعذر سو، نو ځکه مال (ديت) به واجبيږي.

ولأن الفعل إلخ: دويم دليل دا دی چې له شاج او قاطع (زيد) څخه صرف يو فعل صادر سوی دی او د هغه فعل يو او متحد دی، او څرنګه چې دوا ړو محلونو (سر او ستر ګو) تر مينځ د پر اتصال او ربط موجود دی، نو په دې حواله سره مل هم متحق دی، لهذا فعل او محل دواړه يو سول دی، او دلته د فعل او محل په آخر کې شبهه د خطا ده، نو د آخر شبهه د فعل او محل په اول کې هم شبهه د خطاء پيدا کوي، او د شبهې په وجه قصاص ساقطيږي، نو ځکه مو ږ (اما صاحب رَحِمَهُ الله) هم دلته قصاص ساقط کړی او ختم کړی دی.

بخلاف النفسين إلخ: صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذکوره مسئله په يوه غشي سره د دوو کسانو د قتل کېدلو پر صورت قياس کړې وه، دلته د هغه جواب ورکوي چې دا قياس صحيح نه دی؛ ځکه په مقيس (مذکوره مسئله) کې محل يو دی او خبره د زخم د سرايت په هکله ده، حال دا چې په مقيس عليه صورت کې محل هم مُتعدّد دی او خبره هم د غشي لګېدلو په هکله ده، نه د اول کس د زخم د سرايت کول په هکله. ځکه په دې صورت د يوه کس مر کېد د بل د سرايت په وجه نه دي بلکې د غشي لګېدلو په وجه دي، لهذا په مقيس او مقيس عليه کې د عدمِ مطابقت په وجه دا قياس صحيح نه دی.

وبخلاف ما إذا إلخ: فرمايي چې مذکوره مسئله پر دغه صورت هم قياسول صحيح نه دي چې که يو څوک مثلاً زيد عمداً د خالد ګوته پرېکړي، بيا په غيرِ اختياري توګه د زيد (قاطع) د لاس څخه چاره ايله سي او د خالد پر لاس ولګيږي چې د هغه په وجه د خالد د لاس بله ګوته هم پرې سي، نو په دې صورت کې په اوله

ګوته کي قصاص واجبيږي، نه په دويمه ګوته کي، او داسي نه کېدلای چي په دويمه ګوته کي د قصاص نه واجبېدلو په وجه د اولي ګوتي قصاص هم ساقط کړی سي؛ ځکه دلته دويمه ګوته هم عليحده په چاړه سره پرېکړل سوې ده او هغه د اولي ګوتي د زخم تتمه نه ده. او نه هغه د اولي ګوتي د زخم د سرايت کولو په وجه پرې سوې ده، نو ځکه پر دې صورت هم قياس کول صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

## بالواسطه د ګوتي د شلېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ قَطَعَ إِصْبَعًا فرمايي: او که يوه ګوته ور پرېکړي فَشُلَّتْ إِلَى جَنْبِهَا أُخْرَى بيا د هغه ګوتي څنګ ته بله ګوته شله سي فَلَا قِصَاصَ فِي شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله له دې [دواړو] څخه په هيڅ يوه کي قصاص نسته وَقَالَا هُمَا وَزُفَرُ وَالْحَسَنُ او صاحبين او امام زفر او حسن بن زياد رَحِمَهُمُ الله فرمايي يُقْتَصُّ مِنَ الْأُولَى وَفِي الثَّانِيَةِ أَرْشُهَا چي د اولي ګوتي قصاص به اخيستل کيږي او په دويمه ګوته کي د هغې ارش [واجب] دی وَالْوَجْهُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ قَدْ ذَكَرْنَاهُ او د دواړو طرفونو دليل موږ ذکر کړی دی.

**اللغات:** ﴿شلّت﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: شلېدل (شل کېدل)، فلج کېدل، يعني وچېدل او له حرکته وتل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د بل چا ګوته پرېکړي او د پرېکولو د اثر په وجه د هغې ګوتي څنګ والا ګوته ناکاره او شله سي، نو په دې صورت کي هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز قصاص واجب نه دی، لېکن د صاحبينو، امام زفر او حسن بن زياد رَحِمَهُمُ الله په نيز قصاص واجب دی. په دې مسئله کي د فريقينو دليلونه هاغه دي کوم چي په مخکني مسئله کي ذکر سول.

## په شاتني مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دويم روايت

وَرَوَى ابْنُ سِمَاعَةَ عَنْ مُحَمَّدٍ فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُولَى او ابن سماعه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په اوله مسئله کي روايت کړی دی وَهُوَ مَا إِذَا شُجَّ مُوضِحَةً فَذَهَبَ بَصَرُهُ او هغه [اوله مسئله] دا ده چي په سري کي موضحه زخم جوړ کړی سي نو د هغه [د دواړو سترګو] ديد ختم سي أَنَّهُ يَجِبُ الْقِصَاصُ فِيهِمَا چي په دې دواړو [موضحه او سترګو] قصاص واجبيږي لِأَنَّ الْحَاصِلَ بِالسِّرَايَةِ مُبَاشَرَةٌ كَمَا فِي النَّفْسِ ځکه د سرايت په وجه چي کوم شي حاصل سوی دی هغه مباشرة [ارتکاب] دی، لکه په

نفس کي وَالْبَصَرُ يَجْرِيْ فِيْهِ الْقِصَاصُ او [د سترګو] په دید کي قصاص جاري کيږي بِخِلَافِ الْخِلَافِيَّةِ الْأَخِيْرَةِ په خلاف د آخري اختلافي مسئلې لِأَنَّ الشَّلَلَ لَا قِصَاصَ فِيْهِ ځکه چي په شلېدلو کي قصاص نشته فَصَارَ الْأَصْلُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ عَلٰى هٰذِهِ الرِّوَايَةِ نو د دغه روايت مطابق د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز قاعده دا سوه أَنَّ سِرَايَةَ مَا يَجِبُ فِيْهِ الْقِصَاصُ إِلٰى مَا يُمْكِنُ فِيْهِ الْقِصَاصُ يُوْجِبُ الِاقْتِصَاصَ چي د داسي زخم سرايت چي په هغه کي قصاص واجب وي [د هغه سرايت] د داسي زخم وطرف ته چي په هغه کي قصاص ممکن نه وي قصاص اخيستل واجبوي كَمَا لَوْ آلَتْ إِلَى النَّفْسِ وَقَدْ وَقَعَ الْأَوَّلُ ظُلْمًا لکه زخم چي د نفس وطرف ته سرايت وکړي او اول زخم ظلماً [او عمداً] واقع سوی وي وَوَجْهُ الْمَشْهُوْرِ أَنَّ ذَهَابَ الْبَصَرِ بِطَرِيْقِ التَّسْبِيْبِ او د مشهور قول دليل دا دی چي [د سترګو] د دید ختمېدل د تسبيب په توګه سوي دي أَلَا يَرٰى أَنَّ الشَّجَّةَ بَقِيَتْ مُوْجِبَةً فِيْ نَفْسِهَا آيا هغه نه ګوري چي شجّه بذاتِ خود د قصاص واجبونکې ده وَلَا قَوَدَ فِي التَّسْبِيْبِ او په تسبيب کي قصاص نشته بِخِلَافِ السِّرَايَةِ إِلَى النَّفْسِ په خلاف د نفس وطرف ته [د زخم] د سرايت کولو لِأَنَّهُ لَا تَبْقَى الْأُوْلٰى ځکه اول زخم باقي نه پاتيږي فَانْقَلَبَتِ الثَّانِيَةُ مُبَاشَرَةً نو دويم زخم به په مباشرة [ارتکاب (قتلِ نفس)] سره بدل سي.

**اللغات:** ﴿اقتصاص﴾ د افتعال د باب مصدر دی: قصاص اخيستل. ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړېدل (سبب ګرځېدل). ﴿مباشره﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: کار په خپله کول، ارتکاب. ﴿انقلبت﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: اوښتل، بدلېدل.

**تشريح:** څه مخکي يوه اختلافي مسئله تېره سوه چي په هغه کي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په "شجّه موضحه" کي قصاص او په سترګو کي ديت واجب کړی دی، په هغه مسئله کي امام محمد رَحِمَهُ الله د مشهور قول مطابق د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی.

خو محمد بن سماعه رَحِمَهُ الله په هغه مذکوره مسئله کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه دا روايت هم نقل کړی دی چي په دواړو کي قصاص واجبيږي يعني په شجه موضحه کي هم او په سترګو کي هم (د دواړو قصاص به اخيستل کيږي)؛ ځکه انسان بعضي کارونه په خپل قصد او اختيار سره کوي او

بعضي کارونه هغه د تولید په توګه کوي (چې په هغه کې د انسان قصد او اختیار شامل نه وي) او داسې کارونه هم بعضي وخت د قصدي او اختیاري کار درجه حاصله کړي (یعني لکه انسان چې هغه خپله او په خپل قصد سره کړي وي)، نو په مذکوره مسئله کې هم داسې سوي دي، ځکه دلته هم د سترګو دید ختمېدل په قصد او اراده سره نه دي سوي، بلکې دېد ختمېدل بغیر له ارادې د زخم د سرایت کولو په وجه سوي دي، لهذا دا به د مباشرت فعل او قصد درجه حاصله کړي (یعني لکه هغه چې خپله علیحده د سترګو دید ورختم کړی وي)، او تاسې ته مخکې معلومه سوه چې که څوک علیحده د یو چا د سترګي دید ورختم کړي، نو پر هغه قصاص واجبېږي (چې قصاصاً به د هغه د سترګي دید هم ورختمول کیږي)، نو ځکه دلته به هم قصاص واجبېږي. د دې مثال دا دی لکه زید چې د خالد لاس پرېکړي بیا د زخم د سرایت په وجه خالد مړ سي، نو دلته هم قتل نفس مباشرتاً منل کیږي (یعني لکه زید چې خپله قصداً هغه قتل کړی وي) او قصاص واجبېږي، نو همداسې به په مذکوره مسئله کې هم د سترګو د دید ختمېدل مباشرتاً ګرځول کیږي او قصاص به واجبول کیږي.

بخلاف الخلافية الأخيرة إلخ: یعني کومه اختلافي مسئله چې له پورتني عبارت څخه مخکې ذکر سوې ده چې که د یوې ګوتي د پرېکولو په وجه څنګ والا ګوته شله او ناکاره سي، نو په هغه کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د دې روایت مطابق هم قصاص نسته، بلکې صرف ارش واجب دی؛ ځکه چې دلته د سرایت په وجه ګوته شله سوې ده او په شلېدلو کې قصاص نسته، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله دلته دیت واجب کړی دی.

فصار الأصل إلخ: صاحب د هدایې فرمایي چې د ابن سماعه رَحِمَهُ الله د روایت مطابق د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دا اُصول او قاعده مقرره سوه چې کله داسې زخم چې په هغه کې قصاص واجب وي سرایت وکړي و داسې زخم ته چې په هغه کې قصاص اخیستل ممکن وي (یعني قصاص یې اخیستل کېدلای سي)، نو په هغه کې قصاص واجبېږي، مثلاً که زید عمداً د خالد ګوته پرېکړي او د زخم د سرایت کولو په وجه خالد مړ سي، نو قصاص واجبېږي؛ ځکه عمداً قطعُ الید (قصداً لاس پرېکول) د قصاص مُوجب ده او د کوم شي وطرف ته چې یې سرایت کړی دی یعني نفس، د هغه قصاص اخیستل ممکن دي (قصاص یې اخیستل کېدلای سي)، نو ځکه دلته قصاص واجبېږي.

ووجه المشهور إلخ: تر دې ځایه چې کوم دلیل بیان سوی دی هغه د ابن سماعه رَحِمَهُ الله د روایت سره متعلق وی، اوس له دې ځایه د امام محمد رَحِمَهُ الله د مشهور قول او روایت دلیل بیانوي چې د هغه حاصل دا دی چې د بصر (دید) ختمېدل دلته د مباشرت په توګه نه دي بلکې د تسبیب په توګه دي

يعني د "شجه موضحه" په سبب او اثر سره د سترګو ديد ختم سوی دی، او څرنګه چي په "شجه موضحه" کي قصاص واجب دی، نو په ذهاب البصر کي به قصاص نه واجبيږي بلکي ديت به واجبيږي؛ ځکه په ما دون النفس کي پر سبب باندي قصاص نه واجبيږي، نو ځکه دلته به هم قصاص نه واجبيږي.

**بخلاف السراية إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که زيد مثلاً د خالد سر مات او ور زخمي کړی او د زخم د سرايت په وجه خالد مړ سو. نو که څه هم په دې صورت کي هم د قتلِ نفس يعني د خالد د مړ کېدلو سبب شجّه (زخم) دی خو بيا هم دلته ځکه قصاص واجب کړی سوی دی چي دلته نفس ته د زخم د سرايت کېدلو په وجه شجه معدوم شمېرل سوی دی او قتلِ نفس د مباشرت په توګه ګرځول سوی دی چي ګواکي زيد (له زخمي کولو څخه بغير) هغه قتل کړی دی، نو ځکه په دې صورت کي موږ قصاص واجب کړی دی. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## که د لړ غاښ ماتولو په وجه ټوله غاښ ولوېږي (حکم او تفصيل)

| |
|---|
| قَالَ: وَلَوْ كَسَرَ بَعْضَ السِّنِّ فرمايي: او که د غاښ څه حصه ورماته کړي فَسَقَطَتْ بيا ټوله غاښ ايله سي فَلَا قِصَاصَ إِلَّا عَلَى رِوَايَةِ ابْنِ سِمَاعَةَ نو قصاص نسته مګر د ابن سماعه رَحِمَهُ الله د روايت مطابق وَلَوْ أَوْضَحَهُ مُوْضِحَتَيْنِ او که يو څوک په بل چا کي دوه موضحه زخمونه جوړ کړي فَتَآكَلَتَا بيا هغه دواړه زخمونه سره وخوړل سي [يعني سره ګډ سي او يو زخم وګرځي] فَهُوَ عَلَى الرِّوَايَتَيْنِ هَاتَيْنِ نو دا هم پر هاغه دوو روايتونو ده |

**اللغات:** ﴿أوضح﴾ د افعال د باب ماضي ده: دومره زخمي کول چي هډوکی يې ښکاره سي، موضحه زخم پکښي جوړول. ﴿تـآکلا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو بل سره خوړل، مطلب يې دا دی چي دواړه زخمونه سره ګډ سي او يو زخم وګرځي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د بل چا د غاښ څه حصه ماته کړي او بيا د هغه د اثر په وجه ټوله غوښ ولوېږي، نو په دې صورت کي هم قصاص نه واجبيږي، خو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د ابن سماعه رَحِمَهُ الله د روايت مطابق قصاص واجبيږي.

او که څوک په بل چا کي دوه موضحه زخمونه جوړ کړي او بيا هغه دواړه سره ګډ سي او يو زخم ځني جوړ سي، نو دا مسئله هم پر داغه دوو روايتونو مشتمله ده يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله د مشهور روايت مطابق دلته هم قصاص نه واجبيږي، او د ابن سماعه رَحِمَهُ الله د روايت مطابق قصاص واجبيږي. (اشرف الهدايه)

## د نوي غاښ د راپورته کېدلو په صورت کې د ديت حکم

قَالَ: وَلَوْقَلَعَ سِنَّ رَجُلٍ فرمايي: او که څوک د يو سړي غاښ وباسي فَنَبَتَتْ مَكَانَهَا أُخْرٰى بيا د هغه غاښ پر ځاى بل غاښ را شين سي [راپورته سي] سَقَطَ الْأَرْشُ فِي قَوْلِ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په قول کي ارش ساقطيږي وَقَالَا: عَلَيْهِ الْأَرْشُ كَامِلًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه کامل ارش [واجب] دی لِأَنَّ الْجِنَايَةَ قَدْتَحَقَّقَتْ ځکه جنايت موجود سوی دی وَالْحَادِثُ نِعْمَةٌ مُبْتَدَأَةٌ مِنَ اللهِ تَعَالٰى او پيدا کېدونکی [راپورته سوی غاښ] د الله له طرفه نوی نعمت دی وَلَهُ: أَنَّ الْجِنَايَةَ انْعَدَمَتْ مَعْنًى د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي جنايت د معنیٰ په اعتبار سره معدوم سوی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا قَلَعَ سِنَّ صَبِيٍّ فَنَبَتَتْ نو دا داسې سو لکه څوک چي د يو بچي غاښ وکاږي بيا هغه راشين سي لَا يَجِبُ الْأَرْشُ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاتفاق ارش نه واجبيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَفُتْ عَلَيْهِ مَنْفَعَةٌ وَلَا زِينَةٌ ځکه [په دې سره] نه پر بچي منفعت فوتيږي او نه ښکلا وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ تَجِبُ حُكُومَةُ عَدْلٍ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي حکومة عدل واجبيږي لِمَكَانِ الْأَلَمِ الْحَاصِلِ د هغه درد په وجه کوم چي [بچي ته] حاصل سوی دی.

**اللغات:** ﴿قلع﴾ د فتح د باب ماضي ده: کښل (کاږل)، وړباسل، ﴿أرش﴾ جرمانه او تاوان، ديت. يعني هغه ديت او مال کوم چي په ما دون النفس جنايت کي لازميږي، ﴿تحققت﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: موجودېدل، ثابتېدل، ﴿حادث﴾ د نصر د باب فاعل دی: وروسته پيدا کېدونکی. ﴿مبتدأة﴾ د افتعال د باب مفعول دی: ابتدائي، جديد، ﴿انعدمت﴾ د انفعال د باب ماضي ده: معدوميم کېدل، نېستېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د بل چا غاښ ور وباسي، بيا څه وخت وروسته د کښل سوي غاښ پر ځای بل غاښ را شين سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر قالع (غاښ باسونکي) ارش وغيره نه واجبيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز کامل ارش واجبيږي چي د هغه مقدار لس اوښان دي، ځکه د قالع له طرفه خو جنايت ثابت سوی او موجود سوی دی، نو ځکه پر هغه به کامل ارش واجب وي او د مقلوع غاښ پر ځای چي کوم نوی غاښ راپورته سوی دی هغه به د الله له طرفه نعمت جديده گڼل کيږي ځکه عموماً د لويو خلکو غاښ چي وخېږي نو بيا نه راشين کيږي.

---

القول الراجح: قول أبي حنيفه رَحِمَهُ الله، قال العلامة ابراهيم الحلبي رَحِمَهُ الله:... سقط أرشها خلافًا لهما انظر [القول الراجح، ج:٢، ص:٣٥٣]

دامام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې کله د پخواني غاښ پر ځای بل غاښ راشين سو، نو د قالع جنايت د معنیٰ په اعتبار سره ختم او معدوم سو او د جنايت په ختمېدلو سره ارش ساقطېږي، نو ځکه موږ دلته ارش ساقط کړی دی، د دې مثال داسې دی لکه څوک چې د کوچنۍ بچي غاښ وکاږي او بيا د هغه پر ځای نوی غاښ راشين سي، نو څرنګه چې په دې سره نه د بچي څه منفعت زائل سوی دی او نه يې څه جمال ختم سوی دی، نو ځکه په دې صورت کې بالاتفاق ارش واجب نه دی، لېکن څرنګه چې د غاښ په کښلو سره بچي ته تکليف ورسول سو، نو ځکه د دغه تکليف د تلافۍ لپاره پر قالع حکومة عدل واجبيږي، لنده دا چې څرنګه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د بچي د غاښ په صورت کې ارش واجب نه دی، همداسې په مذکوره مسئله کې هم نه واجبېدل پکار دي.

وعن أبي يوسف إلخ: فرمايي په دې سلسله کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا هم نقل سوی دی چې پر قالع حکومة عدل واجبيږي؛ ځکه د غاښ کښلو په وجه هغه ته درد او تکليف رسېدلی دی. (احسن الهدايه)

## د کښل سوي غاښ د اېښوولو (جوړولو) حکم

وَلَوْ قَلَعَ سِنَّ غَيْرِهِ او که څوک د بل چا غاښ وباسي فَرَدَّهَا صَاحِبُهَا إِلَى مَكَانِهَا بيا د غاښ والا هغه غاښ خپل ځای ته واپس کړي [په خپل ځای کې يې پېوند کړي] وَنَبَتَ عَلَيْهِ اللَّحْمُ او پر هغه غوښه راشنه سي فَعَلَى الْقَالِعِ الْأَرْشُ بِكَمَالِهِ نو پر باسونکي [کښونکي] باندې کامل ارش [واجب] دی لِأَنَّ هٰذَا مِمَّا لَا يُعْتَدُّ بِهِ ځکه دغه راشنه کېدلو لره هيڅ اعتبار نسته إِذِ الْعُرُوقُ لَا تَعُودُ ځکه رګونه نه راګرځي [يعني هغه بيرته نه جوړيږي] وَكَذَا إِذَا قَطَعَ أُذُنَهُ او همدارنګه که غوږ ورپرېکړي فَأَلْصَقَهَا بيا غوږ والا هغه ومښلوي فَالْتَحَمَتْ او پر هغه غوښه راسي [نو په دې صورت کې هم کامل ارش واجبيږي] لِأَنَّهَا لَا تَعُودُ إِلَى مَا كَانَتْ عَلَيْهِ ځکه دا غوږ خپل هغه حالت نه راګرځي پر کوم حالت چې هغه [مخکې] وو.

**اللغات:** ﴿قالع﴾ د فتح د باب فاعل دی: (د غاښ) کښونکی، باسونکی، ﴿لا يعتدّ﴾ د افتعال له بابه د نفي صيغه ده، د دې باب په صله کې چې باء (به) راسي نو معنیٰ يې ده: اعتبار والا کېدل (معتبر کېدل)، ارزښتمن کېدل، ﴿ألصقها﴾ د افعال د باب ماضي ده: مښلول (نښلول)، لګول، ﴿التحمت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: له غوښې څخه ډکېدل، غوښه پرې راتلل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید د خالد غاښ ور وباسي، بیا خالد خپل دغه مقلوع غاښ په خپل ځای کې کښېږدي او پیوند یې کړي او بیا په کراره، کراره پر هغه غوښه هم راسي. نو په دې صورت کې هم پر قالع (زید) پوره ارش واجبیږي؛ ځکه دغه غوښې راټللو (راشنه کېدلو) لره په شریعت کې اعتبار نسته؛ ځکه کله چې غاښ یو وار له بېخه وخېږي نو د هغه رګونه هم پرې سي او بیا د غوښې په راشنه کېدلو سره هغه رګونه واپس نه جوړیږي او نه راشنه کیږي، لهذا په کامله توګه د هغه تلافي او تدارک نه کیږي، نو ځکه پر مجرم (زید) به کامل ارش واجب وي.

همدارنګه که زید د خالد یو غوږ پرېکړي، بیا خالد هغه پرېکړل سوې حصه د خپل غوږ سره پیوند کړي او پر هغه نوره غوښه هم راشنه سي، نو په دې صورت کې هم پر قاطع پوره ارش واجبیږي؛ ځکه پرېکړل سوې حصه که هر څومره پیوند کړل سي خو بیا هغه د مخکې په څېر نه جوړیږي او خپل فطري شکل نه اختیاروي او په هغه کې څه کمي خامخا پاتیږي چې د هغه تلافي به په ارش سره کیږي.

**د غاښ د قصاص اخیستلو په صورت کې د غاښ را شین کېدلو حکم او تفصیل**

وَمَنْ نَزَعَ سِنَّ رَجُلٍ او کوم څوک چې د یو سړي غاښ وکاږي فَانْتَزَعَ الْمَنْزُوْعَةُ سِنُّهُ سِنَّ النَّازِعِ بیا دا سړی چې غاښ یې کښل سوی دی د کښونکي کس غاښ وکاږي فَنَبَتَتْ سِنُّ الْأَوَّلِ بیا د اول یوه [یعني چې اول یې غاښ کښل سوی دی. د هغه سړي] غاښ راشین سي فَعَلَى الْأَوَّلِ لِصَاحِبِهِ خَمْسُمِائَةِ دِرْهَمٍ نو پر اول یوه د خپل ملګري لپاره پنځه سوه درهمه [واجب] دي لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّهُ اسْتَوْفٰى بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه دا خبره څرګنده سوه چې اول یوه په نا حقه قصاص اخیستی دی لِأَنَّ الْمُوْجِبَ فَسَادُ الْمَنْبَتِ ځکه [د قصاص] واجبونکی شی [د غاښ] د منبت خرابېدل دي [یعني چې د غاښ د راشنه کېدلو ځای (بېخ) بالکل خراب سي او بیا راشین نه سي] وَلَمْ يَفْسُدْ او [دلته] هغه نه دی خراب سوی حَيْثُ نَبَتَ مَكَانَهَا أُخْرٰى ځکه د هغه غاښ پر ځای بل غاښ راشین سوی دی فَانْعَدَمَتِ الْجِنَايَةُ نو جنایت معدوم سو وَلِهٰذَا يُسْتَأْنَى حَوْلًا بِالْإِجْمَاعِ په همدې وجه بالاجماع یو کال مهلت ورکول کیږي [چې په دې موده کې د غاښ د منبت خرابېدل یا نه خرابېدل معلوم سي] وَكَانَ يَنْبَغِيْ أَنْ يُنْتَظَرَ الْيَأْسُ فِيْ ذٰلِكَ لِلْقِصَاصِ او پکار دا وه چې په دې کې د قصاص اخیستلو لپاره د نا اُمېدی [تر وخته] انتظار کېدلای إِلَّا أَنَّ فِي اعْتِبَارِ ذٰلِكَ تَضْيِيْعَ الْحُقُوْقِ خو د هغه په اعتبار کولو کې د حقوقو ضایع کول سته

فَاكْتَفَيْنَا بِالْحَوْلِ نو ځکه مونږ په يوه کال اکتفا وکړه لِأَنَّهُ تَنْبُتُ فِيهِ ظَاهِرًا ځکه په يوه کال کې ظاهراً [غالباً] غاښ راشين کيږي فَإِذَا مَضَى الْحَوْلُ وَلَمْ تَنْبُتْ لېکن کله چې يو کال تېر سي او غاښ راشين نه سي قَضَيْنَا بِالْقِصَاصِ نو مونږ د قصاص فيصله کوو وَإِذَا نَبَتَتْ او کله چې غاښ راشين سي تَبَيَّنَ أَنَّا أَخْطَأْنَا فِيهِ وَالِاسْتِيفَاءُ كَانَ بِغَيْرِ حَقٍّ نو دا به څرګنده سي چې مونږ په هغه [د قصاص په فيصله] کې خطا وتلي يو او د قصاص اخيستل په ناحقه دي إِلَّا أَنَّهُ لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ لِلشُّبْهَةِ خو د شبهې په وجه قصاص نه واجبيږي فَيَجِبُ الْمَالُ نو ځکه مال به واجبيږي.

**اللغات:** ﴿نزع﴾ د ضرب د باب ماضي ده: راکښول او کښل، ايستل. ﴿منبت﴾ د نصر له بابه د اسم ظرف صيغه ده: د راشنه کېدلو ځای. ﴿يستأني﴾ د استفعال د باب مضارع مجهوله ده. مراد: مهلت ورکول. وخت ورکول. ﴿يأس﴾ نااُميدي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد قصداً د عُمر يو غاښ وباسي، بيا عُمر هم قصاصاً د زيد غاښ وباسي لېکن څو ورځې وروسته د عُمر غاښ بيرته راشين سي، نو اوس پر عُمر د زيد د غاښ ارش واجبيږي چې د هغه مقدار پنځه سوه درهمه يا پنځه اوښان دي؛ ځکه کله چې د عُمر غاښ بيرته راشين سو، نو دا خبره څرګنده سوه چې عُمر په ناحقه له زيد څخه قصاص اخيستی وو او په ناحقه يې د زيد غاښ کښلی وو؛ ځکه عُمر ته به د غاښ کښلو او له زيد څخه د قصاص اخيستلو حق هغه وخت وای، کله چې د غاښ منبت (راشنه کېدلو ځای) خراب سوی وای او دلته منبت نه دی خراب سوی دی ځکه د عُمر غاښ بيرته راشين سوی دی؛ لهذا د منبت نه خرابېدلو په وجه جنايت هم معدوم سو او کله چې د زيد (نازع) له طرفه جنايت معدوم سو، نو له هغه څخه قصاص اخيستل په ناحقه قصاص اخيستل سوه، نو ځکه پر عُمر اوس د زيد د غاښ ارش واجب دی. په همدې وجه فقهاؤ په دې باب کې نازع (زيد) ته تر يوه کال مهلت ورکړی دی او هغه يې له سمدستي قصاص اخيستلو څخه منع کړی دی، د دې لپاره چې په دې يوه کال کې د منبت خرابېدل يا نه خرابېدل او د غاښ راوتل يا نه راوتل څرګند سي.

**وكان ينبغي إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې صورت کې د يوه کال له مهلت ورکولو څخه غوره دا وه چې نازع (زيد) د قصاص لپاره دومره وخت انتظار وکړي چې په هغه موده کې د غاښ راوتلو څخه نااُميده سي، خو څرنګه چې په داسې کولو کې د حقوقو د ضايع کولو خطره ده: نو ځکه مونږ هغه ته يو کال مهلت ورکړی دی؛ ځکه عموماً په يوه کال کې غاښ راشين کيږي او که په

يوه کال کې غائب را شين نه سي، نو بيا موږ د حقوقو د حفاظت په خاطر د قصاص فيصله کړې ده. خو بيا هم دا فيصله زموږ حتمي او آخري فيصله نه ده؛ ځکه که د نازع تر قصاص اخيستلو وروسته د هغه غائب بيرته را شين سي، نو بيا به زموږ د فيصلې غلطوالی ښکاره سي او دا به څرګنده سي چې موږ په ناحقه قصاص اخيستی دی، نو ځکه په دې صورت کې پر نازع (زيد) هم قصاص واجبېدل پکار دي؛ لېکن څرنګه چې د ظاهر او غالب په اعتبار سره هغه د خپل حق په ګومان له منزوع السّن (خالد) څخه قصاص اخيستی دی، نو پر هغه (زيد) د قصاص په واجبېدلو کې شبهه پيدا سوه. لهذا له هغه څخه قصاص خو ساقط سو، نو ځکه اوس د قصاص پر ځای پر هغه مال (ارش) واجبيږي. (احسن الهدايه)

## پر غاښ د وهلو په صورت کې د يو کال مهلت ورکولو حکم

قَالَ: وَلَوْ ضَرَبَ إِنْسَانٌ سِنَّ إِنْسَانٍ فرمايي: او که انسان يو انسان پر غاښ ووهي فَتَحَرَّكَتْ نو هغه وښورېږي يُسْتَأْنَى حَوْلًا نو هغه ته به يو کال مهلت ورکول کيږي لِيَظْهَرَ أَثَرُ فِعْلِهِ د دې لپاره چې د ضارب د فعل اثر ښکاره سي فَلَوْ أَجَّلَهُ الْقَاضِيْ سَنَةً بيا که قاضي هغه ته يو کال مهلت ورکړي ثُمَّ جَاءَ الْمَضْرُوبُ وَقَدْ سَقَطَتْ سِنُّهُ بيا مضروب په داسي حال کې راسي چې غاښ يې لوېدلی وي فَاخْتَلَفَا قَبْلَ السَّنَةِ فِيْمَا سَقَطَ بِضَرْبِهِ بيا دوی [ضارب او مضروب] تر کال مخکې د هغه څه په باره کې اختلاف وکړي چې د هغه په وهلو سره غاښ لوېدلی دی فَالْقَوْلُ لِلْمَضْرُوْبِ نو قول د مضروب معتبر دی لِيَكُوْنَ التَّأْجِيْلُ مُفِيْدًا د دې لپاره چې مهلت ورکول فايده من ثابت سي وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا شَجَّهُ مُوْضِحَةً او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چې يو څوک په موضحه زخم سره زخمي کړي [يعني موضحه زخم پکښي جوړ کړي] فَجَاءَ وَقَدْ صَارَتْ مُنَقِّلَةً بيا هغه [مشجوج] په داسي حال کې راسي چې هغه [موضحه زخم] منقله زخم ګرځېدلی وي فَاخْتَلَفَا بيا دوی دواړه اختلاف وکړي حَيْثُ يَكُوْنُ الْقَوْلُ قَوْلَ الضَّارِبِ نو په دې صورت کې قول د ضارب معتبر دی لِأَنَّ الْمُوْضِحَةَ لَا تُوْرِثُ الْمُنَقِّلَةَ ځکه موضحه زخم منقله زخم نه سي پيدا کولای [يا په بله وينا دا چې موضحه د منقله سبب نه ګرځي] أَمَّا التَّحْرِيْكُ فَيُؤَثِّرُ فِي السُّقُوْطِ او کوم چې د غاښ ښوورل دي نو هغه د غاښ په لوېدلو کې اثر کوي [يعني د غاښ لوېدلو سبب ګرځي] فَافْتَرَقَا نو دواړه مسئلې سره جلا سوې.

**اللغات**: ﴿أجّله﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وخت او نېټه ورکول، مهلت ورکول. ﴿شجّ﴾ د نصر او ضرب له بابه د ماضي صيغه ده: پر سر يا مخ زخمي کول. ﴿لا تورث﴾ د افعال له بابه د نفي معلوم صيغه ده. مراد: پيدا کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چې زید قصداً عُمر پر غاښ ووهلی او د هغه غاښ وښوورېدی، نو اوس به قاضي هغه ته یو کال مهلت ورکوي. د دې لپاره چې په دې یوه کال کي د ضارب (زید) د فعل اثر په پوره توګه څرګند سي، بیا که له یوه کال تېرېدلو څخه مخکې د مضروب (عُمر) هغه غاښ را ولوېدی او دوی قاضي ته راغلل، اختلاف او دعوه یې شروع کړه، مضروب وویل چي زما غاښ ستاد هغه مخکيني وهلو په وجه لوېدلی دی او ضارب وویل چي نه! بلکي د فلانکي کس د وهلو په وجه لوېدلی دی، نو په دې صورت کي د مضروب قول معتبر دی؛ ځکه قاضي هغه ته یو کال مهلت ورکړی دی او د هغه غاښ هم په دې دوران کي (یعني له کال تېرېدلو څخه مخکي) لوېدلی دی، لهذا د مضروب قول د ظاهرِ حال موافق دی. نو ځکه دلته به د هغه قول معتبر وي. او که موږ هغه معتبر نه ومنو، نو مضروب ته به د مهلت ورکولو هیڅ فایده نه وي.

وهذا بخلاف إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي که زید مثلاً په خالد کي "شجه موضحه" جوړه کړه یعني د هغه سر یې داسي ور زخمي کړی چي د سر هډوکی یې ښکاره سو، بیا څو وخت وروسته مشجوج (خالد) په داسي حال کي راغلی چي د هغه په سر کي "منقله زخم" وو یعني د سر هغه ښکاره هډوکي یې بې ځایه سوی وو، او شاج (زید) ته یې وویل چي دا زخم تا را پکښي جوړ کړی دی لېکن شاج انکار وکړی، نو په دې صورت کي د شاج یعني د زید قول معتبر دی؛ ځکه ظاهرِ حال د شاج په حق کي ګواه دی؛ ځکه موضحه زخم د منقله زخم سبب نه ګرځي (یا په بله وینا دا چي موضحه زخم خپله منقله نه سي ګرځېدلای یعني د کوم زخم چي محض هډوکی ښکاره سوی وي او هډوکی یې پر خپل ځای وي. وروسته هغه هډوکی خپله نه سي بې ځایه کېدلای مګر دیو څا په لاس وهلو سره. لهذا دلته ظاهرِ حال د شاج [زید] په حق کي ګواه دی). او فقهي قاعده دا ده چي ظاهرِ حال د کوم څا موافق وي، قول د هاغه معتبر دی. نو ځکه دلته به د شاج قول معتبر وي.

أما التحریك إلخ: پاته سو په مخکنی مسئله کي ظاهرِ حال د مضروب (عُمر) په حق کي ګواه دی؛ ځکه پر غاښ وهل او ور ښوورول د غاښ لوېدلو سبب ګرځي، نو ځکه په هغه مسئله کي د مضرب قول معتبر دی او په دې حواله سره دواړه مسئلې یو له بله څخه جلا دي. (احسن الهدایه)

## له یوه کال تېرېدلو څخه وروسته د غاښ لوېدلو په هکله د اختلاف کولو حکم

| |
|---|
| وَإِنِ اخْتَلَفَا فِيْ ذٰلِكَ بَعْدَ السَّنَةِ او که ضارب او مضروب تر کال وروسته په دې [د غاښ لوېدلو] کي اختلاف وکړي فَالْقَوْلُ لِلضَّارِبِ نو قول د ضارب معتبر دی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ أَثَرَ فِعْلِهِ ځکه هغه د خپل فعل د اثر انکار کوي وَقَدْ مَضَى الْأَجَلُ الَّذِيْ وَقَّتَهُ الْقَاضِيْ لِظُهُوْرِ الْأَثَرِ او هغه نېټه [مودت] هم تېر |

سوی دی کوم د اثر ښکاره کېدو لپاره قاضي ټاکلی وو فَكَانَ الْقَوْلُ لِلْمُنْكِرِ نو ځکه قول به د منکر
معتبر وي وَلَوْلَمْ تَسْقُطْ او که غاښ نه ولوېږي لَاشَيْءَ عَلَى الضَّارِبِ نو پر ضارب هيڅ شی نسته
وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ تَجِبُ حُكُومَةُ الْأَلَمِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي حکومة أل
[حکومة عدل] واجبېږي [يا په وينا دا چي په درد کې حکومة عدل واجبېږي (يعني هغه درد او تکليف چې
مضروب ته رسېدلی دی)] وَسَنُبَيِّنُ الْوَجْهَيْنِ بَعْدَ هٰذَا إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او موږ به دواړه وجهي ان شاء الله
تر دې وروسته ژر بيان کړو وَلَوْلَمْ تَسْقُطْ وَلٰكِنَّهَا اسْوَدَّتْ او که غاښ نه ولوېږي خو هغه تور
سي يَجِبُ الْأَرْشُ فِي الْخَطَإِ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو د خطاء په صورت کي پر عاقله وو ديت واجبېږي وَفِي
الْعَمَدِ فِي مَالِهِ او د عمد په صورت کي د مجرم په خپل مال کي [ديت واجبېږي] وَلَا يَجِبُ الْقِصَاصُ او
قصاص نه واجبېږي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ أَنْ يَضْرِبَهُ ضَرْبًا تَسْوَدُّ مِنْهُ ځکه د مضروب لپاره دا ممکنه نه ده
چي ضارب داسي ووهي چي د هغه په وجه يې غاښ تور سي وَكَذَا إِذَا كَسَرَ بَعْضَهُ وَاسْوَدَّ الْبَاقِيْ او
همدارنګه کله چي د غاښ څه حصه ورماته کړي او پاته غاښ تور سي لَاقِصَاصَ نو [هم] قصاص
نسته لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَكَذَا لَوِاحْمَرَّ أَوِاخْضَرَّ او همدارنګه که
پاته غاښ سور يا شين سي.

**اللغات:** ﴿وقته﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وخت ټاکل، ﴿اخضر﴾ د افعلال د باب ماضي ده
زرغون کېدل، شين ګرځېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي قاضي و مضروب (عمر) ته يو کال مهلت ورکړی وو. که
هغه له تېرېدلو او پوره کېدلو څخه وروسته ضارب او مضروب اختلاف سره وکړی. مضروب
ووېل چي زما غاښ ستا د وهلو په وجه لوېدلی دی او ضاب ووېل چي نه! بلکي د بل چا د وهلو په
وجه لوېدلی دی، نو په دې صورت کي د ضارب قول معتبر دی؛ ځکه ظاهر حال (کال تېرېدل) د هغه په
حق کي ګواه دي. همدارنګه هغه د خپل فعل د اثر منکر دی او مضروب مدعي دی او څرنګه چي دلته
د مضروب سره بيِّنه نسته، نو ځکه د ضارب قول به معتبر وي.

او که يو کال تېر سي او د مضروب غاښ پر خپل ځای سالم پاته وي او نه ولوېږي. نو پر ضارب
هيڅ ضمان او ديت نه واجبېږي؛ ځکه د ظاهر او باطن دواړو په اعتبار سره د هغه جنايت معدوم سو.

خو له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا نقل سوی دی چې په دې صورت کي حکومة ألم يعني حکومة عدل واجبيږي او د دې روايت وجه (دليل) به په را روانه مسئله کي راسي. (يعني: ومن شج رجله فالتحمت إلخ).

او همدي طرف ته صاحب د هدايې په "وسنبيّن بعد هذا إلخ" سره اشاره کړې ده چې دې اشاره کي له الوَجْهَيْن څخه يوه د "لاشيء على الضارب" وجه مراد ده او بل د "حکومةِ ألم" وجه مراد ده يعني د دې دواړو وجهي (دليلونه)، چي هغه په را روانه مسئله کي بيان سوي دي.

ولولم تسقط إلخ: د دې حاصل دا دی چې که د ضارب د وهلو په وجه د مضروب غابن ايله نه سي لېکن هغه تور او خراب سي، يا ضارب د غابن څه حصه ورماته کړي چې د هغه په وجه پاته غابن تور يا سُور يا شين سي، نو په دې ټولو صورتونو کي پر ضارب قصاص نسته؛ ځکه قصاص د مساوات تقاضا کوي او دلته مساوات ممکن نه دی؛ ځکه مضروب لره دا ممکنه نه ده چي د ضارب غابن داسي ووهي يا په داسي توګه د غابن څه حصه ورماته کړي چي غابن دي ايله نه سي او هغه دي محض تور يا سُور يا شين وګرځي (دا ممکنه نه ده)، نو ځکه د مساوات د نا ممکن والي په وجه دلته قصاص نه واجبيږي، خو څرنګه چي د غابن د توريدلو يا سُوړ او شين کېدلو په وجه د مضروب په غابن کي نقص پيدا سوی دی، نو ځکه د هغه د ازالې لپاره پر ضارب ديت واجبيږي. اوس که دا فعل له ضارب څخه خطاءً صادر سوی وی نو دغه ديت به عاقله اداء کوي او که عمداً ځني صادر سوی وي، نو ضارب به له خپل مال څخه هغه اداء کوي. (احسن الهدايه)

## که د سر زخم بالکل جوړ سي او هيڅ اثر يې پاته نه سي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ شَجَّ رَجُلًا فرمايي: او څوک چي د يو سړي سر ورخمي کړي فَالْتَحَمَتْ وَلَمْ يَبْقَ لَهَا أَثَرٌ بيا زخم جوړ سي او هغه لره هيڅ اثر پاته نه سي وَنَبَتَ الشَّعْرُ او وړېښتان [پرې] راشنه سي سَقَطَ الْأَرْشُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ارش ساقطيږي لِزَوَالِ الشَّيْنِ الْمُوْجِبِ ځکه هغه عيب زائل سو کوم چي [دارش] واجبونکی وو وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ ❁: يَجِبُ عَلَيْهِ أَرْشُ الْأَلَمِ

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، قال المفتي غلام قادر النعماني: القول الراجح هو قول الإمام لكن قول محمد رَحِمَهُ الله أوفق بأحوال هذا الزمان؛ لأن المجروح في أغلب الأوقات إنما هو الفقير وأجرة الطبيب وثمن الدواء عالية لا يستطيع الفقير اداءها. فتحمّلُ الألم يكون على المجروح وتحمّلُ ثمن الدواء على الجارح. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵۴]

او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي پر هغه [شاج] د درد ارش واجبيږي وَهُوَحُكُوْمَةُ عَدْلٍ او هغه [ارش] حكومة عدل دی لِأَنَّ الشَّيْنَ إِنْ زَالَ ځکه عيب که څه هم زائل سوی دی فَالْأَلَمُ الْحَاصِلُ مَا زَالَ خو حاصل سوی [زغمل سوی] درد نه دی زائل سوی [او ذألم (درد) په وجه چي څومره صحت فوت سوی او متأثر سوی دی. هغه نه دی زائل سوی] فَيَجِبُ تَقْوِيْمُهُ نو ځکه د هغه [فائت بالألم (صحت)] قيمت لګول واجب دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: عَلَيْهِ أُجْرَةُ الطَّبِيْبِ وَثَمَنُ الدَّوَاءِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي پر هغه [شاج] د طبيب اجرت او د دوايي پيسې [واجب] دي لِأَنَّهُ إِنَّمَا لَزِمَهُ أُجْرَةُ الطَّبِيْبِ وَثَمَنُ الدَّوَاءِ بِفِعْلِهِ ځکه چي پر مشجوج [مضروب] د طبيب أجرت او د دوايي پيسې د هغه [شاج] د فعل په وجه لازم سوي دي فَصَارَ كَأَنَّهُ أَخَذَ ذٰلِكَ مِنْ مَالِهِ نو داسي سو لکه هغه چي دا د مشجوج له مال څخه اخيستي وي إِلَّا أَنَّ أَبَا حَنِيْفَةَ يَقُوْلُ: إِنَّ الْمَنَافِعَ عَلٰى أَصْلِنَا لَا تَتَقَوَّمُ إِلَّا بِعَقْدٍ أَوْ بِشُبْهَةٍ خو امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زموږ د اصل مطابق منافع نه متقوّم کيږي مګر په عقد يا شبهۀ عقد سره وَلَمْ يُوْجَدْ فِيْ حَقِّ الْجَانِيْ او د جنايتکاره [شاج] په حق کي دا [عقد او شبهۀ عقد] نه دي موجود سوي فَلَا يَغْرَمُ شَيْئًا نو ځکه هغه به د هيڅ شي تاوان نه ورکوي.

**اللغات**: ﴿شَجّ﴾ مخکي يې وضاحت وسو چي د ماضي صيغه ده او له نصر او ضرب دواړو بابونو څخه راځي: پر سر يا مخ زخمي کول، په سِر يا مخ کي زخم جوړول. سر ماتول. له دې باب څخه فاعل "شَاجّ" او مفعول "مَشْجُوْج" راځي. ﴿التحمت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: زخم ډکېدل. غوښه پکښې راتلل او جوړېدل. ﴿الشين﴾ عيب. بدرنګي. ﴿تقويم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: قيمت لګول. قيمت ټاکل. ﴿لايغرم﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده: تاوان (ضمان) ورکول. ضامن کېدل.

**تشريح**: دا مسئله هم د مخکني مسئلې په څېر ده. خو هغه مسئله مُدلّله نه وه او دلته د مسئلې دليلونه بيان سوي دي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په مخکني مسئله کي د همدې مسئلې دليلونو ته اشاره کړې وه.

**مسئله**: دا ده که زید مثلاً د خالد سر ورمات او زخمي کړي، لېکن څو ورځې وروسته هغه زخم بالکل روغ و جوړ سي او د هغه نوم ونشان هم پاته نه سي تر دې چې پر هغه ځای ورېښتان هم راشنه سي، نو په دې صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر شاج (زخمي کونکي) یعني پر زید هیڅ شی نه واجبیږي؛ ځکه ارش یا دیت وغیره د زخم د عیب په وجه واجبیږي او دلته د عیب اثر بالکل ختم سوی دی، نو موږ په کوم سبب سره دلته ارش واجب کړو!.

**وقال أبویوسف إلخ**: د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې پر شاج حکومة عدل واجبیږي (لکه په مخکنی مسئله کي چې هم د هغه په نېز حکومة عدل واجبېدی)، د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې په دې مسئله کي د زخم جوړېدلو په وجه که څه هم د زخم عیب زائل سوی دی لېکن د زخمي کولو په وخت کي او د زخم جوړېدلو تر وخته چې مشجوج (خالد) ته کوم درد او تکلیف رسېدلی دی او د هغه چې څومره صحت متأثر سوی دی، هغه نه دی زائل سوی او د هغه هیڅ بدل نه دی ورته حاصل سوی، نو ځکه د هغه په بدله کي به حکومة عدل پر شاج واجب وي.

**قال محمد إلخ**: د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې په مذکوره صورت کي پر شاج د طبیب أجرت او د مشجوج د علاج او دوا پیسې واجبیږي چې هغه به شاج له خپل مال څخه اداء کوي؛ ځکه دا ټوله خرچه او مال د همدې شاج د فعل په وجه پر مشجوج لازم سوي دي، لهذا د هغه ادا ینه به هم پر شاج وي. د دې مثال داسي دی لکه شاج چې دغومره مال له مشجوج څخه په زور اخیستی وي، نو ښکاره ده چې پر شاج د هغه واپس کول واجب دي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي به د طبیب أجرت او د علاج مال او تاوان هم پر شاج واجب وي.

**إلا أن أبا حنیفة إلخ**: په دې سره د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د امام ابو یوسف د قول "فالألم الحاصل ما زال" او د امام محمد د قول "إنما لزمه أجرة الطبیب" دواړو جواب ورکول سوی دی، حاصل یې دا دی چې درد زغمل او د هغه د علاج تاوان پورته کول د منافعو له قبیلې څخه دي او د احنافو د اصل مطابق منافع بذات خود نه متقوّم کیږي، بلکي د عقدِ اجارې په وجه په هغوی کي تقوّم پیدا کیږي یا د شبهۀ عقد مثلاً د اجارۀ فاسده یا مضاربت فاسده په وجه هغوی متقوّم کیږي، او دلته د جاني یعني د شاج په حق کي دا دواړه شیان معدوم دي؛ ځکه هغه خو نه عقدِ اجاره کړې ده او نه یې اجارۀ فاسده وغیره کړې ده، نو ځکه مذکوره منافع به متقوّم نه وي او پر شاج به هیڅ هم لازم او واجب نه وي. (احسن الهدایه)

## كه په ډېره سره د وهل سوي كس زخمونه جوړ سي

قَالَ: وَمَنْ ضَرَبَ رَجُلًا مِائَةَ سَوْطٍ فَجَرَحَهُ فرمايي: او څوک چې يو سړی سل دُرې ووهي نو هغه زخمي کړي فَبَرَأَ مِنْهَا بيا مضروب له هغه څخه جوړ سي فَعَلَيْهِ أَرْشُ الضَّرْبِ نو پر ضارب د وهلو ارش [واجب] دی مَعْنَاهُ إِذَا بَقِيَ أَثَرُ الضَّرْبِ د دې معنیٰ دا ده چې كله د وهلو اثر [نبنه] پاته وي فَأَمَّا إِذَا لَمْ يَبْقَ أَثَرُهُ لېكن كه د وهلو اثر پاته نه سي فَهُوَ عَلَى الْخِتِلَافِ قَدْ مَضَى فِي الشَّجَّةِ الْمُلْتَحِمَةِ نو دا پر هاغه اختلاف دي كوم چې د جوړېدونكي زخم په هكله تېر سو.

**اللغات**: ﴿برأ﴾ د فتح د باب ماضي ده، او د سمع له بابه هم راتلای سي: روغېدل، جوړېدل. ﴿أرش﴾ تاوان او جرمانه، هغه ديت (مال) كوم چې د ما دون النفس په جنايت كي لازمېسي. ﴿ملتحمة﴾ د افتعال د باب فاعل دی: ډكېدونكی (جوړېدونكی) زخم.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه زيد مثلاً خالد سل دُرې ووهي او زخمي يې کړي، لېكن څو ورځې وروسته مضروب (خالد) روغ رمټ سي، نو اوس به دې ته كتل كيږي چې پر هغه د زخمونو اثر او نبنه پاته ده، كه نه؟، كه پر مضروب د زخمونو اثر اوس هم پاته وي، نو پر ضارب د وهلو تاوان او ديت واجب دی، او كه د مضروب پر بدن د زخمونو اثر پاته نه وي او بالكل جوړ سوي وي، نو په دې صورت كي د امامانو هاغه اختلاف دی كوم چې د سر د زخم جوړېدلو په صورت كي بيان سوی دی يعني "لاشيء على الضارب عند أبي حنيفة، وعليه أرش الألم عند أبي يوسف، وأجرة الطبيب وثمن الدواء عند محمد رَحِمَهُمُ الله".

## كه اول خطاءً لاس وربرېكړي بيا يې خطاءً قتل كړي نو څه حكم دی؟

قَالَ: وَمَنْ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ خَطَأً فرمايي: او څوک چې خطاءً د يو سړ لاس پرېكړي ثُمَّ قَتَلَهُ قَبْلَ الْبُرْءِ بيا [د لاس] تر جوړېدلو مخكي [خطاءً] هغه قتل كړي فَعَلَيْهِ الدِّيَةُ وَسَقَطَ أَرْشُ الْيَدِ نو پر هغه [قاتل] ديت واجب دی او د لاس ديت ساقطيږي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ مِنْ جِنْسٍ وَاحِدٍ ځكه چې جنايت له يوه جنس څخه دی وَالْمُوجَبُ وَاحِدٌ وَهُوَ الدِّيَةُ او موجب [هم] يو دی چې هغه ديت دی وَإِنَّهَا بَدَلُ النَّفْسِ بِجَمِيعِ أَجْزَائِهَا او ديت د نفس بدل دی د نفس د ټولو اجزاؤ سره فَدَخَلَ الطَّرَفُ فِي النَّفْسِ نو طرف [لاس] به په نفس كي داخل سي كَأَنَّهُ قَتَلَهُ ابْتِدَاءً گواكي قاتل ابتداءً [د لاس پرېكولو څخه بغير] هغه قتل کړی دی.

**اللغات:** ﴿الطرف﴾ طرف، اندام، عضو. ﴿أرش﴾ تاوان او جرمانه. د ما دون النفس ديت.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که زيد خطاءً د خالد لاس پرېکړي، بيا د لاس تر جوړېدو مخکي زيد خطاءً هغه قتل هم کړي، نو په دې صورت کي پر زيد (قاتل) د نفس ديت واجبيږي او د لاس ديت د قتل په ديت کي داخليږي؛ ځکه دلته دوه جنايتونه يعني قطع او قتل سره همجنس دي (يعني دواړه خطاءً دي) او د دواړو جنايتونو موجب هم يو دی يعني ديت، او څرنګه چي د نفس ديت په حقيقت کي د نفس او بدن د ټولو اجزاؤ بدل دی چي په هغه کي لاس هم شامل دی، نو ځکه د نفس ديت به د لاس ديت لره هم شامل وي او د لاس پرېکولو به جلا ديت واجب نه وي. او د دې مثال داسي دی لکه څوک چي ابتداءً د لاس پرېکولو څخه بغير يو سړی قتل کړي، نو ښکاره ده چي په دې صورت کي فقط د نفس ديت واجبيږي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم فقط د نفس ديت واجبيږي. (احسن الهدايه)

## د زخم د قصاص اخيستلو لپاره به انتظار کيږي، که نه؟ (د امامانو قولونه)

قَالَ: وَمَنْ جَرَحَ رَجُلًا جِرَاحَةً فرمايي: او څوک چي يو سړی زخمي کړي لَمْ يُقْتَصَّ مِنْهُ حَتَّى يَبْرَأَ نو له جارح څخه به قصاص نه اخيستل کيږي تر دې چي هغه [مجروح سړی] جوړ سي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُقْتَصُّ مِنْهُ فِي الْحَالِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي له هغه څخه به في الحاله قصاص اخيستل کيږي اِعْتِبَارًا بِالْقِصَاصِ فِي النَّفْسِ د نفس پر قصاص په قياس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ الْمُوجِبَ قَدْ تَحَقَّقَ او دا [حکم] ځکه دی چي [د قصاص] واجبونکی شی [زخمي کول] موجود سوي دي فَلَا يُعَطَّلُ نو ځکه هغه به نه معطلول کيږي وَلَنَا قَوْلُهُ عليه السلام [1]: «يُسْتَأْنَى فِي الْجِرَاحَاتِ سَنَةً» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی: چي په زخمونو کي به يو کال مهلت ورکول کيږي وَلِأَنَّ الْجِرَاحَاتِ يُعْتَبَرُ فِيهَا مَآلُهَا لَا حَالُهَا او ځکه چي په زخمونو کي د هغوی مآل لره اعتبار وي. نه د هغوی حال [موجوده حالت] لره لِأَنَّ حُكْمَهَا فِي الْحَالِ غَيْرُ مَعْلُومٍ ځکه في الحاله د هغوی [زخمونو] حکم معلوم نه دی فَلَعَلَّهَا تَسْرِي إِلَى النَّفْسِ ځکه کېدای سي چي هغوی نفس ته سرايت وکړي فَيَظْهَرُ أَنَّهُ قَتْلٌ نو دا به ښکاره سي چي هغه [زخم] قتل دی وَإِنَّمَا يَسْتَقِرُّ الْأَمْرُ بِالْبُرْءِ او خبره [د زخم] په جوړېدلو سره پخيږي.

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في سننه ۳/ ۶۰، رقم:۳۲، والبيهقي في السنن الكبرى، حديث رقم:۱۶۱۱۳. (احسن الهدايه)

**اللغات**: ﴿لا يعطل﴾ د تفعيل له بابه د نفي مجهول صيغه ده: پرېښوول او عمل نه په کول. معطلول.

﴿مآل﴾ پاى او انجام. آخر وروستنى حالت. ﴿يستقر﴾ د استفعال د باب مضارع ده: قرار نيول او ثابتېدل. پخېدل او مضبوطېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى که څوک بل څوک زخمي او ټپي کړي، نو زموږ په نېز حکم دا دى چې ل. جارح څخه به سمدستي قصاص نه اخيستل کيږي. بلکي د زخم د حالت او کيفيت سره او وړلو لپاره به قصاص څو ورځي مؤخر (ځنډول) کيږي.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دى چې له جارح څخه به سمدستي قصاص اخيستل کيږي؛ ځکه د قصاص واجبونکى شى (زخمي کول) موجود او متحقق دي. نو ځکه هغه به نه معطلول کيږي. مثلاً که څوک يو سړى قتل کړي، نو له قاتل څخه فوراً قصاص اخيستل او هغه نه مؤخر کيږي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي به هم فوراً قصاص اخيستل کيږي.

ولنا قوله عليه السلام الخ: په مذکوره مسئله کي له جارح څخه د قصاص مؤخر کولو په هکله زموږ دليل دا حديث دى "يُستأنى الجراحة سنةً" چې په زخمونو کي به تر يوه کال پوري مهلت ورکول کيږي، له دې حديث څخه په واضحه توګه دا خبره ښکاره سوه چې د زخمونو قصاص سمدستي نه واجبيږي او په هغه کي تر يوه کاله پوري د تأخير ګنجايش سته. او د صريح نص په مقابله کي قياس لره هيڅ اعتبار نسته.

ولأن الجراحات الخ: زموږ عقلي دليل دا دى چې په زخمونو کي مآل او آخري حالت لره اعتبار وي. فى الحاله هغوى لره اعتبار نه وي؛ ځکه چې فى الحاله د زخم حالت او کيفيت په يقيني توګه نه سي معلومېدلاى ځکه په زخم کي دا احتمال هم سته چې جوړ او روغ به سي او دا احتمال هم پکښې سته چې نفس ته به سرايت وکړي او انسان به مړ کړي، نو ځکه غوره همدا ده چې د زخم جوړېدلو تر وخته د قصاص اخيستلو معامله وځنډول سي د دې لپاره چې په پوره توګه معامله ښرګنده سي. (احسن الهدايه)

## د قصاص او ديت په باره کي يوه فقهي قاعده

قَالَ: وَكُلُّ عَمَدٍ سَقَطَ الْقِصَاصُ فِيهِ بِشُبْهَةٍ فرمايي: او هر هغه قتلِ عمد چې په هغه کي د شبهي په وجه قصاص ساقط سي فَالدِّيَةُ فِي مَالِ الْقَاتِلِ نو ديت د قاتل په مال کي [واجب] دى وَكُلُّ أَرْشٍ وَجَبَ بِالصُّلْحِ او هر هغه ارش کوم چې د صلح په وجه واجب سي فَهُوَ فِي مَالِ الْقَاتِلِ نو هغه [هم] د قاتل په مال کي [واجب] دى لِقَوْلِهِ عليه السلام: «لَا تَعْقِلُ الْعَوَاقِلُ عَمَدًا» ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي

دي : چې عاقلې به د عمد دیت نه اداء کوي وَهٰذَا عَمَدٌ او دا عمد دی غَيْرَ أَنَّ الْأَوَّلَ يَجِبُ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ خو اول په دريو کالو کې واجبيږي لِأَنَّهُ مَالٌ وَجَبَ بِالْقَتْلِ ابْتِدَاءً ځکه هغه داسي مال دی کوم چې ابتداءً د قتل په وجه واجب سوی دی فَأَشْبَهَ شِبْهَ الْعَمَدِ نو هغه د شبه عمد مشابه سو وَالثَّانِي يَجِبُ حَالًا او دويم في الحاله واجبيږي لِأَنَّهُ مَالٌ وَجَبَ بِالْعَقْدِ ځکه هغه داسي مال دی کوم چې د عقد صلح په وجه واجب سوی دی فَأَشْبَهَ الثَّمَنَ فِي الْبَيْعِ نو هغه په بيع کې د ثمن مشابه سو.

**اللغات :** ﴿لا تعقل﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده. د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: ديو چا له طرفه ديت اداء کول. (مصباح المنير). ﴿عواقل﴾ جمع د عَاقِلَةٌ ده: د قاتل او جنايتکاره متعلقين (خاندان والا)، قريبان او نژدې قوميان.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی که په قتلِ عمد کې يو شبهه پيدا سي نو قصاص خو ساقطيږي او د هغه پر ځای ديت واجبيږي، نو داسي ديت د قاتل په مال کې واجبيږي، مثلاً که پلار خپل ځوی قتل کړي نو په دې کې د شبهې په وجه قصاص ساقطيږي او پر پلار په خپل مال کې ديت واجبيږي. همدارنګه که څوک عمداً د بل چا لاس پرېکړي او بيا قاطع د هغه سره د لاس پر ارش (ديت) او مال باندي صلح وکړي، نو داسي مال هم د قاطع په خپل مال کې واجبيږي؛ ځکه په حديث کې دي "لا تعقل العواقل عمدًا" چې عاقله به د عمد ديت نه اداء کوي، او دلته دواړه جنايتونه عمداً صادر سوي دي.

خو په دواړو صورتونو کې دا فرق دی چې ارش (دلاس ديت) في الحاله واجبيږي او د مذکوره قتل ديت په کښت (قسط) سره په دريو کالو کې واجبيږي؛ ځکه أصول دا ټاکل سوی دی چې کوم مال له شروع څخه (يعني بغير له صلح د قتل) په وجه واجب سوی وي، نو هغه د شبه عمد د مال (ديت) سره مشابه دی، نو څرنګه چې په شبه عمد کې مال په کښت سره واجبيږي (چې په دريو کالو کې به يې په حصه، حصه سره اداء کوي)، نو همداسي به په مذکوره قتل کې هم مال په کښت سره واجب وي. او کوم مال چې د يو عقد او تړون په وجه واجب سوي وي، نو هغه في الحاله (سمدستي) واجبيږي. لکه څرنګه چې په عقد بيع کې ثمن في الحاله واجبيږي، نو ځکه د مذکوره عقد صلح مال به هم في الحاله واجب وي. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

## له قاتل پلار څخه به د څوی دیت څنګه او په څو وخت کې اخیستل کیږي (د فقهاؤ قولونه)

قَالَ: وَإِذَا قَتَلَ الْأَبُ ابْنَهُ عَمْدًا فرمايي: او كله چي پلار خپل ځوی عمداً قتل كړي فَالدِّيَةُ فِيْ مَالِهِ فِيْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ نو ديت د پلار په مال كي په دريو كالو كي [واجب] دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ حَالَّةً او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي في الحاله [سمدستي] واجبيږي لِأَنَّ الْأَصْلَ أَنَّ مَا يَجِبُ بِالْإِتْلَافِ ځكه قاعده دا ده چي كوم مال د تلفولو [هلاكولو] په وجه واجب سي يَجِبُ حَالًّا نو هغه في الحاله واجبيږي وَالتَّأْجِيْلُ لِلتَّخْفِيْفِ فِي الْخَاطِئِ او په خاطي [او قتل خطاء] كي مهلت وركول د تخفيف په غرض سره وي [يعني د خطاءً قتلونكي سره د تخفيف او آساني كولو په خاطر هغه ته مهلت وركول كيږي] وَهٰذَا عَامِدٌ او دا [يعني پلار] عامد [عمداً قتلونكی] دی فَلَا يَسْتَحِقُّهُ نو هغه به د تخفيف مستحق نه وي وَلِأَنَّ الْمَالَ وَجَبَ جَبْرًا لِحَقِّهِ او ځكه چي مال د مقتول [ځوی] د حق پوره كولو په غرض سره واجب سوی دی وَحَقُّهُ فِيْ نَفْسِهِ حَالٌّ او د هغه حق په خپل نفس كي في الحاله [واجب] دی فَلَا يَنْجَبِرُ بِالْمُؤَجَّلِ نو دا [في الحاله معجّل حق] به د مؤجل په ذريعه نه پوره كيږي وَلَنَا: أَنَّهُ مَالٌ وَاجِبٌ بِالْقَتْلِ او زموږ دليل دا دی: چي هغه داسي مال دی كوم چي د قتل په وجه واجب سوی دی فَيَكُوْنُ مُؤَجَّلًا نو ځكه مؤجل به وي كَدِيَةِ الْخَطَإِ وَشِبْهِ الْعَمْدِ لكه د قتلِ خطاء او شبه عمد ديت [چي مؤجل دی] وَهٰذَا لِأَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَى تَقَوُّمَ الْآدَمِيِّ بِالْمَالِ او ځكه چي قياس انكار كوي د انسان قيمتلاره كېدل په مال سره لِعَدَمِ التَّمَاثُلِ د مماثلت د نشتوالي په وجه وَالتَّقْوِيْمُ ثَبَتَ بِالشَّرْعِ او [انسان] قيمتلاره كول په شريعت سره ثابت سوي دي وَقَدْ وَرَدَ بِهِ مُؤَجَّلًا لَا مُعَجَّلًا او شريعت د تقويم په هكله مؤجل وارد سوی دی [چي هغه به مؤجل وي]، نه معجّل فَلَا يُعْدَلُ عَنْهُ لَا سِيَّمَا إِلَى زِيَادَةٍ نو ځكه له هغه څه به عدول [او اعراض] نه كيږي خصوصاً د زياتوب وطرف ته وَلَمَّا لَمْ يَجُزِ التَّغْلِيْظُ بِاعْتِبَارِ الْعَمْدِيَّةِ قَدْرًا او كله چي د عمد كېدو په اعتبار سره په مقدار كي تغليظ [زياتوب] جائز نه دی لَا يَجُوْزُ وَصْفًا نو د وصف په اعتبار سره به هم جائز نه وي.

**اللغات**: ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضایع کول، هلاکول. ﴿تأجیل﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مؤجل کول، وخت او نېټه ورکول، مهلت ورکول. ﴿تخفیف﴾ مخکنۍ صیغه ده: سپکول، آساني کول. ﴿لا ینجبر﴾ د انفعال له بابه د نفي صیغه ده: (د تاوان) تلافي کېدل، ضایع سوی حق پوره کېدل، د فوت سوي شي اصلاح کېدل. ﴿تغلیظ﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: سختي، سختول او مؤکد کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي کله پلار عمداً خپل ځوی قتل کړي، نو دا قتل شبه عمد دی چي په هغه کي قصاص خو نسته بلکي پر پلار دیت واجبیږي. اوس په دې کي اختلاف دی چي دا دیت به مؤجّل وي او که معجّل؟. زموږ مذهب دا دی چي دا دیت مؤجّل (نېټه داره) دی یعني د دریو کالو په نېټه کي به اداء کول کیږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي معجّل دی یعني فی الحاله به اداء کول کیږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي کوم مال د یو شي د تلفولو او هلاکولو په وجه واجب سي، نو هغه فی الحاله واجبیږي. او په دې مسئله کي مال د نفس د تلفولو په وجه واجب سوی دی. نو ځکه دلته به هم پر قاتل (پلار) فی الحاله مال واجب وي. پاته سو تأجیل (یعني وخت او مهلت ورکول). نو تأجیل خو په قتلِ خطاء کي واجبیږي د دې لپاره چي په هغه کي د خاطي (خطاءً قتل کونکي) سره تخفیف او آساني وسي او هغه په آساني سره د دیت مال اداء کړي، او په دې مسئله کي خو قاتل عامد (عمداً قتلو کونکی) دی کوم چي د تخفیف مستحق نه دی. نو ځکه پر هغه فی الحاله دیت اداء کول واجب دي.

دویم دلیل یې دا دی چي پر قاتل مال ځکه واجبیږي چي په دې سره د مقتول د قتل او حق تلافي وسي او د هغه ضایع سوی حق پوره کړی سي. او دا هغه وخت کېدلای سي کله چي مال (دیت) في الحاله یعني تر قتل وروسته سمدستي واجب کړی سي ځکه د مقتول حق فی الحاله ثابت سوی دی او مُعجّل دی. او د معجّل حق تلافي د مؤجّل مال په ذریعه نه کیږي.

ولنا إلخ: زموږ د دلیل حاصل دا دی چي کوم مال د قتل په وجه واجب سي، هغه مؤجّل کیږي، لکه د قتلِ خطاء او شبه عمد مال (دیت) چي مؤجّل دي.

او بل دا چي انسان مالک دی او مال مملوک دی، نو د قیاس تقاضا دا ده چي د مال په ذریعه د انسان تقویم نه وسي یعني په مال سره د هغه قیمت نه ولګول سي (یا په بله ینا دا چي په مال سره خرڅ نه کړی سي). ځکه د مالک او مملوک تر مینځ هیڅ تماثل نسته. لېکن په قتلِ خطاء وغیره کي چي کوم تقویم ثابت سوی دی دا خلاف القیاس دی او په شریعت سره ثابت دی. خو دا ثبوت د تأجیل په

طريقه سره دی، نه تعجيلًا. لهذا ضروري سوه چي د شرع له مورد څخه عدول نه وسي، نو ځکه سوړ دلته تأجيل لازم کړی دی.

او بل دا چي مؤجل د معجل په مقابله کي زائد هم دی، لهذا د مورد شرع د خلاف زياتوب د ثبوت لپاره هيڅ لاره نسته، لهذا د هغه وطرف ته به بالکل عدول نه کيږي. همدا وجه ده که د بيع او سودا په صورت کي له قدر او جنس څخه يو شی موجود وي او په هغه سره برابري ثابته سي نو بيا هم په قرض بيع حرامه ده: ځکه چي د زياتوب شبهه سته.

او بل دا چي کله پلار عمداً خپل ځوی قتل کړي نو په دې صورت کي هم د ديت مقدار سل اوښان دي. لهذا کله چي د هغه د عمد کېدلو په وجه په مقدار کي زياتوب او اضافه نه ده سوې، نو په وصف کي خو به په درجه اولیٰ زياتوب نه کيږي يعني ديت به معجّل نه واجبول کيږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

### د اقرار په وجه د لازم سوي ديت په هکله قاعده

وَكُلُّ جِنَايَةٍ اِعْتَرَفَ بِهَا الْجَانِيْ او هر هغه جنايت [جرم] چي جنايتکاره د هغه اقرار وکړي فَهِيَ فِيْ مَالِهٖ نو هغه د جنايتکاره په خپل مال کي [واجب] دی وَلَا يُصَدَّقُ عَلٰى عَاقِلَتِهٖ او د ده پر عاقله وو به د هغه [اقرار] تصديق نه کيږي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْإِقْرَارَ لَا يَتَعَدَّى الْمُقِرَّ او ځکه چي اقرار له اقرار کوونکي څخه [بل چا ته] نه متعدي کيږي لِقُصُوْرِ وِلَايَتِهٖ عَنْ غَيْرِهٖ ځکه چي له بل چا څخه د هغه ولايت قاصر دی [يعني هغه ته پر بل چا کامل ولايت حاصل نه دی] فَلَا يَظْهَرُ فِيْ حَقِّ الْعَاقِلَةِ نو ځکه دا اقرار به د عاقله وو په حق کي نه ښکاره کيږي.

**اللغات:** ﴿جناية﴾ جرم، د ګناه کار، هغه جرم چي د هغه په ارتکاب سره مال (تاوان) واجب سي. ﴿اعترف﴾ د افتعال د باب ماضي ده: اقرار کول. ﴿جاني﴾ د ضرب د باب فاعل دی: جنايتکاره، مجرم. ﴿عاقلة﴾ د قاتل او مجرم متعلقين او نږدې قوميان (خاندان والا). ﴿لا يتعدى﴾ د تفعل له بابه د نفي صيغه ده: متعدي کېدل، متجاوز کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د قتلِ خطاء ديت خو د قاتل په عاقله وو باندي واجبيږي. لېکن که قاتل خپله د جنايت او قتل اقرار وکړي، نو په دې صورت کي ديت د هاغه په مال کي واجبيږي، نه پر عاقله وو: ځکه د عاقله وو په حق کي به د قاتل او جنايتکاره د اقرار تصديق نه کيږي: ځکه مخکي چي موږ کوم دا حديث نقل کړی دی "لا تعقل العواقل عمداً" د هغه په آخر کي دا هم ذکر سوي دي "ولا صلحًا ولا إعترافًا" چي عاقله به د صلح او اقرار ديت هم نه اداء کوئ. له دې څخه معلومه سوه چي که جنايتکاره کس خپله د جنايت اقرار وکړي، نو ديت به د هاغه په مال سره اداء کول کيږي، نه د عاقله وو په مال سره.

په دې هکله عقلي دليل دا دی چې مُقر لره دا ولايت نسته چې پر عاقله وو يو شی لازم کړي لهذا د هغه اقرار حجت قاصره او لازمه دی. حجت متعديه نه دی. نو ځکه د هغه اقرار به خپله د هغه په حق کې حجت وي او عاقله وو ته به نه متعدي کيږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د بچي (ماشوم) او لېوني عمد هم د خطاء په حکم کې دی

قَالَ: وَعَمَدُ الصَّبِيِّ وَالْمَجْنُوْنِ خَطَأٌ فرمايي: او د بچي او مجنون عمد [قصداً جنايت] خطاء دي وَفِيْهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او په هغه کې پر عاقله وو ديت [واجب] دی وَكَذٰلِكَ كُلُّ جِنَايَةٍ مُوْجَبُهَا خَمْسُ مِائَةٍ فَصَاعِدًا او همداسې هر هغه جنايت چې د هغه موجب پنځه سوه درهمه وي يا تر دې زيات وي وَالْمَعْتُوْهُ كَالْمَجْنُوْنِ او باوله د لېوني په شان دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: عَمَدُهُ عَمَدٌ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د دې هر يوه [يعني د بچي، مجنون او معتوه] عمد [قصداً جنايت کول] عمد دی حَتّٰى تَجِبُ الدِّيَةُ فِيْ مَالِهِ حَالَّةً تر دې چې د هغه په خپل مال کې به ديت واجبيږي لِأَنَّهُ عَمَدٌ حَقِيْقَةً ځکه چې هغه حقيقتاً عمد دی إِذِ الْعَمَدُ هُوَ الْقَصْدُ ځکه عمد قصد [اراده] ده غَيْرَ أَنَّهُ تَخَلَّفَ عَنْهُ أَحَدُ حُكْمَيْهِ وَهُوَ الْقِصَاصُ خو دا چې د عمد له دوو حکمونو څخه يو حکم شاته [پرېښوول] سو چې هغه قصاص دی فَيَنْسَحِبُ عَلَيْهِ حُكْمُهُ الْآخَرُ نو ځکه پر هغه [قاتل] به د عمد بل حکم مرتب کيږي وَهُوَ الْوُجُوْبُ فِيْ مَالِهِ او هغه د ده په مال کې د ديت واجبېدل دي وَلِهٰذَا تَجِبُ الْكَفَّارَةُ بِهِ وَيُحْرَمُ عَنِ الْمِيْرَاثِ او په همدې [يعني د عمد کېدلو] په وجه په دې قتل سره کفاره واجبيږي او قاتل له ميراث څخه محروميږي عَلٰى أَصْلِهِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اصل مطابق لِأَنَّهُمَا يَتَعَلَّقَانِ بِالْقَتْلِ ځکه چې دا [کفاره او حرمان الميراث] د قتل سره متعلق دي.

**اللغات:** ﴿جناية﴾ جرم. د تېر عبارت په لغاتو کې يې تفصيلي معنیٰ ذکر سوه. ﴿مُوجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی (کوم څه چې د بل څه په وجه واجب سي)، حکم، مقتضا.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که بچي (ماشوم) يا مجنون (لېونی) عمداً يو جنايت وکړي. نو د دوی هغه جنايت خطاءً شمېرل کيږي. لهذا که دوی يو سړی عمداً او قصداً قتل کړي. نو هم پر دوی قصاص نه واجبيږي. بلکې ديت پرې واجبيږي لکه څرنګه چې په قتلِ خطاء کې همدا حکم دی، او زموږ په نېز دا ديت د دوی پر عاقله وو واجب دی. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د بچي او مجنون په خپل مال کې واجب دی. او زموږ په نېز د بچي او مجنون هر هغه جنايت (جرم) کوم چې له پنځو سوو درهمو يا له دې څخه د زائد مقدار مُوجِب وي. د هغه اداء کول د بچي پر عاقله وو دي او همدا حکم د معتوه هم دی. خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز پر مجرم يعني پر بچي او مجنون مال او ديت واجب دي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي دا خو عمد دی، ځکه عمد قصد ته وايي چي قصداً کار وکړی شي او هغه د لته د بچي او مجنون له طرفه موجود دی. لېکن د قتلِ عمد دوه مُوجَبه (دوه حکمه) دي: ① قصاص. ② د مال وجوب د قاتل په مال کي (يعني د عمد بل موجب دا دی چي مال (ديت) پر قاتل په خپل مال کي واجب سي). او د لته د مجرم د بچي والي يا مجنون والي په وجه مورِ د هغه يو موجب يعني قصاص ساقط کړی. لېکن د هغه بل موجب يعني د قاتل په مال کي د ديت وجوب مو باقي پرېښووی. ځکه دا عمد دی. همدا وجه ده که بچی يا مجنون يو څوک قتل کړي نو د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اصل مطابق پر قاتل کفاره هم واجبېږي او هغه به له ميراث څخه هم محرومول کېږي. ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله اصل همدا دی چي که قتل عمداً وي نو د هغه سره د کفارې وجوب او حرمان الميراث هم متعلق کېږي. نو کله چي په دې اُمورو کي پر بچي او مجنون د عمد احکام لازم کړل سوي دي، نو په ديت واجبېدلو کي به هم پر دوی د عمد احکام لازمېږي چي ديت به د همدوی په مال کي واجبېږي. (احسن الهدايه)

## د احنافو دليل

وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه او زموږ دليل هغه دی کوم چي له حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت سوی دی أَنَّهُ جَعَلَ عَقْلَ الْمَجْنُونِ عَلَى عَاقِلَتِهِ وَقَالَ چي حضرت علي رضي الله عنه د مجنون ديت د هغه پر عاقله وو مقرر کړی او ويې فرمايل عَمْدُهُ وَخَطَؤُهُ سَوَاءٌ چي د مجنون عمد او خطاء دواړه سره برابر دي وَلِأَنَّ الصَّبِيَّ مَظِنَّةُ الْمَرْحَمَةِ او ځکه چي بچی [ماشوم] د رحم [او شفقت] محل دی وَالْعَاقِلُ الْخَاطِئُ لَمَّا اسْتَحَقَّ التَّخْفِيفَ حَتَّى وَجَبَتِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او خاطي [خطاء تېرونکی] عاقل چي کله هغه هم د تخفيف مستحق دی چي ديت د هغه پر عاقله واجب سوی دی فَالصَّبِيُّ وَهُوَ أَعْذَرُ أَوْلَى بِهَذَا التَّخْفِيفِ نو بچی چي هغه زيات معذوره دی [له عاقل خاطي څخه] د دې تخفيف زيات مستحق وي وَلَا نُسَلِّمُ تَحَقُّقَ الْعَمْدِيَّةِ او موږ [د بچي وغيره له طرفه] د عمد کېدو موجودېدل نه تسليموو فَإِنَّهَا تَتَرَتَّبُ عَلَى الْعِلْمِ ځکه عمد کېدل خو پر علم [او خبر] مرتب کېږي وَالْعِلْمُ بِالْعَقْلِ او علم په عقل سره راځي وَالْمَجْنُونُ عَدِيمُ الْعَقْلِ حال دا چي د لېوني عقل نيستي دی وَالصَّبِيُّ قَاصِرُ الْعَقْلِ او د بچي عقل قاصر [کم] دی فَأَنَّى يَتَحَقَّقُ مِنْهُمَا الْقَصْدُ نو څنګه به د لېوني او بچي له طرفه قصد موجود [او ثابت] سي! وَصَارَ كَالنَّائِمِ او هغه [يعني له دوی څخه هر يو] د بيده کس په څېر سو وَحِرْمَانُ الْمِيرَاثِ عُقُوبَةٌ او له ميراثه محرومېدل يو سزا ده وَهُمَا لَيْسَا مِنْ أَهْلِ الْعُقُوبَةِ او دوی دواړه [بچی او مجنون] د سزا اهل نه دي وَالْكَفَّارَةُ كَاسْمِهَا سَتَّارَةٌ او کفاره لکه خپل نوم پټونکې [پرده اچونکې] ده [يعني د

كفارې دلفظ معنیٰ ده (د ګناه) پټونكې] وَلَا ذَنْبَ تَسْتُرُهُ او [دلته] هيڅ ګناه نسته چې كفاره هغه پټه كړي لِأَنَّهُمَا مَرْفُوْعَا الْقَلَمِ ځكه له دوی دواړو څخه قلم پورته سوی دی [معاف دي].

**اللغات:** ﴿عقل﴾ ديت. ﴿عاقله﴾ د جنايتكاره او قاتل متعلقين او د هغه خاندان والا او نژدې قوميان. ﴿مظنة﴾ ځای د ګومان. محل او مقام. ﴿ستّارة﴾ د نصر له بابه د اسمِ مبالغه صيغه ده: پټونكې، پرده اچونكې، ﴿عقوبة﴾ سزا.

**تشريح:** په مخكنۍ مسئله كې زموږ دليل دا روايت دی چې حضرت علي ﷺ د مجنون ديت د هغه پر عاقله وو لازم كړی او ورېې فرمايل چې د مجنون عمد او د هغه خطاء دواړه سره برابر دي. لهذا د حضرت علي ﷺ دا عمل او فرمان زموږ لپاره حجت او دليل دی.

په دې سلسله كې عقلي دليل دا دی چې بچی (ماشوم) او مجنون د شفقت او مهربانۍ زيات مستحق دي ځكه چې دوی معذوره دي. او كله چې د عاقل خاطي سره هم د هغه د معذور والي په وجه تخفيف او آساني سوې ده چې د هغه ديت پر عاقله وو واجب كړی سوی دی. نو بچی او مجنون خو تر هغه زيات معذوره دي او زيات د تخفيف مستحق دي. نو ځكه د دوی سره به په درجه اولیٰ تخيف او آساني كيږي او د دوی ديت به پر عاقله وو واجبول كيږي.

**ولا نسلم إلخ:** مخكې چې امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل دليل كې دا خبره كړې وه چې د بچي او مجنون له طرفه هم قصد او اراده موجود دي، نو دلته صاحب د كتاب رَحِمَهُ الله د هغه جواب وركوي فرمايي چې دا موږ نه تسليمو؛ ځكه له علم او خبر څخه بغير قصد او اراده نه كيږي او علم په عقل سره راځي او له عقل څخه بغير علم او خبر نه سي حاصليدای، حال دا چې په مجنون كې خو بالكل عقل نسته او په بچي كې خو سته لېكن قاصر دی. نو بيا به قصد او اراده له كومه ځايه متحقق او موجود سي. لهذا د بچي او مجنون حال د قصد او ارادې په نشتوالي كې د بيده كس په څېر دی.

**وحرمان الميراث إلخ:** او امام شافعي رَحِمَهُ الله چې دا خبره كړې وه چې د عمد په وجه پر بچي او مجنون كفاره هم واجبيږي او له ميراثه هم محروميږي، نو دا هم صحيح نه دي ځكه زموږ په نيز دا حكم نه دی؛ ځكه له ميراثه محروميدل خو يو عقوبت او سزا ده او بچی او مجنون د عقوبت اهل او مستحق نه دي، همدارنګه كفاره په اصل كې له كفر څخه مشتق ده چې د هغه معنیٰ ده: ستر يعني ګناه وغيره پټول. او د ګناه پټول خو تر ګناه وروسته كيږي (ځكه كله چې ګناه سوې نه وي، نو هغه به څنګه پټه كړل سي). او د بچي او مجنون له طرف هيڅ ګناه نسته ځكه دوی مرفوع القلم دي. لهذا كله چې ګناه نسته نو ستر او كفاره به څنګه وي!. نو ځكه زموږ په نيز دوی دواړه نه له ميراثه محروميږي او نه پر دوی كفاره واجبيږي. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)



# فَصْلٌ فِي الْجَنِيْنِ

(دا) فصل د جنين (په بيان كي) دى

**تشريح:** جنين هغه بچي ته وايي كوم چي تر اوسه د مور په خېټه كي وي، د جيم او نون (جَنَّ) په ماده كي د پټوالي معنىٰ ده (لكه د جنت او جن [پيري] په الفاظو كي هم دا ماده مستعمله ده چي دوى هم پټ او له ستر گو څخه نيام دي) او جنين هم د مور په خيټه كي پټ وي، نو ځكه هغه ته جنين وايي.

مخكي تر دې د سړي وغيره د قتل په هكله احكام بيان سول. اوس تر هغه وروسته د جنين د قتل په هكله احكام او مسائل بيانوي؛ ځكه جنين هم د انسان جزء دى. ليكن دا له كُل څخه مؤخر وي، نو ځكه يې د جنين احكام او مسائل وروسته بيان كړي دي. (احسن الهدايه)

## د جنين د ديت مقدار

قَالَ: وَإِذَا ضَرَبَ بَطْنَ امْرَأَةٍ فرمايي: او كله چي [حامله] ښځه پر نس ووهي فَأَلْقَتْ جَنِينًا مَيِّتًا نو ښځه مړ جنين وزېږوي فَفِيْهِ غُرَّةٌ نو په هغه كي يوه غُرّه [واجب] ده وَهِيَ نِصْفُ عُشْرِ الدِّيَةِ او غُرّه د ديت د لسمي حصې نصف دى [يعني د لسمي نيمايي] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: مَعْنَاهُ دِيَةُ الرَّجُلِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: د دې معنىٰ د سړي ديت دى [يعني د سړي د ديت نصف عُشر] وَهٰذَا فِي الذَّكَرِ او دا په مذكر [هلك] كي دي وَفِي الْأُنْثَى عُشْرُ دِيَةِ الْمَرْأَةِ او په مؤنث [نجلى] كي د ښځي د ديت عُشر [واجب] دى وَكُلٌّ مِنْهُمَا خَمْسُ مِائَةِ دِرْهَمٍ او له دې دواړو څخه هر يو پنځه سوه درهمه دى وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجِبَ شَيْءٌ او قياس دا دى چي هيڅ شى واجب نه سي لِأَنَّهُ لَمْ يُتَيَقَّنْ بِحَيَاتِهِ ځكه د جنين د ژوند يقين نسته وَالظَّاهِرُ لَا يَصْلُحُ حُجَّةً لِلِاسْتِحْقَاقِ او ظاهر حال د استحقاق لپاره د حجت جوړېدلو صلاحيت نه لري وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَالَ [1]: «فِي الْجَنِيْنِ غُرَّةٌ: عَبْدٌ أَوْ أَمَةٌ قِيمَتُهُ خَمْسُ مِائَةٍ» د استحسان دليل دا روايت دى چي نبي ﷺ وفرمايل: په جنين كي غُرّه

[1] تخريج: أخرجه أبو داؤد في كتاب الديات، باب دية الجنين، حديث رقم: ۲۵۸۰.

[واجب] ده يعني يو غلام يا يوه مينځه چي د هغه قيمت پنځه سوه درهمه وي دَيُرْوٰى " أَوْ خَمْسُمِائَةٍ " او روايت سوى دى "يا پنځه سوه درهمه" [يعني په بل روايت كي داسي دي: لى الجنين غرةٌ: عبدٌ أو أمةٌ أو خمسُ مائة] فَتَرَكْنَا الْقِيَاسَ بِالْأَثَرِ نو موږ د اثر په وجه قياس پرېښوده وَهُوَ حُجَّةٌ عَلىٰ مَنْ قَدَّرَهَا بِسِتِّ مِائَةٍ او دا حديث د هغه چا په خلاف دى حجّت چي دا غُرّه يې په شپږ سوو درهمو سره مقرر كړې ده نَحْوُمَالِكٍ وَالشَّافِعِيِّ لكه امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله .

**اللغات:** ﴿أُلقت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: اچول، را غورځول. ﴿غُـرَّة﴾ (بضم الغين). د دې لفظ څو معناوي دي: ① غوره مال لكه آس، اوښ وغيره. ② د مخ سپين والى. ③ غلام او مينځه. ④ د شي اول. ⑤ د جنين ديت. چي د هغه مقدار يو غلام يا يوه مينځه يا د كامل ديت نصف عشر (يعني د ديت دلسمي حصې نصف) دى (معجم لغة الفقهاء، حاشية هدايه)، د غُرّه وجه تسميه د هدايې په حاشيه كي په تفصيل سره بيان سوې ده. ﴿قدّرها﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: اندازه كول، مقدار ټاكل، مقرر كول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه څوک يوه حامله (حملداره) ښځه پر نس ووهي چي د هغه په وجه د ښځي په نس كي موجود بچى مړ سي او بهر راووځي، نو په دې صورت كي استحساناً پر وهونكي كس غُرّه واجب ده چي د هغه مقدار پنځه سوه درهمه دى، برابره ده جنين مذكر وي او كه مؤنث وي په هر صورت كي پر ضارب غُرّه واجب ده، خو صرف دومره خبره ده چي كه جنين مذكر وي نو د هغه ديت د سړي د ديت نصف عُشر كيږي (يعني دلسمي حصې نصف)، او كه جنين مؤنث وي نو د هغه ديت د ښځي د ديت عُشر (لسمه حصه) كيږي، او د دې دواړو مقدار سره برابر دى (يعني د سړي د ديت نصف عشر او د ښځي د ديت عُشر په مقدار كي سره برابر دي) چي دواړه پنځه سوه درهمه كيږي، ځكه د ښځي ديت د سړي د ديت نصف وي. همدا زموږ مسلک دى او همدا استحسان دى.

د دې په خلاف د قياس تقاضا دا ده چي په دې مسئله كي پر ضارب هيڅ شى هم واجب نه سي: ځكه جنين د مور په نس كي پټ او مخفي وي او په يقيني توګه د هغه د ژوند او مرګ علم نه وي. او دا هم كېدلاى سي چي هغه د ضارب له وهلو څخه مخكي د مور په نس كي مړ سوى وي، لهذا كله چي د جنين د ژوند او مرګ يقيني علم او درک نسته، نو ښكاره ده چي ژوند يې مشكوک سو او د مشكوک ژوند په ختمولو سره ضمان او تاوان نه واجبيږي، نو ځكه د قياس مطابق دلته پر ضارب هيڅ شى نه واجبيږي.

**والظاهرلايصلح إلخ:** په دې سره د يو مقدر سوال جواب وركول سوى دى (كوم چي پر مذكوره قياس وارديږي)، سوال دا دى چي د جنين ژوند مشكوک ګرځول صحيح نه دي: ځكه ظاهر حال د جنين په حق كي شاهد او ګواه دى يعني ښكاره همدا ده چي هغه به ژوندى وي لهذا هغه مړ شمېرل څنګه

صحيح دي؟، نو د همدې په جواب کې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې وروره ! ظاهر حال خو د "دفع الضرر" لپاره حجت کېدلای سي لېکن د يو شي د استحقاق او د هغه د اثبات او الزام لپاره نه سي حجت کېدلای، او دلته که مور ظاهر حال حجت ومنو، نو د حامله ښځې لپاره به پر ضارب د مال استحقاق لازم سي يعني پر ضاب به ديت ثابت او لازم سي، نو ځکه دلته په ظاهر حال سره د جنين پر ژوند دليل نه سي نيول کېدلای.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دليل دا حديث دی کوم چې په صحيحينو کې له حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت سوی دی "أن النبى صلى الله عليه وسلم قضى فى جنين امرأة من بنى لحيان بغرّة عبد أو أمة قيمته خمس مائة" او په بل روايت کې دي "...غرة عبد أو أمة أو خمس مائة" ترجمه يې ښکاره ده. له دغه حديث څخه دوه شيان معلوم سول: ① يو دا چې د جنين پر قاتل کومه غُرّه واجب ده. د هغه ماليت پنځه سوه درهمه کېدل پکار دي؛ لهذا په دې حواله سره دا حديث د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په خلاف حجت دی؛ ځکه هغو د غره مقدار شپږ سوه درهمه ټاکلی دی. ② او دويم دا خبره معلومه سوه چې په استحسان کې چې غُرّه واجب کړل سوې ده، هغه منصوص عليه ده (يعني د هغه په هکله نص [حديث] وارد سوی دی چې واجب ده)، نو په دې حواله سره قياس هم رد کړن سو. لهذا په قياس به عمل نه کيږي.

## غُـرّه پر چا واجب ده؟

وَهِيَ عَلَى الْعَاقِلَةِ عِنْدَنَا او غُرّه زمونږ په نېز پر عاقله وو [واجب] ده إِذَا كَانَتْ خَمْسَ مِائَةِ دِرْهَمٍ هکله چې هغه پنځه سوه درهمه وي وَقَالَ مَالِكٌ: فِي مَالِهِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي: چې د قاتل په مال کې [واجب] ده لِأَنَّهُ بَدَلُ الْجُزْءِ ځکه غُرّه [د مور] د جزء بدل ده [ځکه د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز جنين د مور جزء دی] وَلَنَا أَنَّهُ عليه السلام [1] قَضَى بِالْغُرَّةِ عَلَى الْعَاقِلَةِ او زمونږ دليل دا دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د غُرّه فيصله په عاقله وو باندې وکړه وَلِأَنَّهُ بَدَلُ النَّفْسِ او ځکه چې غُرّة د نفس بدل ده [نه د جزء وَلِهَذَا سَمَّاهُ عليه السلام دِيَةً او په همدې وجه نبي صلى الله عليه وسلم هغه په ديت سره نومولې ده حَيْثُ قَالَ [2]: "دُوهُ"

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الديات، باب دية الجنين، حديث رقم: ۴۵۶۸.

[2] تخريج: أخرجه الطبرانى فى معجمه فى كتاب الديات. حديث رقم: ۵۱۴، و ۱۲۳۱.

په دې حيثيت سره چې نبي ﷺ فرمايلي دي: تاسي د هغه [جنين] ديت اداء کړئ! وَقَالُوْا: «أَنَدِیٰ مَنْ لَا صَاحَ وَلَا اسْتَهَلَّ» او عاقله وو [اولياؤ] وويل: چې آيا موږ د هغه چا ديت اداء کړو چې نه يې چيغه کړې ده او نه يې ژړلي دي إِلَّا أَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ مَا دُوْنَ خَمْسِ مِائَةٍ خو عاقلې به له پنځو سوو درهمو څخه کم ديت نه اداء کوي.

**اللغات**: ﴿دُوْه﴾ د ضرب له بابه د جمع مذكر امرِ حاضر صيغه ده. وَدَىٰ يَدِیٰ وَدْيًا وَدِيَةً: ديت ورکول، خون بها اداء کول. ﴿أَ نَدِیْ﴾ په شروع کې يې همزه د استفهام ده.او نَدِیٰ له مخکيني باب څخه د جمع متکلم مضارع صيغه ده: ديت ورکول. ﴿صاح﴾ د ضرب د باب ماضي ده: چيغه وهل، آواز کول. ﴿استهل﴾ د استفعال د باب ماضي ده: د پيدايښت په وخت کې د بچې ژړل او آواز ايستل.

**تشريح**: په مخکيني عبارت کې دا ثابته سوه چې غُرّه واجب ده، اوس دا سوال پيدا سو چې پر چا واجب ده يعنې څوک به يې اداء کوي، خپله ضارب او که د هغه عاقله؟، نو فرمايي چې زموږ په نېز غُرّه پر عاقله وو واجب ده او د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز پر ضارب؛ د هغه ليل دا دی چې غُرّه دلته د جنين په وجه واجب کړل سوې ده او جنين د مور جزء دی، او کوم ارش او مال چې په ما دون النفس کې واجب سي، هغه پر عاقله وو نه بلکې پر خودي مجرم واجبيږي، نو ځکه دلته به هم غُرّه پر مجرم (ضارب) واجب وي.

ولنا إلخ: زموږ يو دليل هغه حديث دی کوم چې په کتاب کې ذکر سو چې نبي کريم ﷺ غُرّه د ضارب پر عاقله وو واجب کړه.

او بل دليل دا دی چې غُرّه د نفس بدل ده (نه د جزء لکه څرنګه چې امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي)؛ او د نفس بدل ته ديت وايي، په همدې وجه په حديث کې هغه ته ديت ويل سوي دي، حديث دا دی چې نبي کريم ﷺ د جنين د ديت اداء کولو حکم وکړی چې تاسي د هغه ديت اداء کړئ! نو عاقله وو نبي ﷺ ته وويل چې موږ څنګه د هغه ديت اداء کړو هغه خو نه آواز او چيغه کړې ده او نه يې ژړلي دي او نه يې خوراک او څښاک کړي دي (بنايه)، لنډه دا چې په حديث کې هغه ته ديت ويل سوي دي، او له دغه څخه دا هم په واضحه توګه معلومه سوه چې د جنين ديت د ضارب په عاقله وو باندې واجب دي. (ځکه د "دُوْه" حکم د وهونکي ښځې اولياؤ يعنې عاقله وو ته سوی دی. د حديث وضاحت او قصه په حاشيه کې په تفصيل سره ذکر سوي دي).

او مخکې دا اُصول هم تېر سو چې کوم جنايت د پنځو سوو (۵۰۰) درهمو يا له هغه څخه د زائد مقدار موجب وي، نو د هغه اداء کول پر عاقله وو دي او له (۵۰۰) درهمو څخه کم ارش او ديت به عاقله نه اداء کوي، او دلته چې کومه غُرّه واجب ده د هغه مقدار پنځه سوه درهمه ذي، لهذا په دې حواله سره به هم هغه په عاقله وو باندي واجب وي.

**يادونه**: د مذکوره عبارت په شروع کي چې د "إذا کانت خمس مائة" قيد او شرط لګول سوی دی، د هغه په هکله شارحينو ډېر بحث کړی دی چې له هغو څخه د بعضي حضراتو رايه دا ده چې دا شرط بې ځايه او بې محله دی؛ ځکه زموږ په نېز د غُرّه مقدار فقط همدا پنځه سوه درهمه دی، لهذا دلته د "إذا کانت" هيڅ فايده نسته، د بعضي حضراتو رايه دا ده چې دا د کاتب سهوه ده او په اصل کي د "إذًا" پر "إذْ"دی يعني دا إذًا شرطيه نه دی بلکي إذْ تعليليه دی، نو اوس د عبارت معنیٰ سمېږي ځکه اوس به دغه جمله "إذ کانت إلخ" د "هي على العاقلة" علت او دليل سي او د عبارت معنیٰ به دا سي چي "غُرّه پر عاقله وو واجب ده ځکه چي دا پنځه سوه درهمه دي" يعني ځکه چي مقدار يې پنځه سوه درهمه دی، چي هغه په عاقله وو باندي واجب دی.

او د بعضي حضراتو رايه دا ده چي کله غُره په غلام يا مينځي سره اداء کول کيږي، نو په هغه کي دا شرط دي چي د هغه قيمت به پنځه سوه درهمه وي، نو دلته په "إذا کانت إلخ" سره له داسي غلام او مينځي څخه احتراز سوی دی چي قيمت يې پنځه سوه درهمه نه وي. (احسن الهدايه بحواله بنايه، عنايه)

**غُـرّه به په څو وخت کي اداء کول کيږي؟ (د امامانو قولونه)**

| |
|---|
| وَتَجِبُ فِي سَنَةٍ او غُرّه په يوه کال کي واجب ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِي ثَلَاثِ سِنِيْنَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دريو کالو کي [واجب ده] لِأَنَّهُ بَدَلُ النَّفْسِ ځکه هغه د نفس بدل ده وَلِهٰذَا يَكُوْنُ مَوْرُوْثًا بَيْنَ وَرَثَتِهِ په همدې وجه غره د جنين د وارثانو تر مينځ ميراث کيږي [يعني په ميراث کي تقسيميږي] وَلَنَا مَا رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ الْحَسَنِ او زموږ دليل هغه دی کوم چي له محمد بن حسن رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی أَنَّهُ قَالَ: بَلَغَنَا أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ جَعَلَهُ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِي سَنَةٍ چي هغه [محمد بن حسن رَحِمَهُ الله] وفرمايل: موږ ته دا خبره رسېدلې ده چي نبي کريم ﷺ غُرّه پر عاقله وو په يوه کاله کي مقرّره کړه وَلِأَنَّهُ إِنْ كَانَ بَدَلَ النَّفْسِ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ نَفْسٌ عَلٰى حِدَةٍ او ځکه غُره که څه هم د عليحده نفس کېدلو په حيثيت سره د نفس بدل ده فَهُوَ بَدَلُ الْعُضْوِ مِنْ حَيْثُ الْاِتِّصَالِ بِالْأُمِّ |

خو د مور سره [د جنين] د متصل کېدلو په وجه هغه د اندام [جزء] بدل ده فَعَمِلْنَا بِالشَّبَهِ الْأَوَّلِ فِيْ حَقِّ التَّوْرِيْثِ نو مونږ د توريث په حق کې پر اول مشابهت عمل وکړی وَبِالثَّانِيْ فِيْ حَقِّ التَّأْجِيْلِ إِلَى سَنَةٍ او د يوه کال مهلت ورکولو په حق کې مونږ پر دويم مشابهت عمل وکړی لِأَنَّ بَدَلَ الْعُضْوِ إِذَا كَانَ ثُلُثَ الدِّيَةِ او ځکه د اندام بدل [عوض] کله چې هغه د ديت دريمه حصه وي أَوْ أَقَلَّ أَكْثَرَ مِنْ نِصْفِ الْعُشْرِ يا کم وي يعني [د ديت] د لسمي حصې له نصف څخه زيات وي يَجِبُ فِيْ سَنَةٍ نو هغه بدل په يوه کال کې واجب وي [په دې جمله کې "أكثر من نصف العشر" له "أقلّ" څخه بدل دی پر همدې بناء منصوب دی] بِخِلَافِ أَجْزَاءِ الدِّيَةِ په خلاف د ديت د اجزاوو لِأَنَّ كُلَّ جُزْءٍ مِنْهَا عَلَى مَنْ وَجَبَ ځکه د ديت هر جزء چې پر چا واجب وي يَجِبُ فِيْ ثَلَاثِ سِنِيْنَ نو هغه په دريو کالو کې واجب وي [چې په دريو کالو کې به يې اداء کوي].

**اللغات**: ﴿توريث﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: وارث ګرځول، ميراث ورکول. ﴿ثلث﴾ دريمه حصه، يو شی چې درې حصې کړل سي نو د هغه هري يوې حصې ته ثلث وي. ﴿نصف﴾ نيمه حصه، نيمايي. ﴿عُشر﴾ لسمه حصه.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې زمونږ په نېز د جنين غُرّه به په يوه کال کې اداء کول کيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د ديت په څېر غُرّه به هم په دريو کالو کې اداء کول کيږي.

د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې غُرّه د نفس بدل ده او د نفس د هر بدل ادا ينه په دريو کالو کې په کښت (په حصه حصه) سره کيږي، نو ځکه د غُرّه ادا ينه به هم په دريو کالو کې کيږي.

او د دې خبري (چې غُرّه د نفس بدل ده) يو دليل دا هم دی چې هغه د جنين د وارثانو تر مينځ د ميراث په توګه تقسيمول کيږي، او پاته سو د اطرافو او اجزاوو (اندامونو) ارش د وارثانو تر مينځ نه تقسيمول کيږي، که چيري غُرّه د نفس بدل نه وای بلکې هغه د جزء بدل وای، نو هغه به هم ميراثاً نه تقسيمول کېدای.

ولنا ما روی إلخ: په دې سلسله کې زمونږ يو دليل دا روايت دی کوم چې له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی چې نبي کريم ﷺ د قاتل پر عاقله وو په يوه کال کې د غُرّه اداء کولو فيصله وکړه.

ولأنه وإن كان إلخ: او زموږ دويم دليل دا دی چي د جنين دوه حيثته دي: ① په يوه حيثيت سره هغه عليحده (جلا) نفس دی؛ ځکه په هغه کي مستقل روح او ژوندون وي. ② او په بل حيثيت سره جنين د مور جزء او اندام دی؛ ځکه هغه د مور سره متصل وي، نو کله چي د جنين دوه حيثيته ده، نو د غرّه به هم دوه حيثيته وي، د اول حيثيت په اعتبار سره به هغه د نفس بدل وي او د دويم يوه په اعتبار سره به هغه د جزء بدل وي، لهذا موږ دغرّه پر دواړو حيثيتونو عمل وکړی نو د نفس د بدل کېدلو په حيثيت سره مو په غرّه کي وراثت جاري کړی لکه څرنګه چي په نفس کي وراثت جاري دی. او د مور د جزء کېدلو په حيثيت سره مو په يوه کال کي د هغه ادينه متعيّن کړه؛ ځکه د جزء او اندام ارش په يوه کال کي اداء کيږي په دې شرط چي د جزء ارش به د ديت له نصف عشر څخه بالکل کم نه وي، نور که نصف عُشر وي يا تر هغه زيات وي.

بخلاف أجزاء الدية إلخ د دې په خلاف د ديت اجزاء او حصې، نو هر يو به هغه په دريو کالو کي اداء کوي، دا عبارت د يو سوال جواب کېدلای سي کوم چي صاحب د اشراف الهدايې رَحِمَهُ الله ذکر کړی دی، سوال دا دی چي که شلو خلک يو کس خطاءً قتل کړی، نو د دوی هر يوه په حصه چي کوم ديت راځي هغه هم نصف عشر دی، لهذا هغه هم ستاسي د اُصول مطابق په يوه کال کي اداء کېدل پکار دي، حالانکي د هغه ادينه بالاتفاق په دريو کالو کي واجب ده چي په دريو کالو کي به اداء کول کيږي؟.

د جواب حاصل دا دی چي موږ کوم اُصول پېش کړی دی هغه د جزء د بدل په هکله دی، او دلته د نفس بدل دی خو د شريکانو د وېرښت په وجه ديت څو اجزاء ګرځېدلی دی، لهذا دا قياس مع الفارق دی.

**يادونه:** په مذکوره عبارت کي چي دا جمله ذکر سوې ده "أو أقل أكثر من نصف العشر" أکثر د أقل بدل دی، دلته شارحينو اعتراض کړی دی چي دا بې محله او بې ځايه دي؛ ځکه د نصف عُشر په صورت کي هم د ارش وجوب په يوه کال کي دی، لهذا د أکثر قيد بې فايدې دی.

خو داسي ويل کېدای سي چي مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي ثُلث او تر ثلث کم هغه مقدار کوم چي له نصف عُشر څخه زيات وي، په هغه کي وجوب په يوه کال کي دی، نو ځکه د نصف عُشر په صورت کي به هم وجوب په يوه کال کي وي. (اشرف الهدايه، احسن الهدايه)

## د غــرّه په وجوب کې د اختلاف جنس حکم

وَيَسْتَوِيْ فِيْهِ الذَّكَرُ وَالْأُنْثٰى او په دې کې [يعني د غرّه د مقدار په وجوب کې] مُذکر او مؤنث [هلک او نجلۍ] دواړه سره برابري لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د هغه حديث د مطلق والي په وجه کوم چې موږ روايت کړی وَلِأَنَّ فِي الْحَيَّيْنِ إِنَّمَا ظَهَرَ التَّفَاوُتُ لِتَفَاوُتِ مَعَانِي الْآدَمِيَّةِ او ځکه چې په دوو ژونديو [مذکر او مؤنث] کې د آدميت د معنیٰ متفاوت کېدلو [مختلف کېدلو] په وجه تفاوت ښکاره سوی دی وَلَا تَفَاوُتَ فِي الْجَنِيْنِ او په جنين کې هيڅ تفاوت نسته فَيُقَدَّرُ بِمِقْدَارٍ وَاحِدٍ نو ځکه د جنين ديت به صرف په يوه مقدار سره تاکل کيږي وَهُوَ خَمْسُ مِائَةٍ او هغه پنځه سوه ده درهمه دي.

**اللغات:** ﴿حَيَّيْنِ﴾ تثنيه د حَيّ ده: ژوندی. ﴿تفاوت﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل (مختلف کېدل)، فرق او توپير. ﴿آدمية﴾ آدمي کېدل، انسان کېدل، انسان والی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د غـرّه د مقدار په وجوب کې د مُذکر جنين او مُؤنث جنين دواړو حکـم سره برابر دی يعني په دواړو کې پنځه سوه درهمه واجب دي؛ ځکه مخکې چې کوم حديث ذکر سو يعني "في الجنين غرّةٌ: عبدٌ أو أمةٌ أو خمسُ مائةٍ" هغه مطلق دی او په هغه کې د مذکر او مؤنث جنين هيڅ قيد نسته.

عقلي ليـل دا دی چې په ژوندي مذکر او مؤنث کې چې کوم تفاوت وي، هغه د آدميت (انسان کېدلو) د معنیٰ د اختلاف او تفاوت په وجه وي (چې په مالکيت کې د دوی معنیٰ او مرام يو له بل څخه مختلف وي)، مثلاً مال دی نو سړی او ښځه دواړه د هغه مالک کېدلای، لېکن د نکاح مالک صرف سړی کېدلای سي همدارنګه د طلاق په ملکيت کې هم سړی منفرد دی (نو د دوی تر مينځ په هغه څه کې تفاوت دی کوم چې د آدميت له خصائصو څخه دی)، او پاتـه سو په جنين کې آدميت معدوم دی، نو ځکه په هغه کې به د آدميت د معناوو تفاوت هم نه وي بلکې هغه که مذکر وي او که مؤنث په هر صورت کې به د هغه يو ديت وي يعني پنځه سوه درهمه. (احسن الهدايه)

## که جنين ژوندی راووځي او بيا مړ سي، يا مړ سي او مور يې هم مړه سي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ أَلْقَتْ حَيًّا ثُمَّ مَاتَ بيا که ښځه ژوندی جنين وزېږوي فَفِيْهِ دِيَةٌ كَامِلَةٌ نو په هغه کې پوره ديت [واجب] دی لِأَنَّهُ أَتْلَفَ حَيًّا بِالضَّرْبِ السَّابِقِ ځکه ضارب د مخکيني وهلو په وجه يو ژوندی نفس هلاک کړی وَإِنْ أَلْقَتْهُ مَيِّتًا ثُمَّ مَاتَتِ الْأُمُّ او که مور مړ جنين وزېږوي بيا مور مړه سي فَعَلَيْهِ دِيَةٌ

بِقَتْلِ الْأُمِّ نو پر ضارب د مور د قتل په وجه دیت [واجب] دی وَغُرَّةٌ بِإِلْقَائِهَا او د [مړه] جنین زېږولو په وجه غره [واجب] ده وَقَدْ صَحَّ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ قَضٰى فِيْ هٰذَا بِالدِّيَةِ وَالْغُرَّةِ [1] او په صحیح روایت سره ثابت دي چي نبي کریم ﷺ په دې صورت کي د دیت او غره فیصله کړې ده.

**اللغات:** ﴿ألقت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: اچول، راغورځول، مراد: زېږول. ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: تلفول او ضایع کول، هلاکول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که دیو چا د وهلو په وجه د مور له خیټې څخه جنین ژوندی را ووځي او بیا مړ سي، نو په دې صورت کي پر ضارب د نفس ټوله دیت واجبیږي؛ ځکه داسي جنین د ژوندي کس په حکم کي دی او د ژوندي کس په وژلو سره پوره دیت واجبیږي، لهذا د مذکوره جنین په وژلو سره به هم پر ضارب پوره دیت واجب وي؛ ځکه د هغه مرګ د ضارب د مخکینۍ وار او ضرب په وجه واقع سوی دی.

**وإن ألقت میتا إلخ:** د مسئلې بل اړخ دا دی چي که د وهلو په وجه جنین مړ راووځي بیا د هغه مور هم مړه سي، نو په دې صورت کي پر ضارب دوه ضمانه واجبیږي: ① یو د مور د قتل په وجه پر هغه د نفس دیت واجبیږي، ② او بل د جنین د مړ کېدلو په وجه پر هغه غره واجبیږي؛ ځکه نبي کریم ﷺ په داسي صورت کي پر ضارب همدا دوه ضمانه واجب کړي دي، رواه الطبراني في معجمه. (احسن الهدایه)

## که مور مړه سي او جنین ژوندی راووځي او بیا مړ سي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ مَاتَتِ الْأُمُّ مِنَ الضَّرْبَةِ او که د وهلو په وجه مور مړه سي ثُمَّ خَرَجَ الْجَنِيْنُ بَعْدَ ذٰلِكَ حَيًّا ثُمَّ مَاتَ بیا تر دې وروسته جنین ژوندی را ووځي فَعَلَيْهِ دِيَةٌ فِي الْأُمِّ وَدِيَةٌ فِي الْجَنِيْنِ نو پر ضاب یو دیت په مور کي [واجب] دی او یو دیت په جنین کي لِأَنَّهُ قَاتِلُ شَخْصَيْنِ ځکه چي هغه [ضارب] د دوو کسانو قاتل دی.

**اللغات:** ﴿ضربة﴾ یو وار وهل.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي که د یو چا د وهلو په وجه د جنین مور مړه سي، او جنین ژوندی را ووځي او بیا هغه هم مړ سي، نو په دې صورت کي دوه پوره دیتونه واجبیږي، ځکه په دې صورت کي ضارب د دوو جلا نفسونو قاتل دی.

---

[1] تخریج: أخرجه الطبراني، في كتاب الديات.

## که مور مړه سي او بيا جنين مړ راووځي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ مَاتَتْ ثُمَّ أَلْقَتْ مَيِّتًا او که مور مړه سي بيا هغه مړ جنين وزيږوي فَعَلَيْهِ دِيَةٌ فِي الْأُمِّ نو پر ضارب ديت [واجب] دی په مور کي وَلَاشَيْءَ فِي الْجَنِينِ او په جنين کي [پر ضارب] هيڅ شی نسته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: تَجِبُ الْغُرَّةُ فِي الْجَنِينِ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په جنين کي غرّه واجب ده لِأَنَّ الظَّاهِرَ مَوْتُهُ بِالضَّرْبِ ځکه ښکاره د دې جنين مړ کېدل د وهلو په وجه دي [يعني ښکاره همدا ده چي جنين د ضارب د وهلو په وجه مړ سوی دی] فَصَارَ كَمَا إِذَا أَلْقَتْهُ مَيِّتًا وَهِيَ حَيَّةٌ نو داسي سو لکه مور چي جنين مړ وزيږوي او مور ژوندۍ وي وَلَنَا: أَنَّ مَوْتَ الْأُمِّ أَحَدُ سَبَبَيْ مَوْتِهِ او زموږ دليل دا دی: چي د مور مرګ د جنين د مرګ له دوو سببونو څخه يو سبب دی لِأَنَّهُ يَخْتَنِقُ بِمَوْتِهَا ځکه د مور په مرګ سره جنين خپه کيږي [ساه يې دربيږي] إِذْ تَنَفُّسُهُ بِتَنَفُّسِهَا ځکه د هغه ساه اخيستل د مور په ساه اخيستلو سره دي [يعني جنين د مور په ساه سره ساه اخلي] فَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ بِالشَّكِّ نو د شک په وجه به ضمان نه واجبيږي.

**اللغات**: ﴿يختنق﴾ د افتعال د باب مضارع ده: خپه کېدل، ساه دربېدل (ساه بندېدل)، ﴿تَنَفُّس﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: ساه اخيستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که اول مور مړه سي بيا د هغې له خېټي څخه مړ جنين راووځي، نو په دې صورت کي زموږ په نېز پر ضارب صرف يو ضمان واجبيږي يعني د مور ديت او په جنين کي هيڅ شی نه واجبيږي، لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د جنين د مرګ په بدله کي پر ضارب غرّه واجبيږي، ځکه ښکاره ده چي جنين د ضارب د وهلو په وجه مړ سوی دی، نو دا داسي سو لکه د ضارب د وهلو په وجه چي مور مړ جنين وزيږوي او مور ژوندۍ وي او په دې صورت کي پر ضارب د جنين په بدله کي غرّه واجب ده (لکه مخکي چي ذکر سوه)، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به هم پر هغه د جنين په بدله کي غرّه واجب وي.

**ولنا إلخ**: زموږ د دليل حاصل دا دی چي دلته د جنين د مرګ دوه سببه دي: ① يا خو هغه د ضارب د وهلو په وجه مړ سوی دی، ② يا د مور د مړ کېدلو په وجه مړ سوی دی؛ ځکه جنين د مور د ساه په ذريعه ساه اخلي، لهذا د مور د مرګ په وجه د هغه ساه دربېدلای سي چي په دې وجه هم د هغه مرګ واقع کېدلای سي، او له دې دواړو څخه يو سبب هم متيقّن نه دی، لهذا د جنين د مرګ سبب مشکوک

سبو او د شک. په وجه ضمان ساقطيږي، نو ځکه زموږ په نيز په دې صورت کې د جنين د مړ کېدلو په وجه پر ضارب هيڅ شی نه واجبيږي. (احسن الهدايه)

## د جنين د ميراث حکم

قَالَ: وَمَا يَجِبُ فِي الْجَنِيْنِ مَوْرُوْثٌ عَنْهُ فرمايي: او په جنين کي چې کومه غرّه واجبيږي هغه د ده له طرفه ميراث کېدونکې ده [يعني د ده په ميراث کي به د وارثانو تر مينځ تقسيمول کيږي] لِأَنَّهُ بَدَلُ نَفْسِهِ ځکه چې هغه غرّه د جنين د نفس بدل ده فَيَرِثُهُ وَرَثَتُهُ نو د ده وارثان به د هغې وارثان کيږي وَلَا يَرِثُهُ الضَّارِبُ او ضارب د هغې نه وارث کيږي حَتّٰى لَوْ ضَرَبَ بَطْنَ امْرَأَتِهِ فَأَلْقَتْ ابْنَهُ مَيِّتًا همدا وجه ده که څوک خپله ښځه پر نس ووهي او ښځه د ده [ضارب] ځوی مړ وزېږوي فَعَلٰى عَاقِلَةِ الْأَبِ غُرَّةٌ وَلَا يَرِثُ مِنْهَا نو د پلار پر عاقله وو غرّه [واجب] ده او پلار له دې غرّه څخه نه وارث کيږي لِأَنَّهُ قَاتِلٌ بِغَيْرِ حَقٍّ مُبَاشَرَةً ځکه هغه مباشرتاً [بذات خود] قاتل دی وَلَا مِيْرَاثَ لِلْقَاتِلِ او قاتل لره ميراث نشته.

**اللغات:** ﴿موروث﴾ د حسب له بابه د مفعول صيغه ده: ميراث سوی، ميراث کېدونکی، (په ميراث کي تقسيمېدونکی)، ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: بذات خود يو کار کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې په کومو صورتو کي چې په جنين کي غرّه واجبيږي، ځرنګه چې هغه غرّه د جنين د نفس بدل او عوض ده، نو ځکه په هغه کي به ميراث جاري کيږي يعني د جنين ټوله وارثان په هغه کي شريکان کيږي، ها! که له وارثانو څخه يو وارث د مذکوره جنين قاتل وي، نو هغه ته ميراث نه حاصليږي. د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چې خپله حامله ښځه پر نس ووهي او ښځه مړ جنين وزېږوي، نو په دې صورت کي د ضارب پر عاقله وو غرّه واجبيږي او پلار په هغه کي د ميراث نه مستحق کيږي؛ ځکه هغه قاتل دی او په ناحقه يې دا جنين قتل کړی دی، او قاتل ته د نصّ له رويه ميراث نه حاصليږي، نو ځکه مذکوره وارث به له ميراثه محروميږي. (احسن الهدايه)

## د مينځي د جنين د ضمان بيان

قَالَ: وَفِي جَنِيْنِ الْأَمَةِ إِذَا كَانَ ذَكَرًا فرمايي: او د مينځي په جنين کي که چيري هغه مذکر وي نِصْفُ عُشْرِ قِيْمَتِهِ لَوْ كَانَ حَيًّا د هغه د قيمت د لسمي حصې نصف [واجب] دی که هغه ژوندی وي [په لنډه وينا دا چې د مينځي په جنين کي د ژوندي جنين د قيمت نصف عشر واجب دی] وَعُشْرُ قِيْمَتِهِ لَوْ

كَانَ أُنْثٰى او د هغه د قيمت لسمه حصه [واجب] ده که چيري هغه مؤنث وي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِيْهِ عُشْرُ قِيْمَةِ الْأُمِّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په هغه کي د مور د قيمت لسمه حصه [واجب] ده لِأَنَّهُ جُزْءٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه جنين په يوه اعتبار سره د مور جزء [اندام] دی وَضَمَانُ الْأَجْزَاءِ يُؤْخَذُ مِقْدَارُهَا مِنَ الْأَصْلِ او د اجزاؤ د ضمان مقدار د اجزاؤ له اصل څخه اخيستل کيږي وَلَنَا: أَنَّهُ بَدَلُ نَفْسِهِ زمونږ دليل دا دی: چي د جنين ضمان د جنين د نفس بدل دی لِأَنَّ ضَمَانَ الطَّرَفِ لَا يَجِبُ إِلَّا عِنْدَ ظُهُوْرِ النُّقْصَانِ مِنَ الْأَصْلِ ځکه د طرف [اندام] ضمان نه واجبيږي مگر د اصل د نقصان ښکاره کېدلو په وخت کي وَلَا مُعْتَبَرَ بِهٖ فِيْ ضَمَانِ الْجَنِيْنِ او د جنين په ضمان کي د اصل د نقصان لره هيڅ اعتبار نشته فَكَانَ بَدَلَ نَفْسِهٖ نو هغه [د جنين ضمان] به د جنين د نفس بدل وي فَيُقَدَّرُ بِهَا نو ځکه هغه [د جنين ضمان] به د جنين په نفس سره اندازه کول کيږي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: يَجِبُ ضَمَانُ النُّقْصَانِ لَوِ انْتَقَصَتِ الْأُمُّ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د نقصان ضمان واجبيږي که چيري مور نقصان والا سي [يعني نقصان پکښي پيدا سي] اِعْتِبَارًا بِجَنِيْنِ الْبَهَائِمِ د څارويو پر جنين په قياس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ الضَّمَانَ فِيْ قَتْلِ الرَّقِيْقِ ضَمَانُ مَالٍ عِنْدَهٗ او دا ځکه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د غلام د قتل ضمان د مال ضمان دی عَلٰى مَا نَذْكُرُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى د هغه تفصيل مطابق کوم چي به موږ ان شاء الله ذکر کړو فَصَحَّ الْاِعْتِبَارُ عَلٰى أَصْلِهٖ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله د اصل مطابق [د څاروي پر جنين] قياس کول صحيح سوه.

**اللغات:** ﴿انتقصت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: کمېدل، ناقصه کېدل، نقصان پکښي راتلل، ﴿بهائم﴾ جمع د بَهِيْمَةٌ ده: چارپاري، څاروی، ﴿رقيق﴾ غلام.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که څوک د يو چا مينځه پر نس ووهي او د هغې له نس څخه مړ جنين را ووځي، نو زمونږ په نيز د دې جنين ضمان به د ژوندي جنين د قيمت سره اندازه کول کيږي. يعني که دا مړ جنين مذکر يعني هلک وي، نو پر ضارب د ژوندي جنين د قيمت شلمه حصه (نصف عشر) واجبيږي، او که هغه مؤنث يعني نجلۍ وي، نو د ژوندي مؤنث جنين د قيمت لسمه حصه (عُشر) واجبيږي.

په دې سلسله کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې جنين برابره ده هلک وي او که نجلی، په هر صورت کې به د هغه قيمت د مور (مينځې) د قيمت سره اندازه کول کيږي او د مور د قيمت عُشر (لسمه حصه) واجبيږي؛ ځکه جنين د مور سره د متصل کېدلو په وجه د مور جزء (اندام) دی او د اجزاؤ د ضمان مقدار له اصل څخه اخيستل کيږي او د اصل د قيمت سره اندازه کول کيږي. لهذا د جنين د ضمان مقدار به هم د هغه د اصل يعني د مور له قيمت څخه اخيستل کيږي او د مور د قيمت عُشر (لسمه حصه) به واجبيږي.

ولنا إلخ: زموږ د دليل حاصل دا دی چې اصل اعتبار د جنين قيمت لره دی، نه د مور قيمت لره؛ ځکه دا ضمان د جنين د نفس ضمان دی، د مور د جزء (اندام) ضمان نه دی؛ ځکه چيري چې د جزء (اندام) ضمان واجبيږي، نو هلته د دې اعتبار کيږي چې په اصل کې څومره کمي او نقصان راغلی دی، بيا هغومره ضمان واجبول کيږي، حالانکې دلته د هغه اعتبار نه دی سوی بلکې مطلقاً ويل سوي دي چې په هغه کې د مور د قيمت عُشر واجبيږي لهذا که د ښځې هيڅ نقصان د هغه په وجه نه وي سوی نو بيا خو هيڅ ضمان نه واجبېدل پکار دي. لهذا معلومه سوه چې دا د نفس ضمان دی، نه د جزء ضمان، او کله چې دا د نفس ضمان دی، نو هغه به د جنين د نفس د قيمت سره اندازه کول کيږي او د هغه د قيمت مطابق به نصف عُشر يا عُشر واجبيږي.

وقال أبويوسف إلخ: په دې سلسله کې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې که د جنين په مرګ سره د هغه مور ته څه نقصان رسېدلی وي، نو پر ضارب ضمانِ نقصان (د نقصان ضمان) واجبيږي او که د جنين په مرګ سره د هغه مور ته هيڅ نقصان نه وي رسېدلی، نو پر ضارب هيڅ شی نه واجبيږي، لکه څرنګه چې په څاروي کې همدغه حکم دی چې که څوک مثلاً يوه بلاربه بزه په نس کې ووهي او د هغې بچی (مرغومی) مړ راووځي، نو که د دې په وجه بزې ته نقصان ورسيږي (قيمت يې کم سي)، نو پر ضارب ضمانِ نقصان واجبيږي او که بزې ته نقصان نه ورسيږي، نو د جنين (مرغومي) په مړ کېدلو سره پر ضارب هيڅ شی نه واجبيږي. نو همدغسې د مينځې مسئله ده. لهذا يو پر بل قياسول صحيح دي.

په بله وينا دا چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دا مسئله د څاروي پر مسئلې قياس کړې ده او د قياس علت يې دا بيان کړی دی چې څرنګه څاروی مال دی، همداسې د مينځې جنين هم مال دی او د هغه د قتل ضمان د مال ضمان دی. لهذا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د اصل مطابق د هغه دا قياس صحيح

ف ب ۰ (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د مينځي د آزاد جنين د ضمان بيان

قَالَ: فَإِنْ ضُرِبَتْ فرمايي: كه مينځه ووهله سي فَأَعْتَقَ الْمَوْلَى مَا فِي بَطْنِهَا بيا مالک هغه [حمل] آزاد کړي کوم چي د هغې په نس کي دی ثُمَّ أَلْقَتْهُ حَيًّا ثُمَّ مَاتَ بيا مينځه ژوندی جنين وزېږوي بيا هغه جنين مړ سي فَفِيْهِ قِيْمَتُهُ حَيًّا نو په هغه کي د جنين د ژوند د حالت قيمت [واجب] دی [يعني د ژوندي جنين قيمت واجب دی] وَلَا تَجِبُ الدِّيَةُ وَإِنْ مَاتَ بَعْدَ الْعِتْقِ او ديت نه واجبيږي كه څه هم دا جنين تر آزادېدلو وروسته مړ سوی دی لِأَنَّهُ قَتَلَهُ بِالضَّرْبِ السَّابِقِ ځکه ضارب د مخکيني وهلو په وجه هغه قتل کړی دی وَقَدْ كَانَ فِي حَالَةِ الرِّقِّ او جنين [په هغه وخت کي] د غلامتوب په حالت کي وو فَلِهٰذَا تَجِبُ الْقِيْمَةُ دُوْنَ الدِّيَةِ نو ځکه قيمت به واجبيږي او ديت به نه واجبيږي وَتَجِبُ قِيْمَتُهُ حَيًّا او د هغه د ژوند د حالت قيمت [ځکه] واجبيږي لِأَنَّهُ بِالضَّرْبِ صَارَ قَاتِلًا إِيَّاهُ وَهُوَ حَيٌّ ځکه چي ضارب په داسي حال کي د هغه قاتل ګرځېدلی دی چي هغه ژوندی وو فَنَظَرْنَا إِلَى حَالَتَيِ السَّبَبِ وَالتَّلَفِ نو ځکه موږ د سبب او تلف دواړو حالتونو ته وکتل وَقِيْلَ: هٰذَا عِنْدَهُمَا او ويل سوي دي: چي دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ تَجِبُ قِيْمَتُهُ مَا بَيْنَ كَوْنِهِ مَضْرُوْبًا إِلَى كَوْنِهِ غَيْرَ مَضْرُوْبٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د جنين هغه قيمت واجبيږي کوم چي د ده د مضروب کېدلو او غير مضروب کېدلو په مينځ کي وي لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ ځکه آزادول د سرايت ختمونکي دي عَلَى مَا يَأْتِيْكَ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى د هغه تفصيل مطابق چي وروسته به ان شاء الله تا ته راسي.

**اللغات:** ﴿رِقّ﴾ غلامتوب، غلام والی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد مثلاً د خالد حامله مينځه ووهي او تر وهلو وروسته د مينځي مالک (خالد) د هغې حمل (جنين) آزاد کړي او تر دې وروسته د هغه مخکيني وهلو په نتيجه کي د مينځي جنين پيدا سي خو هغه بيرته ژر مړ سي، نو پر ضارب د ژوندي جنين چي کوم قيمت وي هغه واجبيږي او ديت نه واجبيږي که څه هم دا جنين د مالک تر آزادولو وروسته مړ سوی دی؛ ځکه هغه د ضارب د مخکيني وهلو په وجه مړ سوی دی او د مخکيني وهلو په وخت کي دا جنين غلام وو (او د غلام د وژلو په صورت کي د هغه قيمت واجبيږي)، نو ځکه پر ضارب به د هغه قيمت واجب

وي. او دا قيمت به د جنين مالک ته ورکول کيږي (نه دهغه وارثانو ته)؛ ځکه په کوم وخت کي چي د دې جنين قيمت واجب سوی دی، په هغه وخت کي جنين د خپل مالک په ملکيت کي وو. لهذا د هغه قيمت مالک ته حاصليږي.

وتجب قيمته حيّا إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې مسئله کي پر ضارب د ژوندي جنين قيمت واجبيږي، ځکه هغه ژوندی پيدا سوی دی او بيا مړ سوی دی. نو دا داسي ده لکه ضارب چي ژوندی جنين وژلی وي. لهذا دلته د سبب په حالت او د تلف په حالت کي تعارض راغلی (يعني په کوم سبب سره چي پر ضارب د جنين ضمان واجبيږي هغه سبب [وهل] د جنين د غلامتوب په حالت کي واقع سوی دی او په کوم وخت دکي چي جنين تلف سوی دی. هغه د ژوند او آزادي په حالت کي تلف سوی دی). نو د حالت سبب تقاضا دا ده چي قيمت واجب سي، ځکه په هغه حالت کي جنين غلام وو. او د حالت تلف تقاضا دا ده چي ديت واجب سي. ځکه په هغه حالت کي جنين ژوندی وو. نو موږ د دواړو حالتونو په لحاظ کولو سره قيمت هم واجب کړی او د ژوندي جنين قيمت مو واجب کړی (يعني د دواړو حالتونو لحاظ او رعايت مو په دې توګه وکړی چي د جنين د قيمت سره موږ د هغه د ژوند د حالت قيمت مشروط کړی چي ضارب به د جنين قيمت ورکوي او هغه به هم د ژوندي جنين قيمت وي).

وقيل هذا عندهما إلخ: د ځيني حضراتو رايه دا ده چي مذکوره تفصيل د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی او د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د مضروب او غير مضروب يا په بله وينا دا چي د ژوندي او مړه جنين په قيمتونو کي چي کوم تفاوت وي، هغه واجبيږي. مثلاً که د ژوندي جنين قيمت زر درهمه وي او د مړه جنين قيمت اووه سوه درهمه وي، نو څرنګه چي په دوی کي درې سوه درهمه تفاوت دی. لهذا پر ضارب همدا درې سوه روپۍ واجبيږي؛ ځکه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز آزادول د سرايت ختمونکي دي نو د هغه په نيز تر آزادېدلو وروسته د مخکيني وهلو د سرايت دروازه بنده سوه (يا په بله وينا دا چي د مخکيني وهلو په وجه د هغه مرګ واقع کېدونکی نه سو)، نو ځکه پر هغه به صرف همدا تفاوت واجبيږي. د دې نور تفصيل به ان شاء الله وروسته په "باب فی جناية المملوك والجناية عليه" کي راسي. (احسن الهدايه)

## په جنين کي د کفارې بحث

قَالَ: وَلَا كَفَّارَةَ فِي الْجَنِيْنِ فرمايي: او [زموږ په نيز] په جنين کي کفاره نسته وَعِنْدَ الشَّافِعِيِّ تَجِبُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز کفاره واجب ده لِأَنَّهُ نَفْسٌ مِنْ وَجْهٍ ځکه چي جنين په يوه اعتبار سره نفس دی فَتَجِبُ الْكَفَّارَةُ احْتِيَاطًا نو ځکه احتياطاً به کفاره واجبيږي وَلَنَا: أَنَّ الْكَفَّارَةَ فِيْهَا مَعْنَى الْعُقُوْبَةِ او زموږ دليل دا دی: چي په کفاره کي د عقوبت معنیٰ ده وَقَدْ عُرِفَتْ فِي النُّفُوْسِ الْمُطْلَقَةِ او عقوبت په نفوس

مطلقه وو کي پېژندل سوی دی فَلَا تَتَعَدَّاهَا نو ځکه عقوبت به له نفوس مطلقه وو څخه [من وجه نفس وغیره] ته نه متعدي کیږي وَبِهٰذَا لَا يَجِبُ كُلُّ الْبَدَلِ په همدې وجه پوره بدل واجب نه سو قَالُوْا: إِلَّا أَنْ يَشَاءَ ذٰلِكَ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: مگر دا چي د ضارب دا خوښه وي [چي کفاره اداء کړي. يعني په خپله خوښه کفاره اداء کړي] لِأَنَّهُ ارْتَكَبَ مَحْظُوْرًا ځکه چي هغه يو ممنوع کار کړی دی فَإِذَا تَقَرَّبَ إِلَى اللهِ تَعَالٰى نو کله چي هغه [د کفارې په ذريعه] الله ته نژدېکت حاصل کړي كَانَ أَفْضَلَ لَهُ نو دا به د هغه لپاره افضل وي وَيَسْتَغْفِرُ مِمَّا صَنَعَ او هغه دي استغفار کوي له هغه [جرم] څخه کوم چي يې کړی دی.

**اللغات**: ﴿عقوبة﴾ سزا. ﴿لا تتعداها﴾ د تفعل له بابه د نفي صيغه ده: متعدي کېدل. متجاوز کېدل. ﴿محظور﴾ د ضرب له بابه اسم مفعول دی: ممنوع (هغه څه چي په شريعت کي منع کړل سوي وي). ناروا. ﴿أفضل﴾ د اسم تفضيل صيغۀ ده: زيات فضيلت والا. ډېر غوره. ﴿صنع﴾ د فتح د باب ماضي ده: کول (يو څه کول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زموږ په نيز د جنين پر قاتل کفاره واجب نه ده. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه کفاره واجب ده او همدا د امام مالک او امام محمد رَحِمَهُمَا الله مسلک دی (بنايه). د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي جنين من وجه نفس دی او د نفس په قتلولو سره کفاره واجبيږي. لهٰذا د من وجه نفس يعني د جنين په قتلولو سره به هم احتياطاً کفاره واجبيږي.

ولنا إلخ: زموږ دليل دا دی چي په کفاره کي د عقوبت معنیٰ ده او عقوبت د نفسِ مطلقه سره متعلق کيږي او جنين نفسِ مطلقه نه دی. بلکي من وجه نفس دی. لهٰذا په هغه کي به د عقوبت معنیٰ نه متحققه کيږي او د هغه په قتلولو سره به کفاره نه واجبيږي.

د جنين د نفسِ مطلقه نه کېدلو دليل دا هم دی چي پر جنين د قاتل ټوله ديت نه واجبيږي بلکي غرّه واجبيږي. که چيري جنين مطلق نفس وای. نو په هغه کي به ټوله ديت واجبېدلای. معلومه سوه چي جنين مطلق نفس نه دی او په هغه کي کفاره واجب نه ده.

ها! که چيري ضارب په خپله خوښه د تقربِ الهي او ثواب په خاطر کفاره اداء کړي. نو دا د هغه په حق کي ډېره غوره ده او تر کفارې اداء کولو وروسته هم هغه ته استغفار کول پکار دي.

## د ناقص جنين بيان

وَالْجَنِيْنُ الَّذِيْ قَدِ اسْتَبَانَ بَعْضُ خَلْقِهِ او هغه جنين چي د هغه بعضي خلقت [او اندامونه] ښکاره سوي وي بِمَنْزِلَةِ الْجَنِيْنِ التَّامِّ فِيْ جَمِيْعِ هٰذِهِ الْأَحْكَامِ هغه په دغه ټولو احکامو کي د بشپړ جنين په درجه کي دی لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا د هغه حديث د مطلق والي په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّهُ وَلَدٌ فِيْ حَقِّ أُمُوْمِيَّةِ

اَلْوَلَدِ او ځکه چې داسې جنې ولد [او بشپړ جنین] دی [د مینځې] دأم ولد کېدلو په حق کې وَانْقِضَاءِ الْعِدَّةِ او د عدت تېرېدلو په حق کې وَالنِّفَاسِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ او د نفاس او له دې څخه بغیر د نورو شیانو په حق کې فَكَذَا فِي حَقِّ هٰذَا الْحُكْمِ نو همداسې به د دغه حکم په حق کې هم [هغه ولد او بشپړ جنین] وي وَلِأَنَّ بِهٰذَا الْقَدْرِ يَتَمَيَّزُ مِنَ الْعَلَقَةِ وَالدَّمِ او ځکه چې په دومره مقدار خلقت سره جنین له کلکې وینې [توټې] او له وینې څخه جلا کېږي فَكَانَ نَفْسًا نو ځکه هغه به [بشپړ] نفس وي.

**اللغات:** ﴿استبان﴾ د استفعال د باب ماضي ده: څرګندېدل، واضح کېدل. ﴿خَلق﴾ د دې لفظ څو معناوي دي: مخلوق. خلقت. هر مسه کېدونکی شی (کل شیء ملموس). ﴿أمومية﴾ مور کېدل، مور والی، أمومیة الولد: أم ولد کېدل. ﴿علقة﴾ سخته کلکه وینه. د جنین اوله مرحله چې تر اوسه یې اندامونه وغیره هیڅ نه وي ښکاره سوي. او تر دغه مرحلې وروسته بیا مضغه ده یعني د وینې ټوټه کاللقمة الممضوغة. ﴿يتميّز﴾ د تفعّل له بابه د مضارع صیغه ده: علیحده کېدل، بېلېدل. جلا کېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** چې دا دی که دیو جنین بعضې اندامونه مثلاً لاسونه. پښې. نوکان ښکاره سوي وي (چې هغه غالباً د حمل له ورځې څخه یو سل او شل [۱۲۰] ورځې وروسته ښکاره کېږي)، نو داسې جنین د بشپړ جنین په درجه کې دی؛ ځکه مخکې چې موږ کوم حدیث ذکر کړی یعني "فی الجنین غرّة إلخ" هغه مطلق دی چې په هغه کې د تامّ الخلقة جنین هیڅ قید او شرط نسته، نو د دې حدیث په اطلاق کې به د بعضې اندامونو والا جنین هم داخل وي او هغه به هم د بشپړ جنین په حکم کې وي چې د هغه د قتلولو په عوض کې به پر ضارب غره و... ـي.

په دې هکله عقلي دلیل دا دی چې په داسې جنین سره مینځه أم ولد ګرځي چې بعضې اندامونه یې ښکاره سوي وي. همدارنګه په هغه سره د حاملې ښځې عدت پوره کېږي. همدارنګه په هغه سره ښځه نفاس والا ګرځي. نو څرنګه چې په دې أمورو او احکامو کې هغه د بشپړ جنین په درجه کې دی. نو همدا... به د غرّه په وجوب کې هم دغه نابشپړ جنین د بشپړ جنین په درجه کې وي.

په دې هکله یو دلیل دا هم دی چې کله د جنین بعضې خلقت او اندامونه ښکاره سوي وي. نو اوس جنین کلکه وینه او د غوښو ټوټه نه سوه (یا په وبله وینا دا چې اوس هغه علقه او مضغه نه سوه. بلکې له دې مرحلو څخه ووتی)، او تر علقه او مضغه وروسته د نفس مقام او مرحله ده. نو ځکه اوس به هغه ته د نفس درجه ورکول کېږي. (احسن الهدایه: اشرف الهدایه)

فقط والله أعلم وعلمه أتم



# بَابُ مَا يُحْدِثُهُ الرَّجُلُ فِي الطَّرِيقِ

(دا) باب د هغه شيانو (په بيان کي) دی کوم چي يې
سړی په لاره کي جوړوي

**تشريح:** قتل کله د مباشرت په توګه وي (يعني بلا واسطه په خپله قتل کول) او کله د سبب په توګه وي (يعني د قتل کولو سبب او واسطه جوړېدل). او څرنګه چي مباشرت‌دله سبب څخه مخکي وي، ځکه چي هغه بلا واسطه يا کثيرُ الوقوع دی، نو ځکه د مباشرتاً قتل احکام يې د قتل بالسبب له احکامو څخه مخکي بيان کړي دي. (عنايه)

**په عامه لاره کي د بيت الخلاء وغيره د را ايستلو حکم**

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَمَنْ أَخْرَجَ إِلَى الطَّرِيقِ الْأَعْظَمِ كَنِيفًا أَوْ مِيزَابًا أَوْ جُرْصُنًا او څوک چي راوباسي لويې لاري ته پاخانه، يا ترناوه يا جرصن [شاتير وغيره] أَوْ بَنَى دُكَّانًا يا دوکان جوړ کړي فَلِرَجُلٍ مِنْ عَرْضِ النَّاسِ أَنْ يَنْزِعَهُ نو له عوامُ الناس څخه هر سړي ته دا حق سته چي هغه وکاږي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ صَاحِبُ حَقٍّ بِالْمُرُورِ بِنَفْسِهِ وَبِدَوَابِّهِ ځکه هر يو حقدار دی [په دې لاره کي] په خپله او د خپلو څارويو په تېرېدلو سره فَكَانَ لَهُ حَقُّ النَّقْضِ نو هر يوه ته به د ماتولو حق وي كَمَا فِي الْمِلْكِ الْمُشْتَرَكِ لکه په مشترک ملکيت کي فَإِنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ حَقُّ النَّقْضِ لَوْ أَحْدَثَ غَيْرُهُمْ فِيهِ شَيْئًا ځکه هر يوه شريک ته د ماتولو حق سته که له شريکانو څخه بغير بل يو په هغه [مشترک ملکيت] کي يو شی ايجاد کړي فَكَذَا فِي الْحَقِّ الْمُشْتَرَكِ نو همداسي به په مشترک حق کي هم [هر يوه ته د ماتولو او ليري کول حق] وي.

**اللغات:** ﴿الطريق الأعظم﴾ لويه لاره، عامه لاره، سړک، ﴿کنيف﴾ بيت الخلا، پای خانه، ټټی، ﴿دُکّان﴾ دوکان، پلورنځی، جمع: دَکَاکِين، ﴿عرض الناس﴾مراد: عامة الناس، عام خلک، ﴿نقض﴾ د نصر د باب مصدر دی: ماتول، ﴿جُرْصنٌ﴾ دخيل يعني له بلي ژبي څخه عربي ژبي ته داخل سوی لفظ دی او لـه اصـل عربـي الفاظو څخه نه دی، او د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي: ① هغه تېر (شاتير) يا لوی لرګی يا مثلاً ګاډر چي د خوني له دېوال څخه دباندي را ويستل سي د دې لپاره چي يو کار ځني واخلي، ② هغه نالی کوم چي په دېوال کي جوړه کړل سي چي د بام اوبه لاندي پکښي را

بهيږي (لکه بعضې خلک چې د ترناوې پر ځای همدا لاره اختياروي). يا د دې لپاره چې د چت د اشپزخانې، بيت الخلاء وغيره اوبه لاندې پکښې راځي (لکه ارس وخت چې د دې مقصد لپاره پايپونه کارول کيږي). (۳) زينه. (۴) برج (مغرب. اشرف الهدايه). لنډه دا چې هره معنىٰ يې مراد کړل سي هغه په عامه لاره کې جوړول جائز نه دي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې په عامه لاره او سړک کې د ټولو خلکو حق دی. لهذا که څوک په عامه لاره کې يو داسې شی جوړ کړي چې په هغه سره خلکو ته تکليف او نقصان رسيږي، نو دوی ټولو ته دا حق سته چې هغه ليرې کړي د دې لپاره چې عام ضرر دفع سي. لکه څرنګه چې په مشترک شي کې که يو څوک داسې تصرف وکړي، د هغه ليرې کول جائز دي، نو همداسې به په مشترک حق کې هم د هغه ليرې کول جائز وي.

او عامه لاره د ټولو خلکو تر مينځ مشترکه ده او ټوله ته دا حق حاصل دی چې په هغې کې خپله هم تېر سي او خپل څاروي، موټران وغيره هم پکښې تېر کړي، لهذا که څوک په عامه لاره او سړک کې بيت الخلاء، يا دوکان وغيره راوباسي يا د خپل بام ناوه يا داسې بل مضر شی پکښې راوباسي، نو ټولو ته دا حق سته چې هغه مات او ليرې کړي. (اشرف الهدايه)

## له پورتنۍ مسئلې څخه استثناء

قَالَ: وَيَسَعُ لِلَّذِيْ عَمِلَهُ أَنْ يَنْتَفِعَ بِهِ فرمايي: او ګنجايش سته [جائز دي] هغه چا لره چې دا [بيت الخلاء وغيره] يې جوړ کړي دي چې له هغه څخه نفع واخلي مَا لَمْ يَضُرَّ بِالْمُسْلِمِيْنَ تر څو چې هغه د مسلمانانو لپاره مُضِر نه وي لِأَنَّ لَهُ حَقَّ الْمُرُوْرِ ځکه چې ده ته د تېرېدلو حق سته وَلَا ضَرَرَ فِيْهِ او په تېرېدلو کې هيڅ ضرر نسته فَيُلْحَقُ مَا فِيْ مَعْنَاهُ بِهِ نو کوم شی چې د تېرېدلو په معنىٰ سره وي هغه به د تېرېدلو سره لاحقول کيږي إِذِ الْمَانِعُ مُتَعَنِّتٌ ځکه منع کونکی کس متعنت دی فَإِذَا أَضَرَّ بِالْمُسْلِمِيْنَ خو کله چې هغه شی د مسلمانانو لپاره مُضِر وي كُرِهَ لَهُ ذٰلِكَ نو بيا د ده لپاره هغه [جوړول او نفع څني اخيستل] مکروه دي لِقَوْلِهِ عليه السلام [1]: «لَا ضَرَرَ وَلَا ضِرَارَ فِي الْإِسْلَامِ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: په اسلام کې نه ضرر سته او نه ضرار.

**اللغات:** ﴿يسع﴾ د سمع د باب مضارع ده، وَسِعَ يَسَعُ سَعَةً: ګنجايش کېدل، مراد څني جائز کېدل دي (معجم الوسيط). ﴿لم يضر﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده: ضرر او نقصان رسول، مضر کېدل.

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب الأحكام، باب من بنى في حقه ما يضر بجاره، حديث رقم: ۲۳۲

﴿متعنّت﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: له حد څخه تېرېدونکی (تجاوز کونکی). مُضر او د بل چا د ذلالت طلبګار، سرکښه. مراد ځني هغه کس دی کوم چي بل چا ته د تکليف رسولو او د هغه د ذليله کولو لپاره له يو شي څخه منع او انکار کوي. ﴿ضرر و ضرار﴾ د ضرر او ضرار په هکله يو قول دا دی چي د ضرر معنیٰ ده: (مطلقًا) يو چا ته نقصان رسول او د ضرار معنیٰ ده د نقصان په بدله او سزا کي يو چا ته نقصان رسول (مثلاً زيد و خالد ته يو ضرر او تاوان ورسوي. نو خالد د هغه په جزا کي زيد ته ضرر ورسوي). ② بل قول دا دی چي ضرر هغه دی چي په هغه سره تا ته نفع ورسيږي او بل ته نقصان ورسيږي. او ضرار دا دی چي ستا په فعل سره بل ته نقصان ورسيږي، برابره ستا پکښي نفع او که نه وي. خو اصل دا دی چي ضرر له يوه طرف څخه وي او ضرار له دواړو طرفونو څخه وي يعني ضرار د مضارة په معنیٰ سره دی چي څوک تا ته نقصان ورسوي. ته! هغه ته نقصان ورسوې دا هم ضرار دی. او په قصاص وغيره کي له خپل حق څخه زيات حق اخيستل هم ضرار دی.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که په عامه لاره کي د مذکوره شيانو جوړول د عامو خلګو لپاره مُضر نه وي. نو جوړونکي کس ته دا حق سته چي له هغه څخه نفع واخلي: ځکه په دې کي د تېرېدونکو خلګو هيڅ نقصان نسته. نو د کوم شي په جوړولو سره چي لارويانو ته نقصان نه رسيږي هغه د مُرور په درجه کي دی او مُرور جائز دی: نو د داسي شي جوړول به هم جائز وي کوم چي مضر نه وي.

او که د نا مضر والي باوجود يو څوک هغه منع کوي، نو هغه متعنّت شمېرل کيږي. ها! که په هغه سره مسلمانانو ته ضرر او نقصان رسيږي، نو بيا د هغه جوړول هم مکروه تحريمي دي او له هغه څخه نفع اخيستل هم مکروه تحريمي دي: ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي "لاضرر ولا ضرار في الإسلام" چي په اسلام کي نه ضرر سته او نه ضرار. يعني نه دا جائز دي - يو چا ته ابتداءً نقصان ورسول سي او نه دا جائز دي چي يو چا ته جزاءً (يعني د هغه د نقصان په بدله کي) نقصان ورسول سي. څرنګه چي په مذکوره صورت کي ضرر موجود دی. نو ځکه دا کار د شريعت له رويه ممنوع دی.

**يادونه**: د دغه مسئلې درې صورتونه دي:

①... احداث او ايجاد (يعني په عامه لاره کي شی جوړول) جائز دي. که نه.

②... له جوړولو څخه منع کول څنګه دي؟.

③... که د احداث په وجه يو څوک مړ سي يا يو شی ضايع سي. نو د هغه ضمان؟.

د اول صورت حکم دا دی چي که په احداث سره خلګو ته ضرر او تاوان رسيږي. نو جائز نه دي. ليکن که لاره ډېره پراخه وي او تېرېدونکو ته هيڅ نقصان نه رسيږي. نو جوړول جائز دي.

او د مسئلې په دويم صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چې که د باچا له اجازت څخه بغير څوک داسي شی جوړوي، نو د هغه لارې ټولو خلکو ته دا حق سته چې هغه منع کړي. او که جوړ کړی يې وي، نو ټولو ته دا حق سته چې هغه ليري کړي او جوړونکی د هغه په ليرې کولو او نقل کولو مکلف کړي، برابره ده په هغه کې ضرر وي او که نه وي.

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چې تر جوړولو مخکې ټولو ته حق سته چې هغه منع کړي. خو تر جوړولو وروسته (کله چې هغه مضر نه وي) چا ته حق نسته چې هغه منع کړي، او مانع متعنّت دی.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چې که هغه مضر نه وي، نو نه تر جوړولو مخکې چا ته د انکار حق سته او نه وروسته، او مانع متعنّت نه دی.

د درېيم صورت تفصيل به څه وروسته ذکر سي.

## په مخصوصه کوڅه کې د بيت الخلاء وغيره د را ايستلو احکم

قَالَ: وَلَيْسَ لِأَحَدٍ مِنْ أَهْلِ الدَّرْبِ الَّذِيْ لَيْسَ بِنَافِذٍ فرمايي: او جائز نه دي د هغه کوڅې والا په خلکو کې يوه لره کوم چې خلاصه [عامه] کوڅه نه وي [بلکي بنده وي او د مخصوصه خلکو تر مينځ مشترکه وي، نو په هغوی کې يوه لره جائز نه دي] أَنْ يَشْرَعَ كَنِيْفًا أَوْ مِيْزَابًا إِلَّا بِإِذْنِهِمْ چې [په کوڅه کې] راوباسي پای خانه يا ترناوه مګر د هغوی [يعني دکوڅې د شريکانو] په اجازه سره لِأَنَّهَا مَمْلُوْكَةٌ لَهُمْ ځکه دا کوڅه د هغوی په ملکيت کې ده وَلِهٰذَا وَجَبَتِ الشُّفْعَةُ لَهُمْ عَلٰى كُلِّ حَالٍ په همدې وجه د دوی لپاره په هر حال کې شفعه واجب ده فَلَا يَجُوْزُ التَّصَرُّفُ أَضَرَّ بِهِمْ أَوْ لَمْ يَضُرَّ إِلَّا بِإِذْنِهِمْ نو ځکه تصرّف به جائز نه وي برابره ده هغه د دوی لپاره مُضِر وي او که نه وي مګر د دوی په اجازه سره وَفِي الطَّرِيْقِ النَّافِذِ لَهُ التَّصَرُّفُ إِلَّا إِذَا أَضَرَّ او په خلاصه [عامه] لاره کې هغه ته د تصرّف حق سته مګر دا چې کله تصرّف مُضِر وي لِأَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الْوُصُوْلُ إِلٰى إِذْنِ الْكُلِّ ځکه د ټولو اجازې ته رسېدل متعذر دي [يعني په عامه لاره کې د ټولو لاروېانو اجازه ترلاسه کول مشکل دي] فَجُعِلَ فِيْ حَقِّ كُلِّ وَاحِدٍ كَأَنَّهُ هُوَ الْمَالِكُ وَحْدَهُ حُكْمًا نو د هر يوه په حق کې به حکم داسي ګرځول کيږي ګواکي يوازې هم هغه مالک دی [يعني هر يو به جلا مالک شمېرل کيږي] كَيْ لَا يَتَعَطَّلَ عَلَيْهِ طَرِيْقُ الْاِنْتِفَاعِ د دې لپاره چې پر هغه د نفع اخيستلو لاره معطله نه سي وَلَا كَذٰلِكَ غَيْرُ النَّافِذِ او نا خلاصه [مخصوصه] لاره داسي نه ده لِأَنَّ

الْوُصُولَ إِلَىٰ إِرْضَائِهِمْ مُمْكِنٌ ځکه د هغوی ټولو رضاء ته رسېدل ممکن دي [يعني د غيرِ نافذ (مخصوصه لاري) د ټولو شريکانو رضا ترلاسه کول ممکن دي] فَبَقِيَ عَلَى الشَّرِكَةِ حَقِيقَةً وَحُكْمًا نو دا ځکه [ غيرِ نافذ] به د حقيقت او حکم دواړو په اعتبار سره پر شرکت باقي پاتېږي.

**اللغات:** ﴿الدَّرْبِ﴾ لاره، کوڅه، ﴿نافذ﴾ د نصر د باب فاعل دی: سوری، خلاصه.

**تشريح:** مخکې خبره په عامه لاره کې وه او دلته د هغه لارې په هکله خبره کوي کوم چې عامه نه وي بلکې د څو خلکو تر مينځ مشترکه او مخصوصه وي، نو په هغې کې يو شی جوړول جائز نه دي، برابره ده مضر وي او که نه وي، ها! که د لارې ټوله شريکان اجازه ورکړي، نو بيا جائز دي: ځکه دا لاره او کوڅه د دوی ټولو مملوکه ده (يعني د ټولو شريکانو په ملکيت کې ده)، او دليل د ملکيت يې دا دی چې که په دې لاره کې يو کور خرڅول کيږي، نو ټولو ته د هغه د شفعې حق حاصليږي چې تفصيل يې په کتابُ الشفعه کې تېر سوی دی.

نو په عامه او مخصوصه لاره کې فرق دا سو چې په مخصوصه لاره کې د ټولو شريکانو رضا او اجازه ضروري ده او په عامه لاره کې عدمِ مضرت ضروري دی (چې په شي جوړولو سره به لاروېانو ته ضرر نه رسيږي)، او وجه د فرق يې دا ده چې په مخصوصه لاره کې د شريکانو راضي کول ممکن دي نو په همدې وجه رضا او اجازه د مسئلې مدار وګرځول سو او په دې لاره کې ټوله برابر شريکان وشمېرل سوه.

او په عامه لاره کې عدمِ مضرت کافي دي؛ ځکه هلته د ټولو لاروېانو رضا او اجازه ترلاسه کول مشکل دي چې له هر يوه څخه په اجازه اخيستلو کې هغه (جوړونکی کس) د غټې ستونزې سره مخ کيږي، لهذا که د ټولو رضا او اجازه شرط کړل سي، د جوړونکي کس منافع به معطل پاته سي، نو ځکه په عامه لاره کې هر يو مُستقل مالک وشمېرل سو او مدار عدمِ مضرت وګرځول سو.

**که په لاره کې را ايستل سوې ترناوه يا روشندان پر چا ولوېږي او هغه مړ سي (حکم او تفصيل)**

قَالَ: وَإِذَا أَشْرَعَ فِي الطَّرِيقِ رَوْشَنًا أَوْ مِيزَابًا أَوْ نَحْوَهُ فرمايي: او کله چې راوباسي [جوړ کړي] په لاره کې دريڅه يا ترناوه يا داسي بل شی فَسَقَطَ عَلَىٰ إِنْسَانٍ فَعَطِبَ بيا هغه پر يو انسان راولوېږي نو هغه هلاک سي فَالدِّيَةُ عَلَىٰ عَاقِلَتِهِ نو ديت د هغه [مُشرِع] پر عاقله وو دی لِأَنَّهُ سَبَبٌ لِتَلَفِهِ مُتَعَدٍّ بِشَغْلِهِ هَوَاءَ الطَّرِيقِ ځکه هغه د دې انسان د تلف کېدلو سبب دی [او] د لارې د فضا [خاليګاه] د مشغولو په وجه تعدی کونکی دی وَهٰذَا مِنْ أَسْبَابِ الضَّمَانِ او دا د ضمان له اسبابو څخه دي وَهُوَ

الْأَصْلُ او همدا قاعدهٔ کليه ده وَكَذٰلِكَ إِذَا سَقَطَ شَيْءٌ مِمَّا ذَكَرْنَا فِي أَوَّلِ الْبَابِ او همدارنګه کله چي له هغه شيانو څخه يو شی را ولوېږي کوم چي مونږ د باب په اول کي ذکر کړل وَكَذَا إِذَا تَعَثَّرَ بِنَقْضِهِ إِنْسَانٌ او همدارنګه که د هغه د ماتي حصې په وجه يو انسان ښوی [او غوځار] سي أَوْ عَطِبَتْ بِهِ دَابَّةٌ يا د هغه په وجه يو څاروی هلاک سي وَإِنْ عَثَرَ بِذٰلِكَ رَجُلٌ او که د هغه په وجه يو سړی ښوی سي فَوَقَعَ عَلَى آخَرَ فَمَاتَا بيا هغه پر بل کس ولوېږي او دواړه مړه سي فَالضَّمَانُ عَلَى الَّذِي أَحْدَثَهُ فِيهِمَا نو په دواړو کي [يعني د دواړو کسانو] ضمان پر هغه کس [واجب] دی کوم چي هغه [دريچه وغيره] جوړ کړی دی لِأَنَّهُ يَصِيرُ كَالدَّافِعِ إِيَّاهُ عَلَيْهِ ځکه جوړونکی کس داسي سو لکه هغه چي يو پر بل ورپوري وهلی وي.

**اللغات**: ﴿أشرع﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: را خلاصول، راباسل. ﴿رَوْشَن﴾ د دې لفظ هم څو معناوي نقل سوي دي: ① راوتلې دريڅه (دريچه)، ② رَپْ (رف) چي پر هغه د پاسه شيان ايښوول کيږي. ③ هغه تخته وغيره چي پر لاري د پاسه پر دوو دېوالونو کېښوول سي. د دې لپاره چي له يوه کوره بل کور ته پرې ولاړ سي، ④ د چتر په څېر حصه (يعني د بام راوتلې حصه کوم چي دلوی رَپْ [يا کوچنی برنډې] په شکل جوړه کړل سوې وي) چي په هغه سره بام پر اخول کيږي. (معجم الوسيط، معجم لغة الفقهاء)، لنډه دا چي هر معنیٰ يې واخيستل ستي. د ټولو حکم يو دی. ﴿عطب﴾ د سمع د باب ماضي ده: هلاکېدل. ﴿متعدي﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدي کونکی، تجاوز او زياتوب کونکی، ناحقه متصرف. ﴿تعثر﴾ د تفعل د باب ماضي ده: ښويېدل، پر مخي موښتل.

**تشريح**: قاعدهٔ کليه دا ده چي کوم څوک د يو چا د قتل او هلاکېدلو سبب جوړ سي، نو د هغه پر عاقله وو د هلاک سوي کس ديت واجبيږي، لهذا که څوک په لاره کي له مذکوره شيانو څخه يو شی جوړ کړي، بيا هغه پر يو کس ولوېږي چي په دې وجه هغه مړ سي، نو د جوړونکي کس پر عاقله وو د هغه ديت واجبيږي. په همدومره خبره سره مسئله ښکاره سوه.

وكذا إذا تعثر الخ: يعني مذکوره دريڅه يا تخته (روشن)، يا ترناه (ناوه) وغيره چي مات سي او په لاره کي ولوېږي بيا د هغه په وجه يو څوک ښوی او غوځار سي او بالآخره مړ سي، نو پر مالک (جوړونکي کس) ديت واجبيږي، او که يو غوځار سي او په بل يوه کي ومښلي چي په دې وجه هغوی دواړه مړ سي، نو پر مالک د دواړو ضمان واجبيږي؛ ځکه دا داسي سوه لکه يو سړی چي مثلاً زيد ونيسي او پر

خالد يې ور پورې وهې يعنې پر خالد يې ور ديکه کړې، نو په ديکه کونکي سړي باندې د دواړو ضمان واجبيږي، نو همداسې به دلته هم د دواړو ضمان واجبيږي.

## د ترناوې د رالوېدلو نور صورتونه

وَإِنْ سَقَطَ الْمِيزَابُ او که ترناوه ولوېږي نُظِرَ نو دې ته به کتل کيږي [چې پر سړي د ترناوې کومه حصه لګېدلې ده] فَإِنْ أَصَابَ مَا كَانَ مِنْهُ فِي الْحَائِطِ رَجُلًا نو که پر سړي د ترناوې هغه حصه لګېدلې وي کوم چې په دېوال کې [نصب] وي فَقَتَلَهُ بيا هغه سړی قتل کړي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر واضع باندې ضمان واجب نه دی لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځکه هغه په دې کې تعدی کونکی نه دی لِمَا أَنَّهُ وَضَعَهُ فِي مِلْكِهِ ځکه هغه دا حصه په خپله ملکيت کې ايښې ده وَإِنْ أَصَابَهُ مَا كَانَ خَارِجًا مِنَ الْحَائِطِ او که [پر سړي] هغه حصه لګېدلې وي کوم چې له دېوال څخه بهر [راوتلې] وي فَالضَّمَانُ عَلَى الَّذِي وَضَعَهُ نو پر واضع ضمان [واجب] دی لِكَوْنِهِ مُتَعَدِّيًا فِيهِ ځکه هغه په دې کې تعدی کونکی دی وَلَا ضَرُورَةَ او هيڅ ضرورت [هم] نسته لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ يُرَكِّبَهُ فِي الْحَائِطِ ځکه واضع لره دا ممکنه وه چې هغه [ترناوه] يې په خپل دېوال کې نصب کړې وي وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِ وَلَا يُحْرَمُ عَنِ الْمِيرَاثِ او پر واضع کفاره نسته او له ميراثه نه محروميږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِقَاتِلٍ حَقِيقَةً ځکه په حقيقت کې هغه قاتل نه دی وَلَوْ أَصَابَهُ الطَّرَفَانِ جَمِيعًا او که پر هغه د ترناوې دواړه طرفونه لګېدلي وي وَعُلِمَ ذٰلِكَ او دا خبره [يقيني] معلومه وي وَجَبَ نِصْفُ الدِّيَةِ وَهُدِرَ النِّصْفُ نو نيم ديت واجبيږي او نيم ديت باطليږي [معاف کيږي] كَمَا إِذَا جَرَحَهُ سَبُعٌ وَإِنْسَانٌ لکه [په هغه صورت کې] کله چې هغه يو درنده او يو انسان زخمي کړی وي وَلَوْ لَمْ يُعْلَمْ أَيُّ طَرَفٍ أَصَابَهُ او که دا معلومه نه وي چې [د ترناوې] کوم طرف پر هغه لګېدلی دی يَضْمَنُ النِّصْفَ نو واضع د نصف ضامن کيږي [يعنې نيم ضمان پرې واجبيږي] اِعْتِبَارًا لِلْأَحْوَالِ د [دواړو] حالتونو په اعتبار کولو سره.

**اللغات**: ﴿نُظِر﴾ د نصر له بابه د ماضي مجهولې صيغه ده: کتل. ﴿هدر﴾ د ماضي صيغه ده. له ضرب او نصر دواړو څخه راځي: باطلېدل او ضايع کېدل. (خون) بلا بدله کېدل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې که په لاره کي را ايستل سوې ترناوه را ولوېږي او د هغه په وجه يو سړی مړ سي، نو که د ترناوې هغه حصه کوم چې په دېوال کي نصب او پټه وي هغه پر سړي لګېدلې وي، نو پر مالک (واضع) باندي ضمان نه واجبيږي؛ ځکه د ترناوې کومه حصه چې په دېوال کي لګېدلې ده، مالک ته د هغومره ترناوې لګولو اختيار سته چې دا د هغه خپل ملکيت دی او په خپل ملکيت کي تصرّف کول جائز دي، لهذا په دې صورت کي هغه متعدي نه سو (يعني د هغه له طرفه هيڅ تعدي واقع نه سوه)؛ او که پر مقتول د ترناوې هغه حصه لګېدلې وي کوم چې له دېوال څخه بهر را وتلې وي، نو ضمان واجبيږي؛ ځکه په دې صورت کي د مالک له طرفه تعدي ثابته سوه چې ناوه يې له خپل دېوال څخه لاري ته را ايستلې ده او د هغه په وجه سړی هلاک سوی دی، حال دا چې مالک ته د دې ضرورت هم نه وو، ځکه که هغه صرف په خپل دېوال کي ترناوه نصب کړې وای او بهر يې را ايستلې نه وای، نو هم د هغه ضرورت پوره کېدی (همدارنګه که د ترناوې پر ځای يې په دېوال کي نلي [جرصن] جوړ کړي وای، نو په هغه سره هم ضرورت پوره کېدی)، لنډه دا چې دلته واضع متعدي دی، نو ځکه پر هغه ضمان واجب دی.

**ولا كفارة عليه إلخ**: فرمايي چې په مذکوره صورت کي پر واضع که څه هم ضمان واجب دی، لېکن نور پر هغه نه کفاره واجب ده او نه هغه له ميراثه محروميږي؛ ځکه کفا واجبېدل او له ميراثه محرومېدل د قتلِ حقيقي سره متعلق کيږي او دلته واضع حقيقي قاتل نه دی بلکي د قتل سبب دی (يا په بله وينا دا چې د وجوب الكفارة او حرمان الميراث باعث هغه قتل دی کوم چې د مانعة الخلو په توګه قصاص يا کفاره واجب کړي، او دلته داسي نه ده).

**ولو أصابه الطرفان إلخ**: فرمايي که پر مقتول کس د ترناوې دواړه طرفونه لګېدلي وي يعني د ترناوې هغه حصه چې په دېوال کي نصب وي او هغه خصه چې له دېوال څخه بهر راوتلې وي که هغه دواړي حصې پرې لګېدلي وي او دا خبره په يقيني توګه معلومه وي چې دواړي حصې پرې لګېدلي دي، نو په دې صورت کي نيم ديت واجبيږي او پاته نيم ديت هدر او معاف کيږي. د دې مثال داسي دی لکه د يو چا په زخمي کولو او هلاکولو کي چې دوه شيان شريکان وي مثلاً يو درنده حيوان پر يو سړي حمله وکړي او زخمي يې کړي، بيا يو انسان هم هغه سړی زخمي کړي چې په دې وجه هغه سړی مړ سي، نو پر انسان نيم ديت واجبيږي، نو همداسي به دلته هم پر واضع نيم ديت واجبيږي.

او که دا معلومه نه سي چې پر مقتول کس د ناوې کوم طرف او کومه حصه لګېدلې ده، نو هم پر واضع نيم ضمان واجبيږي؛ ځکه په دې صورت کي په يوه اعتبار سره بالکل ضمان واجب نه دی (يعني په دې اعتبار سره چې په دېوال کي نصب شده حصه پرې لګېدلې وي)، او که له دېوال څخه بهر

راوتلې حصه پرې لګېدلې وي، نو پر واضع پوره ضمان واجب دی، او دلته دا معلومه نه ده چې کومه حصه یې پرې لګېدلې ده. نو ځکه مورږ د دواړو حالتونو په اعتبار او رعایت کولو سره پر واضع نیم ضمان واجب کړی دی. (اشرف الهدایه، احسن الهدایه)

## د مذکوره کور د خرڅېدلو یو صورت او د هغه حکم

وَلَوْأَشْرَعَ جَنَاحًا إِلَى الطَّرِيْقِ او که څوک چتر لاري ته راباوسي ثُمَّ بَاعَ الدَّارَ بيا هغه کور خرڅ کړي فَأَصَابَ الْجَنَاحُ رَجُلًا فَقَتَلَهُ بيا چتر پر یو سړي ولګیږي او هغه قتل کړي أَوْوَضَعَ خَشَبَةً فِي الطَّرِيْقِ یا په لاره کې لرګی کېنږدي ثُمَّ بَاعَ الْخَشَبَةَ وَبَرِئَ إِلَيْهِ مِنْهَا بيا لرګی خرڅ کړي او د برائت شرط ولګوي مشتري ته د لرګي څخه [یعني د مشتري سره دا شرط ولګوي چې له دغه لرګي څخه چې هر څه پېښ سي زه له هغه څخه بري يم] فَتَرَكَهَا الْمُشْتَرِيْ حَتّٰى عَطِبَ بِهَا إِنْسَانٌ او مشتري هغه لرګی پرېږدي تر دې چې د هغه په وجه یو انسان هلاک سي فَالضَّمَانُ عَلَى الْبَائِعِ نو ضمان پر بائع [واجب] دی لِأَنَّ فِعْلَهُ وَهُوَ الْوَضْعُ لَمْ يَنْفَسِخْ بِزَوَالِ مِلْكِهِ ځکه د بائع فعل یعني اېښوول د هغه د ملکیت په زایلېدلو سره فسخ نه سو وَهُوَ الْمُوْجِبُ او همدا [د بائع فعل] د ضمان واجبونکی دی.

**اللغات:** ﴿جَنَاح﴾ د دې لفظ هم څو معناوي نقل سوي دي: لفظي معنی یې ده: ① وزر او بازو، ② او هر هغه شی چې پراخ (عريضا) جوړ کړی سي، ③ همدارنګه د "الرَّوْشَن" چې کومې معناوې دي، هغه د دې لفظ هم دي کوم چې څه مخکې ذکر سوې یعني چتر وغیره (یعني د بام راوتلې حصه کوم چې د کوڅې برنډې په شکل جوړه کړل سوې وي. چې ځیني خلګ یې د ښکلا وغیره جوړوي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک مثلاً زید د لاري پر طرف د خپل کور پر بام چتر جوړ کړي. یا په لاره کې د خپل کور سره یو لرګی کېنږدي، بیا زید هغه کور یا لرګی خرڅ کړي، او زید (بائع) دا شرط هم ولګوي چې زه له هر هغه ضمان او تاوان څخه بري يم کوم چې له دغه چتر یا لرګي څخه پېښ سي، بیا دا چتر پر یو چارا ولوېږي او هغه مړ سي یا د دې لرګي وغیره په وجه څوک مړ سي، نو په دې صورت کې ضمان پر بائع (زید) واجبیږي، نه پر مشتري؛ ځکه اصل موجب د بائع دا فعل دی چې چتر او لرګی یې وضع کړی دی. لهذا د کور یا لرګي په خرڅولو سره که څه هم له دې شیانو څخه د بائع ملکیت زائل سوی دی. لیکن د ملکیت په زائلېدلو سره د هغه د فعل اثر نه دی زائل سوی، او همدا فعل موجب د ضمان دی. نو ځکه پر بائع کوم چې واضع دی پر هغه به ضمان واجب وي.

## په لاره کي د انګار وغيره د ايښوولو حکم

وَلَوْوَضَعَ فِي الطَّرِيْقِ جَمْرًا او که په لاره کي انګار [سرې سکروټې] کښېږدي فَأَحْرَقَ شَيْئًا بيا دا انګار يو شي وسوځي يَضْمَنُهُ نو هغه [واضع] ضامن کيږي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيْهِ ځکه هغه په دې کي تعدي کونکی دی وَلَوْحَرَّكَتْهُ الرِّيْحُ إِلٰى مَوْضِعٍ آخَرَ ثُمَّ أَحْرَقَ شَيْئًا او که باد هغه انګارو ته بل ځای حرکت ورکړي بيا هغه يو شی وسوځي لَمْ يَضْمَنْهُ نو هغه [واضع] نه ضامن کيږي لِفَسْخِ الرِّيْحِ فِعْلَهُ ځکه باد د هغه فعل فسخ کړی وَقِيْلَ: إِذَاكَانَ الْيَوْمُ رِيْحًا او ويل سوي دي: کله چي ورځ د باد وي يَضْمَنُهُ نو هغه يې ضامن کيږي لِأَنَّهُ فَعَلَهُ مَعَ عِلْمِهِ بِعَاقِبَتِهِ ځکه هغه [واضع] دا کار کړی دی سره د خبرېدلو د هغه په انجام [يعني واضع په دې خبر دی چي د باد په ورځ په لاره کي د انګار ايښوولو انجام او نتيجه به داوي، خو بيا هم هغه دا کار کړی دی] وَقَدْ أَفْضٰى إِلَيْهَا حال دا چي د هغه فعل دغه انجام ته رسېدلی [هم] دی فَجُعِلَ كَمُبَاشَرَتِهِ نو دا [افضاء] به داسي ګرځول کيږي لکه د هغه [واضع] بذات خود فعل [يعني لکه هغه چي په خپل لاس دا شی سوځولی وي].

**اللغات:** ﴿جمر﴾ سکروټي، انګار. ﴿حرّکته﴾ د تفعيل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: حرکت ورکول، ښورول. ﴿ريح﴾ باد، هوا. ﴿عاقبة﴾ انجام، پای. ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو کار خپله کول، بذات خود کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک مثلاً زيد په لاره کي انګار (سرې سکروټي) کښېږدي او د هغه په وجه يو څوک وسوځي او بالآخره مړ سي، نو زيد ضامن کيږي؛ ځکه دا د هغه له طرفه زياتوب او تعدي ده چي په لاره کي يې انګار ايښي دي، او که باد او هوا دا انګار له هغه ځايه بل ځای ته يووسي او د هغه په وجه يو څوک وسوځي او مړ سي، نو په دې صورت کي زيد نه ضامن کيږي ځکه اوس هغه د زيد فعل نه سو بلکي د باد او هوا فعل سو.

وقيل إلخ: فرمايي د بعضي حضراتو رايه دا ده که په داسي وخت کي کله چي تېز باد چليږي مثلاً لو او فصل رېبلو په موسم کي زيد په لاره کي انګار کښېږدي او د تېز باد په وجه هغه بل ځای ته ولاړ سي، نو په دې صورت کي ايښونکی (زيد) ضامن کيږي؛ ځکه زيد ته دا معلومه وه چي په اوس وخت کي د انګار ايښولو انجام به دا وي او آخر هغه انجام پېښ هم سو. لهذا د زيد فعل به د باد په وجه نسخ نه شمېرل کيږي بلکي باقي به شمېرل کيږي او پر زيد به ضمان واجب وي. ځکه کله چي زيد ته

معلومه وه چي د سکروټو انجام به دا وي، نو د هغه سبب به د مباشرت په درجه ګرځول کيږي. او ښکاره خبره ده چي که څوک مباشرتاً (بذات خود) يو شی وسوځي، نو پر هغه ضمان واجبيږي. نو همداسي به دلته هم ضمان واجبيږي.

## د مزدوانو په ذريعه د ايستل سوي چتر وغيره په وجه د يو سړي د هلاکېدلو بيان

وَلَوِاسْتَأْجَرَ رَبُّ الدَّارِ الْعَمَلَةَ لِإِخْرَاجِ الْجَنَاحِ أَوِ الظُّلَّةِ او که د کور مالک مزدوران [کاريګران] په اُجرت ونيسي د چتر يا سايه ځای د را ايستولو لپاره فَوَقَعَ فَقَتَلَ إِنْسَانًا قَبْلَ أَنْ يَفْرُغُوا مِنَ الْعَمَلِ بيا هغه را ولوېږي نو يو انسان قتل کړی مخکي تر دې چي دوی [مزدوران] له کار څخه فارغ سي فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمْ نو ضمان پر دوی [واجب] دی لِأَنَّ التَّلَفَ بِفِعْلِهِمْ ځکه [د انسان] تلفېدل د همدوی په فعل سره دي وَمَا لَمْ يَفْرُغُوا او تر څو چي دوی فارغ سوي نه وي لَمْ يَكُنِ الْعَمَلُ مُسَلَّمًا إِلَىٰ رَبِّ الدَّارِ [تر هغه وخته] کار به د کور مالک ته سپارل سوی نه وي وَهَذَا لِأَنَّهُ انْقَلَبَ فِعْلُهُمْ قَتْلًا او دا ځکه چي د دوی فعل په قتل سره بدل سو حَتَّىٰ وَجَبَتْ عَلَيْهِمُ الْكَفَّارَةُ همدا وجه ده چي پر دوی کفاره واجب ده وَالْقَتْلُ غَيْرُ دَاخِلٍ فِي عَقْدِهِ او قتل د هغه [رب الدار (مستأجر)] په عقد کي داخل نه دی [ځکه هغه خو د مزدورانو سره عقد اجاره کړی دی. نه عقد قتل] فَلَمْ يَنْتَقِلْ فِعْلُهُمْ إِلَيْهِ نو د مزدورانو فعل د هغه [رب الدار] وطرف منتقل نه سو فَاقْتَصَرَ عَلَيْهِمْ نو دا فعل پر همدوی منحصر پاته سو وَإِنْ سَقَطَ بَعْدَ فَرَاغِهِمْ او که د مزدورانو تر فارغېدلو وروسته هغه را لوېدلی وي فَالضَّمَانُ عَلَىٰ رَبِّ الدَّارِ اسْتِحْسَانًا نو ضمان استحساناً د کور پر مالک [واجب] دی لِأَنَّهُ صَحَّ الِاسْتِئْجَارُ ځکه په اُجرت نيول صحيح دي حَتَّىٰ اسْتَحَقُّوا الْأَجْرَ تر دې چي دوی د اُجرت مستحق سوي دي وَوَقَعَ فِعْلُهُمْ عِمَارَةً وَإِصْلَاحًا او د دوی فعل واقع سوی دی تعميرول او سمول فَانْتَقَلَ فِعْلُهُمْ إِلَيْهِ فَكَأَنَّهُ فَعَلَ بِنَفْسِهِ نو د دوی فعل د رب الدار وطرف ته منتقل سو ګواکي ربُ الدار خپله دا کار کړی دی فَلِهَذَا يَضْمَنُهُ نو ځکه ربُ الدار به د هغه ضامن کيږي.

**اللغات:** ﴿استأجر﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په اُجرت نيول. په مزدوري نيول. ﴿عملة﴾ جمع د عَامِلٌ ده: کاريګران. مزدوران. ﴿جناح﴾ څه مخکي په تفصيل سره د دې وضاحت وسو. ﴿الظلة﴾ هر سايه

جوړونکی شی، سایه ځای (یعني د لمر وغیره څخه د حفاظت او د سایې جوړولو په غرض د دروازې وغیره مخ ته جوړ سوی ځای)، چتر وغیره. ﴿اقتصر﴾ د افتعال د باب ماضي ده: اکتفا کېدل (نه متجاوز کېدل). منحصر کېدل. ﴿عمارة﴾ تعمیر، جوړونه، ودانونه.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د کور مالک مثلاً زید یو څو مزدوران په أجرت (په مزدوری) ونیسي د دې لپاره چي دریڅه یا چتر وغیره را وباسي، نو تر څو چي مزدوران دا کار ختم نه کړي او د کور مالک (زید) ته دا شیان حواله نه کړي، تر هغه وخته دا د مزدورانو په ذمه واري کي شمېرل کیږي، او کله چي دوی فارغه سي او د کور مالک (یعني زید) ته شیان حواله کړي، نو اوس د دوی ذمه واري ختمیږي او د کور مالک خپله ذمه وار کیږي. لهذا که په اول صورت کي یو څوک د دې شیانو په وجه مړ سي (مثلاً چتر پر یو چا را ولوېږي)، نو ضمان پر مزدورانو واجب دی او په دویم صورت کي پر زید واجب دی.

ځکه په اول صورت کي د همدې مزدورانو فعل قتل شمېرل کیږي. په همدې وجه پر مزدورانو کفاره هم واجبیږي، حال دا چي د کور مالک د دوی سره عقد اجاره کړی وو، نه عقد قتل (او دلته دوی قتل کړی دی)، نو ځکه د دوی فعل به پر همدوی منحصر وي، دویم صورت په را روان عبارت کي ذکر سوی دی.

وإن سقط بعد فراغهم الخ: په دې صورت کي د مزدروانو فعل د کور د مالک (زید) وطرف ته منتقل کیږي؛ ځکه د تعمیر او جوړښت فعل قتل نه دی، نو دا داسي سو لکه د کور مالک چي خپله دا کار کړی وي او بیا د هغه په وجه یو څوک مړ سي، نو ضمان د کور پر مالک واجبیږي. (اشرف الهدایه)

## په عامه لاره کي د اوبو بهولو په وجه د یو چا د ښویېدلو او هلاکېدلو بیان

| |
|---|
| وَكَذَا إِذَا صَبَّ الْمَاءَ فِي الطَّرِيقِ او همدارنګه [ضمان واجبیږي] کله چي په لاره کي اوبه توی کړي فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ أَوْ دَابَّةٌ بیا د هغه په وجه یو انسان یا څاروی هلاک سي وَكَذَا إِذَا رَشَّ الْمَاءَ أَوْ تَوَضَّأَ او همدارنګه کله چي [په لاره کي] اوبه وپاشي [اوپاشي وکړي] یا اودس وکړي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ بِإِلْحَاقِ الضَّرَرِ بِالْمَارَّةِ ځکه تېرېدنکو [لارویانو] ته د ضرر ورکولو په وجه هغه په دې کي تعدی کونکی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا فَعَلَ ذَلِكَ فِي سِكَّةٍ غَيْرِ نَافِذَةٍ وَهُوَ مِنْ أَهْلِهَا په خلاف د هغه صورت کله چي هغه په نا خلاصه [مخصوصه] کوڅه کي داسي وکړي او هغه د دې کوڅې له خلکو څخه وي أَوْ قَعَدَ یا هغه [پکي] کښېني [یا بله معنیٰ دا چي یو شی (مثلاً څاروی) پکي کښېنوي] أَوْ وَضَعَ مَتَاعَهُ یا خپل |

سامان [پکي] کښېږدي لِأَنَّ لِكُلٍّ وَاحِدٍ أَنْ يَفْعَلَ ذٰلِكَ فِيهَا ځکه [د هغه کوڅې] هر یوه ته دا حق حاصل دی چې په کوڅه کې دا کار وکړي لِكَوْنِهِ مِنْ ضَرُوْرَاتِ السُّكْنٰى ځکه دا د استوګنې له ضروریاتو څخه دي كَمَا فِي الدَّارِ الْمُشْتَرَكَةِ لکه په مشترک کور کې [چې کیږي] قَالُوْا: هٰذَا إِذَا رَشَّ مَاءً كَثِيرًا بِحَيْثُ يُزْلَقُ بِهِ عَادَةً مشایخو فرمایلي دي: چې دا [ضمان واجبېدل] هغه وخت دي کله چې یې زیاتې اوبه پاشلي وي چې د هغه په وجه عادتاً [عموماً] څوک ښوی کیږي أَمَّا إِذَا رَشَّ مَاءً قَلِيلًا كَمَا هُوَ الْمُعْتَادُ لیکن که هغه لږ اوبه پاشلي وي لکه څرنګه چې همدا عادت دي وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ لَا يُزْلَقُ بِهِ عَادَةً او ښکاره همدا وي چې د هغه په وجه عادتاً څوک نه ښوی کیږي لَا يَضْمَنُ نو [په دې صورت کې] هغه نه ضامن کیږي.

**اللغات:** ﴿صبّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: تویېول، بهول، ﴿رش﴾ مخکنۍ صیغه ده: اوبه پاشل، اوپاشي کول (چړکاو)، ﴿إلحاق﴾ دافعال د باب مصدر دی: ملحق کول، ور سره یوځای کول (ملاوول)، ﴿سكة﴾ کوڅه (ګلی)، ﴿سكنى﴾ استوګنه (استوګه)، اوسېدنه، ﴿يزلق﴾ د سمع له بابه د مضارع مجهولي صیغه ده: ښوی کېدل، ښوی کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید په عامه لاره کې اوبه توی کړي، یا او دس وکړي یا اوپاشي وکړي او بیا د هغه په وجه یو څوک ښوی او غوځار سي چې بالآخره مړ سي، نو پر زید ضمان واجبیږي؛ ځکه چې د زید له طرفه تعدي موجوده سوه؛ ځکه په لاره کې د اوبو تویېولو په وجه زید لاروېلو ته ضرر رسولی دی او تعدی و زیاتوب یې کړی دی. او پر متعدي کس خو بېله شکه ضمان واجبیږي.

**بخلاف ما إذا إلخ:** د دې حاصل دا دی چې د دریځې، چتر وغیره د را ایستلو یا د اوبو تویېولو په د ضمان واجبېدلو چې کوم حکم بیان سو، هغه د عامي لاري سره متعلق دی، لیکن که څوک په صه لاره کې داسي وکړي مثلاً په غیرِ نافذه کوڅه کې چتر وغیره جوړ کړي یا خپل یو سامان ي کښېږدي یا اوبه پکښې توی او بیا څوک د هغه په وجه غوځار سي او مړ سي، نو په دې صورت کې پر مالک (زید) ضمان نه واجبیږي؛ ځکه دا شیان له ضروریاتو څخه دي او د کوڅې هر کس دې ته مجبوره دی. لهذا څرنګه چې په مشترک کور کې که د دې شیانو په وجه یو څوک مړ سي، نو پر اینبوونکي شریک ضمان نه لازمیږي، نو همداسي په دې صورت کې به هم پر اینبوونکي ضمان نه لازمیږي.

قالوا هٰذا الخ: مشايخ حضرات فرمايي چې داوبو پاشلو او تويېلو په صورت کې صرف همغه وخت ضمان لازمېږي کله چې تر عادت زياتې اوبه وپاشي چې د هغه په وجه ځمکه ښوينده سي. لېکن که په لاره کې لږ اوبه وپاشي (يعنې معمولي اوپاشي او چړکاو وکړي) چې په هغه سره ځمکه ښوينده نه سي او بيا يو څوک د هغه په وجه ښوېږي سي او مړ سي، نو په دې صورت کې پر اوبو پاشونکي ضمان نه واجبېږي. (اشرف الهدايه. احسن الهدايه)

## د ځمکي پر ښوينده حصه د قصداً تېرېدلو حکم

وَلَوْ تَعَمَّدَ الْمُرُوْرَ فِيْ مَوْضِعِ صَبِّ الْمَاءِ او که قصداً د اوبو تويېدلو په ځاى کې تېر سي فَسَقَطَ نو ولوېږي [غوځار سي] لَا يَضْمَنُ الرَّاشُّ نو اوبه پاشونکي نه ضامن کېږي لِأَنَّهُ صَاحِبُ عِلَّةٍ ځکه چې تېرېدونکى کس د علت خاوند دى ايعني د هغه د مرګ علت خپله د هغه فعل دی؛ وَقِيْلَ: هٰذَا إِذَا رَشَّ بَعْضَ الطَّرِيْقِ او ويل سوي دي: چې دا په هغه صورت کې دي کله چې هغه د لارې بعضي حصه اوپاشي کړې وي لِأَنَّهُ يَجِدُ مَوْضِعًا لِلْمُرُوْرِ ځکه چې [په دې صورت کې] تېرېدونکى کس د تېرېدلو ځاى موندي وَلَا أَثَرَ لِلْمَاءِ فِيْهِ او په هغه ځاى کې داوبو اثر نسته فَإِذَا تَعَمَّدَ الْمُرُوْرَ عَلٰى مَوْضِعِ صَبِّ الْمَاءِ مَعَ عِلْمِهٖ بِذٰلِكَ لېکن کله چې دئ قصداً د اوبو تويېدلو پر ځاى تېر سو، سره د دې چې په هغه خبر دی لَمْ يَكُنْ عَلَى الرَّاشِّ شَيْءٌ نو پر اوپاشي والا به هيڅ شى [واجب] نه وي وَإِنْ رَشَّ جَمِيْعَ الطَّرِيْقِ او که هغه ټوله لاره اوپاشي کړې وي يَضْمَنُ نو هغه ضامن کېږي لِأَنَّهُ مُضْطَرٌّ فِي الْمُرُوْرِ ځکه چې دئ [په لاره کې] تېرېدلو ته مجبوره دی وَكَذٰلِكَ الْحُكْمُ فِي الْخَشَبَةِ الْمَوْضُوْعَةِ فِي الطَّرِيْقِ فِيْ أَخْذِهَا جَمِيْعَهٗ أَوْ بَعْضَهٗ او په لاره کې د اېښوول سوي لرګي د ټولي لارې يا بعضي لارې د نيولو په هکله هم دغه حکم دی وَلَوْ رَشَّ فِنَاءَ حَانُوْتٍ بِإِذْنِ صَاحِبِهٖ او که څوک د دوکان اطراف [يامخ] د صاحب دوکان په اجازه [او حکم] سره اوپاشي وکړي فَضَمَانُ مَا عَطِبَ عَلَى الْآمِرِ اِسْتِحْسَانًا نو ضمان د هغه شه کوم چې هلاک سي استحساناً پر حکم کونکي [واجب] دی.

**اللغات:** ﴿تعمّد﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: قصداً يو کار کول. ﴿راش﴾ د نصر له بابه د فاعل صيغه ده: اوبه پاشونکى. اوپاشي کونکى. ﴿مضطر﴾ د افتعال د باب مفعول دی: مجبور. ﴿فِنَاء﴾ (بکسر الفاء): د ځاى اطراف. د کور شا وخوا ساحه (خالي ځمکه). ديو ځاى د مخ ساحه. الفناء: ... ما امتد من جوانب

الدار. فناء المسجد: الساحة أمامه (معجم لغة الفقهاء). او صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: الساحة في الدار أو بجانبها: يعني د کور د مينځ يا د هغه د يو طرف خالي حمکه. ﴿حانوت﴾ دوکان. د کاروبار ځای.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که زيد په عامه لاره کي اوبه داسي وپاشي چي هغه ټوله لاره نه ونيسي بلکي بيا هم په لاره کي وچه حصه پاته سي چي هلته انسان په آسانه تېرېدلای سي. که په دې صورت کي يو څوک مثلاً خالد داو پاشي پر ځای قصداً تېر سي او د هغه په وجه ښوی سي او مړ سي يا مثلا پښه يا لاس يې مات سي. نو په دې صورت کي پر زيد ضمان نه واجبيږي: ځکه دلته د تېرېدونکي (خالد) فعل علت دی او داوبو پاشونکي (زيد) فعل سبب دی: او اُصول دا دی چي کله په علت کي دا صلاحيت وي چي د حکم اضافت د هغه وطرف ته کېدلای سي. نو بيا پر سبب او شرط ضمان نه راځي. او دلته د تېرېدونکي فعل علت صالحه دی ځکه دا د فاعل مختار فعل دی.

ها! که زيد په ټوله لاره کي اوبه پاشلي وي چي د لاري ټوله بَر (عرض) اوبو نيولی وي. نو په دې صورت کي زيد ضامن کيږي: ځکه د خپل ضرورت او ارتيا لپاره خالد تېرېدلو ته مجبوره وو. او هغه د زيد د فعل په وجه غوځار سو او مړ سو. نو ځکه پر زيد به ضمان واجبيږي.

همدارنګه که زيد په لاره کي لرګی ايښی وي. نو په دې صورت کي هم پورتنی تفصيل او حکم دی.

ولو رش إلخ: د دې حاصل دا دی چي زيد (دوکاندار) اوپاشي. والا ته حکم وکړي چي د دې دوکان مخ او غولی (صحن) اوپاشي کړه!. نو هغه يې اوپاشي کړي. اوس که يو څوک هلته ښوی سي او مړ سي. نو د هغه ضمان پر اوپاشي والا نه لازميږي. بلکي خپله پر زيد (دوکاندار) لازميږي. (اشرف الهدايه. احسن الهدايه)

## د تعمير او جوړښت په دوران کي د يو چا د ښوېدلو او مړ کېدلو حکم

وَإِذَا اسْتَأْجَرَ أَجِيرًا لِيَبْنِيَ لَهُ فِي فِنَاءِ حَانُوتِهِ او که څوک يو مزدور په اُجرت ونيسي د دې لپاره چي هغه يې د دوکان په اطرافو کي يو ځای جوړ کړي فَتَعَقَّلَ بِهِ إِنْسَانٌ بَعْدَ فَرَاغِهِ فَمَاتَ بيا د هغه سره يو انسان ټکر سي د مزدور تر فارغېدلو وروسته او هغه مړ سي يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى الْآمِرِ اِسْتِحْسَانًا نو ضمان استحساناً پر حکم کونکي [مستأجر] واجب دی وَلَوْ كَانَ أَمَرَهُ بِالْبِنَاءِ فِي وَسَطِ الطَّرِيقِ او که هغه مزدور ته د لاري په مينځ کي د ځای جوړولو حکم کړی وي فَالضَّمَانُ عَلَى الْأَجِيرِ نو [په دې صورت کي] ضمان پر مزدور واجب دی لِفَسَادِ الْأَمْرِ د حکم د فاسد والي په وجه [يعني ځکه چي په دې صورت کي د آمر حکم فاسد او غير صحيح دی].

**اللغات:** ﴿أجير﴾ د صفت مشبه صيغه ده په معنیٰ سره د مفعول: په أجرت نيول سوی، مزدور، ﴿فناء﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي يې وضاحت وسو. ﴿تعقّل﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: يو شئ په بل شي کي منښتل (ټکر کېدل)، بندېدل او پساوېدل. ځوړند کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد خالد (مستري) ته حکم وکړی چي زما د دوکان مخ ته مثلاً چتر جوړ کړه!، او خالد (مستري) هغه جوړ کړی کله چي خالد له کار ځخه فارغه سو، نو تر دې وروسته د هغه چتر سره يو څوک ټکر سو يا هلته ښوی او غوځار سو چي بالآخره مړ سو. نو په دې صورت کي ضمان پر زيد لازميږي (کوم چي مستري ته حکم کړی دی).

او که زيد خالد ته حکم وکړی چي د سړک په مينځ کي زما لپاره مثلاً يوه خونه جوړ کړه! او خالد جوړه کړه، بيا د هغې سره څوک ټکر سو او مړ سو، نو په دې صورت کي پر خالد (مستري) ضمان لازميږي؛ ځکه په اول صورت کي حکم صحيح دی او په دويم صورت کي حکم صحيح نه دی بلکي فاسد دی؛ ځکه خالد (مستري) دومره علم خو سته چي د سړک په مينځ کي ځای جوړول صحيح نه دي او بالکل د عقل خلاف کار دی.

## په لاره کي د ځاه کيندلو او په هغه کي د يو انسان مړ کېدلو حکم

قَالَ: وَمَنْ حَفَرَ بِئْرًا فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ فرمايي: او څوک چي د مسلمانانو په لاره کي ځاه وکيندي أَوْ وَضَعَ حَجَرًا يا ډبره [يکي] کښېږدي فَتَلِفَ بِذَلِكَ إِنْسَانٌ بيا د هغه په وجه يو انسان هلاک سي فَدِيَتُهُ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو د انسان ديت د ده پر عاقله وو [واجب] دی وَإِنْ تَلِفَتْ بِهِ بَهِيمَةٌ او که د هغه په وجه يو څاروی هلاک سي فَضَمَانُهَا فِي مَالِهِ نو د څاروي ضمان د ده په خپل مال کي [واجب] دی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځکه چي دئ په دې کار کي تعدی کونکی دی فَيَضْمَنُ مَا يَتَوَلَّدُ مِنْهُ نو د هغه په وجه چي کوم څه پېښ سي، دئ به د هغه ضامن وي غَيْرَ أَنَّ الْعَاقِلَةَ تَتَحَمَّلُ النَّفْسَ دُونَ الْمَالِ خو دا چي عاقله د نفس [ديت] پر ځان اخلي، نه د مال فَكَانَ ضَمَانُ الْبَهِيمَةِ فِي مَالِهِ نو ځکه د څاروي ضمان به د ده په مال کي [واجب] وي وَإِلْقَاءُ التُّرَابِ وَاتِّخَاذُ الطِّينِ فِي الطَّرِيقِ او په لاره کي خاوره غورځول او خټه [ګل] جوړول بِمَنْزِلَةِ إِلْقَاءِ الْحَجَرِ وَالْخَشَبَةِ د ډبري او لرګي غورځولو [اچولو] په درجه کي دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَنَسَ الطَّرِيقَ په خلاف د هغه صورت کله چي لاره جارو کړي فَعَطِبَ بِمَوْضِعِ كَنْسِهِ إِنْسَانٌ بيا د هغه د جارو کېدلو

د ځای په وجه یو انسان هلاک سي حَيْثُ لَمْ يَضْمَنْ نو [په دې صورت کي] هغه نه ضامن کيږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُتَعَدٍّ ځکه چي هغه تعدی کونکی نه دی فَإِنَّهُ مَا أَحْدَثَ شَيْئًا فِيْهِ ځکه هغه په لاره کي یو شی نه دی جوړ کړی إِنَّمَا قَصَدَ دَفْعَ الْأَذَىٰ عَنِ الطَّرِيْقِ [بلکي] هغه خو د لاري څخه د ضرر لیري کولو اراده کړې ده حَتّٰى لَوْ جَمَعَ الْكُنَاسَةَ فِي الطَّرِيْقِ همدا وجه ده که هغه جارو کړل سوې کچره په لاره کي جمع کړي وَتَعَقَّلَ بِهَا إِنْسَانٌ او د هغه په وجه یو انسان ټکر وخوري كَانَ ضَامِنًا نو هغه ضامن کیږي لِتَعَدِّيْهِ بِشُغْلِهِ ځکه د لاري د مشغولو په وجه هغه تعدی کړې ده.

**اللغات:** ﴿إلقاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: اچول، غورځول. ﴿بهيمة﴾ چارپای، څاروی. ﴿الاذیٰ﴾ ضرر، عیب. ﴿الكُناسة﴾ کچره، هغه خاوري او ناپاکي او هغه بې ځایه شیان چي د یو ځای له جارو کولو څخه وروسته په آخر کي جمع سي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید په عامه لاره کي څاه وکیندي یا په عامه لاره کي یو لویه ډبره کښېږدي، بیا په هغه کي یو انسان یا څاروی ولوېږي او هلاک سي، نو په دواړو صورتونو کي پر زید ضمان واجبیږي؛ ځکه دا د زید له طرفه زیاتوب او تعدی ده چي په عامه لاره کي یې داسي حرکت کړی دی.

لیکن د هلاک سوي انسان دیت د زید پر عاقله وو لازمیږي او د څاروي ضمان خپله پر زید لازمیږي: ځکه عاقله د مال دیت نه اداء کوي. صرف د نفس دیت اداء کوي لکه مخکي چي هم ذکر سوه (او څاروی مال دی).

همدارنګه که زید په لاره کي خاوره واچوي یا خټه پکښي جوړه کړي. نو دا هم تعدی ده او د دې هم دا پورتنی حکم دی.

بخلاف ما إذا كنس إلخ: د دې حاصل دا دی که زید لاره جارو او صفا کړي او بیا یو څوک د هغه په وجه ښوی سي او بالآخره مړ سي، نو په دې صورت کي پر زید هیڅ ضمان نه واجبیږي: ځکه هغه په دې کار کي متعدي نه دی بلکي هغه خو د ثواب کار کړی دی، په حدیث کي دي "إِمَاطَةُ الْأَذَىٰ عَنِ الطَّرِيْقِ صَدَقَةٌ". نو ځکه د لاري جارو کښ او صفا کونکي (زید) به نه ضامن کیږي.

ها! که زید تر جارو کولو وروسته کچره او خاشاک په لاره کي سره ټول کړي او بیا یو څوک د هغه په وجه غوځار سي او مړ سي، نو په دې صورت کي پر هغه ضمان واجبیږي؛ ځکه په عامه لاره کي اچول او جمع کول تعدی ده. نو ځکه هغه به ضامن کیږي. (اشرف الهدایه. احسن الهدایه)

٦

## په لاره کې د ليرې کړل سوي ډبرې په وجه د يو انسان د مړ کېدلو حکم

وَلَوْوَضَعَ حَجَرًا او که څوک [په لاره کې] ډبره کښېږدي فَنَحَّاهُ غَيْرُهُ عَنْ مَوْضِعِهِ بيا يو بل څوک ډبره له هغه ځايه ليرې کړي فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ بيا د هغه په وجه يو انسان هلاک سي فَالضَّمَانُ عَلَى الَّذِيْ نَحَّاهُ نو ضمان پر هغه کس [واجب] دی کوم چي ډبره ليرې کړې ده لِأَنَّ حُكْمَ فِعْلِهِ قَدِ انْتَسَخَ لِفَرَاغِ مَا شَغَلَهُ ځکه د ده [يعني د اول واضع] فعل منسوخ سو [د لاري] د هغه ځای فارغېدلو په وجه کوم چي ده مشغول کړی وي وَإِنَّمَا اشْتَغَلَ بِالْفِعْلِ الثَّانِيْ مَوْضِعٌ آخَرُ او د دويم کس په فعل سره [د لاري] بل ځای مشغول سو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک مثلاً زيد په لاره کې يو لويه ډبره کښېږدي. بيا خالد هغه ليرې کړي او د لاري په يو بل طرف کې يې کښېږدي. تر دې وروسته د هغه ډبرې سره يو څوک ټکر سي چي بالآخره د هغه په وجه مړ سي. نو دلته پر واضع ثاني يعني پر خالد ضمان واجبيږي او پر واضع اول يعني پر زيد ضمان نه واجبيږي؛ ځکه کله چي خالد د زيد ايښوول سوې ډبره له هغه ځايه ليرې کړه. نو د خالد په فعل سره د زيد فعل منسوخ سو يعني د زيد د فعل (ايښوولو) په وجه چي د لاري کومه حصه مشغوله وه. هغه حصه خالي سوه او د زيد تعدی ختم سوه. او لاره اوس د دويم يعني د خالد په فعل سره مشغوله سوه او د خالد له طرفه تعدی موجوده سوه. نو ځکه پر همدې خالد به ضمان واجبيږي. (احسن الهدايه)

## په لاره کې د غار ګډې د کښلو حکم او تفصيل

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ فِي الْبَالُوْعَةِ يَحْفِرُهَا الرَّجُلُ فِي الطَّرِيْقِ او د هغه ګډې [کندې] په هکله کوم چي يو انسان په لاره کې وکيندي په جامع صغير کې داسې [ذکر سوي] دي فَإِنْ أَمَرَهُ السُّلْطَانُ بِذٰلِكَ أَوْ أَجْبَرَهُ عَلَيْهِ نو که هغه [حافر] ته باچا د دې حکم کړی وي يا هغه يې پر دې کار مجبوره کړی وي لَمْ يَضْمَنْ نو هغه نه ضامن کيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه هغه تعدی کونکی نه دی حَيْثُ فَعَلَ مَا فَعَلَ بِأَمْرِ مَنْ لَهُ الْوِلَايَةُ فِي حُقُوْقِ الْعَامَّةِ ځکه ده چي کوم څه کړي دي دا يې د هغه کس په حکم سره کړي دي چي هغه لره د عامو خلکو په حقوقو کي ولايت سته وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ أَمْرِهِ او که د باچا له حکم څخه بغير [يې دا کار کړی] وي فَهُوَ مُتَعَدٍّ نو هغه تعدی کونکی دی إِمَّا بِالتَّصَرُّفِ فِيْ حَقِّ غَيْرِهِ

یا خو د بل چا په حق کي د تصرف کولو په وجه أَوْ بِالافْتِيَاتِ عَلىٰ رَأْيِ الإِمَامِ يا د امام د رايي په خلاف د خپلي رايي چلولو په وجه أَوْ هُوَ مُبَاحٌ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ يا [په دې وجه چي] دا کار د سلامتی په شرط سره مقيد وي وَكَذَا الْجَوَابُ عَلىٰ هٰذَا التَّفْصِيْلِ فِي جَمِيْعِ مَا فُعِلَ فِي طَرِيْقِ الْعَامَةِ او همدا جواب [حکم] دی د دغه تفصيل مطابق په هغه ټولو کارونو کي کوم چي په عامه لاره کي وکړل سي مِمَّا ذَكَرْنَاهُ وَغَيْرِهِ کوم چي موږ ذکر کړي دي [یا] له هغوی څخه بغیر نور لِأَنَّ الْمَعْنىٰ لَا يَخْتَلِفُ ځکه چي معنیٰ [سبب] مختلف نه دی [یعني په هر صورت کي سبب متحد دی].

**اللغات**: ﴿بالوعة﴾ د دې لفظ دوې معناوې نقل سوي دي: ① هغه ګډی (کنده) کوم چي په کور کي د اوداسه یا باران د اوبو. یا د ګنده اوبو د جمع کولو لپاره و کیندل سي، ② د دېوال هغه سوری چي له هغه څخه بهر اوبه راوځي. جمع: بَوَالِيْع. ﴿افتيات﴾ او افتئات: د افتعال د باب مصدر دی. اِفْتَاتَ يَفْتَاتُ: په رایه کي منفرد او مستقل کېدل او د چا سره هيڅ مشوره نه پکښې کول. خپله رايه چلول. د درواغو خبره او رايه جوړول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي کوم تصرف په لاره کي يو کس د امام په اجازه يا د امام په حکم سره کړي وي او بيا په هغه کي څوک مړ سي: نو څرنګه چي متصرف په دې صورت کي متعدي نه دی نو ځکه پر هغه ضمان نه واجبيږي. او که د امام له اجازې پرته يې تصرف پکښې کړی وي نو ضامن کيږي: ځکه اوس هغه متعدي دی. او د متعدي کېدلو وجهي درې دي:

① د نورو کسانو په حق کي د تصرف کولو په وجه.

② د امام په رايه باندي د وړاندیتوب کولو په وجه.

③ او بل په دې وجه چي مباح کار د سلامتی په شرط سره مقيد وي. نو د لاري څخه نفع اخيستل که څه هم جائز دي. لېکن دا پکښې شرط دي چي په هغه سره به چا ته نقصان نه رسيږي او د لته نقصان رسېدلی دی. همداسي د ټولو تصرفاتو دغه حکم دی. (اشرف الهدايه)

## په خپل مملوکه ځمکه د ګډي کیندلو حکم او تفصيل

وَكَذَا إِنْ حَفَرَهُ فِي مِلْكِهِ او همدارنګه که څوک په خپل ملکيت کي هغه [ګډی وغيره] وکيندي لَا يَضْمَنُ نو نه ضامن کيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه هغه تعدی کونکی نه دی وَكَذَا إِذَا حَفَرَهُ فِي فِنَاءِ دَارِهِ او همدارنګه کله چي د خپل کور په اطرافو [یا د کور په مخ] کي هغه وکيندي لِأَنَّ لَهُ ذٰلِكَ لِمَصْلَحَةِ دَارِهِ ځکه د خپل کور د مصلحت [او ضرورت] لپاره هغه ته د دې حق سته وَالْفِنَاءُ فِي تَصَرُّفِهِ او د

کور اطراف د هغه په تصرف کي دي وَقِيلَ: هٰذَا إِذَا كَانَ الْفِنَاءُ مَمْلُوكًا لَهُ او ويل سوي دي: چي دا حکم هغه وخت دی کله چي د کور اطرف د ده په ملکيت کي وي أَوْ كَانَ لَهُ حَقُّ الْحَفْرِ فِيهِ يا ده ته په هغوی کي د کيندلو حق [حاصل] وي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه [په دې وخت کي] هغه تعدی کونکی نه دی أَمَّا إِذَا كَانَ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ لېکن که هغه [د کور اطراف يا مخ] د مسلمانانو د جماعت وي أَوْ مُشْتَرَكًا بِأَنْ كَانَ فِي سِكَّةٍ غَيْرِ نَافِذَةٍ يا مشترک وي په دې توګه چي په بنده کوڅه کي [واقع] وي فَإِنَّهُ يَضْمَنُهُ نو هغه ضامن کيږي لِأَنَّهُ مُسَبِّبٌ مُتَعَدٍّ ځکه [په دې صورت کي] هغه داسي سبب جوړېدونکی دی کوم چي تعدی کونکي دی وَهٰذَا صَحِيحٌ او همدا صحيح ده.

**اللغات:** ﴿فِنَاء﴾ (بکسر الفاء): د ځای اطراف، د کور شا وخوا ساحه (خالي ځمکه)، يعني د کور مخ وغيره. الفناء: ... ما امتد من جوانب الدار، فناء المسجد: الساحة أمامه (معجم لغة الفقهاء)، او صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: الساحة في الدار أو بجانبها؛ يعني د کور د مېنځ يا د هغه د يو طرف خالي ځمکه، ﴿سِكَّة﴾ کوڅه (ګلی)، ﴿مسبّب﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: سبب جوړېدونکی،

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي څرنګه مخکيني مذکوره اُمور که د امام په اجازه سره څوک وکړي نو ضمان نه واجبيږي، همداسي که څوک په خپله مملوکه ځمکه کي تصرّفات وکړي نو هم ضمان نه واجبيږي؛ ځکه په دې کي د هغه له طرفه هيڅ تعدی نسته، ولايجب الضمان إلا على المتعدی.

او که د لاري څخه ګوښه د خپل کور په اطرافو کي مثلاً د کور مخ ته مذکوره تصرّفات وکړي (يعني ګډی [بالوعه] وغيره وکيندي) او بيا د هغه په وجه يو څوک مړ سي، نو په دې صورت کي پر هغه (حافر) ضمان نه واجبيږي؛ ځکه د خپل کور د مصلحت او ضرورت په خاطر هغه ته د کور په فناء (اطرافو) کي د مذکوره تصرّفاتو حق سته، نو ځکه دلته هم هغه متعدي نه دی.

وقيل هذا إذا إلخ: فرمايي د ځيني حضراتو رايه داده چي دلته د کور په فناء (اطرافو) کي د ګډي وغيره پر کيندلو د ضمان نه واجبېدلو چي کوم حکم دی، دا په هغه صورت کي دی کله چي د کور فناء د هغه په ملکيت کي وي، يا په ملکيت کي خو يې نه وي، لېکن په يو وجه هغه ته په دې فناء کي د کيندلو حق حاصل وي، نو په دې صورت کي پر حافر ضمان نه واجبيږي. او که چيري هغه فناء (د کور اطراف) د نورو مسلمانانو وي، يا په بنده کوڅه کي واقع وي او د کوڅې د خلکو تر مېنځ مشترک وي (يعني د کور د مخ يا د شا طرف يا د راسته يا د چپه خوا طرف په کوڅه کي داخل وي او هغه هم غير نافذه کوڅه

وي چي په آخر کي بنده وي او ښکاره ده چي داسي کوځه د اوسېدونکو تر مينځ مشترکه وي) نو په دې صورت کې

که يو څوک د هغه ګډې وغيره په وجه مړ سي، نو حافر ضامن کيږي: ځکه اوس هغه متعدي دی، نو

ځکه په دې صورت کي به پر هغه د مقتول ضمان واجب وي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د لاري په کيندل سوي څاه کي د لوږي يا خپګان په وجه مړ کېدل (حکم او تفصيل)

وَلَوْحَفَرَ فِي الطَّرِيْقِ اوکه په لاره کي څاه وکيندي رَمَاتَ الْوَاقِعُ فِيْهِ جُوْعًا أَوْغَمًّا او په هغه کي لوېدونکی کس د لوږي يا د غم [خپګان] په وجه مړ سي لَاضَمَانَ عَلَى الْحَافِرِ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر کيندونکي کس ضمان نسته لِأَنَّهُ مَاتَ لِمَعْنًى فِي نَفْسِهِ ځکه لوېدونکی کس د داسي معنیٰ [سبب] په وجه مړ سوی دی کوم چي د هغه په ذات کي دی [يعني لوږه او غم] وَالضَّمَانُ إِنَّمَا يَجِبُ إِذَا مَاتَ مِنَ الْوُقُوْعِ او ضمان خو هغه وخت واجبيږي کله چي هغه د لوېدلو په وجه مړ سوی وي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ: إِنْ مَاتَ جُوْعًا اوامام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي که د لوږي په وجه مړ سي فَكَذٰلِكَ نو هم دغه حکم دی [چي حافر نه ضامن کيږي] وَإِنْ مَاتَ غَمًّا او که د غم په وجه مړ سي فَالْحَافِرُ ضَامِنٌ لَهُ نو کيندونکی کس د هغه ضامن دی لِأَنَّهُ لَا سَبَبَ لِلْغَمِّ سِوَى الْوُقُوْعِ ځکه د لوېدلو څخه بغير د غم بل سبب نسته أَمَّا الْجُوْعُ فَلَا يَخْتَصُّ بِالْبِئْرِ او کوم چي لوږه ده نو هغه د څاه سره خاص نه ده وَقَالَ مُحَمَّدٌ*: هُوَضَامِنٌ فِي الْوُجُوْهِ كُلِّهَا او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه [حافر] په ټولو صورتونو کي ضامن دی لِأَنَّهُ إِنَّمَا حَدَثَ بِسَبَبِ الْوُقُوْعِ ځکه چي لوږه [هم] د لوېدلو په سبب پېښه سوې ده إِذْ لَوْلَاهُ ځکه که هغه په څاه کي نه وای لَكَانَ الطَّعَامُ قَرِيْبًا مِنْهُ نو خوراک به ورته نږدې وای.

**اللغات:** ﴿غم﴾ پرېشاني او خپګان (خفګان)، ﴿حافر﴾ د ضرب د باب فاعل دی: کيندونکی، کښونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک په لاره کي څاه وکيندي او بيا په هغه کي يو سړی ولوېږي او مړ سي، نو که د هغه د مرګ سبب صرف لوېدل وي، نو پر حافر ضمان واجبيږي، لېکن که

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، قال المفتي غلام قادر النعماني: القول الراجح هو قول الإمام،لكن قول محمد رَحِمَهُ الله أوفق بهذا الزمان، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵۵]

تر لوېدلو وروسته هغه ژوندی پاتې سي او بيا د سختې لوږې يا د ډېر غم (خپګان) او نفس تنګۍ په وجه مړ سي. نو په دې کې اختلاف دی. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د لوږې او غم په وجه د مړ کېدلو په صورت کې پر حافر ضمان نه واجبېږي: ځکه دا داسي ده لکه هغه چي خپله مړ سوی وي او ضمان په همغه صورت کې واجبېږي کله چي هغه د لوېدلو په سبب مړ سوی وي. د دې لپاره چي حافر په ځاه کي د هغه پورې وهونکي (ديکه کونکی) شمار کړی سي.

او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چي د لوږې او غم ترمينځ فرق دی: ځکه د هغه په لوږه کي حافر لره هيڅ دخل نسته (ځکه که لوېدلی کس په ځاه کي نه وای نو هم وږی کېدی). لېکن د هغه په غم او نفس تنګۍ کي د حافر دخل سته: ځکه هغه چي په کوم غم او ترهه مبتلا سوی دی. د هغه سبب فقط په ځاه کي لوېدل دي، نو ځکه د لوږې په صورت کي خو به پر حافر ضمان نه واجبېږي. لېکن د غم په صورت کي به واجبېږي.

او د امام محمد رَحِمَهُ الله فرمان دا دی چي په دواړو صورتونو کي پر حافر ضمان واجبېږي: ځکه څرنګه چي د غم سبب په ځاه کي لوېدل دي. همداسي د سختې لوږې سبب هم په ځاه کي لوېدل دي. ځکه که هغه په ځاه کي نه وای. نو له مرګ څخه د بچ کېدو په خاطر هغه حتماً څه خواړه ترلاسه کولای سوه. لهذا غالب همدا ده چي د هغه د مرګ سبب لوېدل دي. نه لوږې او د لوېدلو سبب حافر دی. نو ځکه پر حافر به ضمان واجبېږي.

**که څوک په نا جائزه ځای کي په مزدورانو ځاه وکيندي او بيا په هغه کي څوک مړ سي**

قَالَ: وَإِنِ اسْتَأْجَرَ أُجَرَاءَ فرمايي: او که هغه [مالک] يو څو مزدوران په اُجرت ونيسي فَحَفَرُوهَا لَهُ فِي غَيْرِ فِنَائِهِ نو مزدوران د هغه لپاره د بل چا په فناء کي ځاه وکيندي فَذٰلِكَ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ نو هغه [يعني ضمان] پر مستأجر [مالک] دی [کوم چي مزدوران په اُجرت نيولي دي] وَلَا شَيْءَ عَلَى الْأُجَرَاءِ او پر مزدورانو هيڅ شی نسته إِنْ لَمْ يَعْلَمُوا أَنَّهَا فِي غَيْرِ فِنَائِهِ [په دې شرط چي] که مزدوران په دې خبر نه وي چي دا [ځاه کيندل] د بل چا په فناء کي دي لِأَنَّ الْإِجَارَةَ صَحَّتْ ظَاهِرًا إِذَا لَمْ يَعْلَمُوا ځکه اجاره د ظاهر په اعتبار سره صحيح سوه کله چي دوی خبر نه دي [يعني کله چي دوی ته د فناء ملکيت معلوم نه دی. نو په ظاهري اعتبار سره اجاره صحيح سوه] فَنُقِلَ فِعْلُهُمْ إِلَيْهِ نو ځکه د دوی فعل به د مستأجر وطرف ته منتقل کيږي لِأَنَّهُمْ كَانُوا مَغْرُورِينَ ځکه دوی [د مستأجِر له طرفه] دوکه کړل سوي دي فَصَارَ كَمَا إِذَا

أَمَرَ آخَرَ بِذَبْحِ هٰذِهِ الشَّاةِ نو داسي سو لکه څوک چي بل يوه ته د دې پسه د ذبح کولو حکم وکړي فَذَبَحَهَا نو هغه [مأمور کس] دا پسه ذبح کړي ثُمَّ ظَهَرَ أَنَّ الشَّاةَ لِغَيْرِهِ بيا دا ښکاره سي چي پسه له آمر څخه بغير د بل چا دی إِلَّا أَنَّ هُنَاكَ يَضْمَنُ الْمَأْمُوْرُ خو هلته ايعني په دې د ذبح په مسئله کې| مأمور [ذابح] ضامن کيږي وَيَرْجِعُ عَلَى الْآمِرِ او بيا به هغه پر آمر رجوع کوي لِأَنَّ الذَّابِحَ مُبَاشِرٌ وَالْآمِرَ مُسَبِّبٌ ځکه چي ذابح مباشر [بذات خود ذبح کونکی] او آمر [د ذبح] سبب جوړېدونکی دی وَالتَّرْجِيْحُ لِلْمُبَاشَرَةِ او ترجيح مباشرت لره ده فَيَضْمَنُ الْمَأْمُوْرُ نو ځکه ذابح به ضامن کيږي وَيَرْجِعُ لِلْغُرُوْرِ او بيا به ذابح د دوکې په وجه [پر آمر] رجوع کوي وَهُنَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ ابْتِدَاءً او دلته ضمان له شروع څخه پر مستأجر واجبيږي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُسَبِّبٌ ځکه له دوی دواړو [مستأجر او مزدور] څخه هر يو مسبب دی وَالْأَجِيْرُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ وَالْمُسْتَأْجِرُ مُتَعَدٍّ او مزدور تعدی کونکی نه دی بلکي مستأجر [مالک] تعدی کونکی دی فَيُرَجَّحُ جَانِبُهُ نو ځکه د مستأجر طرف لره به ترجيح وي وَإِنْ عَلِمُوْا ذٰلِكَ او که مزدوران په هغه خبر وي فَالضَّمَانُ عَلَى الْأُجَرَاءِ نو بيا ضمان پرمزدورانو [واجب] دی لِأَنَّهُ لَمْ يَصِحَّ أَمْرُهُ بِمَا لَيْسَ بِمَمْلُوْكٍ لَهُ ځکه [په دې صورت کي] د مستأجر حکم صحيح نه سو د هغه شي [فناء] په هکله کوم چي د مستأجر په ملکيت کي نه دی وَلَا غُرُوْرَ او [په دې صورت] دوکه هم نسته [يعني د مستأجر له طرفه مزدوران دوکه کړل سوي نه دي] فَبَقِيَ الْفِعْلُ مُضَافًا إِلَيْهِمْ نو ځکه فعل د همدوی وطرف ته مضاف [منسوب] پاته سو.

**اللغات**: ﴿فناء﴾ (بكسر الفاء): د کور اطراف، د کور شا وخوا ساحه (خالي ځمکه). د يو ځای مخ. الفناء: ... ما امتدّ من جوانب الدار، فناء المسجد: الساحة أمامه (معجم لغة الفقهاء). او صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: الساحة في الدار أو بجانبها: يعني د کور د مېنځ يا د هغه د يو طرف خالي ځمکه. ﴿أُجَرَاء﴾ جمع د أجِيْرٌ ده: مزدور. کاريګر. ﴿مُستأجِر﴾ د استفعال د باب فاعل دی: په أجرت نيونکی (کوم چي مزدوران په أجرت او په مزدوری نيولي دي). ﴿شاة﴾ واحد د غَنَم دی (من غير لفظه)، اسم جنس دی، پر پسه، وزګري، بزې وغيره ټولو باندي يې اطلاق کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید مثلاً د څاه کيندلو لپاره څو مزدوران په اُجرت ونيسي او هغوی د زید (مستاجر) د کور او ځای له فناء (اطرافو) څخه بغیر د بل چا د کور او ځای په فناء کې څاه وکيندي او مزدروان بالکل په دې خبر نه وي چې دا د بل چا فناء ده. بيا يو څوک په هغه څاه کې ولوېږي او مړ سي. نو د هغه مړ کېدونکي کس ضمان پر مزدروانو نه واجبيږي بلکې خپله پر مستأجر (يعني پر زيد) واجبيږي؛ ځکه مزدورانو ته دا علم او خبر نسته چې دا فناء د مستأجر ده. لهذا اجاره صحيح سوه او د اجيرانو (مزدورانو) فعل د مستاجر وطرف ته منتقل سو. او څرنګه چې مستأجر ته دا په ښه توګه معلومه وه چې دا زماد کور فناء نه ده. نو ځکه هغه ته خو پکار دا وه چې د کيندلو په وخت کې يې مزدوران له دې کار څخه منع کړي وای. لېکن کله چې هغه دوی منع نه کړل او نه يې دوی په صحيح ځای خبر کړل. نو مستأجر (زيد) هغو ته فرېب او دوکه ورکړه. نو ځکه له دې څاه څخه پېښېدونکي ضمان (تاوان) به هم پر همدغه مستأجر واجب وي.

د دې مثال دا دی لکه زيد چې وخالد ته حکم وکړي چې دا پُسه ذبحه کړه!. نو خالد هغه پُسه ذبح کړی، وروسته معلومه سوه چې هغه خو د زيد نه بلکې د بل چا پُسه دی. نو په دې صورت کې هم پر آمر (حکم کونکی) يعني پر زيد ضمان واجبيږي. خو دلته ضمان اول پر ذابح يعني پر خالد واجبيږي يعني اول به خالد د پُسه مالک ته ضمان (تاوان) ورکوي.او تر دې وروسته به خالد په ضمان کې ورکول سوي پيسې له زيد څخه واپس اخلي (نو ضمان اخيراً پر زيد واجب سو)؛ ځکه په دې صورت کې خالد مباشر دی (يعني د ذبح کار هغه ترسره کړی دی) او زيد مُسبّب دی (يعني د ذبح سبب جوړ سوی دی)، او قاعده دا ده چې مباشر لره پر مسبب ترجيح او تقدّم حاصل وي، نو ځکه د پُسه د مرګ سبب اول د مباشر (خالد) وطرف ته منسوب کيږي او پر هغه ضمان واجبيږي. او څرنګه چې هغه ته د ذبح امرلو حکم زيد کړی دی او هغه ته يې فرېب او دوکه يې ورکړې ده. نو ځکه ذابح (خالد) به د ضمان پيسې بيرته له آمر (زيد) څخه واپس اخلي.

د دې په خلاف د اجارې والا په مسئله کې هيڅ مباشر نسته، بلکې مستأجر (زيد) هم مسبّب دی او اجراء (مزدوران) هم مسبّب دي، نو ځکه هلته به يوه ته هم پر بل ترجيح نه وي، بلکې دې ته به کتل کيږي چې تعدی د کوم يوه له طرفه ده او تعدی هلته د مستأجر له طرفه ده. د مزدورانو له طرفه تعدی نسته؛ ځکه هغو ته د دې هيڅ علم نسته چې دا فناء د چا ده. نو کله چې هلته تعدی د مستأجر له طرفه ده. نو ضمان به هم پر هاغه واجب وي.

وان علموا ذلك الخ: د دې حاصل دا دی چې که مزدورانو ته دا معلومه وي چې دا فناء د مستاجر نه ده. خو د دې باوجود هغوی په دې فناء کې څاه وکيندي، نو اوس تعدی د مزدورانو له طرفه واقع سوه. ځکه کله چې دوی په دې خبر دي چې دا د مستأجر فناء نه ده، تو دوی ته د مستأجر حکم کول بالکل

صحیح نه سوه او نه د مستأجر له طرفه دوی ته دوکه ورکول سوه، لهذا اوس به د کیندلو فعل صرف پر مزدورانو منحصر وي او د مستأجر وطرف ته به نه منتقل کیږي، نو ځکه ضمان به هم پر مزدورانو واجب وي او مستأجر به پر ېښوول کیږي. (احسن الهدایه)

## د پورتنی مسئلي نور وضاحت

وَإِنْ قَالَ لَهُمْ: هٰذَا فِنَائِيْ وَلَيْسَ لِيْ فِيْهِ حَقُّ الْحَفْرِ او که مستأجر مزدورانو ته ویلي وي: چي دا زما د کور اطراف دي لېکن ما ته په هغه کي د کیندلو حق نسته فَحَفَرُوْا وَمَاتَ فِيْهِ إِنْسَانٌ بیا هم مزدوران [په دې فناء کي] ځاه وکیندي او په هغه کي یو انسان مړ سي فَالضَّمَانُ عَلَى الْأُجَرَاءِ قِيَاسًا نو قیاساً پر مزدورانو ضمان [واجب] دی لِأَنَّهُمْ عَلِمُوْا بِفَسَادِ الْأَمْرِ ځکه دوی [د مستأجر] د حکم په فساد خبر دي فَمَا غَرَّهُمْ نو مستأجر دوی ته دوکه نه ده ورکړي وَفِي الْاِسْتِحْسَانِ الضَّمَانُ عَلَى الْمُسْتَأْجِرِ او په استحسان کي پر مستأجر ضمان [واجب] دی لِأَنَّ كَوْنَهُ فِنَاءً لَهُ بِمَنْزِلَةِ كَوْنِهِ مَمْلُوْكًا لَهُ ځکه چي دا [ځمکه] د مستأجر لپاره فناء کېدل د مستأجر لپاره د هغه د مملوک کېدلو په درجه کي دي [یعني مستأجر چي دا خبره کوي چي دا زما فناء ده، نو د دې مطلب دا دی چي فناء د هغه په ملکیت کي ده] لِانْطِلَاقِ يَدِهِ فِي التَّصَرُّفِ فِيْهِ ځکه په دې فناء کي په تصرّف کولو کي د مستأجر قبضه جاري [او ثابته] ده مِنْ إِلْقَاءِ الطِّيْنِ وَالْحَطَبِ یعني [په دې فناء کي] ختمي او بوټي [لرګي] اچول [یعني د ختو وغیره داچولو تصرّف] وَرَبْطِ الدَّابَّةِ وَالرُّكُوْبِ او څاروی [پکښي] تړل او سپرېدل وَبِنَاءِ الدُّكَّانِ او دوکان جوړول فَكَانَ الْأَمْرُ بِالْحَفْرِ فِيْ مِلْكِهِ ظَاهِرًا نو په ظاهري توګه [د مستأجر] د کیندلو حکم به په خپل ملکیت کي وي بِالنَّظَرِ إِلٰى مَا ذَكَرْنَا او هغه شیانو [تصرّفاتو] ته په کتلو سره کوم چي موږ ذکر کړل فَكَفٰى ذٰلِكَ لِنَقْلِ الْفِعْلِ إِلَيْهِ نو د مستأجر وطرف ته د فعل نقل کولو لپاره همدومره کافي دي.

**اللغات:** ﴿إلقاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: اچول، غورځول، ﴿الطين﴾ ختمي، ﴿الحطب﴾ بوټي، لرګي (کوم چي د سوځولو لپاره کارول کیږي)، ﴿الدابة﴾ څاروی، چارپای، سپارلی.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که مستأجر (زید) مزدورانو ته د کور د فناء (اطرافو) په هکله خبر ورکړي چي دا خو زما فناء ده چي په دې کي انسان ختمي وغیره غورځولای سي، څارویان پکښي تړلای سي او د ضرورت په وخت کي دوکان هم پکښي جوړولای سي، خو په دې فناء کي ما

ته د ځاه کيندلو حق نسته. نو که د دې خبرې تر اوريدلو وروسته هم مزدوران په دغه فناء کې ځاه وکيندي او بيا په هغه کې يو څوک مړ سي. نو د قياس مطابق صرف پر مزدورانو ضمان واجبيږي؛ ځکه تعدی د همدوی له طرفه متحقق سوه. ځکه مزدوران د آمر (زيد) د حکم په فساد خبر دي چې په دې ځای کې د هغه د ځاه کيندلو حکم صحيح نه دی بلکې فاسد دی او آمر دوی ته صحيح حال ويلی دی نو هغه په دې معامله کې دوی ته دوکه ورکونکی هم نه سو.

خو استحساناً دلته پر مستأجر ضمان واجب سوی دی؛ ځکه کله چې هغه ته په دې فناء کې کې د ختمې اچولو او د داسې نورو تصرفاتو حق حاصل دی نو له دې څخه په ښکاره معلوميږي چې دا فناء په هر اعتبار سره د آمر او مستأجر (زيد) په ملکيت کې ده او هغه ته په دې فناء کې د هر ډول کار کولو حق سته چې خپله يا په بل چا هر کار پکښې وکړي. لهذا په مزدورانو په دې فناء کې ځاه کيندل غلط نه دي؛ ځکه کله چې ده ته د مذکوره تصرفاتو حق سته. نو ښکاره ده چې ده ته به د ځاه کيندلو حق هم وي او د مزدورانو فعل (کيندل) به د ده وطرف ته منتقل کيږي؛ ځکه د ظاهر حال په اعتبار سره د دومره تصرف حق د دې خبرې لپاره کافي دی چې د مزدورانو فعل د مستأجر وطرف ته نقل کړی سي. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

## په لاره کې د امام له اجازې پرته د پل جوړولو بيان

قَالَ: وَمَنْ جَعَلَ قَنْطَرَةً بِغَيْرِ إِذْنِ الْإِمَامِ فرمايي: او کوم چا چې د امام له اجازې څخه بغير پل جوړ کړی فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ الْمُرُورَ عَلَيْهَا فَعَطِبَ بيا يو سړی عمداً پر هغه تېر سو نو هلاک سو فَلَا ضَمَانَ عَلَى الَّذِي عَمِلَ الْقَنْطَرَةَ نو پر پل جوړونکي هيڅ ضمان نسته وَكَذٰلِكَ إِذَا وَضَعَ خَشَبَةً فِي الطَّرِيقِ او همدارنګه کله چې هغه په لاره کې لرګی کښېږدی فَتَعَمَّدَ رَجُلٌ الْمُرُورَ عَلَيْهَا بيا يو سړی قصداً پر هغه تېر سو لِأَنَّ الْأَوَّلَ تَعَدٍّ هُوَ تَسْبِيبٌ ځکه اول داسې تعدی ده کوم چې تسبيب دی وَالثَّانِي تَعَدٍّ هُوَ مُبَاشَرَةٌ او دويم داسې تعدی ده کوم چې مباشرة دی فَكَانَتِ الْإِضَافَةُ إِلَى الْمُبَاشِرِ أَوْلَى نو ځکه د مباشر وطرف ته اضافت [نسبت] کول به اولیٰ وي وَلِأَنَّ تَخَلُّلَ فِعْلِ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ يَقْطَعُ النِّسْبَةَ او ځکه چې د اختيارمن فاعل فعل په مينځ کې واقع کېدل نسبت قطع کوي كَمَا فِي الْحَافِرِ مَعَ الْمُلْقِي لکه د ور اچونکي [ور ايله کونکي] سره د ځاه کيندونکي په صورت کې.

**اللغات**: ﴿قنطرة﴾ پُل. پر ويالې يا سيند د پاسه د تېرېدلو جوړه سوې لاره. جمع: قَنَاطِر. ﴿تعمد﴾ د تفعل د باب ماضي ده: قصداً کول. ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړېدل. ﴿ملق﴾ د افعال د باب فاعل دی: ور اچونکی، غورځونکی.

**تشريح** : **صورت د مسئلې** : دا دی که زيد بغير د امام له اجازې څخه په لاره کې يو پُل جوړ کړي. بيا يو څوک قصداً پر هغه پُل باندي تېر سي خو له بده مرغه پُل مات سي او سړی مړ سي حال دا چي له دې پُل څخه بغير بله لاره هم وي. نو په دې صورت کي پر زيد (پُل جوړونکي) باندي ضمان نه واجبيږي.

همدارنګه که زيد په لاره کي لرګی يا تخته کښېږدي او هغه ټوله لاره نه ونيسي. بيا يو څوک قصداً پر دې لرګي يا تخته باندي تېر سي او د هغه په وجه ښوی او غوځار سي او بالآخره مړ سي. نو. په دې صورت کي هم پر زيد (واضع) باندي ضمان نه واجبيږي؛ ځکه په دواړو صورتونو کي د دواړو کسانو له طرفه تعدی واقع سوې ده. د زيد له طرفه هم او د تېرېدونکي کس له طرفه هم. خو د زيد فعل سبب او د تېرېدونکي فعل مباشرت دی او مباشرت لره پر سبب ترجيح حاصله ده؛ ځکه قاعده دا ده چي کله مُسبِب او مُباشِر سره جمع سي، نو د حکم اضافت (نسبت) د مُباشر وطرف ته کيږي. نو دلته به هم حکم د مُباشر وطرف ته منسوب کيږي او مُباشر تېرېدونکی کس دی. نو ځکه د ده مرګ به خپله د ده وطرف ته منسوب وي، نه د زيد وطرف ته. نو ځکه پر زيد به ضمان نه واجبيږي.

په دې هکله بل دليل دا دی چي دلته پُل جوړول يا په لاره کي لرګی ايښوول د مړ کېدونکي کس د مرګ سبب دي، او قصداً پر پُل يا لرګي باندي تېرېدل د فاعلِ مختار فعل دی، او قاعده دا ده چي که تر سبب وروسته د فاعلِ مختار فعل متخلل سي، نو د حکم اضافت د فاعل د فعل وطرف ته کيږي. مثال يې دا دی لکه يو څوک چي په لاره کي څاه وکيندي او بيا يو بل څوک هغه څاه ته يو سړی واچوي (ور ايله کړي) او هغه مړ سي، نو دلته حافر (څاه کېدونکی) مُسبِب دی او مُلقي (ور اچونکی) فاعلِ مختار دی. نو د مړ کېدونکي سړي ضمان پر مُلقي لازميږي. نه پر حافر. نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم د مړ کېدونکي ضمان خپله پر مُباشِر (تېرېدونکي) لازم وي کوم چي فاعلِ مختار دی. پر مُسبِب (زيد) به لازم نه وي. (احسن الهدايه)

## په لاره کي د بار لوېدلو بيان

قَالَ: وَمَنْ حَمَلَ شَيْئًا فِي الطَّرِيْقِ فرمايي: او څوک چي په لاره کي يو شی را بار کړي فَسَقَطَ عَلٰى إِنْسَانٍ ① بيا هغه پر يو انسان ولوېږي فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ نو د هغه په وجه انسان هلاک سي فَهُوَ ضَامِنٌ نو هغه [حامل] ضامن دی وَكَذَا إِذَا سَقَطَ ② او همدارنګه [هغه ضامن دی] کله چي هغه شی ولوېږي فَتَعَثَّرَ بِهِ إِنْسَانٌ او د هغه په وجه يو انسان ښوی سي وَإِنْ كَانَ رِدَاءً قَدْ لَبِسَهُ او که هغه.

[محمول شی] څادر وي کوم چې ده اغوستی [اچولی] وي فَسَقَطَ عَنْهُ فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ بيا هغه له ده څخه ولوېږي او د هغه په وجه يو انسان هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ نو هغه [لابس] نه ضامن کيږي وَهٰذَا اللَّفْظُ يَشْمَلُ الْوَجْهَيْنِ او دغه لفظ [فعطب به] دواړو صورتونو لره شامليږي [يعني ① که څادر پر يو انسان ولوېږي او د هغه په وجه انسان هلاک سي، ② يا د هغه په وجه يو انسان ښوی سي او هلاک سي. وضاحت به يې په تشريح کې وسي] وَالْفَرْقُ أَنَّ حَامِلَ الشَّيْءِ قَاصِدٌ حِفْظَهُ او فرق دا دی چې د يو شي بارونکی [پورته کونکی او وړونکی] کس د هغه د حفاظت اراده کونکی وي فَلَا حَرَجَ فِي التَّقْيِيدِ بِوَصْفِ السَّلَامَةِ لهذا د سلامتي په وصف سره د هغه په مقيّد کولو کې هيڅ حرج نسته وَاللَّابِسُ لَا يَقْصِدُ حِفْظَ مَا يَلْبَسُهُ او اغوستونکی کس د هغه څه د حفاظت اراده نه کوي کوم چې يې اغوستی وي فَيَحْرَجُ بِالتَّقْيِيدِ بِمَا ذَكَرْنَا نو زموږ په ذکر سوي وصف سره د هغه په مقيّد کولو کې به حرج [او تنګي] لازم سي فَجَعَلْنَاهُ مُبَاحًا مُطْلَقًا نو ځکه موږ هغه [لبس] مطلقاً مباح ګرځولی دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ إِذَا لَبِسَ مَا لَا يَلْبَسُهُ عَادَةً او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې که هغه داسي شی اغوستی وي کوم چې عادتاً نه اغوستل کيږي فَهُوَ كَالْحَامِلِ نو هغه د حامل په څېر دی لِأَنَّ الْحَاجَةَ لَا تَدْعُو إِلَى لُبْسِهِ ځکه ضرورت د هغه اغوستلو ته بلونکی نه دی.

**اللغات:** ﴿حمل﴾ د ضرب د باب ماضي ده: پورته کول او وړل، بارول (له يوه ځايه بل ځای ته منتقل کول)، ﴿قاصد﴾ د نصر د باب فاعل دی: قصد کونکی، اراده کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو سړي په لاره کې خپل سامان را بار کړی وي او روان وي، خو له بده مرغه دا سامان پر يو چا ولوېږي او هغه مړ سي يا دې لوېدلي سامان سره يو څوک ټکر او ټوخار سي او بالآخره مړ سي، نو پر سامان والا د هغه ضمان واجبيږي. د دې په خلاف که يو سړي څادر [پټو] پر ځان اچولی وي او په لاره کې روان وي، بيا څادر پر يو چا ولوېږي او د هغه په وجه مړ سي مثلاً څادر د هغه پر مخ ولوېږي او هغه د يو شي سره ټکر سي، يا د څادر په وجه يو څوک ښوی او غوځار سي او بالآخره مړ سي، نو پر څادر والا ضمان نه واجبيږي.

والفرق إلخ: د سامان والا د ضامن کېدلو او د څادر والا د نه ضامن کېدلو تر مينځ د فرق وجه بيانوي فرمايي چې کوم سړي يو سامان او شی را بار کړی وي، د هغه مقصد او اراده د دې سامان حفاظت

کول هم وي يعني د سامان څارنه او ساتنه هم کوي، لهذا دلته که د سلامتۍ په وصف سره محمول سامان مقيّد کړی سي او د سلامتۍ شرط ولګول سي نو حرج او تنګي نه لازميږي او حامل (سامان والا) لره حرج او ستونزه نه لاحقيږي، نو ځکه دلته دا شرط لګول سوی دی چي سامان وغيره به مقيّد بوصف السلامة وي. او څرنګه چي د محمول سامان په وجه د يو چا د هلاکېدلو په صورت کي دا وصف فوتيږي، نو ځکه پر حامل به د هلاکېدونکي کس ضمان واجبيږي.

د دې په خلاف که څوک يو کپړه واغوندي مثلاً څادر پر ځان واچوي، د هغه مقصد د دې کپړې (څادر) حفاظت کول نه وي، نو ځکه که د سلامتۍ په وصف سره ملبوسه کپړه مقيّد کړل سي نو حرج کثير لازميږي او لابس لره حرج لاحقيږي، نو ځکه کپړه اغوستل بغير له څه قيده مطلقاً جائز وګرځول سوه يعني لابس له ضمان څخه بري کړی سو، نو ځکه پر هغه به د هلاکېدونکي کس ضمان نه واجبيږي؛ ځکه کله چي د کپړې او څادر په صورت کي د سلامتۍ وصف مشروط نه دی، نو بيا د هغه په وجه د يو چا په هلاکېدلو سره به پر لابِس ضمان هم نه واجبيږي.

وعن محمد إلخ: د دې حاصل دا دی چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نيز پر لابِس په هغه صورت کي ضمان نه واجبيږي کله چي هغه داسي شی اغوستی وي کوم چي عادتاً اغوستل کيږي لکه څادر (پټو)، چپنه وغيره، ليکن که هغه داسي شی اغوستی او پر ځان اچولی وي کوم چي عموماً انسان نه اغوندي لکه جوال او ګونۍ، د خره څل وغيره، نو هغه لابس نه شمېرل کيږي بلکي هغه حامل شميرل کيږي او پر هغه ضمان واجبيږي؛ ځکه د دې شيانو د اغوستلو او پر اوږو کولو هيڅ ضرورت نسته.

**د مخصوصه خلکو او مخصوصه محلې والا مسجد ته يو شی راوړل او بيا د هغه شي په وجه د يو انسان د هلاکېدلو حکم**

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْمَسْجِدُ لِلْعَشِيرَةِ فرمايي: او کله چي مسجد د يو قبيلې والا وي فَعَلَّقَ رَجُلٌ مِنْهُمْ فِيهِ قِنْدِيلًا بيا له هغو څخه يو سړی په مسجد کي قنديل راوځړوي أَوْ جَعَلَ فِيهِ بَوَارِيَ أَوْ حَصَاةً يا په هغه کي پوزي [چټاياني] يا شګي واچوي فَعَطِبَ بِهِ رَجُلٌ بيا د هغه په وجه يو سړی هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ نو هغه [فاعل] نه ضامن کيږي وَإِنْ كَانَ الَّذِي فَعَلَ ذَلِكَ مِنْ غَيْرِ الْعَشِيرَةِ او که هغه کس کوم چي دا کار کړی وي، له قبيلې والا [اهلِ مسجد] څخه بغير بل څوک وي ضَمِنَ نو هغه ضامن کيږي قَالُوا: هٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله

په نېز دی وَقَالَا ۞ : لَا يَضْمَنُ فِي الْوَجْهَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دواړو صورتونو کي نه ضامن کيږي لِأَنَّ هٰذِهٖ مِنَ الْقُرَبِ ځکه چي دا کارونه له قرباتو څخه دي [يعني ثوابي کارونه دي] وَكُلُّ أَحَدٍ مَأْذُوْنٌ فِيْ إِقَامَتِهَا او د قرباتو په اداء کولو کي هر کس لره اجازه ورکول سوې ده فَلَا يَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ نو ځکه دا به د سلامتی په شرط سره مقيد نه وي كَمَا إِذَا فَعَلَهٗ بِإِذْنِ وَاحِدٍ مِنْ أَهْلِ الْمَسْجِدِ لکه [په هغه صورت] کله چي هغه [يعني من هو من غير العشيرة] له اهلِ مسجد څخه د يوه په اجازه سره دا کار کړی وي.

**اللغات**: ﴿العشيرة﴾ خاندان، قبيله. ﴿قنديل﴾ څراغ او ډيوه، څراغدان. جمع: قناديل. ﴿بواري﴾ جمع د بُوْرِيَاء. بَارِيَاء او بَارِيَةٌ ده: پوزی (جمع: پوزي)، د لوخو او مزو څخه جوړه سوی چټايي. بوريا. ﴿إقامة﴾ د افعال د باب مصدر دی: قايمول (درول)، اداء کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مخصوص مسجد وي چي صرف د يوه قوم او محلې والا لمونځونه پکښې کوي. بيا له هغو څخه يو کس مثلاً زيد په دې مسجد کي قنديل (څراغدان) يا فانوس راوځړوي، يا په مسجد کي پوزي يا شګي واچوي، او يو څوک د دې شيانو په وجه مړ سي. نو فاعل (زيد) بالاتفاق نه ضامن کيږي. ها! که دا کس له اهلِ مسجد څخه نه وي بلکي د بل مسجد او بلي محلې وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه ضامن کيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کي هم هغه نه ضامن کيږي.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي په مسجد کي قنديل او فانوس راځړول يا پوزي او شګي پکښې اچول قربت او د ثواب کار دی او هر چا ته د ثوابي کار اجازه سته او ثوابي کار د سلامتی په شرط سره مقيد هم نه وي. نو ځکه د مذکوره شيانو په سبب که يو څوک مړ سي. نو پر فاعل (زيد) د هغه ضمان نه لازميږي. لکه کله چي مذکوره کس د اهلِ مسجد په اجازه سره دا کار کړی وي او بيا د هغه په وجه يو څوک مړ سوي نو ښکاره ده چي پر هغه ضمان نه لازميږي. نو همداسي په مذکوره مسئله کي به هم پر هغه ضمان نه لازميږي. (احسن الهدايه)

---

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله. قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله. فانه نقل عن الحلواني ان اكثر المشائخ ... بقولهما. وعليه الفتوى (رد المحتار ج:۵، ص:۳۸۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵۵]

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَهُوَ الْفَرْقُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل او همدا [د دواړو ترمينځ] فرق دى، دا دى أَنَّ التَّدْبِيرَ فِيمَا يَتَعَلَّقُ بِالْمَسْجِدِ لِأَهْلِهِ دُونَ غَيْرِهِمْ چي انتظام كول د هغه أمورو كوم چي د مسجد سره متعلق وي د مسجد د اهل لپاره دي، نه د نورو لپاره [يعني د مسجد سره داړوند كارونو انتظام كول د اهلِ مسجد كار دى، نه د بل چا] كَنَصْبِ الْإِمَامِ وَاخْتِيَارِ الْمُتَوَلِّي لكه امام درول او متولي [مشر] اختيارول وَفَتْحِ بَابِهِ وَإِغْلَاقِهِ او د مسجد دروازه خلاصول و بندول وَتَكْرَارِ الْجَمَاعَةِ إِذَا سَبَقَهُمْ بِهَا غَيْرُ أَهْلِهِ او دويم ځل جماعت كول كله چي له اهلِ مسجد څخه بغير نورو مخكي جماعت كړى وي فَكَانَ فِعْلُهُمْ مُبَاحًا مُطْلَقًا غَيْرَ مُقَيَّدٍ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ نو ځكه د دوى [اهلِ مسجد] فعل به مطلقاً مباح وي چي هغه به د سلامتيٰ په شرط سره مقيّد نه وي وَفِعْلُ غَيْرِهِمْ تَعَدِّيًا او له دوى څخه بغير د بل چا فعل به يا تعدى وي أَوْ مُبَاحًا مُقَيَّدًا بِشَرْطِ السَّلَامَةِ يا به داسي مباج وي كوم چي د سلامتيٰ په شرط سره مقيّد وي وَقَصْدُ الْقُرْبَةِ لَا يُنَافِي الْغَرَامَةَ إِذَا أَخْطَأَ الطَّرِيقَ او د قربت [او ثواب] اراده د غرامت [ضمان] منافي نه ده كله چي هغه [فاعل] طريقه غلطه كړي كَمَا إِذَا تَفَرَّدَ بِالشَّهَادَةِ عَلَى الزِّنَا لكه كله چي څوک يوازي [منفرداً] پر زنا گواهي وركړي وَالطَّرِيقُ فِيمَا نَحْنُ فِيهِ الِاسْتِئْذَانُ مِنْ أَهْلِهِ او [صحيح] طريقه په دې مسئله كي چي مورډ پكښي [لگيا] يو له اهلِ مسجد څخه اجازه اخيستل دي [يعني دلته صحيح طريقه دا ده چي فاعل له اهلِ مسجد څخه د دې كار اجازه اخيستې واى، لېكن هغه داسي نه دي كړي].

**اللغات**: ﴿نَصْب﴾ د ضرب د باب مصدر دى: درول، ټاكل. ﴿سَبَق﴾ د ضرب د باب ماضي ده: مخكي كېدل، وړانديتوب كول. ﴿السلامة﴾ د سمع له بابه اسمِ مصدر دى: سلامتي (سلامتيا)، سالم پاتېدل. ﴿اسْتِيذان﴾ د استفعال د باب مصدر دى: اجازه اخيستل (اجازه غوښتل).

**تشريح**: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دى او په همدې دليل سره به د اهلِ مسجد او غير اهلِ مسجد تر مينځ فرق هم ښكاره سي (چي كه فاعل له اهلِ مسجد څخه وي نوضمان نه واجبيږي. كنې واجبيږي. يعني په مذكوره دليل سره به د دې فرق وجه هم څرگنده سي)، د دليل حاصل دا دى چي د مسجد سره چي كوم أمور متعلق دي مثلاً امام ټاكل، د مسجد لپاره مشر (متولي) انتخابول، د مسجد دروازه خلاصول و بندول، يا مثلاً كه له اهلِ مسجد څخه بغير نورو خلكو مخكي جماعت كړى وي، نو د دويم جماعت

انتظام کول دا ټوله اُمور داهلِ مسجد کار دی او د هغو پر ذمه دي، د نورو خلکو کار نه دی، نو ځکه د اهلِ مسجد هر کار مطلقاً مباح دی یعني د سلامتی په وصف سره مقیّد نه دی او سلامتي پکښې شرط نه ده، لهذا که فاعل له اهلِ مسجد څخه نه وي، نو د هغه فعل خو به یا تعدی وي یا به مباح وي او کله چي مباح وي نو د سلامتی په شرط سره به مقیّد وي، لهذا که د هغه د فعل په وجه یو څوک مړ سي، نو د تعدی په وجه یا د سلامتی د شرط فوتېدلو په وجه به پر هغه ضمان واجبيږي.

وقصد القربة إلخ: صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په خپل دلیل کي ویلي وه چي دا (په مسجد کي قندیل وغیره راځړول) قربت او د ثواب کار دی، لهذا پر فاعل (ځړونکي) به ضمان نه واجبيږي. له دې ځایه د هغه جواب ورکوي فرمايي چي په مسجد کي هر کېدونکی کار قربت نه دی، بلکي کوم کار چي صحیح طریقه اختیار کړي، هاغه قربت واقع کیږي او کوم فعل چي له صحیح طریقې څخه بغیر وسي هغه قربت نه بلکي عقوبت ګرځي، لکه څرنګه چي دلته سوي دي؛ ځکه دلته د قربت صحیح طریقه دا وه چي هغه د قندیل وغیره له راوړلو او ځړولو څخه مخکي له اهلِ مسجد څخه اجازه اخیستي وای او تراجازې وروسته يې دا کار کړي وای، لېکن څرنګه چي هغه داسي نه دي کړي، نو ځکه د قربت کېدلو باوجود هم دا فعل د هغه په حق کي عقوبت وګرځېدی او پر هغه ضمان واجب سو؛ ځکه د قربت قصد او اراده د ضمان د وجوب منافي نه ده.

د دې مثال داسي دی لکه د زنا ګواهي ورکول د حقُ الله د حفاظت په خاطر قربت دی، لېکن د هغه صحیح طریقه دا ده چي څلور ګواهان به وي، اوس که یو سړی یوازي ګواهي ورکړي، نو دا قربت د هغه په حق کي عقوبت (سزا) ګرځي او پر دغه ګواه به حدِ قذف جاري کیږي، همداسي په مذکوره مسئله کي هم څرنګه چي د قربت صحیح طریقه پرېښوول سوې ده، نو ځکه دا قربت په عقوبت بدل سوی دی. (احسن الهدايه)

## په مسجد کي که له اهلِ مسجد څخه یو ناستُ وي او د هغه په وجه څوک مړ سي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ جَلَسَ فِيْهِ رَجُلٌ مِنْهُمْ فرمايي: او که له دوی [اهلِ مسجد] څخه یو کس په مسجد کي ناست وي فَعَطِبَ بِهِ رَجُلٌ نو د هغه په وجه یو سړی هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ إِنْ كَانَ فِي الصَّلَاةِ نو که هغه [ناست کس] په لمانځه کي وي نو نه ضامن کیږي وَإِنْ كَانَ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ او که په لمانځه کي نه وي ضَمِنَ نو ضامن کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی

وَقَالَا ❁ : لَا يَضْمَنُ عَلَىٰ كُلِّ حَالٍ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې په هيڅ حال کې هغه نه ضامن کيږي وَلَوْ كَانَ جَالِسًا لِقِرَاءَةِ الْقُرْآنِ او که هغه د قرآن لوستلو لپاره ناست وي أَوْ لِلتَّعْلِيمِ يا د تعليم لپاره ناست وي أَوْ لِلصَّلَاةِ يا د لمانځه لپاره [په انتظار] ناست وي أَوْ نَامَ فِيهِ فِي أَثْنَاءِ الصَّلَاةِ يا د لمانځه په دوران کې په مسجد کې بيده سي أَوْ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ يا بغير د لمانځه کې [هسې په مسجد کې بيده وي] أَوْ مَرَّ فِيهِ مَارٌّ يا په مسجد کې يو تېرېدونکی تېر سي أَوْ قَعَدَ فِيهِ لِحَدِيثٍ يا د خبرو لپاره په مسجد کې کښېني فَهُوَ عَلَىٰ هٰذَا الِاخْتِلَافِ نو دا [تول] پر همدغه اختلاف دي وَأَمَّا الْمُعْتَكِفُ او کوم چې اعتکاف کونکی دی [چې که هغه په مسجد کې ناست وي او د هغه په وجه يو څوک هلاک سي] فَقَدْ قِيلَ: عَلَىٰ هٰذَا الِاخْتِلَافِ نو ويل سوي دي: چې [هغه هم] پر دغه اختلاف دي وَقِيلَ: لَا يَضْمَنُ بِالِاتِّفَاقِ او ويل سوي دي [يعني بل قول دا دی]: چې هغه بالاتفاق نه ضامن کيږي.

**اللغات:** ﴿عطب﴾ د سمع د باب ماضي ده: هلاکېدل. ﴿جالس﴾ د ضرب د باب فاعل دی: ناست.

﴿الحديث﴾ د دې لفظ خپله معنیٰ ده: خبري، کلام.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که له اهلِ مسجد څخه يو څوک په مسجد کې ناست وي (يعني په مسجد کې ناست کس د هاغه مسجد او محلې والا له خلکو څخه وي) او بيا يو سړی راسي د هغه سره ټکر او غوځار سي چې بالآخره په همدې وجه مړ سي، نو پر دغه ناست کس ضمان واجبيږي، که نه؟. په دې هکله تفصيل دا دی چې که دغه کس په لمانځه کې وي، نو د هيچا په نيز هم پر هغه ضمان نسته. او که هغه په لمانځه کې نه وي بلکې د قرآن د تلاوت لپاره ناست وي، يا د ديني تعليم لپاره ناست وي، يا د لمانځه په انتظار کې ناست وي، يا د خبرو لپاره ناست وي، يا په مسجد کې تېرېږي. نو په دې ټولو صورتونو کې که يو څوک د هغه سره ټکر سي او مړ سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر هغه ضمان واجبيږي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په دې صورتونو کې هم ضمان نه واجبيږي.

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله:... فإنه نقل عن الحلواني أن أكثر المشائخ أخذوا بقولهما وعليه الفتوى، ونقل عن صدر الإسلام أن الأظهر ما قالاه؛ لأن الجلوس من ضرورات الصلاة، فيكون ملحقا بها، وفي العيني: بقولهما قالت الثلاثة وبه يفتى (رد المحتار ج:٥، ص:٤٢٢). [القول الراجح ج:٢، ص:٣٥٦]

**وأما المعتکف إلخ:** فرمايي که معتکف په مسجد کي ناست وي او د هغه سره يو څوک ټکر سي او بيا د همدې ټکر له کبله مړ سي. نو يو قول دا دی چي په دې مسئله کي هم د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی. يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر معتکف ضمان واجب دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز واجب نه دی. او بل قول دا دی چي د هيچا په نيز هم پر معتکف ضمان واجب نه دی.

**يادونه:** د لمانځه په انتظار کي ناست کس نه ضامن کيږي، د مصنف رَحِمَهُ الله خبره محل د نظر دي. ځکه په حديث کي دي "المنتظر للصلاة في الصلاة ما دام ينتظرها" په همدې وجه په شامي کي ليکل سوي دي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هم هغه نه ضامن کيږي. (شامي ج: ۵. ص: ۳۸۲)

## د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل

لَهُمَا: أَنَّ الْمَسْجِدَ إِنَّمَا بُنِيَ لِلصَّلَاةِ وَالذِّكْرِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مسجد د لمانځه او ذکر کولو لپاره جوړ سوی دی وَلَا يُمْكِنُهُ أَدَاءُ الصَّلَاةِ بِالْجَمَاعَةِ إِلَّا بِانْتِظَارِهَا او لمونځ ګزار لره په جماعت سره لمونځ کول ممکن نه دي مګر د جماعت په انتظار کولو سره فَكَانَ الْجُلُوسُ فِيهِ مُبَاحًا نو ځکه په مسجد کي کښېنستل به مباح وي لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ الصَّلَاةِ ځکه چي هغه د لمانځه له ضروریاتو څخه دي أَوْ لِأَنَّ الْمُنْتَظِرَ لِلصَّلَاةِ فِي الصَّلَاةِ حُكْمًا بِالْحَدِيثِ او ځکه چي د لمونځ لپاره انتظار کونکی د حکم په اعتبار سره په لمانځه کي دی د حديث پر بناء فَلَا يَضْمَنُ نو ځکه هغه [منتظر] به نه ضامن کيږي كَمَا إِذَا كَانَ فِي الصَّلَاةِ لکه [په هغه صورت کي چي نه ضامن کيږي] کله چي هغه په لمانځه کي [ناست] وي.

**اللغات:** ﴿بُنِيَ﴾ د ضرب له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: جوړ يدل. ﴿مُبَاح﴾ د افعال له بابه اسم مفعول دی: روا (روا کړی سوی).

**تشريح:** په اختلافي مسئله کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي مسجد د دې لپاره جوړول کيږي چي په هغه کي لمونځونه او د الله ﷻ ذکر وسي. او دا ښکاره خبره ده چي د جماعت لپاره يو معلوم وخت ټاکلی وي او کوم خلګ چي تر وخت مخکي مسجد ته ورسيږي نو په مسجد کي کښېني او هلته انتظار کوي. لهذا په مسجد کي کښېنستل د لمانځه او جماعت په ضروریاتو کي داخل دي. نو ځکه دا ناسته به مباح وي لهذا که يو څوک په مسجد کي د ناست کس سره ټکر سي او مړ سي. نو پر هغه به ضمان نه واجبيږي برابره ده هغه په لمانځه کي ناست وي يا د لمانځه په انتظار کي ناست وي. لکه څرنګه چي په حديث کي دي "المنتظر للصلاة في الصلاة ما دام ينتظرها" يعني تر څو چي سړی لمانځه ته انتظار کوي. تر هغه وخته په لمانځه کي دی او حکماً لمونځ ګزاره شمېرل کيږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل

وَلَهُ: أَنَّ الْمَسْجِدَ إِنَّمَا بُنِيَ لِلصَّلَاةِ د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي مسجد د لمانځه لپاره جوړ سوى دى وَهٰذِهِ الْأَشْيَاءُ مُلْحَقَةٌ بِهَا او دا شيان د لمانځه سره ملحق دي فَلَا بُدَّ مِنْ إِظْهَارِ التَّفَاوُتِ نو ځکه [د لمانځه او د دوی تر مينځ] تفاوت ښکاره کول ضروري دي فَجَعَلْنَا الْجُلُوسَ لِلْأَصْلِ مُبَاحًا مُطْلَقًا نو موږ د اصل [لمانځه] ناسته مطلقاً مباح وګرځوله وَالْجُلُوسَ لِمَا يُلْحَقُ بِهِ مُبَاحًا مُقَيَّدًا بِشَرْطِ السَّلَامَةِ او د هغه شي لپاره ناسته کوم چي د اصل سره محلق دي هغه مو د سلامتۍ په شرط سره مقيّد کړل سوې مباح وګرځوله وَلَا غَرْوَ او عَجَب نه ده [يعني دا څه د تعجب او ليري خبره نه ده] أَنْ يَكُونَ الْفِعْلُ مُبَاحًا أَوْ مَنْدُوبًا إِلَيْهِ وَهُوَ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ چي فعل دي مباح يا مندوب وي او هغه دي د سلامتۍ په شرط سره مقيّد وي [يعني د مباح يا مندوب کار مقيّد بوصف السلامه کېدل نا ممکن نه دي] كَالرَّمْيِ إِلَى الْكَافِرِ أَوْ إِلَى الصَّيْدِ لکه د کافر يا د ښکار وطرف ته غشى غورځول وَالْمَشْيِ فِي الطَّرِيقِ وَالْمَشْيِ فِي الْمَسْجِدِ او لکه په لاره کي تلل او په مسجد کي تلل إِذَا وَطِئَ غَيْرَهُ کله چي بل څوک تر پښو لاندي کړي وَالنَّوْمِ فِيهِ او لکه په مسجد کي خوب کول إِذَا انْقَلَبَ عَلَى غَيْرِهِ کله چي پر بل چا را واوړي.

**اللغات:** ﴿ملحقة﴾ د افعال د باب مفعول دى: لاحق کړل سوي، ور سره يو ځاى کړل سوي ﴿التفاوت﴾ د تفاعل له بابه مصدر دى: توپير، فرق، يو له بل څخه مختلف کېدل. ﴿غرو﴾ تعجب، حيرانتيا. لَا غَرْوَ أي لَا عَجَبَ (معجم الوسيط)، ﴿الرَّمْي﴾ د ضرب له بابه مصدر دى: (غشى وغيره) غورځول. ويشتل. ﴿وَطِئَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: تر پښو لاندي کول.

**تشريح:** د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دى چي مسجد اصل د لمانځه لپاره جوړول کيږي او مذکوره أمور يعني د قرآن تلاوت. ديني تعليم او داسي نور أمور لمونځ نه دي بلکي د لمانځه سره ملحق دي او د هغه د فرع په څېر دي، لهذا د لمانځه او د دوی (اصل او فرع) تر مينځ فرق کول ضروري دي. نو ځکه د اصل يعني د لمانځه ناسته موږ مطلقاً مباح وګرځوله او د سلامتۍ په شرط سره مو مقيّد نه کړه او دا حکم مو ولګوی چي که څوک په لمانځه کي ناست وي او يو څوک د هغه سره ټکر سي او مړ سي نو پر هغه به ضمان نه واجبيږي.

او د فرع يعني د تلاوت. ديني تعليم وغيره لپاره ناسته موږ مباح خو وګرځوله لېکن هغه مو د سلامتۍ په شرط سره مقيّد کړه، او ښکاره ده چي که څوک د دې ناست کس سره ټکر سي او مړ سي. نو د سلامتۍ شرط فوتيږي، نو ځکه پر هغه به ضمان واجبيږي.

ولا غرو الخ: یعني دا ممکن دي چي مباح کار هم د سلامتی په شرط سره مقيّد وي بلکي ځيني وخت خو مندوب کار هم مقيّد بشرط السلامة وي، دا څه د تعجب خبر نه ده. مثال يې دا دی لکه کافر په غشي وېشتل مباح نه بلکي مندوب دي خو د سلامتی په وصف سره مقيد دي لهذا که هغه غشی پر يو مسلمان ولګيږي نو وېشتونکی ضامن کيږي (یعني د مسلمان دیت پرې واجبيږي). همدارنګه په لاره کي تلل او په مسجد کي تلل مباح خو دي لېکن د سلامتی په وصف سره مقيّد دي لهذا که تلونکی کس يو څوک تر پښو لاندي کړي نو ضامن کيږي. همدارنګه د مسافر او معتکف لپاره په مسجد کي بيدېدل مباح دي لېکن د سلامتی په وصف سره مقيد دي لهذا که معتکف د خوب په حالت کي پر يو چا را واوړي او هغه مړ سي نو معتکف ضامن کيږي. خلاصه د کلام دا چي جلوس للأصل یعني د لمانځه ناسته خو مطلقاً مباح ده او جلوس للفرع یعني د تلاوت وغيره لپاره په مسجد کي ناسته مباح مقيد بشرط السلامة ده. (احسن الهدایه)

## که له اهلِ مسجد څخه بغير د بل چا په وجه يو څوک په مسجد کي غوځار او مړ سي نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَإِنْ جَلَسَ رَجُلٌ مِنْ غَيْرِ الْعَشِيرَةِ فِيهِ لِلصَّلَاةِ او که په مسجد کي له قبيلې [اهلِ مسجد] څخه بغير بل څوک په لمانځه کي ناست وي فَتَعَقَّلَ بِهِ إِنْسَانٌ بيا په هغه کي يو انسان ومښلي [ور سره ټکر سي] يَنْبَغِي أَنْ لَا يَضْمَنَ نو پکاره دا ده چي هغه [جالس] ضامن نه سي لِأَنَّ الْمَسْجِدَ بُنِيَ لِلصَّلَاةِ ځکه چي مسجد د لمانځه لپاره جوړ سوی دی وَأَمْرُ الصَّلَاةِ بِالْجَمَاعَةِ إِنْ كَانَ مُفَوَّضًا إِلَى أَهْلِ الْمَسْجِدِ او په جماعت سره د لمونځ کولو کار [انتظام] که څه هم اهلِ مسجد ته سپارل سوی دی فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ الْمُسْلِمِينَ أَنْ يُصَلِّيَ فِيهِ وَحْدَهُ لېکن هر مسلمان ته دا حق هم سته چي په هغه کي يوازي لمونځ وکړي. |

**اللغات**: ﴿العشيرة﴾ خاندان، قبيله. ﴿تَعَقَّلَ﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: يو شی په بل شي کي مښتل، بندېدل (ټکر کېدل او پساوېدل)، ځورند کېدل. ﴿ينبغي﴾ د انفعال د باب مضارع ده: پکار ده، مناسب ده. ﴿مفوّض﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: سپارل سوی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که په مسجد کي له اهلِ مسجد او محلې والا څخه بغير بل څوک په لمانځه کي ناست وي او يو څوک د هغه سره ټکر او غوځار سي او بالآخره په همدې وجه مړ سي، نو پر هغه هم ضمان نه واجبيږي؛ ځکه مسجدونه د لمانځه لپاره جوړ سوي دي او هر مسلمان ته په هغوی کي د لمونځ کولو حق سته، که څه هم د جماعت د انتظام کار د اهلِ مسجد په غاړه دی او هغو ته سپارل سوی دی لېکن په هغه کي لمونځ کول د هر مسلمان لپاره جائز دي، لهذا په مسجد کي لمونځ کونکی ناست کس متعدي نه سو، او کله چي هغه تعدی کونکی نه دی، نو ښکاره ده چي پر هغه به ضمان هم واجب نه وي. (احسن الهدایه)



# فَصْلٌ فِي الْحَائِطِ الْمَائِلِ

(دا) په (بيان د احکامو د) کوږ سوي دېوال کې دی

**تشريح**: مخکې تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په لاره کې د بيتُ الخلاء، جرص او داسې نورو شيانو د جوړولو احکام بيان کړل، اوس له دې ځايه د مائل (کوږ سوي) دېوال احکام و مسائل بيانوي؛ ځکه مائل دېوال هم من وجه په لاره کې د جوړ سوي ځای په څېر دی (په دې اعتبار چې د لارې او فناء څه حصه يې نيولې ده)، نو په دې حواله سره هغه د مذکوره شيانو سره مشابه دی، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله هغوی يو تر بل وروسته بيان کړي دي.

## د کوږ سوي (کاږه) دېوال د نړېدلو حکم

قَالَ: وَإِذَا مَالَ الْحَائِطُ إِلَى طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ فرمايي: او کله چې دېوال د مسلمانانو لارې ته را کوږ سي فَطُولِبَ صَاحِبُهُ بِنَقْضِهِ بيا د دېوال له مالک څخه د هغه د ماتولو مطالبه وسي وَأُشْهِدَ عَلَيْهِ او پر هغه ګواهان ودرول سي فَلَمْ يَنْقُضْهُ فِي مُدَّةٍ يَقْدِرُ عَلَى نَقْضِهِ لېکن هغه [د دېوال مالک] په دومره موده کې دېوال مات نه کړي چې هغه يې پر ماتولو قادر وي حَتَّى سَقَطَ تر دې چې دېوال ولوېږي ضَمِنَ مَا تَلِفَ بِهِ مِنْ نَفْسٍ أَوْ مَالٍ نو د هغه [د نړېدلو] په وجه چې کوم نفس يا مال هلاک سي د دېوال مالک د هغه ضامن کېږي وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَضْمَنَ او قياس دا دی چې ضامن نه سي لِأَنَّهُ لَا صُنْعَ مِنْهُ مُبَاشَرَةً ځکه چې د مالک له طرفه مباشرتاً هيڅ فعل نسته وَلَا مُبَاشَرَةَ شَرْطٍ هُوَ مُتَعَدٍّ فِيهِ او نه [د هغه له طرفه] د داسې شرط مباشرت سته چې په هغه کې دئ تعدي کونکي وي لِأَنَّ أَصْلَ الْبِنَاءِ كَانَ فِي مِلْكِهِ ځکه [د دېوال] اصل بناء د هغه په ملکيت کې ده وَالْمَيَلَانُ وَشَغْلُ الْهَوَاءِ لَيْسَ مِنْ فِعْلِهِ او د دېوال کږېدل او فضا مشغولېدل د مالک فعل نه دی فَصَارَ كَمَا قَبْلَ الْإِشْهَادِ نو داسې سو لکه له ګواه پېشولو څخه مخکې صورت.

**اللغات**: ﴿مَالَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: مايلېدل، کږېدل. ﴿الحائط﴾ دېوال، جمع: حِيْطَان، ﴿تلف﴾ د سمع د باب ماضي ده: تلفېدل، ضايع کېدل، هلاکېدل. ﴿متعد﴾ د تفعّل د باب فاعل

دی: تعدی او تجاوز کونکی، نا حقه تصرّف کونکی، ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو کار خپله کول، بذات خود کول. ﴿هواء﴾ فضا، خلا (خالیګاه)، ﴿إشهاد﴾ د افعال د باب مصدر دی: أَشْهَدَ يُشْهِدُ إِشْهَادًا: یو څوک پر خپله خبره ګواه جوړول، ګواه پېشول، ګواه درول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که دیو چا دېوال لاري ته راکوږ سوی وی او د نړېدلو خطره یې وي، بیا یو څوک د دېوال له مالک څخه د هغه د ماتولو او سمولو مطالبه وکړي او پر دې ګواه هم پېش کړي او هغه ته دومره وخت مهلت ورکړي چې مالک په آساني سره دېوال پکښې ماتولای سي، لېکن مالک د هغه خبره نه واوري، بیا دا دېوال پر یو چا راولوېږي او هغه مړ سي، یا په دې دېوال سره د یو چا مال هلاک سي، نو د دېوال پر مالک استحساناً د هلاک سوي شي ضمان واجبېږي، لېکن قیاساً پر هغه ضمان نه واجبېږي؛ ځکه د ضمان واجبېدلو دوه سببه دي: ① مباشرت فعل (یعني کار خپله کول). ② تسبیب (د کار سبب جوړېدل) د تعدی په توګه، او دلته له دوی څخه یو سبب هم موجود نه دی. ځکه دلته نه د مالک له طرفه مباشرتاً فعل صادر سوی دی، او تسبیب که څه هم د هغه له طرفه موجود دی لېکن دا تسبیب له تعدی او زیاتوب څخه خالي دی؛ ځکه د دېوال اصل بناء د مالک په ملکیت کي ده او د دېوال کږېدلو په وجه چې د لاري کومه حصه نیول سوې ده، په هغه کي د مالک فعل لره دخل نسته، نو ځکه پر مالک به ضمان نه واجبېږي، او لکه څرنګه چې قبل الإشهاد (یعني له مطالبې او ګواهي پېشولو څخه مخکي) پر مالک ضمان نه واجبېږي، همداسي به بعد الإشهاد هم پر هغه ضمان نه واجبېږي.

## د استحسان دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ الْحَائِطَ لَمَّا مَالَ إِلَى الطَّرِيقِ د استحسان دلیل دا دی چې کله دېوال د لاري طرف ته راکوږ سو فَقَدِ اشْتَغَلَ هَوَاءَ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ بِمِلْكِهِ نو د مسلمانانو د لاري فضا [خالیګاه] د هغه په ملکیت سره مشغوله سوه وَرَفْعُهُ فِي يَدِهِ او د هغه [مشغولیت] لیري کول د ده [صاحبُ الجدار] په وس کي وه فَإِذَا تَقَدَّمَ إِلَيْهِ وَطُولِبَ بِتَفْرِيغِهِ نو کله چې ده ته مخکي خبر ورکول سو او له ده څخه د فارغولو [او د لاري خالي کولو] مطالبه وسوه يَجِبُ عَلَيْهِ نو پر هغه فارغول واجب دي فَإِذَا امْتَنَعَ لېکن کله چې هغه [له تفریغ څخه] منع سو صَارَ مُتَعَدِّيًا نو هغه تعدی کونکی وګرځېدی بِمَنْزِلَةِ مَا لَوْ وَقَعَ ثَوْبُ إِنْسَانٍ فِي حِجْرِهِ په شان د دې [یعني لکه] که چیري د یو چا په غېږه کي یو کپړه ولوېږي يَصِيرُ مُتَعَدِّيًا بِالِامْتِنَاعِ عَنِ التَّسْلِيمِ نو هغه له [کپړې] ورسپارلو څخه د منع کېدلو په وجه تعدی

کونکی ګرځي إِذَا طُوْلِبَ بِهِ کله چي له هغه شخصه د تسلیم مطالبه سوې وي [چي کېږه ما ته وسپاره (راکړه!)] كَذَا هٰذَا نو همداسي دا هم دي بِخِلَافِ مَا قَبْلَ الْإِشْهَادِ په خلاف تر إشهاد مخکي والا صورت لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ هَلَاكِ الثَّوْبِ قَبْلَ الطَّلَبِ ځکه هغه له مطالبې شخصه مخکي د هلاکېدلو په درجه کي دي.

**اللغات:** ﴿تقدّم﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: مخکي کېدل. مراد: مخکي ورته ویل، مخکي خبر او اطلاع ورکول (چي خپل دېوال مات او سم کړه!)، یا په بله وینا مخکي مذکوره مطالبه ځني کول.

﴿تفریغ﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: فارغول، خالي کول.

**تشریح:** دا د استحسان دلیل دی، حاصل یې دا دی چي د دېوال مالک ظالم او متعدي دی؛ ځکه د هغه دېوال د مسلمانانو لاره تنګه کړې وه، حال دا چي د هغه لیري کول او لاره خلاصول د ده په وس کي وه او مطالبه یې هم سوې وه، خو بیا هم ده هیڅ اقدام نه وکړی نو د ده له طرفه تعدی موجوده سوه او پر متعدي کس ضمان واجبیږي، نو ځکه د دغه مائل نړېدلي دېوال پر مالک به هم ضمان واجبیږي

د دې مثال داسي دی لکه د تېز باد په وجه چي د یو چا کېږه (مثلاً څادر) د بل چا په غېږه کي ولوېږي او د کپړې مالک له هغه شخصه مطالبه هم وکړي چي زما کپړه (څادر) راکړه!، لېکن هغه یې ورنه کړي، نو د منع کولو په وجه هغه متعدي دی او ضمان پرې واجب دي. نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم کله چي د دېوال له مالک شخصه د هغه د ماتولو او سمولو مطالبه سوې ده او هغه هیڅ اقدام نه دی کړی نو مالک متعدي سو، نو ځکه پر هغه به ضمان واجب وي.

لېکن که له مالک شخصه تر اوسه د دېوال د ماتولو او سمولو مطالبه نه وي سوې او بیا دا دېوال ونړېږي او یو شی هلاک کړي. نو په دې صورت کي پر مالک ضمان نه واجبیږي؛ ځکه اوس هغه متعدي نه دی، همدا صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "بخلاف ما قبل الإشهاد" سره بیان کړي دي. (احسن الهدایه)

## د استحسان دویم دلیل

وَلِأَنَّا لَوْ لَمْ نُوجِبْ عَلَيْهِ الضَّمَانَ او ځکه که موږ پر هغه ضمان واجب نه کړو يَمْتَنِعُ عَنِ التَّفْرِيغِ نو هغه به [د لاري] له فارغولو شخصه منع سي فَيَنْقَطِعُ الْمَارَّةُ حَذَرًا عَلَى أَنْفُسِهِمْ نو لارویان به پر خپلو ځانو د ډېرېدلو په وجه بند سي فَيَتَضَرَّرُونَ بِهِ نو هغوی به په دې سره نقصان من سي [یعني په ضرر او تکلیف به مبتلاسي] وَدَفْعُ الضَّرَرِ الْعَامِّ مِنَ الْوَاجِبِ او د عام ضرر دفع کول له واجباتو شخصه دي وَلَهُ تَعَلُّقٌ بِالْحَائِطِ او د دېوال سره د هغه تعلق دی [یعني د هغه سره صرف د دېوال د مالک تعلق دی، نه د بل چا]

فَيَتَعَيَّنُ لِدَفْعِ هٰذَا الضَّرَرِ لهذا د دې ضرر ليري كولو لپاره به صرف هغه [د دېوال مالک] متعيّن وي وَكَمْ مِنْ ضَرَرٍ خَاصٍ يُتَحَمَّلُ لِدَفْعِ الْعَامِّ مِنْهُ او ډېر [ځله] خاص ضررونه د عام ضرر ليري كولو لپاره زغمل كيږي.

**اللغات:** ﴿مارّة﴾ جمع د مَارٌ ده: په لاره تېرېدونكي، لارويان. ﴿حذرًا﴾ د سمع د باب مصدر دی: له يو شي څخه بېرېدل. ځان ساتل، احتياط كول. ﴿يتضرّرون﴾ د تفعّل له بابه د جمع مذكر غائب مضارع صيغه ده: نقصامن كېدل (تاواني كېدل). ضرر او نقصان ورته رسېدل.

**تشريح:** د دېوال پر مالک د ضمان واجبولو يو دليل دا هم دی چي كه پر هغه ضمان واجب نه كړی سي، نو هغه به د لاري خالي كولو او دېوال ماتولو په هكله لا پروايي كوي او څه اقدام به نه كوي نو خلک به د دېوال نړېدلو له بيري څخه په هغه لاره كي تګ راتګ بند كړي او د سخت حرج او تكليف سره به مخ سي، او دا ضرر عام دی چي د هغه ليري كول ضروري دي، او د مذكوره دېوال سره صرف د مالک تعلق دی نه د بل چا، نو ځكه د دغه ضرر ليري كولو لپاره صرف همدا مالک متعيّن دی، نه بل څوک، او كه بل څوک يې ونړوي نو كېدای سي مالک به نزاع او اختلاف وكړي، لهذا دېوال چي د چا دی، صرف هاغه به يې د نړېدلو او جوړولو كار كوي؛ ځكه كه څه هم په دې كي د هغه څه نقصان سته لېكن دا ضرر خاص دی او دېوال نه جوړول ضرر عام دی او قاعده دا ده چي د ضرر عام د ليري كولو او دفع كولو لپاره ضرر خاص زغمل كيږي. (احسن الهدايه)

## د كوڅې سوي دېوال د نړېدلو په وجه د ځاني يا مالي تلفاتو د ضمان بيان

ثُمَّ فِيْمَا تَلِفَ بِهِ مِنَ النُّفُوْسِ تَجِبُ الدِّيَةُ بيا په هغه نفسونو كي كوم چي د دې [دېوال نړېدلو] په وجه هلاک سي ديت واجب دی وَتَتَحَمَّلُهَا الْعَاقِلَةُ او دا ديت به عاقله زغمي [اداء كوي] لِأَنَّهُ فِي كَوْنِهِ جِنَايَةً دُوْنَ الْخَطَأِ ځكه چي دا [دېوال نړېدل] په جنايت كېدلو كي له خطاء [يعني له جنايتِ خطاء او قتلِ خطاء] څخه كم دي فَيَسْتَحِقُّ فِيْهِ التَّخْفِيْفُ بِالطَّرِيْقِ الْأَوْلٰى نو هغه [صاحبُ الحائط] به په دې جنايت كي په طريقه اولیٰ د تخفيف مستحق وي كَيْلَا يُؤَدِّيَ د دې لپاره چي دا [ديت اداء كول] سبب نه وګرځي إِلَى اسْتِئْصَالِهِ له بيخه د هغه [صاحبُ الحائط] د كښل كېدلو [دېوالي كېدلو] وَالْإِجْحَافِ بِهِ او د هغه سخت تاواني كېدلو ته [يعني د نفسونو ديت اداء كول به د هغه د ويجاړېدلو او سخت مفلسه كېدلو سبب وګرځي] وَمَا تَلِفَ بِهِ مِنَ الْأَمْوَالِ او د هغه [دېوال نړېدلو] په وجه چي كوم مالونه ضايع سي

كَالدَّوَابِّ وَالْعُرُوْضِ لکه څارويان او سامانونه يَجِبُ ضَمَانُهَا فِي مَالِهِ نو د هغوی ضمان د هغه [صاحبُ الحائط] په مال کې واجبيږي لِأَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ الْمَالَ ځکه چې عاقلې د مال ديت نه اداء کوي وَالشَّرْطُ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ وَطَلَبُ النَّقْضِ مِنْهُ او شرط هغه [صاحبُ الحائط] ته مخکې خبر ورکول او له هغه څخه د ديوال ماتولو مطالبه کول دي دُوْنَ الْإِشْهَادِ نه ګواه درول [إشهاد شرط نه دی] وَإِنَّمَا ذَكَرَ الْإِشْهَادَ لِيَتَمَكَّنَ مِنْ إِثْبَاتِهِ عِنْدَ إِنْكَارِهِ او مصنف رَحِمَهُ الله د دې لپاره لفظ د إشهاد ذکر کړی دی چې هغه [ګواه درونکی] د صاحبُ الحائط د انکار په صورت کې د هغه [تقدم او مطالبې] پر ثابتولو قادر وي فَكَانَ مِنْ بَابِ الْاِحْتِيَاطِ نو دا إشهاد به د احتياط له باب څخه وي وَصُوْرَةُ الْإِشْهَادِ أَنْ يَقُوْلَ الرَّجُلُ او د دې إشهاد [ګواه درولو] صورت دا دی چې سړی داسې ووايي أَشْهِدُوْا أَنِّيْ قَدْ تَقَدَّمْتُ إِلَى هٰذَا الرَّجُلِ فِيْ هَدْمِ حَائِطِهِ هٰذَا تاسې ګواهان سئ! چې ما دغه کس ته د هغه د دې ديوال نړيدلو په هکله مخکې خبر ورکړی دی وَلَا يَصِحُّ الْإِشْهَادُ قَبْلَ أَنْ يَهِيَ الْحَائِطُ او إشهاد صحيح نه دی مخکې تر دې چې ديوال نړيدلو ته مائل سي [يعني د ديوال تر کږيدلو مخکې ګواهان درول صحيح نه دي] لِانْعِدَامِ التَّعَدِّيْ د تعدی د نشتوالي په وجه [يعني ځکه چې په دې صورت کې تعدی معلوم ده].

**اللغات:** ﴿نفوس﴾ جمع د نَفْسٌ ده: نفس، ځان. ﴿لا يؤدی﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده. د دې باب په صله کې چې إِلٰى ذکر سي نو معنیٰ يې ده: رسول، سبب ګرځيدل. ﴿إجحاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: د دې باب څو معناوي دي: په تاوان ور رسولو کې سختي کول، ختمول او له بېخه کښل، په داسې شي سره مکلف کول کوم چې د انسان په وس کې نه وي. ﴿عروض﴾ جمع د عَرْضٌ ده: سامان. ﴿يهي﴾ د ضرب له بابه د مضارع صيغه ده. په اصل کې يَوْهِيُ د "يَعِدُ" والا په قانون سره يَهِيْ سو. د دې باب معنیٰ ده: ديوال نړيدلو ته نږدې کېدل، کږيدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د ديوال مالک ته خبر ورکول سوی وي چې خپل ديوال جوړ کړه!، لېکن مالک هغه ته هيڅ توجّه نه وي کړې او بالآخره ديوال ونړيږي، نو د ديوال نړيدلو په وجه چې کوم ځاني تلفات پېښ سي او يو څوک هلاک سي نو د هغه ديت واجبيږي او دا ديت به د مالک عاقله اداء کوي؛ ځکه کله چې د قتلِ خطاء ديت عاقله اداء کوي، نو دا جنايت خو له قتلِ خطاء څخه

هم ادنیٰ او سپک دی. نو د هغه دیت به په درجه اولیٰ عاقله اداء کوي. او که موږ د نفسونو دیت د دېوال پر مالک لازم کړو نو هغه به مفلس او دېوالي سي او دا به د هغه په حق کي د لوی تکلیف باعث سي. نو ځکه د نفسونو دیت پر عاقله وو واجب کړی سوی دی. او که د دېوال نړېدلو په وجه مالي تلفات پېښ سي مثلاً د يو چا څاروی هلاک سي يا د يو چا سامان مات او ضايع سي، نو د هغه ضمان د مالک په مال کي واجبيږي او صرف هغه به دا ضمان اداء کوي؛ ځکه دا خبره تسليم سوې ده چي عاقله صرف د نفس ضمان اداء کوي، د مال ضمان نه اداء کوي. نو ځکه د مال ضمان به خپله د دېوال مالک اداء کوي.

والشرط التقدّم اليه إلخ: فرمايي په دې مسئله کي د دېوال پر مالک يا د هغه پر عاقله وو د ضمان واجبېدلو شرط دا دی چي له مالک څخه به مخکي د دېوال ماتولو مطالبه سوې وي چي خپل دېوال مات او سم کړه!، خو که په دې هکله د دېوال د مالک سره هيڅ خبره نه وي سوې او هيچا د دېوال ماتولو مطالبه نه وي ځني کړې او بيا د دېوال نړېدلو په وجه ځاني يا مالي تلفات پېښ سي. نو په دې صورت کي نه د دېوال پر مالک ضمان واجبيږي او نه د هغه پر عاقله وو؛ ځکه پر هغو د ضمان واجبېدلو چي کوم شرط وو يعني "التقدّم اليه" هغه معدوم او فوت سو. لهذا د فقهي قاعدې "إذا فات الشرط فات المشروط" پر بناء مالک او د هغه عاقله له ضمان څخه بري کيږي.

دون الإشهاد إلخ: يعني د دېوال پر مالک د ضمان واجبېدلو لپاره هغه ته صرف خبر ورکول کافي دي چي خپل دېوال مات او سم کړه!، او پر دې خبره اشهاد يعني گواهان درول او پېشول ضروري نه دي، بلکي بغير له إشهاد څخه د مالک خبرول هم د ضمان واجبېدلو لپاره کافي دي.

اوس پاته سو دا سوال چي کله إشهاد شرط نه دی نو بيا دلته ولي هغه ذکر سوی دی. نو د دې جواب دا دی چي دلته احتياطاً د إشهاد تذکره سوې ده. د دې لپاره چي وروسته د دېوال مالک له دې څخه انکار نه وکړی چي په دې باره کي ما ته چا هيڅ خبر نه دي راکول سوی کنې ما به خامخا دېوال جوړ کړي وای. لهذا اوس که گواه موجود وي، نو د دېوال مالک به څه انکار او پلان نه سي کولای نو ځکه احتياطاً دلته د إشهاد تذکره هم سوې ده.

او د إشهاد صورت دا دی چي کوم څوک د دېوال مالک ته د دېوال نړولو او سمولو خبر ورکوي. هغه دې د يو څو خلکو په موجوديت کي ووايي چي "تاسي گواهان اووسئ! چي ما دغه کس ته د دې دېوال د ماتولو او سمولو په باره کي له مخکي څخه خبر ورکړی دی". خو ښکاره دي وي چي دا خبر ورکول او گواهان درول همغه وخت مفيد دي کله چي دېوال کوږ سوی وي او نړېدلو ته نژدې

وي، لېکن که دېوال تر اوسه کوږ سوی او نړېدلو ته نژدې نه وي، نو بیا دا مفید (او دلیل) نه ګرځي، صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په "ولایصح الإشهاد قبل أن یهی" سره همدا بیان کړي دي. (احسن الهدایه)

## که دېوال له ابتداء څخه کوږ جوړ سوی وي نو د ضمان حکم

قَالَ: وَلَوْبَنَى الْحَائِطَ مَائِلًا فِي الِابْتِدَاءِ فرمایي: او که څوک له شروع څخه دېوال کوږ جوړ کړي قَالُوْا يَضْمَنُ مَا تَلِفَ بِسُقُوْطِهِ مِنْ غَيْرِإِشْهَادٍ نو مشایخ رَحِمَهُمُ الله فرمایي: چې دئ ضامن کېږي د هغه شي کوم چې د دېوال لوېدلو [نړېدلو] په وجه تلف سي لِأَنَّ الْبِنَاءَ تَعَدٍّ ابْتِدَاءً ځکه چې [دلته] له شروع څخه بناء تعدی ده كَمَا فِي إِشْرَاعِ الْجَنَاحِ لکه د چَتَر د را ایستلو په صورت کې.

**اللغات:** ﴿إشراع﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه یې یوه معنیٰ ده: (دربڅه، چتر وغیره) را خلاصول. را ایستل. ﴿جَنَاح﴾ د دې لفظ هم څو معناوي نقل سوي دي، لفظي معنیٰ یې ده: وزر او بازو. او هر هغه شی چې پراخ (عریضاً) جوړ کړی سي، همدارنګه د "الرَّوْشَن" چې کومي معناوي دي، هغه د دې لفظ هم دي چې هغه دا دي: د دې لفظ هم څو معناوي نقل سوي دي: ① چتر (یعني د بام راوتلې حصه کوم چې د کوچنۍ برندۍ په شکل جوړه کړل سوې وي چې ځیني خلک یې د بنکلا او داسي نورو مطالبو لپاره جوړوي)، ② راوتلې دربڅه (دریچه)، ③ هغه تخته وغیره چې یو سر یې پر یوه دېوال کېښېښول سي او بل سر یې پر دېوال کېښېښول سي چې له یوه کور بل کور ته پرې ولاړ سي. ④ رَفّ (رف) چې پر هغه د پاسه شیان ایښوول کېږي، (معجم الوسیط، معجم لغة الفقهاء)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو چا له شروع څخه د لارې پر طرف دېوال کوږ جوړ کړی وي او بیا د هغه د نړېدلو په وجه یو څوک هلاک سي، نو بغیر له إشهاد څخه هم هغه (د دېوال مالک) ضامن کېږي؛ ځکه هغه له شروع څخه تعدی او زیاتوب کړی دی (چې له شروع څخه یې د لارې عَرَض نیولی دی)، لهذا څرنګه چې هغه کس کوم چې لارې ته د بام چتر یا دربڅه وغیره راوباسي او بیا د هغه په وجه یو څوک مړ سي نو هغه له شروع څخه د تعدی کولو پر بناء ضامن کېږي. نو همداسي به د مذکوره دېوال مالک هم له شروع څخه د تعدی کولو په وجه ضامن وي.

## په مذکوره ګواهي کي څو کسان کافي دي؟

قَالَ: وَتُقْبَلُ شَهَادَةُ رَجُلَيْنِ أَوْ رَجُلٍ وَامْرَأَتَيْنِ عَلَى التَّقَدُّمِ فرمايي: او د تقدّم [مخکي خبر ورکولو] په هکله به د دوو کسانو يا د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي قبلول کيږي لِأَنَّ هٰذِهٖ لَيْسَتْ بِشَهَادَةٍ عَلَى الْقَتْلِ ځکه دغه ګواهي د قتل په هکله ګواهي نه ده.

**اللغات:** ﴿تقدّم﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: مخکي کېدل، مراد: مخکي خبر او اطلاع ورکول (دومره چي خپل دېوال مات او سم کړه!)، يا په بله وينا مخکي مذکوره مطالبه ځني کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که دوه خلک پر دې ګواهي ورکړي چي دغه سړي د دېوال مالک ته مخکي خبر ورکړی وو چي خپل دېوال دي ونړوه!، يا يو سړی او دوې ښځي دا ګواهي ورکړي، نو د هغو ګواهي به قبلول کيږي يعني د "تقدّم" (مخکي خبر ورکولو) په هکله د دوو خلکو ګواهي هم کافي ده، همدارنګه ديوه سړي او دوو ښځو ګواهي هم کافي ده او د دوی په ګواهي سره هم تقدّم ثابتيږي؛ ځکه دا د قتل ګواهي نه ده چي په هغه کي صرف د دوو خلکو ګواهي ضروري ده، بلکي د "تقدّم" ګواهي داسي ده لکه پر مال ګواهي ورکول، او د مال په ګواهي کي د يوه سړي او دوو ښځو ګواهي هم کفايت کوي.

## د دېوال سمولو لپاره مخکي د مهلت ورکولو د شرط وجه

وَشَرَطَ التَّرْكَ فِيْ مُدَّةٍ يَقْدِرُ عَلَى نَقْضِهِ فِيْهَا او امام قدوري رَحِمَهُ الله په دومره مودت کي [د دېوال ماتولو] پرېښوول شرط کړي دي چي په هغومره مودت کي د دېوال مالک د هغه پر ماتلو قادر وي لِأَنَّهٗ لَا بُدَّ مِنْ إِمْكَانِ النَّقْضِ ځکه د ماتولو ممکن والی ضروري دی لِيَصِيْرَ بِتَرْكِهٖ جَانِيًا د دې لپاره چي د ماتولو د پرېښوولو په وجه هغه جنايتکاره وګرځي وَيَسْتَوِيْ أَنْ يُطَالِبَهٗ بِنَقْضِهٖ مُسْلِمٌ أَوْ ذِمِّيٌّ او برابره ده دا چي له مالک څخه د دېوال ماتولو مطالبه مسلمان وکړي او که ذمي لِأَنَّ النَّاسَ كُلَّهُمْ شُرَكَاءُ فِي الْمُرُوْرِ ځکه چي خلک ټوله په تېرېدلو کي شريکان دي فَيَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ مِنْ كُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمْ نو ځکه له دوی څخه د هر يوه له طرفه د دېوال ومالک ته مخکي خبر ورکول صحيح دي رَجُلًا كَانَ أَوْ امْرَأَةً حُرًّا كَانَ أَوْ مُكَاتَبًا برابره ده هغه سړی وي او که ښځه، آزاد وي او که مکاتب وَيَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ عِنْدَ السُّلْطَانِ وَغَيْرِهٖ [همدارنګه] د باچا او غير باچا دواړو سره مالک ته مخکي خبر ورکول صحيح

دي [يعني د هر يوه مخ ته د دېوال ماتولو مطالبه ځني کولای سي] لِأَنَّهُ مُطَالَبَةٌ بِالتَّفْرِيغِ ځکه چي دا [د شغل او لاري] د فارغولو مطالبه ده فَيَتَفَرَّدُ كُلُّ صَاحِبِ حَقٍّ بِهِ نو ځکه هر د حق خاوند به په دې کي متفرد وي [يعني هر يو به يې جلا حقدار وي].

**اللغات**: ﴿تفريغ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فارغول، خالي کول. ﴿يتفرد﴾ د تفعل مضارع ده: يوازېنی کېدل (په يو شي کي يوازېنی کېدل)، جلا کېدل.

**تشريح**: د دې فصل په شروع کي امام قدوري رَحِمَهُ الله د "فلم ينقضه في مدة يقدر على نقضه فيها" په عبارت سره دا شرط لګولی وو چي د دېوال نړولو او سمولو تر مطالبې وروسته به د دېوال مالک ته دومره مهلت ورکول کيږي چي مالک په هغه کي دېوال مات کړی سي: دلته د هاغه وضاحت کوي فرمايي چي د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دغه شرط فايده دا ده چي که په دومره مودت کي مالک د خپل دېوال ماتول پرېږدي او جوړ يې نه کړي، نو ثابته به سي چي هغه جنايتکاره او متعدي دی او پر هغه د ضمان واجبېدل پر حق او پر ځای دي.

ويستوي إلخ: يعني په مذکوره لاره کي چي هر څوک تېرېږي او د تېرېدلو حق ورته حاصل وي برابره ده هغه مسلمان وي او که ذمي، ټولو ته د مطالبې حق سته چي له مالک څخه د دېوال نړولو او سمولو مطالبه وکړي، برابره ده سړی وي او که ښځه وي، آزاد وي او که مکاتب وي؛ ځکه د دغه مطالبې مطلب دا دی چي دېوال والا دې لاره فارغه کړي چي تېرېدونکي کسان په آزاده ګکښي ولاړ سي، نو ځکه د لاري هر حقدار کس ته به د مذکوره مطالبې حق او اختيار حاصل وي.

ويصح التقدم إلخ: يعني د دېوال مالک ته مخکي خبر ورکول او د دېوال ماتولو مطالبه ځني کول که د باچا مخ ته وي او که د بل چا مخ ته وي په هر صورت کي صحيح دي او په هر صورت کي حکم يو دی.

## د همسايه د کور وطرف ته د دېوال کږېدلو بيان

قَالَ: وَإِنْ مَالَ إِلَى دَارِ رَجُلٍ فرمايي: او که دېوال کوږ سي د يو سړي د کور وطرف ته فَالْمُطَالَبَةُ إِلَى مَالِكِ الدَّارِ خَاصَّةً نو مطالبه [د مطالبې حق] په خاصه توګه د کور مالک لره دی [يعني په دې صورت کي فقط د کور مالک لره د مطالبې حق سته] لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُ عَلَى الْخُصُوصِ ځکه چي حق په خصوصي توګه د هغه لپاره [ثابت] دی وَإِنْ كَانَ فِيهَا سُكَّانٌ او که په دې کور کي ډېر اوسېدونکي وي لَهُمْ أَنْ يُطَالِبُوهُ نو دوی ټولو ته دا حق سته چي له هغه [صاحبُ الحائط] څخه مطالبه وکړي لِأَنَّ لَهُمُ الْمُطَالَبَةَ بِإِزَالَةِ

مَا شَغَلَ الدَّارَ ځکه چي دوی ته حق د مطالبې سته د هغه شي د ليري کولو په هکله کوم چي کور مشغوله کړی وي فَكَذَا بِإِزَالَةِ مَا شَغَلَ هَوَاءَهَا نو همداسي د هغه شي د ليري کولو [د مطالبې حق به هم دوی ته وي] کوم چي د کور فضا [خلا] مشغوله کړې وي.

**اللغات:** ﴿سُكَّان﴾ جمع د سَاكِنٌ ده: اوسېدونکي. ﴿إزالة﴾ د افعال د باب مصدر دی: زايلول. ليري کول، ختمول. ﴿شغل﴾ د فتح د باب ماضي ده: مشغولول. مصروفول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو چا د کور دېوال د همسايه د کور پر طرف کوږ سوی وي، نو څرنګه چي په دې کي صرف د همسايه نقصان دی. نو ځکه دا حق صرف همسايه ته سته چي له مالک څخه د دېوال ماتولو او سمولو مطالبه وکړي او له هغه څخه بغير بل چا ته د مطالبې حق نسته؛ ځکوبل چا ته په دې سره هيڅ ضرر نه رسيږي.

**وإن كان فيها سكان إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که هغه يو غټ کور او لوی سرای وي چي ډېر کسان پکښي اوسيږي (يا بل مطلب دا چي همسايه خپل کور نور کسانو ته د اوسېدلو لپاره ورکړی وي). نو په دې صورت کي هر اوسېدونکي ته دا حق سته چي د دېوال له مالک څخه د هغه د ماتولو او سمولو مطالبه وکړي، ځکه دوی ته دا حق حاصل دی چي کوم شی د کور ساحه مشغوله کړې وي نو دوی د هغه د ليري کولو مطالبه کولای سي، نو همداسي کوم شی چي د کور فضا او هوايي ساحه مشغوله کړې وي لکه په مذکوره مسئله کي، نو دوی ته به د هغه د ليري کولو د مطالبې حق هم حاصل وي.

## د دېوال د مالک د بري کولو بيان

وَلَوْ أَجَّلَهُ صَاحِبُ الدَّارِ او که د کور خاوند هغه [د دېوال مالک] ته مهلت ورکړي أَوْ أَبْرَأَهُ مِنْهَا يا هغه له دې [جنايت] څخه بري کړي أَوْ فَعَلَ ذٰلِكَ سَاكِنُوْهَا يا د هغه اوسېدونکي داسي وکړي فَذٰلِكَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِيْمَا تَلِفَ بِالْحَائِطِ او د کور پر مالک ضمان نسته د هغه شي کوم چي په دېوال سره تلف [او هلاک] سي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چي حق هغوی [اوسېدونکو] لره دی بِخِلَافِ مَا إِذَا مَالَ إِلَى الطَّرِيْقِ په خلاف د هغه صورت کله چي دېوال لاري ته کوږ سوی وي فَأَجَّلَهُ الْقَاضِيْ أَوْ مَنْ أَشْهَدَ عَلَيْهِ بيا قاضي د دېوال مالک ته مهلت ورکړي يا هغه کس [مهلت ورکړي] کوم چي پر هغه [يعني د کور پر مالک] ګواهان پېش کړي وي حَيْثُ لَا يَصِحُّ نو دا مهلت ورکول نه صحيح کيږي

لِأَنَّ الْحَقَّ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ ځکه چې حق د مسلمانانو جماعت لره دی وَلَيْسَ إِلَيْهِمَا إِبْطَالُ حَقِّهِمْ او دې دواړو [يعني قاضي او إشهاد کونکي] ته د هغو د حق باطلولو اختيار نشته.

**اللغات**: ﴿أجله﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: وخت او نېټه ورکول، مهلت ورکول. ﴿تلف﴾ د سمع د باب ماضي ده: تلفېدل، ضايع کېدل، هلاکېدل.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چې د کوم سړي د کور پر طرف د يو چا (مثلاً د خالد) دېوال راکوږ سوی وي، که هغه د دېوال مالک (خالد) ته څو ورځې د دېوال نه ماتولو مهلت ورکړي يا مالکِ د دېوال له جنايت څخه بري کړي، يا مثلاً په هغه کور کي مالک (خالد) نور کسان اوسوي او هغوی د دېوال مالک ته دا مهلت ورکړي يا يې له جنايت څخه بري کړي، نو د دوی ټولو مهلت ورکول او بري کول صحيح دي، لهذا که تر مهلت ورکولو او بري کولو وروسته دېوال ونړېږي او يو شی هلاک او ضايع سي، نو د دېوال پر مالک ضمان نه واجبېږي؛ ځکه حق چې د کومو کسانو وو، هغو مهلت ورکړی او د ضمان وجوب يې مؤخر کړی (او هغو ته د مهلت ورکولو حق حاصل وو)، نو ځکه اوس به د دېوال پر مالک ضمان نه واجبېږي.

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چې د کوم چا دېوال لاري ته راکوږ سوی وي، که هغه ته قاضي مهلت ورکړي يا څوک چې د دېوال نړولو مطالبه ځني کوي او گواهان ودروي، هغه مهلت ورکړي، نو دا مهلت ورکول صحيح نه دي؛ ځکه لاره خو نه د قاضي حق دې او نه يوازي د مُشهِد حق ده (کوم چې گواهان درولي دي)، بلکي لاره د عامو مسلمانانو حق ده او هغو د دېوال مالک ته مهلت نه دی ورکړی، نو ځکه دا مهلت ورکول صحيح نه دي؛ ځکه په دې کي د عامو مسلمانانو د حق باطلول لازمېږي، او دوی دواړو ته د جماعة المسلمين د حق باطلولو اختيار نشته.

## له دېوال نړېدلو څخه مخکي د کور خرڅولو بيان

وَلَوْ بَاعَ الدَّارَ بَعْدَمَا أُشْهِدَ عَلَيْهِ او که هغه [د کور مالک] کور خرڅ کړي وروسته تر دې چې پر ده گواهان پېش کړل سي وَقَبَضَهَا الْمُشْتَرِيُّ او مشتري پر کور قبضه وکړي بَرِئَ مِنْ ضَمَانِهِ نو هغه [بائع (د کور مالک)] له ضمان څخه بري کېږي لِأَنَّ الْجِنَايَةَ بِتَرْكِ الْهَدْمِ مَعَ تَمَكُّنِهِ ځکه د هدم [دېوال نړولو] د پرېښوولو جنايت پر هغه [هدم] په قدرت لرلو سره ثابتېږي وَقَدْ زَالَ تَمَكُّنُهُ بِالْبَيْعِ حال دا چې د بيع [کور خرڅولو] په وجه د هغه قدرت زائل سو بِخِلَافِ إِشْرَاعِ الْجَنَاحِ په خلاف د چتر را ايستلو لِأَنَّهُ كَانَ جَانِيًا بِالْوَضْعِ ځکه [هلته] د کور مالک [محض] د چتر ايښوولو په وجه جنايتکاره

دی وَلَمْ يَنْفَسِخْ بِالْبَيْعِ او هغه [اینبوول] د بیع په وجه فسخ نه سو فَلَا يَبْرَأُ نو ځکه هغه نه بري کیږي عَلَى مَا ذَكَرْنَا د هغه تفصیل مطابق کوم چي موږ ذکر کړی [في باب ما یحدث الرجل في الطریق] وَلَا ضَمَانَ عَلَى الْمُشْتَرِيْ او پر مشتري [هم] ضمان نسته لِأَنَّهُ لَمْ يُشْهَدْ عَلَيْهِ ځکه چي پر هغه إشهاد نه دی سوی وَلَوْ أُشْهِدَ عَلَيْهِ بَعْدَ شِرَائِهِ او که پر مشتري د هغه تر رانیولو وروسته اشهاد وسي فَهُوَ ضَامِنٌ نو مشتري ضامن کیږي لِتَرْكِهِ التَّفْرِيْغَ مَعَ تَمَكُّنِهِ ځکه چي هغه [د شغل او لاري] فارغول پرې ایښي دي پر هغه د قدرت لرلو باوجود بَعْدَمَا طُولِبَ بِهِ وروسته تر دې چي له هغه شخصه د دې مطالبه [هم] سوې ده.

**اللغات:** ﴿أشهد﴾ د افعال د باب ماضي ده: أَشْهَدَ يُشْهِدُ إِشْهَادًا: یو څوک پر خپله خبره ګواه جوړول، ګواه پېښول، ګواه درول. ﴿تمکّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: قدرت لرل، قادر کېدل، قدرت او اختیار. ﴿إشراع﴾ د افعال د باب مصدر دی: د دې باب نحو معناوي دي چي له هغوی شخه يې یوه معنیٰ ده: (چتر، دریڅه وغیره) را ایستل، را خلاصول. ﴿جناح﴾ مخکي په تفصیل سره د دې وضاحت وسو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو چا دېوال لاري ته راکوږ سوی وي او له هغه شخه د دېوال ماتولو مطالبه وسي او پر دې إشهاد هم وسي (یعني د مذکوره مطالبې په هکله ګواهان هم پېش کړل سي). لېکن د دېوال مالک تر إشهاد وروسته او مخکي تر دې چي دېوال ونړېږي دا کور خرڅ کړي او مشتري پر هغه قبضه هم وکړي، تر دې وروسته هغه دېوال ونړېږي او د هغه په وجه یو شی هلاک سي، نو په دې صورت کي د کور پر مالک یعني پر بائع ضمان نه واجبیږي؛ ځکه هدم پرېښوول هغه وخت جرم او جنایت دی کله چي څوک د قدرت باوجود هغه پرېږدي (یعني د قدرت لرلو باوجود دېوال نه ونړوي)، او دلته مالک د هغه پر نړولو قدرت نه لري ځکه چي هغه يې خرڅ کړی دی او ځان يې له منځه ایستلی دی. لهذا د هغه له طرفه جنایت معدوم دی او کله چي جنایت نسته، نو ضمان به څنګه واجب سي!.

د دې په خلاف که د کور مالک لاري ته چتر یا دریڅه وغیره راوباسي او بیا د هغه له رالوېدلو شخه مخکي کور پر یو چا خرڅ وکړي او تر دې وروسته چتر یا دریڅه راولوېږي او یو شی هلاک کړي، نو په دې صورت کي د کور پر مالک یعني پر بائع ضمان واجبیږي؛ ځکه په دې صورت کي د چتر وغیره د را ایستلو له ورځي شخه هغه جنایتکاره دی او د کور په خرڅولو سره د هغه دا جرم نه دی زائل سوی، نو ځکه دلته پر هغه ضمان واجبیږي او له ضمان شخه نه بري کیږي.

ولا ضمان على المشتري إلخ: څه مخکې ذکر سوه چي تر اشهاد وروسته چي مالک کور خرڅ کړي، نو د دېوال په وجه د هلاک سوي شي ضمان پر هغه نه واجبيږي، همدارنګه د هغه تر څنګ پر مشتري هم ضمان نه واجبيږي، په دې شرط چي پر مشتري إشهاد نه وي سوی، خو کله چي د کور تر رانيولو او قبضه کولو وروسته له مشتري څخه د دېوال ماتولو او د لاري فارغولو مطالبه وسي او پر دې إشهاد هم وسي، نو په دې صورت کي پر مشتري ضمان واجبيږي؛ ځکه د قدرة على التفريغ باوجود هغه تفريغ پرې ايښی دی او د هغه له طرفه جنايت ثابت سوی دی. (احسن الهدايه)

## د دېوال ماتولو په هکله د مخکي خبر ورکولو او مطالبي په هکله قاعدهٔ کليه

وَالْأَصْلُ أَنَّهُ يَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَى كُلِّ مَنْ او قاعدهٔ کليه دا ده چي هر هغه کس ته تقدّم [مخکي خبر ورکول او د نقض مطالبه څني کول] صحيح دي يَتَمَكَّنُ مِنْ نَقْضِ الْحَائِطِ وَتَفْرِيغِ الْهَوَاءِ کوم چي د دېوال په ماتولو او د فضا په فارغولو [خالي کولو] باندي قدرت لري وَمَنْ لَا يَتَمَكَّنُ مِنْهُ او کوم څوک چي پر دې قدرت نه لري لَا يَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَيْهِ هغه ته تقدّم [مخکي خبر ورکول] صحيح نه دي كَالْمُرْتَهِنِ وَالْمُسْتَأْجِرِ لکه په رهن [د کور] اخيستونکی او لکه په أجرت [کرايه د کور] اخيستونکی وَالْمُودَعِ وَسَاكِنِ الدَّارِ او لکه [د کور] امين او لکه د کور اوسېدونکی وَيَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلَى الرَّاهِنِ او راهن ته تقدّم صحيح دی لِقُدْرَتِهِ عَلَى ذٰلِكَ بِوَاسِطَةِ الْفِكَاكِ ځکه هغه چي د رهن خلاصولو په واسطه پر هغه [دېوال ماتولو] قادر دی وَإِلَى الْوَصِيِّ وَإِلَى أَبِي الْيَتِيمِ أَوْ أُمِّهِ فِي حَائِطِ الصَّبِيِّ او [تقدّم صحيح دی] وصي ته او د يتيم پلار [نيکه] ته او د هغه مور ته د بچي په دېوال کي لِقِيَامِ الْوِلَايَةِ د ولايت د قايم والي په وجه [يعني ځکه چي دوی لره پر بچي ولايت سته] وَذِكْرُ الْأُمِّ فِي الزِّيَادَاتِ او د مور ذکر په زيادات کي سوی دی وَالضَّمَانُ فِي مَالِ الْيَتِيمِ او ضمان د يتيم په مال کي [واجب] دی لِأَنَّ فِعْلَ هٰؤُلَاءِ كَفِعْلِهِ ځکه د دوی [يعني د وصي، نيکه او مور] فعل د بچي د فعل په څېر دی وَإِلَى الْمُكَاتَبِ او [تقدم صحيح دی] مکاتب ته لِأَنَّ الْوِلَايَةَ لَهُ ځکه چي ولايت هغه لره [حاصل] دی وَإِلَى الْعَبْدِ التَّاجِرِ او [تقدم صحيح دی] تاجر غلام ته سَوَاءٌ كَانَ عَلَيْهِ دَيْنٌ أَوْ لَمْ يَكُنْ برابره ده پر هغه قرض باندي وي او که نه وي لِأَنَّ وِلَايَةَ النَّقْضِ لَهُ ځکه چي د ماتولو ولايت هغه لره [حاصل] دی.

**اللغات**: ﴿التقدم﴾ مخکې کېدل، مراد: مخکې ورته ویل، مخکې خبر او اطلاع ورکول (چې خپل دېوال مات او سم کړه!)، یا په بله وینا مخکې مذکوره مطالبه ځنې کول. ﴿فکاک﴾ رهن راخلاصول، مرهون شی له مرتهن څخه اخیستل. ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چې امانت اېښوول سوی وی، چا ته چې یو شی امانتاً ورکول سوی وي.

**تشریح**: په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله یوه قاعدهٔ کلیه بیان کړې ده، حاصل یې دا دی چې له هر هغه کس څخه د دېوال ماتولو او سمولو مطالبه کول صحیح دي کوم چې د دېوال پر ماتولو قادر وي، خو کوم څوک چې پر دې قدرت نه لري له هغه څخه دا مطالبه کول نه صحیح کیږي، اوس هغه کسان چې د دېوال پر ماتولو قادر نه دي او له هغوی څخه مذکوره مطالبه صحیح نه ده، بعضې د هغو دا دي: ① مرتهن (یعني کوم کس ته چې کور په رهن ورکول سوی وي)، ② مستأجِر (چې کور یې په کرایه نیولی وي)، ③ مودع (چې کور امانتاً ورکول سوی وي)، ④ بغیر له ملکیته په کور کې (د عاریت په توګه) اوسېدونکی.

او هغه کسان چې د دېوال پر ماتولو قادر دي او له هغوی څخه مذکوره مطالبه صحیح ده، هغوی دا دي: ① راهن؛ ځکه هغه د مرهون په راخلاصولو باندې قادر دی (یعني پر دې قادر دی چې له مرتهن څخه خپل مرهون دېوال او کور واپس واخلي)، ② وصي، ③ د یتیم نیکه، (دلته له پلار څخه نیکه مراد دی؛ ځکه د پلار په موجودیت کې هغه یتیم کېدلای نه سي)، ④ د یتیم مور؛ ځکه د خپل بچي په دېوال کې هغې لره د ماتولو ولایت او اختیار سته. او د مور ذکر امام محمد رَحِمَهُ الله په زیادات کې کړی دی، ⑤ مکاتب، یعني که کور او دېوال د مکاتب وي، نو له هغه څخه هم د ماتولو مطالبه صحیح ده؛ ځکه هغه لره هم د دېوال ماتولو ولایت حاصل دي، ⑤ تاجر غلام، برابر ده پر هغه قرض باندې وي او که نه وي؛ ځکه مذکوره غلام لره هم د ماتولو ولایت حاصل دی.

**سوال**: که دېوال د بچي وي او د بچي له ولیانو څخه د ماتولو مطالبه هم سوې وي، خو دېوال مات نه کړی سي تر دې چې هغه ونړېږي او د هغه په وجه یو شی هلاک سي، نو ضمان د چا په مال کې لازمیږي؟.

**جواب**: د بچي په مال کې ضمان لازمیږي؛ ځکه د ولیانو فعل په خپله د بچي د فعل په شان دی. (اشرف الهدایه)

## له تاجر غلام څخه د دېوال نړولو د مطالبې وضاحت

ثُمَّ التَّالِفُ بِالسُّقُوْطِ إِنْ كَانَ مَالًا بیا [د دېوال] رالوېدلو په وجه تلفېدونکی شی که چیري مال وي فَهُوَ فِيْ عُنُقِ الْعَبْدِ نو هغه د غلام په غاړه [رقبه] کي دی وَإِنْ كَانَ نَفْسًا او که هغه [تلفېدونکی شی] نفس وي فَهُوَ عَلٰى عَاقِلَةِ الْمَوْلٰى نو هغه د مالک پر عاقله وو دی لِأَنَّ الْإِشْهَادَ مِنْ وَجْهٍ عَلَى الْمَوْلٰى ځکه [دلته] إشهاد په یوه اعتبار سره پر مالک دی وَضَمَانُ الْمَالِ أَلْيَقُ بِالْعَبْدِ او د مال ضمان د غلام زیات لایق دی وَضَمَانُ النَّفْسِ بِالْمَوْلٰى او د نفس ضمان د مالک زیات لایق دی.

**اللغات:** ﴿التالف﴾ د سمع له بابه د فاعل صیغه ده: تلفېدونکی، هلاکېدونکی، تلف سوی، ﴿أليق﴾ د ضرب له بابه د اسم تفضیل صیغه ده: زیات لایق، زیات مناسب.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي که مذکوره دېوال د تاجر غلام وي او له هغه څخه د ماتولو مطالبه وسي، نو دا مطالبه من وجه له غلام څخه ده او من وجه له مالک (مولیٰ) څخه ده، نو ځکه دلته د دواړو رعایت وسو او ووېل سوه چي د مذکوره دېوال په وجه چي کوم شی هلاک سي که هغه مال وي، نو هغه به د غلام په رقبه سره اداء کېږي یعني غلام به خرڅول کېږي او هغه مال به په اداء کول کېږي، او که هلاک سوی شی انسان وي، نو هغه د مالک پر عاقله وو واجبېږي؛ ځکه د مال ضمان پر غلام واجبول مناسب دي او د نفس ضمان پر مالک واجبول مناسب دي. (شرف الهدایه)

## که د کور په څو وارثانو کي که یوه وارث ته د دېوال ماتولو په هکله تقدم وسي (مخکي خبر ورکول سي)

وَيَصِحُّ التَّقَدُّمُ إِلٰى أَحَدِ الْوَرَثَةِ فِيْ نَصِيْبِهِ او تقدم صحیح دی له وارثانو څخه یوه وارث ته د هغه په حصه کي. وَإِنْ كَانَ لَا يَتَمَكَّنُ مِنْ نَقْضِ الْحَائِطِ وَحْدَهُ که څه هم هغه یوازي د دېوال پر ماتولو قدرت [او ملکیت] نه لري لِتَمَكُّنِهِ مِنْ إِصْلَاحِ نَصِيْبِهِ بِطَرِيْقِهِ ځکه هغه د خپلي حصې پر اصلاح [سمولو] قادر دی د هغه [اصلاح] په طریقه سره وَهُوَ الْمُرَافَعَةُ إِلَى الْقَاضِيْ او هغه [د اصلاح طریقه] قاضي ته معامله پېشول دي.

**اللغات:** ﴿نصیب﴾ حصه، ﴿مرافعة﴾ د مفاعلې دباب مصدر دی: د فیصلې لپاره د قاضي مخته معامله او مسئله پېشول، مقدمه درجول، عدالت ته خپله معامله وړاندي کول.

**تشریح:** صورت د مسئلې خو بالکل ښکاره دی چي که یو کور څو وارثانو ته په میراث کي حاصل وي او په هغه کور کي یو دېوال د لاري وطرف ته کوږ سي، او بیا په دوی کي یوه وارث ته مخکي د

هغه د حصې د ماتولو او سمولو خبر ورکول سي او د دې مطالبه ځني وسي، نو دا تقدّم صحيح دی: ځکه هغه وارث که څه هم يوازې د ټوله دېوال د ماتولو او سمولو ملکيت او قدرت نه لري، خو په دې طريقه هغه قدرت لري چې د قاضي مخ ته دا معامله پېش کړي نو قاضي به پر نورو وارثانو هم فرمان جاري کړي او هغوی ته به د دېوال سمولو حکم وکړي، نو ځکه ووېل سوه چې که صرف يوه وارث ته د دېوال ماتولو خبر ورکول سي نو دا (تقدم) صحيح دی.

(او که په مذکوره صورت کي دېوال ونړېږي، نو هغه يو وارث صرف د خپلي حصې ضامن کېږي، د نورو وارثانو د حصې نه ضامن کېږي؛ ځکه صرف د هاغه وطرف ته تقدّم صحيح سوی دی).

## د کوږ سوي دېوال په وجه د انسان د مړ کېدلو درې صورتونه او حکمونه

وَلَوْ سَقَطَ الْحَائِطُ الْمَائِلُ عَلَى إِنْسَانٍ بَعْدَ الْإِشْهَادِ او که چيري کوږ سوی دېوال تر إشهاد وروسته پر يو انسان ولوېږي فَقَتَلَهُ نو هغه قتل کړي فَتَعَثَّرَ بِالْقَتِيلِ غَيْرُهُ بيا د هغه مقتول انسان په وجه بل څوک ښوی سي فَعَطِبَ نو هلاک سي لَا يَضْمَنُهُ نو د دېوال مالک د هغه نه ضامن کېږي لِأَنَّ التَّفْرِيغَ عَنْهُ إِلَى الْأَوْلِيَاءِ لَا إِلَيْهِ ځکه له هغه مقتول انسان څخه [لاره] خالي کول د هغه وليانو لره [لازم] وه، نه د دېوال مالک لره وَإِنْ عَطِبَ بِالنَّقْضِ او که هغه بل څوک [د دېوال] د ماتي حصې په وجه هلاک سي ضَمِنَهُ نو د دېوال مالک د هغه ضامن کېږي لِأَنَّ التَّفْرِيغَ إِلَيْهِ ځکه [په دې صورت کي د لاري] د خالي کول هغه لره لازم وه إِذِ النَّقْضُ مِلْكُهُ ځکه [د دېوال] ماته سوې حصه هم د هغه ملکيت ده وَالْإِشْهَادُ عَلَى الْحَائِطِ إِشْهَادٌ عَلَى النَّقْضِ او پر دېوال إشهاد پر ماته سوې حصه هم إشهاد دی لِأَنَّ الْمَقْصُودَ امْتِنَاعُ الشُّغْلِ ځکه [د إشهاد] مقصود [د لاري] له مشغوليت څخه منع کېدل دي وَلَوْ عَطِبَ بِجَرَّةٍ او که هغه بل څوک د هغه منگي په وجه هلاک سي كَانَتْ عَلَى الْحَائِطِ فَسَقَطَتْ بِسُقُوطِهِ کوم چې پر دېوال [پروت] وي او د دېوال په لوېدلو سره هغه منگی هم لوېدلی وي وَهِيَ مِلْكُهُ، او منگی د هغه [صاحبُ الحائط] ملکيت وي ضَمِنَهُ نو هغه يې ضامن کېږي لِأَنَّ التَّفْرِيغَ إِلَيْهِ ځکه خالي کول هغه لره [لازم] وه وَإِنْ كَانَ مِلْكَ غَيْرِهِ او که منگی د بل چا ملکيت وي لَا يَضْمَنُهُ نو هغه [صاحبُ الحائط] د هغه نه ضامن کېږي لِأَنَّ التَّفْرِيغَ إِلَى مَالِكِهَا ځکه [په دې صورت کي د لاري] خالي کول د منگي مالک لره لازم وه.

**اللغات**: ﴿تعثر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: ښويېدل او غوځارېدل، پر مخې موښتل. ﴿تفريغ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فارغول، خالي کول. ﴿الشغل﴾ د فتح د باب مصدر دی: مشغولول، مشغوليت. ﴿جرة﴾ منګی.

**تشريح**: په دې عبارت کې درې مسئلې ذکر سوي دي چې هغوی به ان شاء الله په ترتيب ستاسې مخ ته بيان کړل سي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې د يو سړي مثلاً د نقيب دېوال لاري ته را کوږ سوی دی، بيا يو چا له هغه شخصه د دېوال ماتولو (نړولو) او سمولو مطالبه وکړه او إشهاد يې پېش کړی يعني پر دې مطالبه يې ګواهان پېش کړل، خو نقيب هغه مات او سم نه کړی تر دې چې هغه پر يو چا مثلاً پر خالد را ونړېدی او د هغه په وجه خالد مړ سو، نو ښکاره ده چې د نقيب له طرفه تعدي واقع سوه، نو ځکه پر هغه د خالد ضمان واجبېږي، اوس خالد په لاره کې مړ پروت دی او يو بل شوک مثلاً حامد په ناپامي کې د هغه په وجه غوځار سو او مړ سو، نو د حامد ضمان د دېوال پر مالک يعني پر نقيب نه واجبېږي؛ ځکه د هغه په مرګ کې د نقيب له طرفه هيڅ تعدي نه ده واقع سوې؛ ځکه د خالد لاش پورته کول او لاره خالي د خالد د وليانو (وارثانو) کار دی، نه د نقيب، لهذا د خالد په وجه د غوځار سوي او مړ کېدونکي (حامد) ضمان به پر نقيب يعني د دېوال پر مالک نه واجبېږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې د نقيب د دېوال په وجه مثلاً خالد مړ سو او بيا د دېوال د ماتي حصې (کوم چې په لاره کې پرته وه، د هغه) سره نجيب ټکر سو او هغه هم مړ سو، نو په دې صورت کې د خالد او نجيب دواړو ضمان د دېوال پر مالک يعني پر نقيب واجبېږي؛ ځکه څرنګه چې دېوال د نقيب ملکيت دی، همداسې د دېوال ماته حصه هم د هغه ملکيت ده، لهذا څرنګه چې پر نقيب د دېوال سمول او لاره خالي کول لازم دي، همداسې د هغه د ماتي حصې پورته کول او لاره خالي هم پرې لازم دي، نو ځکه شوک چې د دېوال د ماتي حصې په وجه مړ سي، د هغه ضمان به هم نقيب يعني د دېوال مالک اداء کوي.

والإشهاد على الحائط إلخ: د دې حاصل دا دی چې په مذکوره مسئله کې إشهاد که څه هم صرف د دېوال په هکله دی، نه د هغه د نقض (ماتي حصې) په هکله، خو بيا هم د ماتي حصې په وجه د مړسوي کس ضمان ځکه د دېوال پر مالک واجب کړی سوی دی؛ ځکه چې په إشهاد على الحائط کې إشهاد على النقض هم داخل دی. او بله خبره دا ده چې په إشهاد على الحائط سره د لاري فارغول (خالي کول) مقصود وي او څرنګه چې نقض (ماتي حصې) هم لاره نيولې ده، نو ځکه کوم إشهاد چې پر حائط پېش سوی دی، هاغه به پر نقض هم إشهاد وي، لهذا په دې هکله به اعتراض کول صحيح نه وي.

(۳)... درېيمه مسئله دا ده چي د نقيب د دېوال رالوېدلو په وجه مثلاً خالد مړ سو او پر دېوال يو منګی يا بل وزنداره سامان هم پروت وو او هغه هم رالوېدی او د هغه په وجه بل څوک مړ سو مثلاً حامد د هغه منګي د ټوټې په وجه ښوی او غوځار سو او بالآخره مړ سو، نو د اول کس يعني د خالد ضمان خو ښکاره ده چي د دېوال پر مالک (يعني پر نقيب) واجب دی، او د دويم کس (حامد) د ضمان په هکله تفصيل دی او هغه دا چي که دغه منګی يا سامان د دېوال د مالک وي، نو د دې ضمان هم پر هغه واجبيږي، لکه د دېوال د ماتي حصې والا په مسئله کي چي پر هغه د دواړو کسانو ضمان واجب سوی دی.

او که منګی د بل چا وي، نو په دې صورت کي د دويم کس (حامد) ضمان پر دېوال والا نه لازميږي، بلکي د منګي پر مالک واجبيږي؛ ځکه منګی ليري کول او لاره خالي کول د هغه ذمه واري ده، نه د دېوال والا، لهذا اوس ګواکي تعدی د منګي والا له طرفه واقع سوې ده. نو ځکه د منګی په وجه د قتل سوي کس ضمان به هم هاغه اداء کوي. (احسن الهداية)

## د پنځو کسانو د مشترک دېوال حکم

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْحَائِطُ بَيْنَ خَمْسَةِ رِجَالٍ فرمايي: او کله چي دېوال د پنځو خلکو تر مينځ مشترک وي أُشْهِدَ عَلَى أَحَدِهِمْ [او] له هغو څخه پر يوه إشهاد سوی وي فَقَتَلَ إِنْسَانًا بيا دېوال يو انسان قتل کړي ضَمِنَ خُمُسَ الدِّيَةِ نو هغه [پر چا چي إشهاد سوی دی] د ديت د پنځمي حصې ضمان کيږي وَيَكُونُ ذٰلِكَ عَلَى عَاقِلَتِهِ او دا به د هغه پر عاقله وو [واجب] وي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو دېوال د پنځو کسانو تر مينځ مشترک وي او بيا په دوی کي صرف له يوه څخه د دېوال ماتولو او سمولو مطالبه وسي او پر هغه ګواهان پېش کړل، نه پر نورو شريکانو، بيا هغه دېوال ونړيږي او يو څوک مړ کړي، نو پر کوم يوه چي إشهاد سوی دی (مُشهَد عليه)، هغه د خُمسِ ديت ضامن کيږي (يعني هغه به د ديت پنځمه حصه اداء کوي)؛ ځکه هغه د دېوال د پنځمي حصې مالک دی، نو ځکه د خپل ملکيت په حساب سره به پر هغه ضمان هم واجب وي. (احسن الهداية)

## په مشترک کور کي د کيندل سوي څاه حکم

وَإِنْ كَانَتْ دَارٌ بَيْنَ ثَلَاثَةِ نَفَرٍ او که يو کور د دريو کسانو تر مينځ مشترک وي فَحَفَرَ أَحَدُهُمْ فِيهَا بِئْرًا بيا له دوی څخه يو په هغه کور کي څاه وکيندي وَالْحَفْرُ كَانَ بِغَيْرِ رِضَا الشَّرِيكَيْنِ الْآخَرَيْنِ اودا کيندل د نورو دوو شريکانو له رضا څخه بغير وي أَوْ بَنَى حَائِطًا يا دېوال [پکښي] جوړ کړي فَعَطِبَ

بِهِ إِنْسَانٌ بيا د هغه په وجه يو انسان هلاک سي فَعَلَيْهِ ثُلُثَا الدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهِ نو پر هغه د ديت دوه ثلثه د هغه پر عاقله وو دي [يعني اداء کوي به يې د هغه عاقله] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا ۞: عَلَيْهِ نِصْفُ الدِّيَةِ عَلَى عَاقِلَتِهِ فِي الْفَصْلَيْنِ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر هغه نيم ديت د هغه پر عاقله وو دی لَهُمَا: أَنَّ التَّلَفَ بِنَصِيبِ مَنْ أُشْهِدَ عَلَيْهِ مُعْتَبَرٌ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي تلفېدل [هلاکېدل] د هغه کس په حصه سره معتبر دي پر چا چي إشهاد سوی دی وَبِنَصِيبِ مَنْ لَمْ يُشْهَدْ عَلَيْهِ هَدَرٌ او د هغه کس په حصې سره تلفېدل هدر [او معاف] دي پر چا چي إشهاد نه دی سوی فَكَانَا قِسْمَيْنِ نو دا دوه قسمونه سول فَانْقَسَمَ نِصْفَيْنِ نو ضمان [ديت] به هم نيم په نيمه تقسيمېږي كَمَا مَرَّ فِي عَقْرِ الْأَسَدِ وَنَهْشِ الْحَيَّةِ وَجَرْحِ الرَّجُلِ لکه څرنګه چي [مخکي] تېر سوه د زمري د داړلو او د مار د چيچلو او د سړي د زخمي کولو په هکله [چي دا مسئله څه مخکي د "باب ما يوجب القصاص وما لا يوجبه" په آخر کي ذکر سوې ده]

**اللغات:** ﴿هدر﴾ د ضرب له بابه إسمِ مصدر دی: ضايع، بې بدلې، هَدَرَ يَهْدِرُ هَدْرًا (الدم): وينه (خون) ضايع کېدل، چي بدله يې نه وخيستل، معاف کېدل، ﴿عقر﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب په صله کي چي درنده ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: داړل، خوله اچول او څيرل، ﴿نهش﴾ د فتح د باب مصدر دی: چيچل (نيش لګول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو کور د درېو کسانو مشترک وي، بيا له دوی څخه يو شريک مثلاً نقيب د خپلو ملګرو له اجازې او رضا څخه بغير په دې کور کي څاه وکيندي يا دېوال پکښې جوړ کړي او بيا هغه څاه ته يو څوک ولوېږي يا د دېوال په وجه يو څوک مړ سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر نقيب (حافر او باني) د مقتول کس د ديت دوه ثلثه واجبېږي چي هغه به د نقيب عاقله اداء کوي؛ ځکه نقيب (حافر او باني) صرف د خپلي حصې مالک دی او د خپلو ملګرو شريکانو د حصو مالک نه دی، نو ګواکي هغه د دوی په حق کي تعدی کړې ده، نو ځکه د دوی د حصو به هم ضامن وي.

لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي په دواړو صورتونو کي پر هغه (نقيب) نيم ديت واجبېږي برابره ده هغه څاه کنېلی وي او که يې دېوال جوړ کړی وي او بيا د دې په وجه يو څوک مړ سوی وي.

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل (الدر المختار ج:۵، ص:۴۲۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۵۸]

د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې په مذکوره مسئله کې چې پر کوم چا إشهاد سوی دی. د هغهٔ په حصې سره هلاکېدل معتبر دي او پر چا چې إشهاد نه دی پېښ سوی، د هغه د په حصې سره هلاکېدل معتبر نه دي او ځرنګه چې دلته پر همغهٔ کس إشهاد سوی دی کوم چې د ځاه کښلو یا د ډوال جوړولو تصرّف کړی دی، نو دلته دوه فریقه سول: ① پر چا چې إشهاد سوی دی، ② او بل هغه چې د هغه په حق کې إشهاد نه دی سوی، نو ځکه د مقتول دیت به هم پر دوو حصو تقسیمېږي او پر چا چې إشهاد سوی دی پر هغه به نیم دیت واجبېږي.

د دې مثال داسې دی لکه زمری چې یو سړی زخمي کړي، بیا یو مار هم هغه سړی وچیچي او بیا یو انسان هم هغه زخمي کړي او د دې ټولو زخمونو په وجه هغه مړ سي، نو په دې صورت کې پر جارح انسان نیم دیت واجبېږي (ځکه د زمري او مار فعل له یوه جنسه شمېرل سوي دي [لکه مخکې چې ذکر سوه]، نو یو فعل د دوی سو، او یو فعل د انسان سو، نو ځکه دیت پر دوو حصو تقسیمېږي او پر جارح انسان نیم دیت واجبېږي)، نو همدغسې په مذکوره مسئله کې به هم د مقتول دیت پر دوو حصو تقسیمېږي او پر هغه (حافر او باني) به نیم دیت واجبېږي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل

وَلَهُ: أَنَّ الْمَوْتَ حَصَلَ بِعِلَّةٍ وَاحِدَةٍ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې [دلته] مرګ په یوه علت سره حاصل سوی دی وَهُوَ الثِّقَلُ الْمُقَدَّرُ وَالْعُمْقُ الْمُقَدَّرُ او هغه مُقدّر [مُتعیّن] درونډ والی او مقدّر ژور والی دی لِأَنَّ أَصْلَ ذٰلِكَ لَيْسَ بِعِلَّةٍ ځکه چې اصل ثقل او عمق علت نه دی وَهُوَ الْقَلِيْلُ او هغه قلیل دی حَتّٰى يُعْتَبَرَ كُلُّ جُزْءٍ عِلَّةً تر دې چې هر جزء به [جلا] علت شمېرل کیږي فَتَجْتَمِعُ الْعِلَلُ نو څو علتونه به سره جمع سي وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ او کله چې خبره داسې ده يُضَافُ إِلَى الْعِلَّةِ الْوَاحِدَةِ نو مرګ به د یوه علت طرف ته منسوب کیږي ثُمَّ تُقْسَمُ عَلٰى أَرْبَابِهَا بِقَدْرِ الْمِلْكِ بیا به دا یو علت پر اصحابِ علت [شریکانو] باندې د ملکیت په اندازه تقسیمول کیږي بِخِلَافِ الْجِرَاحَاتِ په خِلاف د څو زخمونو فَإِنَّ كُلَّ جِرَاحَةٍ عِلَّةٌ لِلتَّلَفِ بِنَفْسِهَا ځکه هر زخم بذاتِ خود د تلف علت دی صَغُرَتْ أَوْ كَبُرَتْ برابره ده هغه کوچنی وي او که غټ وي عَلٰى مَا عُرِفَ لکه ځرنګه چې دا

پېژندل سوې ده إِلَّا أَنَّ عِنْدَ الْمُزَاحِمَةِ أُضِيفَ إِلَى الْكُلِّ خو د مزاحمت په وخت کي به مرګ د ټولو [زخمونو] وطرف ته منسوب کيږي لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ د اولیٰ والي د نشتوالي په وجه.

**اللغات**: ﴿الثقل﴾ درونه والی، د وزن زیاتوالی، ﴿مُقدّر﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: اندازه کړی سوی، متعين، ﴿أرباب﴾ جمع د رَبٌ ده، د دې لفظ يوه معنیٰ ده: خاوند، ﴿مزاحمة﴾ د مفاعلې له بابه اسم مصدر دی، زَاحَمَ يُزَاحِمُ: يو د بل مقابل کېدل (ديوه په مقابله کي بل موجودېدل)، ټکراؤ، ﴿أولوية﴾ د الف په فتحه سره له "أَوْلٰی" څخه مشتق دی، معنیٰ یې ده: غوره والی، افضليت، ترجيح، او أُوْلِيَّة د الف په ضمه سره له "أُوْلٰی" څخه مشتق دی، معنیٰ یې ده: اول والی، مخکني والی.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي د څاه او دېوال په دواړو صورتونو کي د مقتول کس مرګ صرف په يوه علت سره واقع سوی دی يعني د دېوال مخصوص درونوالی کوم چي مُهلک (هلاکونکی) وي او د څاه مخصوص (مُهلک) ژور والی، او نفس ثقل او عُمق د مرګ علت نه دي؛ ځکه هغه مقدار قليل دی او په مقدار قيل سره مرګ نه واقع کيږي، لهذا اصل ثقل او عُمق به د مرګ علت نه ګرځول کيږي کنې ډېر علتونه به سره جمع سي، نو ځکه د مرګ علت به صرف يو وي او بيا د دريو سره شريکانو د ملکيت په حساب سره به دا علت پر ټولو تقسيمول کيږي، او څرنګه چي په مخکني مسئله کي د شريکانو شمېر (تعداد) پنځه دی او له دوی څخه مُشهَد عليه يو دی، نو ځکه هلته پر هغه د ديت يو خمس (پنځمه حصه) واجب سوې ده، او څرنګه چي په دې مذکوره مسئله کي د شريکانو شمېر درې دی او حافر (نقيب) د خپلو دوو شريکانو په حق کي تعدی کړې ده، نو ځکه پر هغه به د ديت له مجموعې (يعني له دريو ثلثو) څخه دوه ثلثه واجبيږي.

بخلاف الجراحات إلخ: له دې ځايه د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قياس جواب ورکول سوی دی، حاصل یې دا دی چي مذکوره مسئله د جراحت پر مسئلې قياسول صحيح نه دي؛ ځکه د جراحت په صورت کي د زمري، مار او انسان هر يوه زخم او فعل بذات خود د هلاکت يو مستقل علت دی برابره ده هغه غټ وي او که کوچنی وي، او څرنګه چي دلته يوه فعل لره هم تقدم او اولويت حاصل نه دی، نو ځکه د زمري، مار او انسان هر يوه وطرف ته به د سړي مرګ منسوب کيږي، ليکن څرنګه چي د زمري او مار فعل د ضمان موجب نه دی (او دواړه يو فعل شمېرل سوي دي)، نو ځکه موږ په دې مسئله کي مجبوراً د مقتول ضمان پر دوو حصو تقسيم کړی او پر انسان مو نيم ضمان واجب کړی. (احسن الهدايه)



# بَابُ جِنَايَةِ الْبَهِيْمَةِ وَالْجِنَايَةِ عَلَيْهَا

(دا) باب د چارپای د جنایت او پر هغه د جنایت کولو (په بیان کي) دی

**تشریح**: په دې باب کي دا بیانول کیږي چي که چارپای (مثلاً آس) چا ته یو نقصان ورسوي، یا بل څوک چارپای ته یو نقصان ورسوي، نو د دې څه حکم دی؟.

مخکي تر دې د لاري (طریق) بیان وو کوم چي له جماداتو څخه ده، او چارپای هم د عجز عن النطق او معدوم الفعل کېدلو په اعتبار د جماداتو سره ملحق دی، نو ځکه هغه یې له "باب ما یحدثه ني الطریق" څخه وروسته بیان کړی دی. (احسن الهدایه)

**که چارپای چا ته څه نقصان ورسوي نو د هغه د ضمان حکم**

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي] فرمایي الرَّاكِبُ ضَامِنٌ لِمَا أَوْطَأَتِ الدَّابَّةُ سپور کس ضامن دی د هغه څه کوم چي چارپای تر پښو لاندي کړی وی مَا أَصَابَتْ بِيَدِهَا أَوْ رِجْلِهَا [برابره ده] په لاس [یعني دمخ په پښو] سره یې کړی وي او که [د شا] په پښو سره [یعني برابره ده دمخ تر پښو یې لاندي کړی وي او که د شا تر پښو (لغتو)] أَوْ رَأْسِهَا یا په سر باندي [یې وهلی وي] أَوْ كَدَمَتْ یا یې په خوله سره چیچلی وي أَوْ خَبَطَتْ یا یې دمخ په پښه سره وهلی وي وَكَذَا إِذَا صَدَمَتْ او همدارنګه کله چي یې دیکه کړی وي وَلَا يَضْمَنُ مَا نَفَحَتْ بِرِجْلِهَا أَوْ ذَنَبِهَا او سپور کس نه ضامن کیږي د هغه څه کوم چي چارپای [د شا] د پښې [لغتي] په ښونګري سره یا په لکۍ سره وهلی وي وَالْأَصْلُ أَنَّ الْمُرُورَ فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ مُبَاحٌ مُقَيَّدٌ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ او قاعدهٔ کلیه دا ده چي د مسلمانانو په لاره کي تېرېدل داسي مباح [روا] دي کوم چي د سلامتۍ په شرط سره مقیّد دي لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِي حَقِّهِ مِنْ وَجْهٍ ځکه تېرېدونکی کس من وجه [په یوه اعتبار سره] په خپل حق کي تصرّف کوي وَفِي حَقِّ غَيْرِهِ مِنْ وَجْهٍ او من وجه د بل چا په حق کي تصرّف کوي لِكَوْنِهِ مُشْتَرَكًا بَيْنَ كُلِّ النَّاسِ ځکه لاره د ټولو خلکو تر مینځ مشترکه وي فَقُلْنَا بِالْإِبَاحَةِ مُقَيَّدًا بِمَا ذَكَرْنَا نو ځکه موږ [د تېرېدلو] د مباح والي

قائل سو په داسي حال کي چي دا [تېرېدل] به په هغه شي سره مقيّد وي کوم چي موږ ذکر کړی [يعني سلامتي. په لنډه وينا دا چي موږ په خپل ذکر سوي شرط (سلامتی) سره د هغه د اباحت قائل سو] لِيَعْتَدِلَ النَّظَرُ مِنَ الْجَانِبَيْنِ د دې لپاره چي له دواړو طرفونو څخه مصلحت برابر [او متحقق] سي.

**اللغات:** ﴿راكب﴾ د سمع له بابه فاعل دی: سپور. ﴿ضامن﴾ مخکنی صيغه ده: ذمه وار. پر چا چي ديو شي ضمان (تاوان) لازم سي. ﴿أوطأت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: پايماله کول، تر پښو لاندي کول. ﴿الدابة﴾ مراد: چارپای، څاروی. ﴿كدمت﴾ د نصر او ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: په خوله سره چيچل (داړل)، دآس، خره او داسي نورو څارويو لپاره استعماليږي. ﴿خبطت﴾ د ضرب له بابه مخکنی صيغه ده. د دې باب په صله کي چي يو چارپای ذکر سي نو معنیٰ يې ده: دمخ په پښه سره وهل. ﴿صدمت﴾ دا هم د ضرب له بابه مخکنی صيغه ده: د دې باب يوه معنیٰ ده: په زوره پوري وهل. ديکه ورکول. دفع کول. ﴿نفحت﴾ د فتح له بابه مخکنی صيغه ده. د دې باب په صله کي چي يو چارپای ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: لغته غورځول او په ښونګري سره وهل. د ښونګري په طرف سره وهل. ﴿ذَنَب﴾ (بفتح النون): لکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک مثلاً پر خپل آس يا خره باندي سپور وي روان وي او هغه يو چا ته څه نقصان ورسوي، مثلاً دمخ تر پښو يې لاندي کړي يا د شا تر پښو (لغتو) يې لاندي کړي يا چا ته ديکه (تېله) ورکړي يا يې په سر ووهي، نو په دې ټولو صوتونو کي سپور کس (راکب) ضامن کيږي. خو که چارپای په خپل ښونګري يا لکۍ سره يو څوک زخمي کړي، نو په دې صورت پر سپاره کس ضمان نه واجبيږي.

والأصل إلخ: فرمايي په دې هکله قاعدهٔ کليه دا ده چي لاره د عامو مسلمانانو حق ده چي په هغې کي د هر يوه لپاره تېرېدل مباح دي، خو دا اباحت مطلق نه دی بلکي د سلامتی په شرط سره مقيّد دی؛ او د دغه تقييد وجه دا ده چي په لاره کي تېرېدونکی کس من وجه په خپل حق کي تصرّف کوي ځکه هغه ته په لاره کي د تېرېدلو حق حاصل دی او من وجه هغه د نورو په حق کي تصرّف کوي ځکه نورو ته هم په دې لاره کي د تېرېدلو حق سته، نو ځکه موږ د دواړو طرفونو رعايت وکړی او داموو وويل چي تېرېدل مباح خو دي لېکن د سلامتی په شرط سره مقيد هم دي، د دې لپاره چي د دواړو په حق کي مصلحت او شفقت متحقق سي.

## د سلامتۍ په شرط سره هغه څه مقيد دي چې له هغه څخه بچ کېدل ممکن وي

ثُمَّ إِنَّمَا يَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ فِيمَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ بيا تېرېدل [مُرور] د سلامتۍ په شرط سره په هغه شيانو کې مقيد دي چې له هغوی څخه ځان ساتل ممکن وي وَلَا يَتَقَيَّدُ بِهَا فِيمَا لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ او تېرېدل د سلامتۍ په شرط سره مقيد نه دي په هغه شيانو کې چې له هغوی څخه ځان ساتل [بچ کېدل] ممکن نه وي لِمَا فِيهِ مِنَ الْمَنْعِ عَنِ التَّصَرُّفِ وَسَدِّ بَابِهِ ځکه چې په دې [مقيد کېدلو] کې له تصرف څخه منع کول او د تصرف د دروازې بندول ستم وَهُوَ مَفْتُوحٌ ځکه چې هغه [د تصرف] دروازه خلاصه ده وَالِاحْتِرَازُ عَنِ الْإِيطَاءِ وَمَا يُضَاهِيهِ مُمْكِنٌ او له پايماله کولو او داسې نورو څخه ځان ساتل ممکن دي فَإِنَّهُ لَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِ التَّسْيِيرِ ځکه چې هغه [د چارپايي] د بېولو له ضروریاتو څخه نه دي فَقَيَّدْنَاهُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ عَنْهُ نو ځکه موږ [د چارپايي] بېول له هغه څخه د سلامتۍ په شرط سره مقيد کړه وَالنَّفْحَةُ بِالرِّجْلِ وَالذَّنَبِ لَيْسَ يُمْكِنُهُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ مَعَ السَّيْرِ عَلَى الدَّابَّةِ او د لغتې په ښونګرې سره او په لکۍ سره وهل له هغوی څخه احتراز ممکن نه دی فَلَمْ يَتَقَيَّدْ بِهِ نو ځکه دا به په سلامتۍ سره مقيد نه وي.

**اللغات:** ﴿إحتراز﴾ د افتعال د باب مصدر دی: بچ کېدل، ځان ساتل، ډډه کول، حفاظت او بچاو. ﴿تحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: دا هم د احتراز په معنیٰ سره دی، ﴿إيطاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پايماله کول، تر پښو لاندې کول، ﴿يضاهيه﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مشابه کېدل. ورته کېدل، ﴿سَيْر﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تګ کول (تلل) چلېدل، روانېدل. ﴿تسيير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بېول، روانول، چلول. ﴿النفحة﴾ (د ښا) په ښونګرې سره وهل، په لغته وهل. ﴿الرِّجْل﴾ د چارپايي د ښا پښه، لغته.

**تشريح:** مخکې چې په لاره کې د تېرېدلو اباحت د سلامتۍ په شرط سره مقيد کړی شوی دی. دا شرط په همغه شيانو کې جاري کېږي چې له هغوی څخه احتراز او بچ کېدل ممکن وي لکه تر پښو لاندې کول، په خوله سره چيچل او ديکه ور کول (ځکه له دې ټولو شيانو څخه د چارپايي راګرځول د راکب په وس کې دي). او له کومو شيانو څخه چې احتراز او بچ کېدل ممکن نه وي، په هغوی کې دا شرط نشته لکه د ښا په پښو (لغتو) يا په لکۍ سره وهل؛ ځکه که موږ په غير ممکن الاحتراز شيانو کې د

سلامتۍ شرط ولګوو، نو د هغه په وجه به تېرېدونکي کسان په خپل حق کي تصرّف (يعني په لاره کي تېرېدل) نه سي کولای او د تصرّف د دروازې بندول به لازم سي، حال دا چي د تصرّف (تېرېدلو) دروازه د همېشه لپاره خلاصه ده، نو ځکه په ناممکن احتراز شيانو کي به دا شرط نه جاري کيږي.

د دې په خلاف له کومو شيانو څخه چي احتراز او بچ کېدل ممکن دي، هغوی ځکه د سلامتۍ په شرط سره مقيّد کړل سوي دي چي هغوی يعني تر پښو لاندي کول يا چيچيل يا ديکه ورکول د چارپای د بېولو او تللو د لوازماتو څخه نه دي چي له هغوی څخه بغير دي د چارپای تلل او بېول ناممکن وي؛ ځکه له دې شيانو څخه بغير هم چارپای بېول کېدلای سي او عموماً همداسي کيږي، نو ځکه په دوی کي بېول (او تېرېدل) د سلامتۍ په شرط سره مقيّد کړل سوي دي. (احسن الهدايه)

## په لاره کي د چارپای د لغتي غورځولو او نقصان رسولو حکم

| |
|---|
| وَإِنْ أَوْقَفَهَا فِي الطَّرِيْقِ بيا که هغه [راکب] چارپای په لاره کي ودروي ضَمِنَ النَّفْحَةَ أَيْضًا نو هغه د شونګري د وهلو [لغتي غورځولو] هم ضامن کيږي لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنِ الْإِيْقَافِ ځکه چي هغه لره احتراز [ځان ساتل] ممکن دي [په لاره کي د ځاروي] له درولو څخه وَإِنْ لَمْ يُمْكِنْهُ عَنِ النَّفْحَةِ که څه هم د شونګري له وهلو [لغتي غورځولو] څخه هغه لره احتراز ممکن نه دی فَصَارَ مُتَعَدِّيًا فِي الْإِيْقَافِ وَشَغْلِ الطَّرِيْقِ بِهِ نو هغه [په لاره کي د ځاروي] په درولو او د لاري په مشغولو سره تعدی کونکی سو فَيَضْمَنُهُ نو ځکه راکب به د هغه ضامن کيږي. |

**اللغات:** ﴿أوقف﴾ د افعال د باب ماضي ده، أَوْقَفَ يُوْقِفُ إِيْقَافًا: درول، ايسارول. ﴿النفحة﴾ (د شا) په شونګري سره وهل، په لغته وهل، يا په بله وينا (د شا) لغته غورځول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د تګ په حالت کي د چارپای (سپارلي) د لغتي غورځولو څخه احتراز او بچ کېدل ممکن نه دي (يعني د راکب په وس او اختيار کي نه دي چي چارپای د تللو په حالت کي د لغتي غورځولو څخه منع کړي)، لهذا که هغه د تګ په حالت کي څوک په لغته او شونګري سره ووهي او هغه ته نقصان ورسوي، نو پر مالک (راکب) د هغه ضمان نسته. لېکن که مالک چارپای په لاره کي ودروي او بيا هغه يو څوک په لغته ووهي او هغه ته نقصان ورسوي، نو په دې صورت کي مالک د هغه ضامن کيږي؛ ځکه په لاره کي د چارپای له درولو څخه د مالک بچ کېدل ممکن دي (او د هغه په وس کي دي) په دې توګه چي چارپای د لاري څخه ګوښه ودروي، نو په لاره کي د چارپای د درولو او د لاري نيولو په وجه هغه متعدي سو، نو ځکه هغه به د چارپای د جنايت ضامن وي. (احسن الهدايه)

## که د چارپای څغلولو په وجه شګي وغیره را وغورځیږي
## او چا ته نقصان ورسوي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِنْ أَصَابَتْ بِيَدِهَا أَوْ بِرِجْلِهَا حَصَاةً أَوْ نَوَاةً فرمایي: او که چارپای د مخ په پښي یا د شا په پښې سره شګي یا تاکی راوغورځوي أَوْ أَثَارَتْ غُبَارًا أَوْ حَجَرًا صَغِيْرًا یا ګرز [دوړه] یا کوچنۍ ډبره راپورته کړي فَفَقَأَ عَيْنَ إِنْسَانٍ او هغه دیو انسان سترګه وباسي أَوْ أَفْسَدَ ثَوْبَهُ یا د هغه کپړه ورخرابه کړي لَمْ يَضْمَنْ نو راکب نه ضامن کیږي وَإِنْ كَانَ حَجَرًا كَبِيْرًا او که لویه ډبره وي ضَمِنَ نو ضامن کیږي لِأَنَّهُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ ځکه په اول صورت کي احتراز له هغه څخه ممکن نه دی إِذْ سَيْرُ الدَّوَابِّ لَا يَعْرَى عَنْهُ ځکه د چارپایانو تګ له دې څخه خالي نه وي وَفِي الثَّانِي مُمْكِنٌ او په دویم صورت کي احتراز ممکن دی لِأَنَّهُ يَنْفَكُّ عَنِ السَّيْرِ عَادَةً ځکه چي دا [یعني لویه ډبره غورځول] عادتاً [د څارویو] له تګ څخه خالي وي وَإِنَّمَا ذٰلِكَ بِتَعْنِيْفِ الرَّاكِبِ او دا [لویه ډبره غورځول] صرف د سپور کس د سختي کولو په وجه وي [یعني کله چي راکب چارپای ته سخت وهل او سخت حرکت ورکړي] وَالْمُرْتَدِفُ فِيْمَا ذَكَرْنَا كَالرَّاكِبِ او تر شا سپور کس په هغه احکامو کي کوم چي موږ ذکر کړل د سپاره کس په څېر دی لِأَنَّ الْمَعْنٰى لَا يَخْتَلِفُ ځکه چي معنیٰ [سبب] مختلف نه دی.

**اللغات**: ﴿الدواب﴾ جمع د دَابَّةٌ ده، مراد: چارپایان، څارویان. ﴿ینفك﴾ د انفعال د اب مضارع ده: جلا کېدل، علیحده کېدل. ﴿تعنیف﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: زور او سختي کول، په سختي سره نیول. ﴿مرتدف﴾ ردیف، شا ته سپور کس (کوم چي پر چارپای وغیره د راکب شا ته ناست وي)، یا په بله وینا دویم راکب.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي یو سړي خپل چارپای مثلاً آس په لاره کي تېز روان کړی دی او د هغه د څغلولو په وجه شګي او کوچنۍ ډبري وغیره یوې او بلې خوا ته سره غورځي او بیا هغه پر یو چا ولګیږي او نقصان ور ورسوي، نو په راکب باندي ضمان نسته، که څه هم په هغه سره د یو چا سترګه ووځي، ځکه د چارپای څغلولو په وجه عموماً دا شیان غورځي او د خلکو پر بدن او کپړو باندي لګیږي، لهذا دا د غیرِ ممکن الاحتراز شیانو په فهرس کي داخل سول. او ښکاره خبره ده چي

که د غیر ممکن الاحتراز شي په وجه یو چا ته نقصان ورسیږي، نو په راکب باندي د هغه ضمان نشته، لهذا په مذکوره مسئله کي به هم په راکب باندي ضمان واجب نه وي.

ها! که لویه ډبره په هوا سي او یو چا ته نقصان ورسوي، نو په دې صورت کي ضمان واجبیږي؛ ځکه له دې څخه احتراز او بچ کېدل ممکن دي ځکه د چارپای (آس) د څغلولو په وجه عموماً غټې ډبري نه غورځي بلکي راکب چي کله پر چارپای سختي وکړي او هغه بار، بار وچوخوي، نو بیا د هغه د ډېري تیزۍ او پښو غورځولو په وجه سنګیني ډبري هم غورځي، لهذا دلته د راکب له طرفه تعدی او زیاتوب واقع سو، نو ځکه په دې صورت کي راکب ضامن کیږي.

والمرتدف فیما ذکرنا إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي پر راکب د ضمان واجبېدلو او نه واجبېدلو کوم صورتونه چي موږ بیان کړل، په هغوی ټولو کي ردیف یعني د راکب شا ته سپرېدونکی کس د راکب په حکم کي دی. نو که پر سپارلي (آس) دوه کسان سپاره وي، نو پر دواړو ضمان واجبیږي؛ ځکه سپارلي د دواړو په تصرّف کي ده او په دې هکله راکب او ردیف دواړه متحد المعنیٰ دي. (اشرف الهدایه احسن الهدایه)

## د چارپای د خرشینو یا بولو په وجه یو چا ته د نقصان رسېدلو حکم

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي فَإِنْ رَاثَتْ أَوْ بَالَتْ فِي الطَّرِيقِ وَهِيَ تَسِيرُ او که چارپای خرشینه وکړي یا بولي وکړي په داسي حال کي چي هغه روان وي فَعَطِبَ بِهِ إِنْسَانٌ بیا د هغه په وجه یو انسان هلاک سي لَمْ يَضْمَنْ نو هغه [راکب] نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ مِنْ ضَرُورَاتِ السَّيْرِ ځکه چي دا [د چارپای] د تګ له ضروریاتو [لوازماتو] څخه دي فَلَا يُمْكِنُهُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ نو له هغوی څخه ځان ساتل ممکن نه دي وَكَذَا إِذَا أَوْقَفَهَا لِذَلِكَ او همدارنګه کله چي هغه د دې کار [روث یا بول کولو] لپاره چارپای درولی وي لِأَنَّ مِنَ الدَّوَابِّ مَا لَا يَفْعَلُ ذَلِكَ إِلَّا بِالْإِيقَافِ ځکه بعضي چارپایان دا کار نه کوي مګر په درولو سره وَإِنْ أَوْقَفَهَا لِغَيْرِ ذَلِكَ او که له دې کار څخه بغیر د بل څه لپاره یې درولی وي فَعَطِبَ إِنْسَانٌ بِرَوْثِهَا أَوْ بَوْلِهَا بیا د هغه د خرشینو یا بولو په وجه یو انسان هلاک سي ضَمِنَ نو هغه [راکب] ضامن کیږي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي هَذَا الْإِيقَافِ ځکه چي هغه په دغه درولو کي تعدی کونکی دی لِأَنَّهُ لَيْسَ مِنْ ضَرُورَاتِ السَّيْرِ ځکه دا درول [د چارپای] د تګ له ضروریاتو څخه نه دي ثُمَّ هُوَ أَكْثَرُ ضَرَرًا بِالْمَارَّةِ مِنَ السَّيْرِ بیا دا درول د لارویانو لپاره [د چارپای] له تګ څخه زیات مضر دي لِمَا أَنَّهُ

أَدْوَمُ مِنْهُ ځکه چې درول له تګ څخه زيات دوامداره وي فَلَا يَلْحَقُ بِهِ نو ځکه درول [إيقاف] به د تګ [سير] سره نه لاحقيږي.

**اللغات:** ﴿راثت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: خرشينه او خوشايي کول. ﴿بالت﴾ مخکنى صيغه ده: بولي (متيازي) کول. ﴿تسير﴾ د ضرب له بابه مخکنى صيغه ده: تګ کول، چلېدل، روانېدل. ﴿أدوم﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات دوام والا، دوامداره، زيات پاتېدونکى.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى که په لاره کې چارپاى (مثلاً آس) د تګ په حالت کې بولي يا خرشينه وکړي او د هغه په وجه يو څوک ښوى او غوځار سي او بالآخره مړ سي. نو په دې صورت کې پر راکب ضمان نه واجبيږي؛ ځکه بولي او خرشينه کول د څارويانو د تګ له ضرورياتو څخه دي او له هغه څخه بچ کېدل ناممکن دي. او د غيرِ ممکن الاحتراز شي په وجه ضمان نه واجبيږي.

وكذا إذا إلخ: فرمايي که راکب د بولو وغيره لپاره چارپاى په لاره کې ودروي او بيا د هغه په وجه يو څوک مړ سي، نو په دې صورت کې هم پر راکب ضمان نه واجبيږي؛ ځکه چې دلته هم راکب د ضرورت پر بناء چارپاى درولى دى؛ ځکه بعضي څارويان له درولو څخه بغير بولي او خرشينه نه کوي؛ لهذا دلته چې کوم إيقاف دى، هغه د ضرورت پر بناء دى او راکب په هغه کې متعدي نه دى، فلا يضمن.

ها! که له دې شيانو څخه بغير راکب هسې په لاره کې چارپاى ودروي او هغه بولي يا خرشينه وکړي بيا د هغه په وجه يو څوک مړ سي، نو په دې صورت کې ضامن کيږي؛ ځکه چې دلته هغه په إيقاف کې متعدي دى؛ ځکه بلا وجه په لاره کې چارپاى درول د سَير له ضرورياتو څخه نه دي. او بل دا چې دغه درول د لارويانو لپاره د سَير په نسبت زيات مُضر دي؛ ځکه په لاره کې د چارپاى په بېولو او تللو سره د لارويانو دومره وخت نه ضايع کيږي څومره چې د هغه په درولو سره ضايع کيږي؛ ځکه چې په سَير کې دومره دوام او درنګ نه وي څومره چې په وقوف کې وي چې د هغه په وجه لاره هم بندېدلاى سي، نو ځکه إيقاف ته به د سَير درجه نه ورکول کيږي بلکې إيقاف به مضمون او سَير به غيرِ مضمون ګرځول کيږي. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

## سائق او قائد کله ضامن کيږي؟

وَالسَّائِقُ ضَامِنٌ لِمَا أَصَابَتْ بِيَدِهَا أَوْ رِجْلِهَا او [د شالخوا] د چارپای شړونکی [بیونکی] ضامن دی د هغه څه [تاوان] کوم چي چارپای د مخ یا د شا په پښې سره رسولی وي وَالْقَائِدُ ضَامِنٌ لِمَا أَصَابَتْ بِيَدِهَا دُوْنَ رِجْلِهَا او [دمخ لخوا] د چارپای کشونکی ضامن دی د هغه څه کوم چي چارپای د مخ په پښې سره رسولی وي، نه د شا په پښې سره وَالْمُرَادُ النَّفْحَةُ او مراد [له اصابة باليد او بالرجل څخه] په ښونګري سره وهل دي قَالَ ﷺ: هَكَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ فِي مُخْتَصَرِهِ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي: چي امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل مختصر کي همداسي ذکر کړي دي وَإِلَيْهِ مَالَ بَعْضُ الْمَشَايِخِ او همدې طرف ته بعضي مشایخو میلان کړی دی وَوَجْهُهُ أَنَّ النَّفْحَةَ بِمَرْأَى عَيْنِ السَّائِقِ او د دې وجه دا ده چي نفحه د سائق د سترګو مخته وي فَيُمْكِنُهُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ نو سائق لره له هغه څخه احتراز ممکن دی وَغَائِبٌ عَنْ بَصَرِ الْقَائِدِ [لېکن] د قائد له سترګو څخه [نفحه] غائب وي فَلَا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو قائد لره له هغه څخه احتراز ممکن نه دی.

**اللغات:** ﴿السائق﴾ د نصر له بابه فاعل دی: شړونکی (هشه کونکی). یعني هغه کس چي د شا له طرفه چارپای شړي چي هغه بوځي، د شا له طرفه پر تګ پارونکی او بیونکی، ﴿القائد﴾ مخکنی صیغه ده: کشونکی، لاربښوونکی، یعني کوم چي د مخ له طرفه چارپای کشوي چي هغه بوځي. ﴿النفحة﴾ د پښې (لغتي) په ښونګري سره وهل، یا په بله وینا په لغتي سره وهل. ﴿مرأى﴾ د رَأَىٰ يَرَىٰ (فتح) له بابه مصدر میمي دی: لیدنه، اسم ظرف: دلیدلو ځای.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که څوک سائق وي یعني د شا له طرفه چارپای شړي بیا دا چارپای د شا یا د مخ په پښو سره چا ته نقصان ورسوي، نو سائق ضامن کیږي، ځکه چي سائق د شا له طرفه په چارپای پسې وي او د چارپای د مخ او شا دواړي پښې هغه ویني، نو د سائق لپاره د هغوی له جنایت څخه احتراز او بچ کېدل ممکن دي. د دې په خلاف که څوک قائد وي یعني د مخ لخوا چارپای کشوي، نو په دې صورت کي هغه د شاتنی پښو د جنایت نه ضامن کیږي یعني که چارپای د شا لغته وغورځوي او یو څوک مړ یا زخمي کړي نو پر قائد د هغه ضمان (تاوان) نه لازمیږي.

بلکي هغه صرف د مخکينيو پښو د جنايت ضامن کيږي؛ ځکه د چارپاي شاتنۍ پښې د قائد له ستر ګو نيامي وي او هغه يې نه ويني، نو د قائد لپاره د هغوی له جنايت څخه احتراز ممکن نه دی.

والمراد النفحة إلخ: فرمايي چې دلته له "بيدها أو رجلها" څخه مراد تر پښو لاندې کول نه دي بلکي مراد يې په ښونګرې وهل يا په بله وينا په لغته وهل دي؛ ځکه تر پښو لاندې کولو (پايماله کولو) په صورت کي قائد او سائق دواړه بالاتفاق د هر طرف د پښو د جنايت ضامن کيږي.

هکذا ذکر إلخ: فرمايي چې دا مسئله امام قدوري رَحِمَهُ الله په خپل مختصر کي همداسي بيان کړې ده، او د بعضي مشايخو (مشايخ عراق) ميلان هم دې طرف ته دی. (احسن الهدايه)

**په شونګرې سوه د وهلو (لغتي غورځولو) د ضمان په هکله د مشايخو رايه**

وَقَالَ أَكْثَرُ الْمَشَايِخِ او زياتره مشايخو ويلي دي إِنَّ السَّائِقَ لَا يَضْمَنُ النَّفْحَةَ أَيْضًا چې سائق د نفحه نه ضامن کيږي [يعني پر سائق هم د شاتنۍ پښې د شونګر وهلو (لغتي غورځولو) ضمان نه واجبيږي] وَإِنْ كَانَ يَرَاهَا که څه هم هغه دا ويني إِذْ لَيْسَ عَلَى رِجْلِهَا مَا يَمْنَعُهَا بِهِ ځکه د چارپاي پر پښه داسي څه نسته کوم چې چارپاي له [شونګر وهلو (لغتي غورځولو)] څخه منع کړي فَلَا يُمْكِنُهُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو ځکه له هغه څخه [هم] احتراز ممکن نه دی بِخِلَافِ الْكَدْمِ په خلاف په خوله سره د چيچلو [چې چارپاي يو شوک وچيچي، نو ضامن کيږي] لِإِمْكَانِهِ كَبْحَهَا بِلِجَامِهَا ځکه د چارپاي د قيزې په راکښلو سره له هغه څخه احتراز ممکن دی وَبِهَذَا يَنْطِقُ أَكْثَرُ النُّسَخِ او [د قدوري] اکثره نسخې په همدې سره ګويا دي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زياته صحيح ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَضْمَنُونَ النَّفْحَةَ كُلُّهُمْ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دوی ټول د نفحه ضامن کيږي لِأَنَّ فِعْلَهَا مُضَافٌ إِلَيْهِمْ ځکه د چارپاي فعل د دوی وطرف ته منسوب دی وَالْحُجَّةُ عَلَيْهِ مَا ذَكَرْنَاهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف حجت هغه دليل دی کوم چې موږ ذکر کړی وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «الرِّجْلُ جُبَارٌ» او د نبي ﷺ دا فرمان دی: چې پښه هدر ده وَمَعْنَاهُ النَّفْحَةُ بِالرِّجْلِ او د دې معنیٰ د پښې په ښونګرې سره وهل [په لغته وهل] دي وَانْتِقَالُ الْفِعْلِ بِتَخْوِيفِ الْقَتْلِ او د فعل منتقل کېدل د قتل په خوف [دمکي] ورکولو سره کيږي كَمَا فِي الْمُكْرَهِ لکه څرنګه چې په مُکرَه کي دي وَهَذَا تَخْوِيفٌ بِالضَّرْبِ او دا په وهلو سره خوف ورکول دي.

**اللغات**: ﴿النفحة﴾ په شونګري سره وهل يا په بله وينا په لغته وهل (دلته په شروع کي د شا لغته مراد ده). ﴿رِجْل﴾ د چارپاى د شا پښه. ﴿الكدم﴾ د نصر او ضرب له بابه مصدر دى: په خوله سره چیچل (داړل). د آس، خره او داسي نورو څارويو لپاره استعماليږي. ﴿كَبْح﴾ د فتح د باب مصدر دى: د چارپاى قيزه (لګام) راکښول. د چارپاى مخ په قيزه سره بلي خوا ته اړول. ﴿جُبَار﴾ (د جيم په ضمه سره): هدر، چي قصاص او ضمان پکښي نه وي. ضايع، معاف. ﴿تخويف﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: خوف او دمکي ورکول، بېرول (دارول).

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دى چي پر قائد او سائق د ضمان واجبېدلو په هکله چي مخکي کوم حکم بيان سو، هغه د بعضي مشايخو قول دى، کنې د زياتره مشايخو يعني د ما وراء النهر د مشايخو قول دا دى چي څرنګه پر قائد د نفحه (شاتنى شونګر وهلو) ضمان نسته، همداسي پر سائق هم نسته (يعني که څوک د مخ لخوا چارپاى کشوي او چارپاى د شا په لغتي او شونګري سره يو څوک ووهي. نو ښکاره ده چي پر دې قائد ضمان نه واجبيږي. نو همداسي پر سائق هم ضمان نه واجبيږي کوم چي د شا لخوا په چارپاى پسې وي):

ځکه سائق که څه هم د شا پښې خوويني لېکن څرنګه چي د چارپاى پښي ايله او خلاصي وي او په داسي شي سره تړل سوي نه وي چي د لغتي غورځولو څخه يې راوګرځوي، نو ځکه له هغه څخه هم تحرّز او بچ کېدل ممکن نه دي، او د غيرِ ممکن التحرّز شي ضمان پر چا نه لازميږي برابر ده سائق وي او که قائد وي.

ها! که چارپاى يو څوک وچیچي (يا په بله وينا په غاښو سره يې زخمي کړي)، نو په دې صورت پر قائد او سائق دواړو ضمان واجبيږي؛ ځکه له هغه څخه احتراز او بچ کېدل ممکن دي په دې توګه چي د چارپاى قيزه راکش کړل سي او مخ يې واړول سي. فرمايي چي د قدوري په زياتره نسخو کي همدغه حکم دى او اصح هم دا قول دى چي د قائد او سائق دواړو حکم يو دى.

وقال الشافعي إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د چارپاى د نفحه ضمان پر قائد او سائق ټولو باندي واجبيږي؛ ځکه د چارپاى دا فعل د هريوه وطرف ته منسوب او منتقل کيږي، لهذا د هغه ضمان به هم پر هريوه واجبيږي.

والحجة عليه إلخ: خو د امام شافعي رَحِمَهُ الله په خلاف زموږ بيان سوى دليل حجت دى يعني د چارپاى د شا پښې د قائد له ستر ګو څخه نيامي وي او هغه يې نه ويني، لهذا له هغه څخه احتراز ممکن نه دى، نو ځکه په دې صورت کي به ضمان نه واجبيږي. همدارنګه دا حديث هم د هغه په خلاف حجت دى چي "الرِّجْلُ جُبَارٌ" يعني که د پښې او لغتي په ذريعه څوک هلاک کړى سي نو د

هغه ضمان معاف دی، له دې څخه مراد په لغته او شونګرې سره وهل دي، ځکه تر پښو لاندې کولو (پايماله کولو) په صورت کې بالاتفاق ضمان واجبيږي.

وانتقال الفعل إلخ: او د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا وينا د چې د چارپای فعل د دوی وطرف ته منسوب او منتقل کيږي، دا هم د اُصول خلاف ده؛ ځکه فعل د تخويف کامل او دإکراه کامل په صورت کې منتقل کيږي (يا په بله وينا دا چې د يو شي فعل په هغه صورت کې بل چا ته منتقل کيږي کله چې هغه شی کاملاً وډارول سي او کاملاً مجبوره کړل سي يعني چې د قتل خوف او دمکي ورکول سي لکه د مُکرَه په صورت کې چې کيږي)، او دلته إکراه کامل نسته بلکې إکراه ناقص ده؛ ځکه قائد وغيره چارپای ته د قتل دمکي نه ده ورکړې بلکې دوهلو خوف او دمکي يې ورکړې ده کوم چې إکراه ناقص ده. نو ځکه د چارپای فعل به د دوی وطرف ته نه منسوب کيږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د کومو شيانو چې راکب ضامن کيږي، سائق او قائد هم د هغوی ضامن کيږي

قَالَ: وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ فرمايي: او په جامع صغير کې [ذکر سوي] دي وَكُلُّ شَيْءٍ ضَمِنَهُ الرَّاكِبُ او هر هغه شی چې سپور کس د هغه ضامن کيږي ضَمِنَهُ السَّائِقُ وَالْقَائِدُ سائق او قائد هم د هغه ضامن کيږي لِأَنَّهُمَا مُسَبِّبَانِ ځکه چې دوی دواړه [د هلاکت] سبب جوړېدونکي دي بِمُبَاشَرَتِهِمَا شَرْطَ التَّلَفِ د تلفېدلو [هلاکت] د شرط د کولو په وجه [چې دوی دواړه د شرط هلاک ترسره کونکي دي] وَهُوَ تَقْرِيْبُ الدَّابَّةِ إِلَى مَكَانِ الْجِنَايَةِ او هغه [د هلاکت شرط] چارپای د جنايت ځای ته نژدې کول دي فَيَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ فِيمَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ نو ځکه دا به په هغه شي کې د سلامتی په شرط سره مقيد وي چې له هغه څخه احتراز ممکن دی كَالرَّاكِبِ لکه سپور کس إِلَّا أَنَّ عَلَى الرَّاكِبِ الْكَفَّارَةَ فِيمَا أَوْطَأَتْهُ الدَّابَّةُ بِيَدِهَا أَوْ بِرِجْلِهَا خو پر راکب په هغه صورت کې کفاره سته چې چارپای يو څوک د مخ يا د شا په پښو سره پايماله کړي [تر پښو يې لاندې کړي] وَلَا كَفَّارَةَ عَلَيْهِمَا [لېکن] پر سائق او قائد کفاره نسته وَلَا عَلَى الرَّاكِبِ فِيمَا وَرَاءَ الْإِيطَاءِ او نه له پايماله کولو څخه ماسوا په بل صورت کې پر راکب کفاره سته لِأَنَّ الرَّاكِبَ مُبَاشِرٌ فِيهِ ځکه چې راکب په دې کې مباشر دی لِأَنَّ التَّلَفَ بِثِقَلِهِ ځکه تلفېدل [هلاکېدل] د راکب د بوج په وجه دي وَثِقَلُ الدَّابَّةِ تَبَعٌ لَهُ او د چارپای بوج د هغه تابع دی لِأَنَّ سَيْرَ الدَّابَّةِ مُضَافٌ إِلَيْهِ ځکه د چارپای تلل د راکب وطرف ته منسوب دي وَهِيَ

آلَةٌ لَهُ او چارپای د راکب آله ده وَهُمَا مُسَبِّبَانِ او قائد او سائق دواړه مسبب [د هلاکت سبب جوړېدونکي] دي لِأَنَّهُ لَا يَتَّصِلُ مِنْهُمَا إِلَى الْمَحَلِّ شَيْءٌ ځکه د دوی له جانبه تر محل پورې هیڅ شی متصل نه دی وَكَذَا الرَّاكِبُ فِي غَيْرِ الْإِيطَاءِ او همدا رنګه راکب [هم] له پایماله کولو څخه بغیر بل صورت کې مسبب دی وَالْكَفَّارَةُ حُكْمُ الْمُبَاشَرَةِ او کفاره د مباشرة حکم ده لَا حُكْمُ التَّسْبِيبِ د سبب جوړېدلو حکم نه ده وَكَذَا يَتَعَلَّقُ بِالْإِيطَاءِ فِي حَقِّ الرَّاكِبِ حِرْمَانُ الْمِيرَاثِ وَالْوَصِيَّةِ او همدارنګه له پایماله کولو سره متعلق کیږي د راکب په حق کې له میراث او وصیت څخه محرومېدل دُونَ السَّائِقِ وَالْقَائِدِ نه د سائق او قائد په حق کې لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْمُبَاشَرَةِ ځکه دا [له کفارې او وصیت څخه محرومېدل] د مباشرة سره خاص دي.

**اللغات:** ﴿مُسَبِّب﴾ د تفعیل د باب فاعل دی: سبب جوړېدونکی. ﴿مباشرتهما﴾ مُباشَرَة: د مفاعلې د باب مصدر دی: کول، یو کار خپله (بذات خود) کول. ﴿التلف﴾ د سمع له بابه مصدر دی: تلفېدل، ضایع کېدل، هلاکېدل. ﴿تقریب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ور نژدې کول.

**تشریح:** په جامع صغیر کې امام محمد رَحِمَهُ الله ویلي دي چې په کوم صورت کې پر راکب ضمان واجبیږي، هلته پر سائق و قائد هم ضمان واجبیږي (لهذا که د راکب سره مثلاً سائق هم روان وي او بیا چارپای یو شی هلاک کړي یا یو انسان هلاک کړي، نو پر راکب او سائق دواړو ضمان واجبیږي او دواړه به په ګډه دا ضمان اداء کوي، یوازې راکب به یې نه اداء کوي)؛ ځکه څرنګه چې راکب د هلاکت سبب دی، همداسې سائق و قائد هم د هلاکت سبب دي؛ ځکه د دوی له طرفه دا سبب موجود سوی دی چې دوی د جنایت محل ته چارپای نژدې کړی دی.

او پر مُسبب هغه وخت ضمان نه واجبیږي کله چې د هغه له طرفه تعدی نه وي او د تعدی په وخت کې واجبیږي، او دلته د هغه له طرفه تعدی سوې ده، نو ځکه د راکب په څېر پر هغه به هم ضمان واجب وي.

إلا أن على الراكب إلخ: د دې حاصل دا دی چې راکب او سائق و قائد خو په ضمان کې سره برابر دي. لېکن په بعضې احکامو کې یې فرق دی، او هغه دا چې د قتل پر مُباشر کفاره واجبیږي او د قتل پر مُسبِّب نه واجبیږي، لهذا که چارپای یو څوک تر پښو لاندې کړي او مړ یې کړي نو په دې صورت کې پر راکب کفاره واجبیږي لېکن پر سائق یا قائد نه واجبیږي؛ ځکه راکب مباشر دی او سائق یا

قائد مسبب دی: راکب ځکه مباشر دی چې د هاغه د بوج په وجه مقتول مړ سوی دی او د چارپای بوج د راکب د بوج تابع دی، او سائق و قائد ځکه مباشر نه دي چې د دوی او د مقتول کس تر مينځ هيڅ ډول اتصال نه دی راغلی، نو معلومه سوه چې دوی فقط د قتل سبب دي.

وكذا الراكب إلخ: يعني له پښنو لاندي کولو (ايطاء) څخه بغير په بل صورت کي چې ځرنګه راکب هم مباشر نه دی بلکې مسبب دی، نو ځکه هلته پر راکب هم کفاره نه واجبيږي (مثلاً که د چارپای د لغتې غورځولو په صورت کي يو څوک مړ سي نو دلته پر راکب هم ضمان نه واجبيږي؛ ځکه په دې صورت کي هغه مسبب دی او پر مسبب ضمان نه لازميږي).

والكفارة حكم إلخ: فرمايي چې کفاره د مباشرت حکم ده، نه د سبب يعني کفاره پر مباشر واجبيږي. نه پر مسبب، لهذا چيري چې راکب مباشر وي، صرف هلته کفاره پرې واجبيږي.

او د مباشر کېدلو په صورت کي راکب له ميراثه هم محروميږي او د وصيت استحقاق يې هم ختميږي (يعني که مقتول کس د هغه لپاره يو وصيت کړی وي، نو هغه وصيت د ده په حق کي نه نافذيږي)؛ ځکه مباشر ته خو نه ميراث حاصليږي او نه هغه د وصيت مستحق کيږي.

د دې په خلاف څوک چې مسبب وي، هغه ته ميراث هم حاصليږي او د وصيت هم حقداره کيږي، او مخکي ذکر سوه چې قائد و سائق مسبب دي، نو ځکه دوی ته به ميراث او وصيت دواړه حاصليږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د راکب او سائق په صورت کي ضمان پر کوم يوه لازميږي؟

وَلَوْ كَانَ رَاكِبٌ وَسَائِقٌ او که راکب او سائق [دواړه] وي قِيلَ: لَا يَضْمَنُ السَّائِقُ مَا أَوْطَأَتِ الدَّابَّةُ نو ويل سوي دي: چې سائق نه ضامن کيږي د هغه څه کوم چې چارپای تر پښنو لاندي کړي وي لِأَنَّ الرَّاكِبَ مُبَاشِرٌ فِيهِ ځکه په هغه کي راکب مباشر دی [يعني ګواکي هغه راکب تر پښنو لاندي کړي دي] لِمَا ذَكَرْنَاهُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَالسَّائِقُ مُسَبِّبٌ او سائق سبب جوړيدونکی دی وَالْإِضَافَةُ إِلَى الْمُبَاشِرِ أَوْلَى او د مباشر وطرف ته نسبت کول اولیٰ دي وَقِيلَ: الضَّمَانُ عَلَيْهِمَا او ويل سوي دي: چې پر دوی دواړو ضمان [واجب] دی لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ سَبَبُ الضَّمَانِ ځکه له دې څخه هر يو د ضمان سبب دی.

**اللغات:** ﴿مباشر﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: په خپله کار کونکی، بذات خود کونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک پر یو چارپای مثلاً پر اوښ سپور وي او د هغه سره سائق هم وي (یعني د شا لخوا بل څوک هم په پسې وي کوم چې دا اوښ د شړلو او بېولو کار کوي)، بیا دا اوښ یو څوک تر پښو لاندې کړي او هغه مړ سي، نو په دې صورت کې د ضمان واجبېدلو په هکله دوه قوله دي: ① یو دا چې دلته صرف پر راکب ضمان واجب دی؛ ځکه مباشر هغه دی په دې توګه چې صرف د هاغه په بوج سره مقتول مړ سوی دی، نه د سائق، ② دویم قول دا دی چې پر دواړو ضمان واجب دی؛ ځکه رکوب او سَوق (یعني پر چارپای سپرېدل او چارپای د شا لخوا شړل او بېول) دواړه د ضمان سبب ذي یا په بله وینا دا چې راکب او سائق دواړه جنایتکاره دي، لهذا ضمان به هم پر دواړو واجب وي.

**که دوه شاهسواران سره وجنګیږي او دواړه مړه سي نو د ضمان حکم**

قَالَ: وَإِذَا اصْطَدَمَ فَارِسَانِ فرمايي: او کله چې دوه شهسواران [آس سواران] سره ټکر سي فَمَاتَا بیا دواړه مړ سي فَعَلىٰ عَاقِلَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا دِيَةُ الْآخَرِ نو له دوی دواړو څخه د هر یوه پر عاقله د بل تو له دیت [واجب] دی وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي يَجِبُ عَلىٰ عَاقِلَةِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُ دِيَةِ الْآخَرِ چې له دوی څخه د هر یوه پر عاقله د بل نیم دیت واجب دی لِمَا رُوِيَ ذٰلِكَ عَنْ عَلِيٍّ رضي الله عنه په دې وجه چې دا له حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت سوي دي وَلِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَاتَ بِفِعْلِهِ وَفِعْلِ صَاحِبِهِ او ځکه چې له دوی څخه هر یو په خپل فعل او د خپل ملګري په فعل سره مړ سوی دی لِأَنَّهُ بِصَدْمَتِهِ آلَمَ نَفْسَهُ وَصَاحِبَهُ ځکه چې دوی هر یوه په خپل ټکر سره خپل ځان او خپل ملګری [دواړه] دردولي دي فَيُهْدَرُ نِصْفُهُ وَيُعْتَبَرُ نِصْفُهُ نو د هغه نصف به هدر [او معاف] وي او نصف به یې معتبر وي كَمَا إِذَا كَانَ الِاصْطِدَامُ عَمْدًا لکه کله چې دا ټکر کېدل عمداً وي أَوْ جَرَحَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نَفْسَهُ وَصَاحِبَهُ جِرَاحَةً یا [لکه] له دوی څخه هر یوه خپل ځان او خپل ملګری زخمي کړی وي أَوْ حَفَرَا عَلىٰ قَارِعَةِ الطَّرِيقِ بِئْرًا یا [لکه] دوی د لاري پر مینځ څاه کیندلی وي فَانْهَارَ عَلَيْهِمَا او هغه پر دواړو رانړېدلی وي يَجِبُ عَلىٰ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا النِّصْفُ نو له دوی څخه پر هر یوه نصف [نیم دیت] واجبیږي فَكَذَا هٰذَا نو همداسي به دا هم وي [یعني همداسي به په مذکوره مسئله کي هم نیم دیت واجبیږي].

**اللغات**: ﴿اصطدم﴾ دافتعال دباب مصدر دی: ټکر کېدل. سره جنګېدل. ﴿فارسان﴾ تثنيه د فَارِسْ ده: پر آس سپور. شهسوار (شاهسوار). ﴿صدمة﴾ ټکر کېدل. ﴿آلم﴾ دافعال دباب ماضي ده: دردول. درد او تکليف رسول. ﴿يهدر﴾ دنصر او ضرب له بابه دمضارع مجهولي صيغه ده: ضايع کېدل. بربادېدل. باطلېدل. دَمُهٗ هَدر: "دهغه خون ضايع سو "بدله يې چانه واخيستل"، "دهغه وينه معاف ده". ﴿قارعة الطريق﴾ په اصل کي دلاري او سړک هغه حصې ته وايي چي زياتره تګ پر هغه کيږي. او په لغت کي يې دوې معناوي نقل سوي دي: ① دلاري مينځ. ② دلاري لوړ طرف. دلاري رَک سر. ﴿انهار﴾ دانفعال دباب ماضي ده: ړا نوېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي دوه کسان مثلاً خالد او نقيب دواړه پر آسونو سپاره دي او د دری آسونه خطاءً يو دبل سره ټکر سول (سره وجنګېدل) او دوی دواړه مړه سول. نو زموږ په نېز حکم دا دی چي د خالد عاقله به دنقيب پوره ديت اداء کوي او دنقيب عاقله به دخالد پوره ديت اداء کوي.

د دې په خلاف دامام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي دخالد او نقيب پر عاقله وو نيم، نيم ديت واجبيږي، يعني يو به دبل نيم ديت اداء کوي.

د دې حضراتو نقلي دليل دا دی چي حضرت علي رضي الله عنه په داسي معامله کي د دواړو پر عاقله وو دنيم ديت فيصله کړې وه، کوم چي د دې خبري څرګند دليل دی چي په دې مسئله کي پر عاقله وو نيم، نيم ديت واجبيږي.

د دوی عقلي دليل دا دی چي دلته دهرفارس (شهسوار) په مرګ کي دهغه فعل لره هم دخل سته او دهغه دملګري فعل لره هم دخل سته؛ ځکه دهريوه په ټکرسره چي څرنګه بل يوه ته نقصان رسېدلی دی، همداسي خپله هغه ته هم نقصان رسېدلی دی (ګواکي دهريوه په مرګ کي دبل يوه نيم فعل لره دخل سته)، نو ځکه نيم ضمان هدر او معاف ګرځي او نيم باقي پاتيږي چي هغه به دهريوه عاقله اداء کوي.

① د دې مثال داسي دی لکه دغه ټکر چي دخطاءً پر ځای عمداً واقع سوی وي، نو په دې صورت کي بالاتفاق پر دوی نيم، نيم ديت واجبيږي. ② يا مثلاً که دواړو يو بل زخمي کړی وي او په دې وجه دواړه مړه سوي وي، نو دلته هم زموږ په نېز دهريوه پر عاقله وو نيم، نيم ديت واجبيږي. ③ يا مثلاً دواړه په عامه لاره کي څاه کاږي، بيا هغه پر دوی را ولوېږي چي دهغه په وجه دواړه مړه سي، نو دلته هم پر هريوه نيم، نيم ديت واجبيږي.

خلاصه دا چي څرنګه په دې دريو مثالو کي پر دواړو نيم، نيم ديت واجبيږي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي به هم پر دوی نيم، نيم ديت واجبيږي. (احسن الهدايه)

## د احنافو دليل

وَلَنَا: أَنَّ الْمَوْتَ يُضَافُ إِلَىٰ فِعْلِ صَاحِبِهِ او زموږ دليل دا دی: چي [د هر يوه] مرګ د هغه د ملګري و فعل ته مضاف کيږي [منسوب کيږي] لِأَنَّ فِعْلَهُ فِيْ نَفْسِهِ مُبَاحٌ ځکه د هغه [هر يوه] فعل بذات خود مباح [روا] دی وَهُوَ الْمَشْيُ فِي الطَّرِيْقِ او هغه [فعل] په لاره کي تلل دي فَلَا يَصْلُحُ مُسْتَنِدًا لِلْإِضَافَةِ فِيْ حَقِّ الضَّمَانِ نو دا تلل به د ضمان په حق کي د اضافت لپاره د مستند کېدلو صلاحيت نه لاري كَالْمَاشِيْ إِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِالْبِئْرِ وَوَقَعَ فِيْهَا لکه تلونکی کس چي کله هغه په څاه خبر نه وي او په هغه کي ولوېږي لَا يُهْدَرُ شَيْءٌ مِنْ دَمِهِ نو د هغه هيڅ وينه [خون] نه باطليږي [نه معاف کيږي. بلکي په دې صورت کي هم پر حافر د هغه د خون ضمان او ديت واجبيږي] وَفِعْلُ صَاحِبِهِ وَإِنْ كَانَ مُبَاحًا او د هغه د ملګري فعل که څه هم مباح دی لٰكِنَّ الْفِعْلَ الْمُبَاحَ فِيْ غَيْرِهِ سَبَبٌ لِلضَّمَانِ لېکن مباح فعل د بل چا په حق کي د ضمان سبب دی كَالنَّائِمِ إِذَا انْقَلَبَ عَلَىٰ غَيْرِهِ لکه بيده کس چي کله پر بل چا را واوړي وَرُوِيَ عَنْ عَلِيٍّ ﷺ أَنَّهُ أَوْجَبَ عَلَىٰ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كُلَّ الدِّيَةِ او له حضرت علي ﷺ څخه روايت سوی دی چي هغه په دوی دواړو کي پر هر يوه ټوله ديت واجب کړی دی فَتَعَارَضَتْ رِوَايَتَاهُ نو د حضرت علي ﷺ دواړه روايتونه متعارض سول. فَرَجَّحْنَا بِمَا ذَكَرْنَا نو موږ ترجيح ورکړه د هغه دليل په ذريعه کوم چي موږ ذکر کړی دی وَفِيْمَا ذُكِرَ مِنَ الْمَسَائِلِ الْفِعْلَانِ مَحْظُوْرَانِ او کومي مسئلې چي [د امام شافعي رَحِمَهُ الله له طرفه] ذکر سوي دي په هغوی کي دواړه فعلونه ممنوع دي فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو فرق څرګند سو هٰذَا الَّذِيْ ذَكَرْنَا إِذَا كَانَا حُرَّيْنِ فِي الْعَمْدِ وَالْخَطَإِ دا کوم څه چي موږ ذکر کړل [دا په هغه صورت کي دي] کله چي دوی دواړه آزاد وي د عمد او خطاء په دواړو صورتونو کي.

**تشريح:** دا زموږ دليل دی، حاصل يې دا دی چي په مذکوره مسئله کي د دواړو شهسوارانو (خالد او نقيب) په مرګ کي که څه هم د دوی خپل فعل لره هم دخل سته، لېکن څرنګه چي د دوی فعل يعني په لاره کي تلل فی نفسه مباح او جائز دي، خو دا فعل د فاعل د خپل مرګ سبب نه ګرځي. بلکي مرګ د بل چا د فعل وطرف ته منسوب کيږي او داسي به ګڼل کيږي چي دوی دواړه يو د بل په ټکر سره مړ سوي دی. نو ځکه پر هر يوه به د بل پوره ديت واجب وي. د دې مثال داسي دی لکه يو څوک چي په لاره کي روان وي او دا ورته معلومه نه وي چي په لاره کي څاه دی او بيا هغه په دې څاه کي ولوېږي،

نو دلته که څه هم د هغه مرګ د هغه د خپل فعل (تللو) په وجه واقع سوی دی، لېکن بیا هم پر حافر د هغه ټوله دیت واجبیږي او د هغه له دیت څخه یوه روپی هم نه ساقطیږي؛ ځکه د هغه فعل یعني تلل (تګ) في نفسه مباح دي او د ضمان واجبېدلو په حق کي د مړ کېدونکي وطرف ته نه منسوب کیږي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم د دواړو شهسوارانو فعل د دوی په خپل، خپل حق کي مباح دی، لهذا د دوی مرګ به د دوی د فعل وطرف ته نه منسوب کیږي، بلکي د هر یوه مرګ به د بل د فعل وطرف ته منسوب کیږي او پر دواړو به یو د بل پوره دیت واجب وي. او د بل یوه فعل که څه هم في نفسه مباح دي، لېکن مباح فعل د بل چا په حق کي د ضمان سبب کېدلای سي. مثلاً که یو څوک بیده وي، نو خوب خو في نفسه مباح دي، لېکن که دا بیده کس د خوب په حالت کي پر بل چا را واوړي او مړ یې کړي، نو دا مباح فعل د دې بل یوه په حق کي کوم چي مړ سوی دی د ضمان سبب دی او پر بیده کس د هغه ضمان واجبیږي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي که څه هم د بل یوه فعل في نفسه مباح دي، لېکن هغه د بل شهسوار په حق کي د ضمان سبب دی، نو ځکه پر هر یوه به د بل پوره دیت واجبیږي او په هغه کي به هیڅ کمي بیشي نه کیږي.

وروی عن علي رضي الله عنه إلخ: په دې سره د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله د نقلي دلیل جواب ورکوي، حاصل یې دا دی چي د حضرت علي رضي الله عنه په روایت سره دلیل نیول صحیح نه دي؛ ځکه په مصنف ابن ابي شیبه کي له حضرت علي رضي الله عنه څخه په دې مسئله کي دا روایت نقل سوی دی چي هغه پر هر یوه شهسوار د بل پوره دیت واجب کړی دی، او ستاسي په بیان سوي روایت کي د نیم دیت یادونه سوې ده، نو ګواکي د حضرت علي رضي الله عنه په روایاتو کي تعارض راغلی، لهذا په "إذا تعارضا تساقطا" باندي د عمل کولو پر بناء به په دې روایاتو سره دلیل نه نیول کیږي او موږ چي کوم دلیل پېش کړی دی، د هغه له رویه به پر هر فارس د بل پوره دیت واجبیږي.

وفیما ذکر من المسائل إلخ: فرمایي امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله چي د مذکوره مسئلې په مثال کي عمداً ټکر کېدل یا عمداً زخمي کول پېش کړي او پر هغوی یې مذکوره مسئله قیاس کړې ده، دا هم صحیح نه دي؛ ځکه په مقیس یعني په مذکوره مسئله کي خطاءً ټکر کېدل مباح فعل دی، حال دا چي مقیس علیه یعني عمداً ټکر واقع کېدل او عمداً زخمي کول ممنوع فعل دي، او دا ښکاره خبره ده چي مباح فعل پر ممنوع فعل قیاسول په هیڅ صورت کي صحیح نه دي.

وهذا الذي ذکرناه إلخ: فرمایي مخکي چي موږ کوم دا تفصیل ذکر کړی دی چي د عمداً ټکر په صورت کي نیم دیت واجبیږي او د خطاءً ټکر په صورت کي پوره دیت واجبیږي، دا حکم په هغه

صورت کي دی کله چي دواړه شهسواران آزاد وي، او که دواړه غلامان وي، نو د هغه حکم به په را روان عبارت کي ذکر سي. (احسن الهدايه)

## که دوه غلامان سره ټکر سي نو څه حکم دئ؟

وَلَوْ كَانَا عَبْدَيْنِ او که هغوی دواړه غلامان وي يَهْدُرُ الدَّمُ فِي الْخَطَإِ نو په جنايتِ خطاء کي وينه [خون] باطليږي [معاف کيږي] لِأَنَّ الْجِنَايَةَ تَعَلَّقَتْ بِرَقَبَتِهِ ځکه چي جنايت د غلام د رقبې [ذات] سره متعلق سو دَفْعًا وَفِدَاءً د ورکولو په اعتبار سره او د فديه اداء کولو په اعتبار سره [چي د جنايت په بدله کي به يا غلام ورکوي يا به د هغه فديه اداء کوي] وَقَدْ فَاتَتْ لَا إِلَى خَلَفٍ مِنْ غَيْرِ فِعْلِ الْمَوْلَى او د غلام رقبه له څه خليفه [بدل] څخه بغير فوت سوې ده، بغير د مالک له فعل څخه فَهُدِرَ ضَرُوْرَةً نو ضرورتاً هدر [او معاف] سوه وَكَذَا فِي الْعَمَدِ او همدارنګه په جنايتِ عمد کي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا هَلَكَ بَعْدَمَا جَنَى ځکه له دوی څخه هر يو غلام تر جنايت وروسته هلاک سوی دی وَلَمْ يَخْلُفْ بَدَلًا او هيڅ بدل يې تر شا نه دی پرې ايښی.

**اللغات**: ﴿رقبة﴾ غاړه، ذات، ﴿فداء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: فديه ورکول، ﴿خَلَف﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: خليفه، بدل، هغه شی کوم چي تر يو چا (يا د يو چا تر مرګ) وروسته حاصل سي. ﴿لم يخلف﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده، د دې باب يوه معنیٰ ده: تر شا پرېښوول.

**تشريح**: مسئله دا ده چي که دواړه شهسواران غلامان وي او يو د بل سره ټکر سي، نو د عمد او خطاء په دواړو صورتونو کي د دواړو وينه (خون) هدر او معاف ګرځي او پر يوه هم ضمان نه واجبيږي؛ ځکه د غلام جنايت د هغه د رقبې سره متعلق کيږي نو د هغه د ضمان اداء کولو دوه صورتونه دي يا خو به دا غلام د مجنی عليه وارثانو ته ورکول کيږي، يا مالک به د دې غلام فديه اداء کوي، او دلته يو صورت هم ممکن نه دی. اول صورت خو ځکه ممکن نه دی چي غلام مړ سوی دی، او دويم صورت (فديه ورکول) ځکه ممکن نه دي چي غلام خپل تر شا هيڅ خليفه او مال نه دي پرې ايښی. لهذا کله چي دلته دواړه صورتونه ناممکن دي، نو له هدر څخه بغير بله چاره پاته نه سوه بلکي صرف هدر او معافي متعيّن سوه، نو ځکه يې فرمايلي دي چي: يهدر الدم فی الخطاء وکذا فی العمد. (احسن الهدايه)

## که آزاد او غلام خطاءً سره ټکر سي او دواړه مړه سي نو څه حکم دی؟

وَلَوْكَانَ أَحَدُهُمَا حُرًّا او که له هغوی دواړو څخه يو آزاد وي وَالْآخَرُ عَبْدًا او بل يو غلام وي فَفِي الْخَطَإِ تَجِبُ عَلَى عَاقِلَةِ الْحُرِّ الْمَقْتُولِ قِيمَةُ الْعَبْدِ نو د خطاء په صورت کي د آزاد مقتول پر عاقله وو د غلام قيمت واجبيږي فَيَأْخُذُهَا وَرَثَةُ الْمَقْتُولِ الْحُرِّ او هغه به د آزاد مقتول وارثان اخلي وَيَبْطُلُ حَقُّ الْحُرِّ الْمَقْتُولِ فِي الدِّيَةِ فِيمَا زَادَ عَلَى الْقِيمَةِ او د آزاد مقتول حق په ديت کي له قيمت څخه په زائد مقدار کي باطليږي لِأَنَّ عَلَى أَصْلِ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ تَجِبُ الْقِيمَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ ځکه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله د اصل مطابق پر عاقله وو قيمت واجبيږي لِأَنَّهُ ضَمَانُ الْآدَمِيِّ ځکه چي دا د انسان ضمان دی فَقَدْ أَخْلَفَ بَدَلًا بِهٰذَا الْقَدْرِ او غلام [صرف] په همدې اندازه بدل تر شا پرې ايښی دی فَيَأْخُذُهُ وَرَثَةُ الْحُرِّ الْمَقْتُولِ لهذا هغه به د آزاد مقتول وارثان اخلي وَيَبْطُلُ مَا زَادَ عَلَيْهِ او کوم مقدار چي له دې څخه زائد وي هغه باطليږي لِعَدَمِ الْخَلَفِ ځکه چي خليفه [بدل] معدوم دی [يعني د بدل د نشتوالي په وجه هغه زائد مقدار معدوم دی].

**اللغات**: ﴿الخَلَف﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي د دې وضاحت وسو.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي زيد مثلاً غلام دی او نقيب آزاد دی او دواړه پر آسونو سپاره دي او بيا دوی دواړه خطاءً سره ټکر سول او دواړه مړه سول. نو په دې صورت کي د آزاد مقتول (خالد) پر عاقله وو د غلام مقتول (زيد) ټوله قيمت واجبيږي او دا قيمت به د آزاد مقتول (خالد) وراثان اخلي (ځکه دوی د خپل مقتول [خالد] ديت له غلام څخه نه سي اخيستلای، ځکه هغه مړ سوی دی او د مرګ په وجه اوس د ديت اداء کولو اهل نه دی. نو ځکه اوس به دوی د غلام ديت [قيمت] خپله اخلي)، او دلته که څه هم د مقتول (خالد) ديت د آزادوالي په وجه زيات پرېوځي، خو څرنګه چي غلام مقتول (زيد) صرف د خپل قيمت په اندازه خليفه او بدل پرې ايښی دی، لهذا د آزاد مقتول (خالد) وارثان به صرف هغه اخلي او د ديت باقي مقدار به د خليفه او بدل د نشتوالي په وجه هدر او معاف ګرځول کيږي.

دا حکم ځکه دی چي د غلام مقتول (زيد) چي کوم قيمت دی. هغه په دې حيثيت سره واجب دی چي غلام هم انسان دی، نه په دې حيثيت سره چي غلام مال دی، او د انسان ضمان پر عاقله وو لازميږي، نو ځکه د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دا قيمت د آزاد (خالد) په عاقله وو باندي واجبيږي.

## او که عمداً داسي صورت پېښ سي نو څه حکم دی؟

وَفِي الْعَمْدِ يَجِبُ عَلَى عَاقِلَةِ الْحُرِّ نِصْفُ قِيمَةِ الْعَبْدِ او د عمد په صورت کي د آزاد مقتول پر عاقله وو د غلام نيم قيمت واجبيږي لِأَنَّ الْمَضْمُونَ هُوَ النِّصْفُ فِي الْعَمْدِ ځکه په عمد کي همدا نصف مضمون وي [يعني دلته د عمد په صورت کي د نصف ضمان لازميږي] وَهٰذَا الْقَدْرُ يَأْخُذُهُ وَلِيُّ الْمَقْتُولِ او همدا مقدار به د آزاد مقتول ولي اخلي وَمَا عَلَى الْعَبْدِ فِي رَقَبَتِهِ وَهُوَ نِصْفُ دِيَةِ الْحُرِّ او کوم [ضمان] چي پر غلام د هغه په رقبه کي [واجب] دی چي هغه د آزاد نيم ديت دی يَسْقُطُ بِمَوْتِهِ هغه د غلام په مرګ سره ساقطيږي إِلَّا قَدْرَ مَا أَخْلَفَ مِنَ الْبَدَلِ مګر د بدل په اندازه کوم چي غلام پرې اېښی دی وَهُوَ نِصْفُ الْقِيمَةِ او هغه [د غلام] نيم قيمت دی.

**اللغات**: ﴿مضمون﴾ د سمع له بابه د مفعول صيغه ده: د کوم شي چي ضمان (تاوان) لازم وي، د څه چي ضمان ورکول کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که غلام او آزاد عمداً يو د بل سره ټکر سوي وي، نو په دې صورت کي د آزاد مقتول پر عاقله وو د غلام نيم قيمت واجبيږي؛ ځکه د عمد په صورت کي د نصف حصې ضمان لازميږي، نو ځکه د آزاد مقتول وارثان به صرف د غلام نيم قيمت اخلي؛ ځکه همدا نيم قيمت د غلام له طرفه پرېښوول سوی بدل دی. او پر غلام چي د آزاد مقتول کوم نيم ديت دی هغه ساقطيږي؛ ځکه غلام مړ سوی دی او د مرګ په وجه هغه د ديت اداء کولو اهل نه دی پاته سوی، نو ځکه د آزاد ديت خو ساقطيږي، لېکن د غلام نيم قيمت پر خپل حال باقي پاتيږي چي هغه به د آزاد وارثانو ته ورکول کيږي. (احسن الهدايه)

## که د چارپای د شړلو (هشه کولو) په وجه د هغه زين وغيره پر يو چا ولويږي او مړ يې کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ سَاقَ دَابَّةً فرمايي: او څوک چي چارپای شړي فَوَقَعَ السَّرْجُ عَلَى رَجُلٍ فَقَتَلَهُ بيا [د چارپای] زين پر يو چا ولوېږي او هغه قتل کړي ضَمِنَ نو هغه [سائق] ضامن کيږي وَكَذَا عَلَى هٰذَا سَائِرُ أَدَوَاتِهِ كَاللِّجَامِ وَنَحْوِهِ او همداسي پر دغه حکم دي د چارپای ټوله سامانونه لکه قيزه او داسي نور وَكَذَا مَا يُحْمَلُ عَلَيْهَا او همدارنګه هغه [سامان] کوم چي پر چارپای بارول کيږي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي

هٰذَا التَّسْبِيْبِ ځکه چې هغه [سائق] په دې سبب جوړېدلو کې تعدی کونکی دی لِأَنَّ الْوُقُوْعَ بِتَقْصِيْرٍ مِنْهُ ځکه [د دې شيانو] لوېدل د سائق د کوتاهۍ په وجه سوي دي وَهُوَ تَرْكُ الشَّدِّ أَوِ الْإِحْكَامِ فِيْهِ او هغه [کوتاهي] ترل يا ټينګ ترل پرېښوول دي بِخِلَافِ الرِّدَاءِ په خلاف د څادر لِأَنَّهُ لَا يُشَدُّ فِي الْعَادَةِ ځکه عادتاً څادر نه ترل کيږي وَلِأَنَّهُ قَاصِدٌ لِحِفْظِ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ او ځکه چې هغه [سائق] د دې شيانو د حفاظت قصد کونکی دی كَمَا فِي الْمَحْمُوْلِ عَلَىٰ عَاتِقِهِ لکه په هغه سامان کې چې [د حفاظت قصد کيږي] کوم چې پر خپله اوږه را اخيستل سوی وي دُوْنَ اللِّبَاسِ نه د جامو [يعني د جامو د حفاظت قصد نه کيږي] عَلَىٰ مَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې تېر سوه فَيَتَقَيَّدُ بِشَرْطِ السَّلَامَةِ نو ځکه دا [مذکوره شيان] به د سلامتۍ په شرط سره مقيد وي.

**اللغات:** ﴿ساق﴾ د ضرب د باب ماضي ده: شړل (هشه کول)، يعني په چارپای د شا لخوا پسې کېدل او هغه پر مخ بېول. ﴿السرج﴾ زين، ځين. دلرګيو او څرمني څخه جوړه سوې هغه آله چې د انسان د سپر تيا لپاره د آس وغيره په ملا باندې ايښوول کيږي، ﴿أدوات﴾ آلات، سامان. ﴿متعد﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدی کونکی (له حد څخه تجاوز کونکی)، ناحقه تصرف کونکی، ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړېدل، سبب ګرځېدل، ﴿تقصير﴾ مخکنۍ صيغه ده: (په يو کار يا شي کې) کوتاهي کول، کمي کول، قصور، ﴿إحكام﴾ د افعال د باب مصدر دی: محکم کول، ټينګول، يو کار په مضبوطي سره کول، ﴿عاتق﴾ اوږه، پر اوږه د څادر اچولو ځای، موضع الرداء من المنكب. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو چارپای مثلاً آس د شا لخوا شړي (هشه کوي) او تر شا په پسې وي، په دې دوران کې د هغه زين يا قيزه يا پر هغه بار سوی سامان پر يو چا ولوېږي او هغه مړ سي، نو په دې ټولو صورتونو کې پر سائق د مقتول کس ضمان واجبيږي؛ ځکه دلته سائق د مقتول د مرګ سبب جوړ سوی دی او هغه په دې (تسبيب) کې تعدی کونکی هم دی، ځکه د زين وغيره را لوېدل د هاغه د لاپروايي او کوتاهۍ په وجه پېښ سوي دي چې زين وغيره يې نه دي ترلي يا يې مضبوط نه دي ترلي، حال دا چې هغه ته د دې شيانو مضبوط ترل پکار وه. لېکن هغه داسي نه دي کړي او تعدی يې کړې ده او پر مُسبِّب متعدي ضمان واجبيږي. لهذا پر هغه به هم ضمان واجبيږي.

**بخلاف الرداء إلخ:** يعني که يو چا څادر پر ځان اچولی وي، بيا هغه په لاره کې ايله سي او د هغه په وجه يو څوک مړ سي، نو پر څادر والا هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ ځکه څادر عموماً نه ترل کيږي

بلکې هسې پر ځان اچول کيږي، لهذا د هغه په لوېدلو سره لابس تعدی کونکی نه سو. نو ځکه پر هغه به ضمان هم نه واجبيږي.

**ولأنه قاصِدٌ إلخ:** په مذکوره مسئله کې پر سائق د ضمان واجبېدلو بل دليل دا دی چې سائق د مذکوره شيانو (زين وغيره) د حفاظت قصد کونکی دی، لکه څرنګه چې يو چا پر خپله اوږه يا پر سر يو سامان را اخيستی وي نو هغه يې د حفاظت قصد کونکی وي، همداسې سائق هم دی. او کوم شی چې د حفاظت په غرض سره را بار کړی سوی وي، هغه د سلامتۍ په شرط سره مقيّد وي. او د سلامتۍ د شرط په فوتېدلو سره ضمان واجبيږي. نو په دې حواله سره هم دلته پر سائق ضمان واجب کړی سوی دی. د دې په خلاف لابس د څادر وغيره د حفاظت قصد کونکی نه وي. لهذا د هغه لبس به نه د سلامتۍ په شرط سره مقيّد وي او نه به د هغه په لوېدلو سره ضمان واجبيږي. (احسن الهدايه)

## که د قطار اوښان يو څوک هلاک کړي نو د ضمان حکم

قَالَ: وَمَنْ قَادَ قِطَارًا فرمايي: او څوک چې د اوښانو قطار کشوي فَهُوَ ضَامِنٌ لِمَا أَوْطَأَ نو هغه[قائد] ضامن دی د هغه څه کوم چې يې قطار تر پښو لاندې کړي فَإِنْ وَطِئَ بَعِيرٌ إِنْسَانًا نو که اوښ يو انسان تر پښو لاندې کړي ضَمِنَ بِهِ الدِّيَةَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو [قائد] د هغه په وجه پر خپل عاقله وو د ديت ضامن کيږي [يا په بله وينا دا چې د قائد پر عاقله وو د ديت ضمان واجبيږي] لِأَنَّ الْقَائِدَ عَلَيْهِ حِفْظُ الْقِطَارِ كَالسَّائِقِ ځکه پر قائد د قطار حفاظت [او څارنه] ضروري ده لکه پر سائق [چې ضروري ده] وَقَدْ أَمْكَنَهُ ذٰلِكَ او د هغه لپاره دا حفاظت ممکن [هم] دی وَقَدْ صَارَ مُتَعَدِّيًا بِالتَّقْصِيرِ فِيهِ خو هغه [قائد] په دې حفاظت کې د کوتاهۍ کولو په وجه تعدی کونکی سو وَالتَّسْبِيبُ بِوَصْفِ التَّعَدِّيْ سَبَبٌ لِلضَّمَانِ او سبب جوړېدل د تعدی په وصف سره د ضمان سبب دی إِلَّا أَنَّ ضَمَانَ النَّفْسِ عَلَى الْعَاقِلَةِ فِيهِ ليکن د نفس ضمان په دې [د سبب جوړېدلو په صورت کې] په عاقله وو باندې وي وَضَمَانُ الْمَالِ فِي مَالِهِ او د مال ضمان د هغه [سبب جوړېدونکي] په مال کې وي.

**اللغات:** ﴿القِطَار﴾ (بکسر القاف) په عربي کې د اوښانو قطار (کتار) ته وايي، يعني هغه اوښان چې يو د بل تر شا په قطار سره روان وي (او په جديده عربي کې د رېل ګاډي ته هم وايي)، ﴿التقصير﴾ مخکې يې وضاحت وسو.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که يو چا داوښانو قطار روان کړی وي چي داسي کس تـه قائد وايي، بيا په دې دوران کي يو اوښ يو څوک هلاک کړي، نو ضمان واجبيږي، يعني که نفس هلاک کړي، نو د هغه ضمان (ديت) د قائد په عاقله وو باندي واجبيږي او که دېوال هلاک کړي، نو د هغه ضمان خپله د قائد په مال کي واجبيږي.

او دلته د ضمان واجبيدلو وجه دا ده چي پر قائد د قطار حفاظت ضروري دی او هغه يې حفاظت هم کولای سي، نو د حفاظت نه کولو په وجه هغه تعدی کونکی سو، او پر مُسبِّب د تعدی په صورت کي ضمان واجبيږي، نو ځکه پر هغه به هم ضمان واجبيږي.

**که د قائد سره سائق هم وي نو پر دواړو ضمان واجبيږي**

| |
|---|
| وَإِنْ كَانَ مَعَهُ سَائِقٌ او که د قائد سره سائق [هم] وي فَالضَّمَانُ عَلَيْهِمَا نو ضمان پر دواړو [واجب] دی لِأَنَّ قَائِدَ الْوَاحِدِ قَائِدٌ لِلْكُلِّ ځکه ديوه اوښ قائد [کشونکی] د ټولو اوښانو قائد دی وَكَذَا سَائِقُهُ او همدارنګه ديوه اوښ سائق [د ټولو اوښانو] سائق دی لِاتِّصَالِ الْأَزِمَّةِ د مهارونو د اتصال په وجه [يعني د قطار د اوښانو مهارونه ټوله يو د بل سره متصل وي] وَهٰذَا إِذَا كَانَ السَّائِقُ فِي جَانِبٍ مِنَ الْإِبِلِ او دا [حکم] هغه وخت دی کله چي سائق داوښانو په طرف کي [بالکل شاته] وي أَمَّا إِذَا كَانَ تَوَسَّطَهَا لېکن که هغه داوښانو په مينځ کي وي وَأَخَذَ بِزِمَامِ وَاحِدٍ او ديوه اوښ مهار يې نيولی وي يَضْمَنُ مَا عَطِبَ بِمَا هُوَ خَلْفَهُ نو [په دې صورت کي] سائق د هغه څه ضامن کيږي کوم چي د هغه د شا والا په اوښانو سره هلاک سي وَيَضْمَنَانِ مَا تَلِفَ بِمَا بَيْنَ يَدَيْهِ او دوی [قائد او سائق] دواړه ضامن کيږي د هغه څه کوم چي د سائق د مخ والا په اوښانو سره هلاک سي لِأَنَّ الْقَائِدَ لَا يَقُودُ مَا خَلْفَ السَّائِقِ ځکه چي قائد د هغه اوښانو قائد [کشونکی او بيونکی] نه دی کوم چي د سائق تر شا دي لِانْفِصَامِ الزِّمَامِ د مهارونو د منقطع کېدلو په وجه وَالسَّائِقُ يَسُوقُ مَا يَكُونُ قُدَّامَهُ او سائق د هغه اوښانو سائق [شړونکی] دی کوم چي د هغه په مخ کي دي. |

**اللغات**: ﴿الأزِمَّة﴾ جمع د زِمَام ده: هغه مهار او رسۍ چي د هغه په ذريعه چارپای کشول کيږي، ﴿انفصام﴾ د انفعال د باب مصدر دی: منقطع کېدل، سره شکېدل، ماتېدل.

**تشريح**: په مخکيني صورت کي که قائد يوازي نه وي بلکي د هغه سره سائق يعني داسي څوک هم وي کوم د اوښانو په قطار پسې وي او د شا لخوا اوښان شاړي، بيا اوښ يو څوک تر پښو لاندي

کړي او هلاک یې کړي، نو په دې صورت کې په سائق او قائد دواړو باندې د مقتول ضمان واجبیږي؛ ځکه د قطار والا اوښانو مهارونه یو د بل سره متصل وي نو د مخکینې اوښ قائد د ټولو اوښانو قائد شمېرل کیږي، همدارنګه د شاتنې اوښ سائق د ټولو اوښانو سائق وي، لهذا څرنګه چې یوازې په قائد یا سائق باندې ضمان واجبیږي، نو همداسې که دواړه موجود وي، نو پر دواړو به نیم، نیم ضمان واجبیږي.

<u>أمّا إذا كان توسطها إلخ</u>: د دې حاصل دا دی چې که سائق د قطار تر شا نه وي بلکې د قطار په مینځ کې یې د یوه اوښ مهار نیولی وي، نو په دې په صورت کې که د شا اوښان یو څوک قتل او هلاک کړي، نو د هغه ضمان صرف پر سائق واجبیږي؛ ځکه په دې صورت کې د مهارونو اتصال ختم سوی او دا سائق د خپل شاتنې اوښانو قائد دی او د مخکینې اوښانو سائق دی. لهذا هغه قائد کوم چې تر ټولو اوښانو مخکې دی (یعني قائد اول) د هغه په دې قتل کې هیڅ رول نسته. نو ځکه پر هغه به ضمان نه واجبیږي.

او که د مخ والا اوښان (کوم چې د سائق مخ ته دي) یو څوک هلاک کړي، نو په دې صورت کې په قائد او سائق دواړو باندې ضمان واجبیږي؛ ځکه د دې اوښانو سره قائد او سائق دواړه مربوط او متصل دي، چې قائد د خپل شا والا اوښانو قائد دی او سائق کوم چې د شا لخوا په پسې دې هغه د دې اوښانو سائق دی. نو ځکه دلته به پر دواړو ضمان واجبیږي. (احسن الهدایه)

## که د قطار د اوښانو سره څوک په پټه یو اوښ وتړي او هغه یو څوک هلاک نو دیت پر چا دی؟

<u>قَالَ: وَإِنْ رَبَطَ رَجُلٌ بَعِيْرًا إِلَى الْقِطَارِ</u> فرمایي؛ او که یو سړی د اوښانو د قطار سره یو اوښ وتړي <u>وَالْقَائِدُ لَا يَعْلَمُ</u> او قائد خبر نه وي <u>فَوَطِئَ الْمَرْبُوْطُ إِنْسَانًا فَقَتَلَهُ</u> بیا دا تړل سوی اوښ یو انسان تر پښو لاندې کړي او هغه قتل کړي <u>فَعَلَى عَاقِلَةِ الْقَائِدِ الدِّيَةُ</u> نو د قائد پر عاقله وو دیت [واجب] دی <u>لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ صِيَانَةُ الْقِطَارِ عَنْ رَبْطِ غَيْرِهِ</u> ځکه قائد لره د بل چا له [اوښ] تړلو څخه د قطار حفاظت کول ممکن دي <u>فَإِذَا تَرَكَ الصِّيَانَةَ</u> نو کله چې هغه حفاظت پرېښووی <u>صَارَ مُتَعَدِّيًا</u> نو هغه متعدي سو <u>وَفِي التَّسْبِيْبِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ</u> او د سبب جوړېدلو په صورت کې دیت په عاقله وو باندې [واجب] وي <u>كَمَا فِي الْقَتْلِ الْخَطَإِ</u> لکه په قتل خطاء کې [چې دیت په عاقله وو باندې واجب وي].

<u>**اللغات**</u>: ﴿قطار﴾ څه مخکې د دې وضاحت وسو چې د اوښانو قطار ته وایي، ﴿ربط﴾ د نصر د باب ماضي ده؛ تړل. ﴿وطئ﴾ د سمع د باب ماضي ده؛ تر پښو لاندې کول، پایماله کول. ﴿صیانة﴾ د نصر د باب مصدر دی؛ حفاظت کول، خوندي کول، ساتنه.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې يو سړي مثلاً نقيب د اوښانو قطار روان کړی وو، په دې دوران کې يو بل سړي مثلاً زيد په پټه د هغه قطار سره خپل اوښ هم يو ځای کړی او ديو اوښ سره يې وتړی او قائد يعني نقيب په دې خبر نه سو، بيا د زيد اوښ يو انسان تر پښو لاندې کړی او هغه يې قتل کړی، نو په دې صورت کې د قائد (نقيب) پر عاقله وو د مقتول انسان ديت واجبيږي؛ ځکه پر قائد د قطار څارل او حفاظت کول ضروري وه، خو دلته له هغه څخه په دې حفاظت کې کمي او کوتاهي وسوه چې په قطار کې يې بل چا خپل اوښ تړلی دی او دئ په خبر هم نه دی، لهذا دلته هغه د مقتول انسان د مرګ داسې مُسَبِّب سو کوم چې تعدی کونکی دی او پر مُسَبِّب متعدي ضمان لازميږي، لهذا پر دې قائد (نقيب) به هم ضمان لازميږي او دا ضمان به د ده عاقله اداء کوي، لکه څرنګه چې د قتلِ خطاء په صورت کې د قاتل ضمان د هغه عاقله اداء کوي. (احسن الهدايه)

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

ثُمَّ يَرْجِعُوْنَ بِهَا عَلٰى عَاقِلَةِ الرَّابِطِ بيا هغوی [د قائد عاقله] به د رابط پر عاقله وو رجوع کوي لِأَنَّهُ هُوَ الَّذِيْ أَوْقَعَهُمْ فِيْ هٰذِهِ الْعُهْدَةِ ځکه چې همدا رابط هغه يو دی چې د قائد عاقله يې په دې ذمه وارۍ کې اچولي دي وَإِنَّمَا لَا يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَيْهِمَا فِي الْاِبْتِدَاءِ وَكُلٌّ مِنْهُمَا مُسَبِّبٌ او له شروع څخه [ځکه] پر دوی دواړو [رابط او قائد] ضمان نه واجبيږي حال دا چې له دوی څخه هر يو مسبب دی لِأَنَّ الرَّبْطَ مِنَ الْقَوْدِ بِمَنْزِلَةِ التَّسْبِيْبِ مِنَ الْمُبَاشَرَةِ ځکه ربط [تړل] د قود په مقابله کې داسې دی لکه تسبيب د مباشرت په مقابله کې [په بله وينا دا چې رابط د قائد په مقابله کې داسې دی لکه مسبب د مباشر په مقابله کې] لِاتِّصَالِ التَّلَفِ بِالْقَوْدِ دُوْنَ الرَّبْطِ ځکه تلف [هلاکت] د قود سره متصل دی، نه د تسبيب سره قَالُوْا: هٰذَا إِذَا رَبَطَ وَالْقِطَارُ يَسِيْرُ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چې دا [حکم] هغه وخت دی کله چې رابط په داسې حال کې [د قطار سره اوښ] تړلی وي چې قطار روان وي لِأَنَّهُ آمِرٌ بِالْقَوْدِ دَلَالَةً ځکه [په دې صورت کې] رابط دلالتاً د قود [کشولو] حکم کونکی دی فَإِذَا لَمْ يَعْلَمْ بِهِ بيا کله چې قائد په دې [تړلو] خبر نه دی لَا يُمْكِنُهُ التَّحَفُّظُ مِنْ ذٰلِكَ نو قائد ته له دې څخه بچ کېدل ممکن نه دي فَيَكُوْنُ قَرَارُ الضَّمَانِ عَلَى الرَّابِطِ نو ځکه د ضمان ثبوت به پر رابط وي أَمَّا إِذَا رَبَطَ وَالْإِبِلُ قِيَامٌ لېکن که رابط په داسې حال کې [د قطار سره اوښ] تړلی وي چې اوښان ولاړ وي ثُمَّ قَادَهَا بيا قائد هغوی

کش [او رواڼ] کړي ضَمِنَهَا الْقَائِدُ نو [په دې صورت کې صرف] قائد ضامن کيږي لِأَنَّهُ قَادَ بَعِيْرَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ إِذْنِهِ ځکه قائد د بل چا اوښ د هغه له اجازې څخه بغير کش کړی دی لَا صَرِيْحًا وَلَا دَلَالَةً نه په صراحتاً اجازه سره او نه په دلالتاً اجازه سره فَلَا يَرْجِعُ بِمَا لَحِقَهُ عَلَيْهِ نو ځکه قائد به په هغه ضمان سره کوم چې ده ته لاحق سوی دی پر رابط رجوع نه کوي.

**اللغات**: ﴿أوقع﴾ د افعال د باب ماضي ده: اچول. ﴿العهدة﴾ ذمه واري. ﴿القَوْد﴾ د نصر د باب مصدر دی: د مخ لخوا چارپای کشول او بيول. ﴿التحفّظ﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل. خوندي کېدل.

**تشريح**: په مخکنۍ مسئله کې د قائد (نقيب) پر عاقله وو ديت واجب سوی دی. اوس دلته فرمايي چې کله د قائد عاقله ديت اداء کړي، نو بيا به هغوی دا ديت يعني د ديت په اندازه مال د رابط (زيد) له عاقله وو څخه واپس اخلي؛ ځکه چې د همدې رابط (زيد) په فعل سره د قائد پر عاقله وو ديت واجب سوی دی، لهذا په آخر کې به د ديت اصل تاوان د رابط عاقله اداء کوي.

وإنما لايجب إلخ: دا د يو مقدّر سوال جواب دی، حاصل يې دا دی چې کله په مذکوره صورت کې زيد او نقيب (رابط او قائد) دواړه د مقتول انسان د هلاکت سبب دي، نو له شروع څخه دي پر دواړو ديت واجب کړی سي، په دې کې څه راز دی چې اولاً صرف د قائد پر عاقله وو ديت واجب کړی سوی دی او بيا د رابط پر عاقله وو چې د قائد عاقله به له هغوی څخه دا ديت واپس اخلي.

د جواب حاصل دا دی چې مخکې دا خبره څو ځله تېره سوې ده چې د مسبب او مباشر د اجتماع په وخت کې ضمان پر مباشر واجبيږي، نه پر مسبب، او دلته د قائد او رابط تر مينځ هاغه تعلق دی کوم چې د مسبب او مباشر تر مينځ دی، يعني قود د مباشرت په درجه کې دی او ربط د سبب په درجه کې دی، نو ځکه دلته د هلاکت او تلف اتصال د قود سره دی، نه د ربط سره، لهذا کله چې قائد د مباشر په درجه کې دی او د هغه سره د هلاکت اتصال دی، نو ځکه اولاً به د هغه پر عاقله وو ديت واجب وي، خو اصل مجرم رابط دی، نو ځکه بيا به د قائد عاقله آخراً دا ديت د رابط له عاقله وو څخه اخلي.

قالوا إلخ: مشايخ حضرات فرمايي چې د قائد عاقله وو ته صرف په هغه صورت کې د رابط له عاقله وو څخه د ديت اخيستلو حق سته، کله چې قائد د خپل قطار سره راون وي او د روانتيا په حالت کې رابط د قطار سره خپل اوښ تړلی وي؛ ځکه په دې صورت کې رابط گواکي دلالتاً قائد ته دا حکم کوي چې زما اوښ هم در سره کشوه!، خو څرنگه چې قائد په دې حکم خبر نه دی چې هغه يې حفاظت وکړی سي، نو ځکه قائد به معذوره گڼل کيږي او آخراً به د خالد پر عاقله وو ديت واجبيږي. (کما مرّ)

أمّا إذا ربط إلخ: لیکن که رابط په داسې حالت کې خپل اوښ د قطار سره تړلی وي چې اوښان ولاړ وي او تر دې وروسته قائد هغوی روان کړي او بیا د رابط اوښ یو څوک هلاک کړي، نو په دې صورت کې د قائد پر عاقله وو ضمان واجبیږي او بیا دوی ته دا حق نسته چې دغه دیت د رابط له عاقله وو څخه واخلي (یعني دلته آخرا د رابط پر عاقله وو دیت نه واجبیږي)؛ ځکه دلته د رابط له طرفه د اوښ کشولو حکم نه دی سوی نه دلالتاً او نه صراحتاً (لکه په مخکیني صورت کې چې دلالتاً حکم سوی وو)، نو ګواکې قائد د هغه له اجازې او حکم څخه بغیر د هغه د اوښ کشونکی سو لهذا قائد مجرم سو. نو ځکه د دې اوښ د جنایت ضمان به هم د قائد پر عاقله وو واجب وي او دوی ته به د رابط په عاقله وو باندې د رجوع حق نه وي. (احسن الهدایه)

## که سائق حیوان ایله کړی او هغه پر یو چا حمله وکړي نو پر هغه ضمان لازم دی

قَالَ: وَمَنْ أَرْسَلَ بَهِيمَةً وَكَانَ لَهَا سَائِقًا فرمایي: او څوک چې چارپای ایله کړي او دئ د هغه شړونکي وي فَأَصَابَتْ فِي فَوْرِهَا نو هغه چارپای سمدستي حمله وکړي [یا په بله وینا سمدستي پر چا ولګیږي (یا پکښې وخیږي)] يَضْمَنُهُ نو دئ [مُرسِل] د هغه ضامن کیږي [یعني د هغه ضمان پرې واجبیږي] لِأَنَّ الْفِعْلَ انْتَقَلَ إِلَيْهِ بِوَاسِطَةِ السَّوْقِ ځکه [د چارپای] فعل د سَوق [شړولو] په ذریعه د ده وطرف ته منتقل سو.

**اللغات:** ﴿أرسل﴾ د افعال د باب ماضي ده: (چارپای، مرغه او داسې نور) ایله کول، پرېښوول. ﴿بهيمة﴾ چارپای. ﴿أصابت﴾ د افعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: رسېدل او نقصان رسول، حمله کول وغیره.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زید مثلاً یو غویی شړي (هڅه کوي) او د شا لخوا په پسې دی. بیا هغه دا غویی ایله کړی او دا ایله کېدلو سره سمدستي غویي پر یو چا حمله وکړه. نو د غویي په دې حمله سره چې هر نقصان پېښ سي، د هغه ضامن زید دی (یعني د هغه ضمان [تاوان] به زید اداء کوي)، ځکه همدا زید د هغه سائق او بېونکی وو، نو د سَوق په ذریعه د غویي فعل (حمله کول) د زید وطرف ته منتقل سو، لهذا ضمان به هم زید اداء کوي. (احسن الهدایه)

## او که څوک مرغه ايله کړي او د شا لخوا په پسې سي او هغه پر يو چا حمله وکړي نو ضمان پرې لازم نه دی

قَالَ: وَلَوْ أَرْسَلَ طَيْرًا وَسَاقَهُ فرمايي: او که څوک مرغه ايله کړي او هغه وشړي فَأَصَابَ فِي فَوْرِهِ او هغه سمدستي حمله وکړي لَمْ يَضْمَنْ نو هغه [مُرسل] نه ضامن کيږي وَالْفَرْقُ أَنَّ بَدَنَ الْبَهِيمَةِ يَحْتَمِلُ السَّوْقَ او [په دواړو مسئلو کې] فرق دا دی چې د چارپای بدن د سوق [شړلو] احتمال لري فَاعْتُبِرَ سَوْقُهُ نو ځکه د هغه [سائق] سوق معتبر سو وَالطَّيْرُ لَا يَحْتَمِلُ السَّوْقَ او مرغه د سوق [شړلو] احتمال نه لري فَصَارَ وُجُودُ السَّوْقِ وَعَدَمِهِ بِمَنْزِلَةٍ نو [د مرغه په حق کې] د سَوق وجود او عدم [شړل او نه شړل] په يوه درجه کې سوه.

**اللغات:** ﴿السَّوْق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: چارپای د شا لخوا شړل (هشه کول) چې ولاړ سي، د شا لخوا پر تللو پارول او بېول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو مرغه مثلاً باز ايله کړي او هغه وشړي يعني د شا لخوا په پسې سي، په دې وخت کې هغه سمدستي د يو چا پر شي حمله وکړي (مثلاً د يو چا پر مملوک ښکار حمله وکړي او هغه قتل کړي). نو دلته پر مُرسِل ضمان نه واجبيږي؛ ځکه مرغه د سوق (شړلو) احتمال نه لري او د هغه شړل او نه شړل (د شا لخوا په پسې کېدل او نه کېدل) سره برابر دي، لهذا د سائق د سَوق په ذريعه د مرغه فعل (حمله کول) د سائق وطرف ته نه منتقل کيږي، نو ځکه سائق به نه ضامن کيږي. د دې په خلاف چارپای (غويی) د سَوق احتمال لري، لهذا د سَوق په ذريعه د هغه فعل او جنايت د سائق وطرف ته منقل کيږي، او کله چې جنايت منتقل سو، نو ښکاره ده چې سائق به ضامن کيږي. او همدا شی د مرغه او چارپای تر مينځ فارق دی. (احسن الهدايه)

## او که سپی ايله کړي او د هغه لپاره سائق نه سي نو د ضمان حکم او تفصيل

وَكَذَا لَوْ أَرْسَلَ كَلْبًا وَلَمْ يَكُنْ لَهُ سَائِقًا او همدارنګه کله چې سپی ايله کړي او دئ د هغه سائق [شړونکی] نه وي لَمْ يَضْمَنْ نو هغه [مُرسِل] نه ضامن کيږي وَلَوْ أَرْسَلَهُ إِلَى صَيْدٍ وَلَمْ يَكُنْ لَهُ سَائِقًا او که سپی په يو ښکار پسې ايله کړي او دئ د هغه سائق نه وي فَأَخَذَ الصَّيْدَ وَقَتَلَهُ بيا سپی ښکار ونيسي او هغه قتل کړي حَلَّ نو ښکار حلال دی وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ الْبَهِيمَةَ مُخْتَارَةٌ فِي فِعْلِهَا او وجه د فرق دا ده چې چارپای په خپل فعل کې مختاره وي وَلَا تَصْلُحُ نَائِبَةً عَنِ الْمُرْسِلِ او هغه د مرسل له

طرفه د نائب کېدلو صلاحيت نه لري فَلَا يُضَافُ فِعْلُهَا إِلَىٰ غَيْرِهَا نو ځکه د هغه فعل به د بل چا وطرف ته نه منسوب کيږي هٰذَا هُوَ الْحَقِيقَةُ حقيقت همدا دی إِلَّا أَنَّ الْحَاجَةَ مَسَّتْ فِي الِاصْطِيَادِ لېکن اصطياد [ښکار کولو] ته ضرورت پيدا سوی دی [يعني اصطياد ته ضرورت داعي او متحقق دی] فَأُضِيفَ إِلَى الْمُرْسِلِ نو ځکه اصطياد به د مُرسِل [ايله کونکي] وطرف ته منسوب کيږي لِأَنَّ الِاصْطِيَادَ مَشْرُوعٌ ځکه چي اصطياد په شرع کي مباح [روا] دی وَلَا طَرِيقَ لَهُ سِوَاهُ او له دې [إرسال کلب] څخه بغير بله طريقه نسته [يا په بله وينا دا چي له دې څخه بغير (چي د سپي فعل د مُرسِل وطرف ته منسوب کړی سي) بله طريقه نسته] وَلَا حَاجَةَ فِي حَقِّ ضَمَانِ الْعُدْوَانِ او د عدوان [تعدی] د ضمان په حق کي هيڅ ضرورت نسته وَرُوِيَ عَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ أَوْجَبَ الضَّمَانَ فِي هٰذَا كُلِّهِ احْتِيَاطًا او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي هغه په دې ټولو صورتونو کي احتياطاً ضمان واجب کړی دی صِيَانَةً لِأَمْوَالِ النَّاسِ د خلکو د مالونو د حفاظت لپاره.

**اللغات:** ﴿مَسَّتْ﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث ماضي صيغه ده: يو شي ته ضرورت پيدا کېدل، يو شي ته محتاجه کېدل (المصباح المنير)، ﴿عدوان﴾ تجاوز، تعدی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک مثلاً زيد يو سپی ايله کړي خو د ښا لخوا په پسې نه سي او هغه نه شړي او څاري، بيا دا سپی يو څوک هلاک کړي، نو ايله کونکی کس (زيد) نه ضامن کيږي؛ همدارنګه که زيد پر ښکار سپی (تازي) ور ايله کړي، خو په هغه پسې نه سي يعني څارنه او شړنه يې نه کوي، بيا دا سپی ښکار ونيسي او هغه قتل کړي، نو ښکار حلال دی؛ په دې دواړو صورتونو کي فرق دا دی چي سپی چارپای دی او چارپای په خپل فعل کي اختيارمن وي او د ايله کونکي کس (مُرسِل) له طرفه د نائب کېدلو صلاحيت نه لري چي په فعل کي د هغه له طرفه نائب سي، نو ځکه د سپي فعل د بل چا (مُرسِل) وطرف ته نه منسوب کيږي، بلکي د هغه تر خپل ذات پوري محدود پاتيږي، او کله چي خبره داسي ده نو د هغه په فعل او جنايت سره به بل څوک (مُرسِل) نه ضامن کيږي؛ همدا خبره د سپي په فعل کي اصل او بنياد ده. لېکن څرنګه چي ښکار کول مباح دي او د ښکار ضرورت هم متحقق او مُسلم دی او له سپي ايله کولو څخه بغير د هغه بله لاره نسته. نو ځکه د اصطياد په باب کي به له دغه اصل او حقيقت څخه انحراف کيږي او د ضرورت پر بناء به د سپي فعل د مُرسِل وطرف ته منسوبول کيږي، د دې لپاره چي ښکار له حرامېدو څخه بچ سي او حلال

وګرځي، او تاسي ته دا قاعده ښه ياده ده چي "الضرورة تقدر بقدرها"، لهذا چيري چي ضرورت وي يعني د ښکار په مسئله کي، هلته به د سپي فعل د مُرسِل وطرف ته منسوب کيږي او د سپي نيول سوی او وژل سوی ښکار به حلال وي، او چيري چي ضرورت نه وي يعني پر مُرسِل د ضمان واجبېدلو په صورت کي، هلته به د سپي فعل د مُرسِل وطرف ته نه منسوب کيږي.

وعن أبي يوسف إلخ: فرمايي چي قاضي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د خلکو د مالونو د حفاظت په خاطر په مذکوره ټولو صورتونو کي احتياطاً پر مُرسِل ضمان واجب کړي دی، برابره ده هغه سَوق (شړنه او شارنه) کوي او که يې نه کوي، په هر صورت کي مُرسِل ضامن کيږي، همدا د امام مالک او مام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دی، وعليه الفتوىٰ، صرّح به العلامة الصدر الشهيد رَحِمَهُ الله. (بنايه: ۱۲/ ۳۳۳)

## په لاره کي د چارپای ايله کولو بيان

قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: وَذُكِرَ فِي الْمَبْسُوطِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: او په مبسوط کي ذکر سوي دي إِذَا أَرْسَلَ دَابَّةً فِي طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ کله چي يو څوک د مسلمانانو په لاره کي چارپای پرېږدي فَأَصَابَتْ فِي فَوْرِهَا او هغه سمدستي حمله وکړي فَالْمُرْسِلُ ضَامِنٌ نو ايله کونکی کس ضامن دی لِأَنَّ سَيْرَهَا مُضَافٌ إِلَيْهِ مَا دَامَتْ تَسِيرُ عَلَى سَنَنِهَا ځکه د چارپای تګ د مُرسِل وطرف ته مضاف [منسوب] دی تر څو چي چارپای پر خپله طريقه [روش] باندي روان وي وَلَوِ انْعَطَفَتْ يُمْنَةً أَوْ يُسْرَةً او که چارپای راسته يا چپه طرف ته وګرځي انْقَطَعَ حُكْمُ الْإِرْسَالِ نو د إرسال [ايله کولو] حکم منقطع کيږي إِلَّا إِذَا لَمْ يَكُنْ لَهُ طَرِيقٌ آخَرُ سِوَاهُ مګر دا چي کله د هغه لپاره له دې څخه بغير بله لاره نه وي وَكَذَا إِذَا وَقَفَتْ ثُمَّ سَارَتْ او همدارنګه کله چي هغه ودرېږي بيا روان سي.

**اللغات**: ﴿دابّة﴾ چارپای (مايمشي على أربع من الحيون)، څاروی، په اصل کي هر پر ځمکه تلونکي حيوان ته وايي، ﴿سَنَن﴾ (د سين او نون په فتح سره): طريقه، روش، چلند، لکه څرنګه چي ويل کيږي: إِسْتَقَامَ فُلَانٌ عَلَى سَنَنٍ وَاحِدٍ: فلانکی پر يوه طريقه او پر يوه لاره قائم پاته سو، مَرَّ السَّهْمُ فِي سَنَنِهِ: غشی سيده ولاړی او ها خوا دې خوا ته نه سو.

**تشريح**: په دې عبارت کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د مبسوط په حواله سره يوه مسئله بيان کړې ده، حاصل يې دا دی چي که څوک د مسلمانانو په لاره کي يو حيوان (مثلاً غويی) ايله کړي، نو تر څو

چې هغه حيوان پر خپله لاره سيده روان وي او ها خوا دې خوا ته نه وګرځي، نو تر هغه وخته د حيوان تګ او چال د مُرسل (ايله کونکي) وطرف ته منسوب کيږي نو په دې دوران کې چې هغه هر جنايت وکړي (مثلاً څوک تر پښو لاندې کړي او زخمي يې کړي، يا يې هلاک کړي)، نو د هغه ضمان پر مُرسل واجبيږي.

ها! که هغه سيده لاره پرېږدي يعني لاره پراخه وي او په سيده تللو کې هيڅ خنډ نه وي، د دې باوجود هغه حيوان (غويی) په لاره کې راسته يا چپه طرف ته وګرځي يا په لاره کې ودرېږي بيا روان سي او يو جنايت وکړي (يعني يو څوک زخمي يا هلاک کړي)، نو په دې صورت کې پر مُرسل ضمان نه واجبيږي؛ ځکه راسته او چپه ته طرف ته د ګرځېدلو يا درېدلو په وجه اوس د حيوان تګ او چال د مُرسل (ايله کونکي) وطرف ته نه منسوب کيږي بلکې د إرسال (ايله کولو) حکم منقطع سو او د هغه تګ د مُرسل وطرف ته منسوب کول متعذر سوه، نو ځکه اوس به پر مُرسل د هغه د جنايت ضمان نه واجبيږي.

او که په پورتني صورت کې لاره تنګه وي چې بغير له ګرځېدلو راګرځېدلو څخه په هغه کې تلل ممکن نه وي، نو په دې صورت کې د حيوان تګ د مُرسل وطرف ته منسوب کيږي، لهذا پر هغه به ضمان واجبيږي. (احسن الهدايه، اشرف الهدايه)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

بِخِلَافِ مَا إِذَا وَقَفَتْ بَعْدَ الْإِرْسَالِ فِي الِاصْطِيَادِ په خلاف د هغه صورت کله چې پر ښکار له ور ايله کولو څخه وروسته چارپای [يعني سپی] ودرېږي ثُمَّ سَارَتْ فَأَخَذَتِ الصَّيْدَ بيا روان سي او ښکار ونيسي [نو إرسال نه منقطع کيږي] لِأَنَّ تِلْكَ الْوَقْفَةَ تُحَقِّقُ مَقْصُودَ الْمُرْسِلِ ځکه دا درېدل د مُرسل مقصود ثابتوي لِأَنَّهُ لِيَتَمَكَّنَهِ مِنَ الصَّيْدِ ځکه دا درېدل پر ښکار د هغه د قادر کېدلو لپاره دي [يعنې د دې لپاره دي چې سپی د ښکار پر نيولو قدرت او کابو پيدا کړي] وَهٰذِهِ تُنَافِي مَقْصُودَ الْمُرْسِلُ وَهُوَ السَّيْرُ او دغه [د چارپای (مثلاً د آس)] درېدل د مُرسل د مقصود يعني د تللو منافي دي فَيَنْقَطِعُ حُكْمُ الْإِرْسَالِ نو د إرسال حکم به منقطع سي وَبِخِلَافِ مَا إِذَا أَرْسَلَهُ إِلَى صَيْدٍ او په خلاف د هغه صورت کله چې سپی پر ښکار ور ايله کړي فَأَصَابَ نَفْسًا أَوْ مَالًا فِي فَوْرِهِ او هغه سمدستي يو نفس يا مال ته ورسيږي [حمله پرې وکړي] لَا يَضْمَنُهُ مَنْ أَرْسَلَهُ نو [په دې صرت کې] مُرسل د هغه نه ضامن کيږي

وَفِي الْإِرْسَالِ فِي الطَّرِيقِ يَضْمَنُهُ او په لاره کي د ايله کولو په صورت کي ضامن کيږي لِأَنَّ شَغْلَ الطَّرِيقِ تَعَدٍّ ځکه د لارې مشغولول تعدی ده فَيَضْمَنُ مَا تَوَلَّدَ مِنْهُ نو ځکه له دې شغل ځخه چي کوم څه پيدا سي [پيښ سي] د هغه به ضامن کيږي أَمَّا الْإِرْسَالُ لِلِاصْطِيَادِ فَمُبَاحٌ او کوم چي د ښکار لپاره ايله کول دي نو مباح [روا] دي وَلَا تَسْبِيبَ إِلَّا بِوَصْفِ التَّعَدِّي او تسبيب نسته [يعني هغه تسبيب کوم چي د ضمان مُوجِب وي] مگر د تعدی په وصف سره [يعني صرف د تعدی په وصف سره تسبيب ضمان واجبوي].

**اللغات**: ﴿إرسال﴾ د افعال د باب مصدر دی: (چارپای) ايله کول، پرېښوول. ﴿تُحقق﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: ثابتول. ﴿تمكن﴾ د تفعل د باب مصدر دی: قادر کېدل، قدرت لرل. ﴿شَغل﴾ د فتح د باب مصدر دی: مشغولول، اخته کول. ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړېدل، سبب گرځېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي او په دواړو کي د مُرسِل إرسال نه ختميږي:

(۱)... که څوک يو حيوان مثلاً سپی (تازي) پر ښکار ور ايله کړي او سپی له څه تګ ځخه وروسته ودرېږي بيا روان سي او بالآخره ښکار ونيسي، نو هغه ښکاره حلال دی او د سپي په درېدلو سره د مُرسِل إرسال نه منقطع کيږي؛ ځکه ښکاري سپی عموماً ښکار ته د کمين نيولو لپاره څه وخت درېږي او تر کمين نيولو وروسته هغه په آساني سره ښکار نيسي چي په دې سره د مُرسِل اصل مقصود حاصل سي، نو ځکه په دې صورت کي د سپي په درېدلو سره د إرسال حکم نه ختميږي، بلکي باقي پاتيږي. لېکن په آس، اوښ وغيره کي د مُرسِل مقصود فقط سَير او تلل وي، لهذا هلته په توقف او درېدلو سره إرسال ختميږي او د مُرسِل مقصود فوتيږي.

(۲)... بخلاف إلخ: دويمه مسئله دا ده چي که څوک پر ښکار سپی ور ايله کړي او د ايله کېدلو سره سمدستي هغه پر يو انسان حمله وکړي او هلاک يې کړي يا د يو چا مال هلاک او ضايع کړي، نو په دې دواړو صورتونو کي پر مُرسِل ضمان نه واجبيږي؛ ځکه پر ښکار سپی وزايله کول مباح دي او مُباح کار که چيري له تعدی ځخه خالي وي، نو ضمان نه واجبوي، نو ځکه په دې صورت کي به پر مُرسِل ضمان واجب نه وي؛ ځکه د هغه له طرفه په دې إرسال کي هيڅ تعدی نه ده سوې.

ها! که څوک په لاره کي سپی ايله کړي او هغه يو نفس يا مال هلاک کړي، نو په دې صورت کي مُرسِل ضامن کيږي؛ ځکه ښکار په لاره کي نه، بلکي په خالي ميدان او متعيّن ځای کي ښکار کيږي، نو ځکه دلته مُرسِل په خپل إرسال کي د لارې مشغولو په اعتبار سره متعدي دی او پر متعدي کس ښکاه خبره ده چي ضمان واجبيږي. (احسن الهدايه)

## که ایله سوی چارپای د یو چا کښت خراب کړی نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَلَوْ أَرْسَلَ بَهِيمَةً فرمايي: او څوک چي يو چارپای ايله کړي فَأَفْسَدَتْ زَرْعًا عَلَى فَوْرِهِ نو هغه سمدستي کښت خراب کړي ضَمِنَ الْمُرْسِلُ نو ايله کونکی کس ضامن کيږي وَإِنْ مَالَتْ يَمِينًا أَوْ شِمَالًا او که دا چارپای راسته يا چپه طرف ته وګرځي وَلَهُ طَرِيقٌ آخَرُ او د هغه لپاره بله لاره [هم] وي لَا يَضْمَنُ نو نه ضامن کيږي لِمَا مَرَّ د هاغه دليل په وجه کوم چي تېر سو وَلَوِ انْفَلَتَتِ الدَّابَّةُ او که چارپای خپله ايله سي فَأَصَابَتْ مَالًا أَوْ آدَمِيًّا بيا هغه يو مال يا انسان ته ورسيږي [هلاک يې کړي] لَيْلًا أَوْ نَهَارًا د شپې يا د ورځي لَا ضَمَانَ عَلَى صَاحِبِهَا نو [په دې صورت کي] د چارپای پر مالک ضمان نسته لِقَوْلِهِ عليه السلام: «جَرْحُ الْعَجْمَاءِ جُبَارٌ» د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: د چارپای زخمي کول هدر [او معاف] دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: هِيَ الْمُنْفَلِتَةُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي هغه [عجماء] خپله ايله کېدونکی چارپای دی [يعني په حديث کي له "عجماء" څخه مراد هغه چارپای دی کوم چي خپله ايله سي] وَلِأَنَّ الْفِعْلَ غَيْرُ مُضَافٍ إِلَيْهِ او ځکه چي فعل د مالک وطرف ته مضاف [منسوب] نه دی لِعَدَمِ مَا يُوجِبُ النِّسْبَةَ إِلَيْهِ [د مالک له طرفه] د داسي فعل د نشتوالي په وجه کوم چي د مالک وطرف ته نسبت واجب کړي مِنَ الْإِرْسَالِ وَأَخَوَاتِهِ يعني إِرسال [ايله کول] او د هغه نظيرونه [سوق، قوداو رکوب].

**اللغات:** ﴿زرع﴾ کښت، کېتی، ﴿مالت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث ماضي صيغه ده: ميلان کول، ګرځېدل، ﴿انفلتت﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث ماضي صيغه ده: خپله ايله کېدل، خوشي کېدل، په تېزه خلاصېدل او ځغستل، ﴿عجماء﴾ بې زبانه حيوان (ساکښ)، چارپای، جمع: عجماوات، ﴿جُبَار﴾ (د جيم په ضمه سره): هدر، چي قصاص او ضمان پکښې نه وي، ضايع، معاف.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک يو چارپای (مثلاً غويی) ايله کړي او د ايله کېدلو سره سمدستي هغه د يو چا کښت خراب کړي، نو پر مُرسِل (ايله کونکي) ضمان واجبيږي؛ ځکه په دې صورت کي د چارپای فعل د هغه وطرف ته منسوب کيږي، ها! که چارپای سمدستي کښت خراب نه کړي، بلکي لاره بدله کړي او راسته يا چپه وطرف ته وګرځي بيا کښت خراب کړي، نو ضمان نه

واجبيږي: ځکه په دې صورت کې د چارپای فعل د مُرسِل وطرف ته نه منسوب کیږي (لکه مخکې چې د دې تفصیل تېر سو).

ولو انفلتت إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مالک چارپای ایله نه کړي بلکې چارپای خپله ځان ایله کړي او په دې دوران کې د یو چا نفس یا مال هلاک کړي، نو په دې صورت کې د چارپای پر مالک ضمان نه واجبیږي؛ ځکه په حدیث کې دي: جَرْحُ الْعَجْمَاءِ جُبَارٌ. یعني د چارپای زخمي کول هدر او معاف دي، امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي چې په دې حدیث کې له "العجماء" څخه هغه چارپای مراد دی کوم چې خپله ځان ایله کړي (یعني د چا له فعل څخه بغیر خپله ایله سي).

په دې هکله عقلي دلیل دا دی چې دلته د مالک له طرفه هیڅ داسې فعل نه دی واقع سوی چې د هغه په وجه د چارپای فعل د مالک وطرف ته منسوب سي او پر هغه ضمان واجب سي. یعني د هغه له طرفه نه إرسال او رُکوب واقع سوي دي او نه سَوق او قود (یا په بله وینا دا چې په دې صورت کې هغه نه مُرسِل او راکب دی او نه سائق او قائد دی)، نو ځکه په دې حواله سره به هم پر مالک ضمان نه واجبیږي.

## که څوک د یو چا د پسه وغیره سترګه وباسي نو څه حکم دی؟

شَاةٌ لِقَصَّابٍ فُقِئَتْ عَيْنُهَا دیو قصاب پسه دی چې د هغه سترګه وېستل سوه فَفِيهَا مَا نَقَصَهَا نو په دې [پسه] کې هغه مقدار[واجب] دی څومره چې په پسه کې نقصان [کمي] راغلی وي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ مِنْهَا هُوَ اللَّحْمُ ځکه له پسه څخه مقصود غوښه وي فَلَا يُعْتَبَرُ إِلَّا النُّقْصَانُ نو ځکه صرف د نقصان [کمی] اعتبار به کیږي.

**اللغات:** ﴿شاة﴾ اسم جنس دی، پر پسه، وزګري وغیره ټولو باندې یې اطلاق کیږي (لکه مخکې چې څو ځله د دې وضاحت سوی دی). ﴿قصاب﴾ غوښه پلورونکی. ﴿فقئت﴾ د فتح له بابه د ماضي مجهولي صیغه ده: سترګه ورباسل (سترګه ور ایستل). ﴿فقئت﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صیغه ده. د دې باب په صله کې چې عَيْن (سترګه) ذکر سي. نو معنی یې ده: سترګه باسل (ایستل).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید مثلاً د یو چا د پسه سترګه وباسي، نو په دې سره چې د پسه په قیمت کې څومره نقصان (کمي) راسي، د هغه په اندازه پر زید ضمان (تاوان) واجبیږي (په لنډه وینا دا چې پر هغه ضمانِ نقصان واجبیږي)، د ټوله پسه ضمان نه پرې واجبیږي؛ ځکه له پسه څخه مقصود صرف غوښه وي او په سترګه باسلو سره په غوښه کې هیڅ کمي نه راځي. نو ځکه د غوښې وغیره ضمان به نه واجبیږي، بلکې صرف د سترګې ضمان به واجبیږي. (احسن الهدایه)

**يادونه**: د قصاب قيد اتفاقي دی، کنې پسه وغيره چې د هر چا وي، داغه حکم يې دی، همدارنګه غوا، اوبن وغيره چې د هر چا وي، د ټولو هاغه حکم دی کوم چې په را روان عبارت کې ذکر سوی دی. (اشرف الهدايه)

## که د غوا، اوبن، آس وغيره سترګه وباسي نو څه حکم دی؟

وَفِي عَيْنِ بَقَرَةِ الْجَزَّارِ وَجَزُورِهِ رُبُعُ الْقِيمَةِ او د قصاب د غوا په سترګه کي او د هغه په اوبن کي د قيمت څلورمه حصه [واجب] ده وَكَذَا فِي عَيْنِ الْحِمَارِ وَالْبَغْلِ وَالْفَرَسِ او همدارنګه د خره، غاتري او دآس په سترګه کي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: فِيهِ النُّقْصَانُ أَيْضًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې کي هم نقصان [ضمانِ نقصان] دی اِعْتِبَارًا بِالشَّاةِ په پسه باندي په قياسولو سره وَلَنَا مَا رُوِيَ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَضٰى فِي عَيْنِ الدَّابَّةِ بِرُبُعِ الْقِيمَةِ او زموږ دليل هغه حديث دی کوم چي روايت سوی دی چي نبي ﷺ د چارپای په سترګه کي د رُبع قيمت فيصله کړې ده وَهٰكَذَا قَضٰى عُمَرُ ﷺ او همداسي فيصله حضرت عمر ﷺ هم کړې ده وَلِأَنَّ فِيهَا مَقَاصِدَ سِوَى اللَّحْمِ او ځکه چي په دوی [غوا، اوبن وغيره] کي له غوښي څخه بغير نور هم مقاصد سته كَالْحَمْلِ وَالرُّكُوبِ وَالزِّينَةِ وَالْجَمَالِ وَالْعَمَلِ لکه بارول، سپرېدل، ښايست او ښکلا او کار کول فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ تُشْبِهُ الْآدَمِيَّ نو په دغه اعتبار سره دوی د انسان مشابه دي وَقَدْ تُمْسَكُ لِلْأَكْلِ او کله دوی د خوراک لپاره [هم] نيول کيږي فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ تُشْبِهُ الْمَأْكُولَاتِ نو په دغه اعتبار سره دوی د خوړل کېدونکو څارويو مشابه دي فَعَمِلْنَا بِالشَّبَهَيْنِ نو موږ پر دواړو مشابهتونو عمل وکړی فَبِشَبَهِ الْآدَمِيِّ فِي إِيجَابِ الرُّبُعِ نو د انسان پر مشابهت د ربع قيمت په واجبولو کي وَبِالشَّبَهِ الْآخَرِ فِي نَفْيِ النِّصْفِ او د دې بل [مأکولاتو] پر مشابهت د نصف په نفي کولو کي وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا يُمْكِنُ إِقَامَةُ الْعَمَلِ بِهَا بِأَرْبَعَةِ أَعْيُنٍ او ځکه چي په دوی [غويي، اوبن وغيره] سره د څلورو سترګو په ذريعه کار کول ممکن دي عَيْنَاهَا وَعَيْنَا الْمُسْتَعْمِلِ دوې د دوی خپلي سترګي او دوې د استعمالونکي سترګي فَكَأَنَّهَا ذَاتُ أَعْيُنٍ أَرْبَعَةٍ نو ګواکي دوی څلورو سترګو والا دي فَيَجِبُ الرُّبُعُ بِفَوَاتِ إِحْدَاهَا نو د دوی يوې سترګي په فوتېدلو سره به ربع قيمت [د قيمت څلورمه حصه] واجبيږي.

**اللغات**: ﴿البقرة﴾ واحد د "بَقَر" دی کوم چې اسمِ جنس دی. پر مذکر او مؤنث دواړو یې اطلاق کیږي. واحد یې بَقَرَةٌ راځي. لکه څرنګه چې صاحب د معجم وایي: البقر اسم جنس، والبقرة تقع على الذكر والانثی. ﴿جزّار﴾ قصاب. د څارویو ذبح کونکی او پلورونکی. ﴿جزور﴾ اوښ. په اصل کې هغه اوښ او اوښې ته وایي کوم چې د ذبح کولو قابل وي. ﴿حمل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: شی پورته کول او وړل. بارول. ﴿جمال﴾ ښکلا. هغه صفت کوم چې په شي کې ملحوظ او نفس یې غوره ګڼي او د نفس د سرور باعث وي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید د یو چا د غوبې او غوا سترګه وباسي، یا د هغه د اوښ، یا د آس وغیره سترګه وباسي، نو زموږ په نیز پر سترګه باسونکي (زید) باندې د دې هر چارپای او سپارلې رُبع قیمت یعني د قیمت څلورمه حصه واجبیږي. لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله پر پُسه په قیاس کولو سره دلته هم د نقصان ضمان واجب ګڼي یعنې د سترګې د باسلو په وجه چې د دې چارپای په قیمت کې څومره نقصان (کمې) راشي، د هغه ضمان واجبیږي، لکه د پُسه په صورت کې چې د نقصان ضمان واجبیږي.

زموږ دلیل دا دی چې نبي کریم ﷺ او عمر رضی الله عنه د دابه یعني د چارپای (سپارلې) په سترګه کې د رُبع قیمت فیصله کړې ده. لکه څرنګه چې په طبراني کې دا حدیث نقل سوی دی "أن النبي ﷺ قضی في عين الدابة بربع قيمتها"، او په مصنف ابن أبي شیبه کې دا روایت نقل سوی دی "أن عمر رضی الله عنه كتب إلى شريح في عين الدابة ربع ثمنها إلخ". (بنایه ۱۲/ ۲۳۶)

ولأن فيها إلخ: د رُبع قیمت واجبېدلو په هکله زموږ عقلي دلیل دا دی چې له دابه څخه یوازې غوښه مقصود نه وي لکه څرنګه چې له پُسه وغیره څخه فقط غوښه مقصود وي، بلکې په دې څارویو کې له غوښې څخه بغیر نور مقاصد هم سته، مثلاً یوې کول (څمکه اړول)، بار وړل راوړل، د سپرتیا یا د زینت او ښکلا لپاره کارول او داسې نور. لهذا د دې مقاصدو په اعتبار سره دابه د انسان مشابه ده. او د ضرورت پر موقع د هغه غوښې هم خوړل کیږي، نو په دې اعتبار سره هغه د مأکولاتو یعني د پُسه وغیره مشابه ده. نو څکه موږ پر دواړو مشابهتونو عمل وکړی او د انسان د مشابهت په اعتبار کولو سره مو رُبع قیمت واجب کړی، او د مأکولاتو یعني د پُسه وغیره د مشابهت په اعتبار کولو سره مو نصف قیمت واجب نه کړی، څکه نصف قیمت د انسان په سترګه کې واجبیږي. او د پسه په سترګه کې نقصان (ضمان نقصان) واجبیږي کوم چې په دابه کم، کم معلومیږي. نو څکه موږ له هغه

ځخه اضافه کړی او له نصف قيمت ځخه مو کم کړی او رُبع قيمت مو واجب کړی. د دې لپاره چې پر دواړو مشابهتونو عمل وسي.

او په دې هکله بل عقلي دليل دا دی چې په داسې ښاريو سره د ځلورو سترګو په ذريعه کار اخيستل کيږي، دوې د چارپای سترګې او دوې د کار اخيستونکي سترګې (کوم چې له چارپای ځخه د سپرتيا وغيره کار اخلي)، نو ګواکي دا ښارويان ځلورو سترګو والا سوه. لهذا د يوې سترګې په ختمېدلو سره ګواکي د دوی رُبع سترګه ختمه سوه. نو ځکه رُبع قيمت واجب کړی سوی دی. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

**په لاره کې د تلونکې چارپای چوخول او پارول او د هغه په وجه د چارپای د نقصان رسولو بيان**

قَالَ: وَمَنْ سَارَ عَلَىٰ دَابَّةٍ فِي الطَّرِيْقِ فرمايي: او څوک چې پر چارپای په لاره کې روان وي فَضَرَبَهَا رَجُلٌ أَوْ نَخَسَهَا بيا يو سړی هغه چارپای ووهلی يا يې وچوخوی فَنَفَحَتْ رَجُلًا أَوْ ضَرَبَتْهُ بِيَدِهَا نو چارپای يو سړی په لغته ووهلی يا يې د مخ په پښه ووهلی أَوْ نَفَرَتْ فَصَدَمَتْهُ يا هغه وترهېدی [وتربدی] او ديو سړي سره ټکر سو فَقَتَلَتْهُ نو هغه يې قتل کړی كَانَ ذٰلِكَ عَلَى النَّاخِسِ دُوْنَ الرَّاكِبِ نو هغه [ضمان] پر چوخونکي کس دی، نه پر سپور کس هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ عُمَرَ وَابْنِ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا همدا له حضرت عمر او حضرت ابن مسعود رضی الله عنهما ځخه نقل سوي دي وَلِأَنَّ الرَّاكِبَ وَالْمَرْكَبَ مَدْفُوْعَانِ بِدَفْعِ النَّاخِسِ او ځکه چې د ناخس [چوخونکي] په فعل سره سپور کس او سپارلي [چارپای] دواړه ديکه کړل سوي [پوري وهل سوي] دي فَأُضِيْفَ فِعْلُ الدَّابَّةِ إِلَيْهِ نو ځکه دچارپای فعل به د ناخس وطرف ته مضاف [منسوب] وي كَأَنَّهُ فَعَلَهُ بِيَدِهٖ ګواکي هغه په خپل لاس دا کار کړی دی وَلِأَنَّ النَّاخِسَ مُتَعَدٍّ فِي تَسْبِيْبِهٖ او ځکه چې ناخس په خپل سبب جوړېدلو کې تعدی کونکی دی وَالرَّاكِبُ فِي فِعْلِهٖ غَيْرُ مُتَعَدٍّ او راکب په خپل فعل [سپرتيا] کې تعدی کونکی نه دی فَيَتَرَجَّحُ جَانِبُهُ فِي التَّغْرِيْمِ لِلتَّعَدِّيْ نو ځکه د تعدی په وجه به د تاوان [ضمان] واجبېدلو په هکله د ناخس اړخ راجح وي حَتّٰى لَوْ كَانَ وَاقِفًا دَابَّتَهُ عَلَى الطَّرِيْقِ تر دې چې که راکب خپل چارپای په لاره کې درولی وي يَكُوْنُ الضَّمَانُ عَلَى الرَّاكِبِ وَالنَّاخِسِ نِصْفَيْنِ نو [په دې صورت کې] ضمان پر راکب او ناخس دواړو نيم په نيمه [واجب] دی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي الْإِيْقَافِ أَيْضًا ځکه [د چارپای] په درولو

کي راکب هم تعدی کونکی دی [يعني په لاره کي د چارپای درولو په وجه راکب هم تعدی کونکی وګرځېدی].

**اللغات**: ﴿سار﴾ د ضرب د باب ماضي ده: تلل (روانېدل)، همدارنګه د دې په صله کي چي دَابة ذکر سي نو د سپرېدلو معنیٰ هم ورکوي (معجم الوسيط)، ﴿نَخَسَهَا﴾ د فتح او نصر له بابه څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده. نَخَسَ يَنْخُسُ نَخْسًا: د چارپای (سپارلي) په اړخ يا شاتني حصه کي لرګی يا داسي بل شی وهل (چيخل) د دې لپاره چي چارپای تېز او بيداره سي، چي دې ته چوخول (چخول) وايي، لمسول او پارول. ﴿نفرت﴾ د ضرب او نصر له باب څخه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: د چارپای ترهېدل (ترېدل)، پارېدل او تښتېدل. ﴿تغريم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: تاوان (ضمان) واجبول، تاوان اخيستل، ضامن ګرځول. ﴿واقف﴾ د ضرب د باب فاعل دی: درېدونکی، او د دې باب په صله کي چي دابّه يا داسي بل شی ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: درونکی (اوله معنیٰ يې لازمي ده او دويمه يې متعدي معنیٰ ده).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زيد پر خپل چارپای (مثلاً پر آس) سپور دی او په لاره کي روان دی، په دې دوران کي يو بل څا مثلاً نقيب دا چارپای پر يو نازک ځای ووهلی يا يې وچوخوی، نو هغه وترهېدی او يو څوک يې تر پښو لاندي کړی يا يې په لغته ووهلی يا ور سره ټکر سو او په دې سره هغه کس هلاک سو، نو په دې صورت کي پر ناخس او ضارب يعني پر نقيب د هغه ضمان واجبيږي، نه پر راکب (زيد)؛ ځکه دلته مجرم ناخس دی، نه راکب؛ او همدا له حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه هم نقل سوي دي چي هغه پر ناخس ضمان واجب کړی.

په دې هکله عقلي دليل دا دی چي ناخس د چارپای په چوخولو سره ګواکي راکب او سپارلي (آس) دواړو ته ديکه ورکړې ده، لهذا د چارپای فعل (هلاکول) به د ناخس وطرف ته منسوب کيږي او داسي به ګڼل کيږي چي ګواکي همدا ناخس هغه هلاک کړی دی، نو ځکه د هغه ضمان به هم پر همدې ناخس واجب وي.

او بله وجه دا چي ناخس په خپل فعل او سبب جوړېدلو کي متعدي دی او راکب په خپل فعل يعني په سپرېدلو کي متعدي نه دی، لهذا د تعدی په وجه به د ضمان واجبېدلو په هکله د همدې ناخس جانب لره ترجيح وي او صرف پر هغه به ضمان واجب وي.

ها! که زيد خپل چارپای (آس) په لاره کي ودروي او بيا د يو چا د نخس (چوخولو) په وجه هغه يو څوک هلاک کړي، نو په دې صورت کي پر ناخس او راکب دواړو باندي نيم، نيم ضمان

واجبيږي: ځکه په دې صورت کي راکب هم متعدي دی چي په لاره کي يې چارپای درولی دی. نو ځکه پر دواړو به ضمان واجب وي.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

قَالَ: وَإِنْ نَفَحَتِ النَّاخِسَ او که چارپای ناخس [چوخونکی] په لغته ووهي كَانَ دَمُهُ هَدَرًا نو د هغه وينه ضايع [او بلا بدله] ده لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْجَانِيْ عَلٰى نَفْسِهِ ځکه هغه پر خپل ځان د جنايت کونکي په درجه کي دی وَإِنْ أَلْقَتِ الرَّاكِبَ فَقَتَلَتْهُ او که چارپای سپور کس وغورځوي او هغه قتل کړي كَانَ دِيَتُهُ عَلٰى عَاقِلَةِ النَّاخِسِ نو د هغه ديت د ناخس [چوخونکي] پر عاقله وو دی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيْ تَسْبِيْبِهِ ځکه ناخس په خپل سبب جوړېدلو کي تعدی کونکی دی وَفِيْهِ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ او په دې صورت کي ديت پر عاقله وو [واجب] وي.

**اللغات:** ﴿نفحت﴾ د فتح له بابه مخکنۍ صيغه ده: لغته غورځول او په ښونګري سره وهل، د ښونګري په طرف سره وهل، ﴿ناخس﴾ د فتح او نصر له بابه د فاعل صيغه ده: چوخونکی، يعني د چارپای د شا په حصه يا په اړخ کي يو شی جګونکی (چيخونکی) د دې لپاره چي چارپای تېز سي، ﴿هدر﴾ د ضرب له بابه اسمِ مصدر دی: ضايع او بې ځايه، بې بدلې، هَدَرَ يَهْدِرُ هَدْرًا (الدم): وينه (خون) ضايع کېدل، چي بدله يې نه وخيستل، معاف کېدل، ﴿جاني﴾ د ضرب له بابه د فاعل صيغه ده: جنايت (جرم) کونکی، جنايتکاره.

**تشريح:** يعني کوم يو و چي چارپای چوخولی وي، که چارپای هغه داسي لغته ووهي چي هلاک يې کړي، نو د هغه وينه (خون) ضايع او بې بدلې ځي او پر سپور کس ضمان نه واجبيږي: ځکه ناخس د خپل فعل (چوخولو) په وجه پر خپل ځان جنايت کونکی سو. فلا يضمن لا نفسه.

او که د چوخولو په وجه چارپای خپل سپور کس وغورځوي او بيا هغه تر پښو لاندي کړي او قتل يې کړي، نو د ناخس پر عاقله وو ديت واجبيږي: ځکه ناخس په تعدی کولو سره د راکب د مرګ سبب جوړ سوی دی او د تعدی کونکي مسبب د جنايت ديت د هغه عاقله اداء کوي. نو ځکه په مذکوره صورت کي به هم د قتل سوي راکب ديت د تعدی کونکي ناخس عاقله اداء کوي. (احسن الهدايه)

## كه د چوخولو په وجه چارپای پر يو چا وغورځيږي يا يې تر پښو لاندې كړي (حكم او تفصيل)

قَالَ وَلَوْ وَثَبَتْ بِنَخْسِهِ عَلَى رَجُلٍ فرمايي: او كه د هغه [ناخس] د چوخولو په وجه چارپای پر يوسړي وغورځي أَوْ وَطِئَتْهُ يا يې تر پښو لاندې كړي فَقَتَلَتْهُ نو هغه قتل كړي كَانَ ذٰلِكَ عَلَى النَّاخِسِ دُوْنَ الرَّاكِبِ نو هغه [ضمان] پر چوخونكي كس دی، نه پر سپور كس لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړی وَالْوَاقِفُ فِيْ مِلْكِهِ وَالَّذِيْ يَسِيْرُ فِيْ ذٰلِكَ سَوَاءٌ او په خپل ملكيت كې درونكی او هغه كوم چې په خپل ملكيت كې تلونكی وي سره برابر دي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ يَجِبُ الضَّمَانُ عَلَى النَّاخِسِ وَالرَّاكِبِ نِصْفَيْنِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې پر ناخس او راكب نيم په نيمه ضمان واجب دی لِأَنَّ التَّلَفَ حَصَلَ بِثِقْلِ الرَّاكِبِ وَوَطْءِ الدَّابَّةِ ځكه تلفېدل [تباهېدل] د راكب په بوج او د چارپای په پايماله كولو سره واقع سوي دي وَالثَّانِيْ مُضَافٌ إِلَى النَّاخِسِ او دويم [پايماله كول] د ناخس وطرف ته مضاف دي فَيَجِبُ الضَّمَانُ عَلَيْهِمَا نو ځكه پر دواړو به ضمان واجب وي وَإِنْ نَخَسَهَا بِإِذْنِ الرَّاكِبِ او كه هغه د راكب په اجازت سره چارپای وچوخوي كَانَ ذٰلِكَ بِمَنْزِلَةِ فِعْلِ الرَّاكِبِ لَوْ نَخَسَهَا نو دا د راكب د فعل په درجه كې دي كه راكب هغه چوخولي وای [يعني د راكب په اجازت سره چخول داسې دي لكه راكب چې يې خپله وچوخوي] وَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِيْ نَفْحَتِهَا او د چارپای د لغتې غورځولو په صورت كې پر ناخس ضمان نسته لِأَنَّهُ أَمَرَهُ بِمَا يَمْلِكُهُ ځكه راكب و ناخس ته د هغه شي حكم كړی دی چې راكب خپله د هغه ملكيت [او اختيار] لري إِذِ النَّخْسُ فِيْ مَعْنَى السَّوْقِ ځكه چوخول [د چارپای] د شړلو په معنیٰ سره دي فَصَحَّ أَمْرُهُ بِهِ نو په هغه [چوخولو] سره د راكب حكم كول صحيح سوٰ وَانْتَقَلَ إِلَيْهِ لِمَعْنَى الْأَمْرِ او د حكم كولو د معنیٰ په وجه فعل د راكب وطرف ته منتقل سو.

**اللغات**: ﴿وثبت﴾ د فتح له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: غورځېدل، ټوپ وهل. ﴿وطئت﴾ د سمعه بابه مخكنۍ صيغه ده: پايماله كول (پامال كول). تر پښو لاندې كول. ﴿واقف﴾ څه مخكې د دې وضاحت وسو. ﴿ثقل﴾ بوج، درونډ والی. ﴿سَوْق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: چارپای د شا لخوا شړل (هشه كول) چې ولاړ سي. د شا لخوا پر تللو پارول او بيول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که د چوخولو (لمسولو) په وجه چارپای پر يو سړي وغورځيږي يا يې تر پښو لاندي کړي او هغه قتل کړي، نو په دې دواړو صورتونو کې پر ناخس (چوخونکي) ضمان واجبيږي، نه پر راکب: ځکه همدا ناخس متعدي دی، نو ضمان به هم هاغه اداء کوي.

والواقف إلخ: څه مخکې دا بيان سوه چې که راکب په لاره کې چارپای درولی وي او ديو چا د چوخولو په وجه هغه يو ځوک هلاک کړي، نو په دې صورت کې پر راکب او ناخس دواړو (نيم په نيمه) ضمان واجبيږي: دلته دا بيانوي چې که يو سړي په خپله ځمکه کې چارپای درولی وي او ديو چا د چوخولو په وجه دا چارپای يو ځوک هلاک کړي، نو په دې صورت کې د چارپای درونکی او سَير کونکی (يعني کوم چې په خپل ځمکه کې چارپای روان کړی او راکب وي) دواړه سره برابر دي، يعني ضمان صرف پر ناخس (چوخونکي) واجبيږي، نه پر واقف (درونکي)، لکه څرنګه چې د سَير په صورت کې صرف ناخس ضامن کيږي، نه راکب.

وعن أبي يوسف إلخ: څه مخکې ذکر سوه چې که د نخس په وجه چارپای پر يو چا وغورځيږي يا يې تر پښو لاندي کړي، د هغه ضمان صرف پر ناخس واجب دی، نو په دې سلسله کې له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روايت نقل سوی دی چې دلته پر ناخس او راکب دواړو ضمان واجبيږي: ځکه د مقتول په مرګ کې چې څرنګه تر پښو لاندي کولو لره دخل سته، همداسې د راکب بوج او ثقل لره هم دخل سته، او څرنګه چې تر پښو لاندي کول د ناخس وطرف ته مضاف دي، لهذا ثقل به د راکب وطرف ته مضاف کيږي او پر ناخس او راکب دواړو به ضمان واجبيږي.

وإن نخسها إلخ: د دې حاصل دا دی چې که ځوک د راکب په حکم او اجازت سره چارپای وچوخوي، بيا چارپای يو ځوک هلاک کړي، نو په دې صورت کې ناخس نه ضامن کيږي، بلکې راکب ضامن کيږي: ځکه د راکب د حکم او اجازت په وجه د ناخس فعل د راکب وطرف ته منسوب سو، ګواکې راکب خپله دا کار کړی دی، او ښکاره خبره ده چې که راکب خپله چارپای وچوخوي او هغه يو ځوک هلاک کړي، نو راکب ضامن کيږي، لهذا په مذکوره صورت کې به هم راکب ضامن وي.

ولا ضمان عليه إلخ: يعني که ځوک د راکب په حکم او اجازت سره چارپای وچوخوي او هغه لغته وغورځوي او يو ځوک هلاک کړي، نو په دې صورت کې نه ناخس ضامن کيږي، او نه راکب: ځکه نخس (چوخول) د سَوق (شړلو) په معنیٰ سره دي، او سوق يا د هغه حکم کول صحيح دي، لهذا د راکب له طرفه د نخس حکم کول هم صحيح دي، نو د ناخس فعل د راکب وطرف ته منسوب سو او ناخس بري سو، او پاته سو راکب نو که هغه پر چارپای سپور وي او چارپای يو ځوک په لغته ووهي.

نو پر هغه ضمان نه واجبیږي، لهذا کله چې پر چارپای د راکب د موجودېدلو په حالت کې پر هغه ضمان واجب نه دی. نو د راکب وطرف ته د ناخس د فعل مضاف کېدلو په صورت کې به څنګه پر هغه ضمان واجب وي. (احسن الهدايه)

## د راکب په اجازه سره د چوخولو حکم

قَالَ: وَلَوْ وَطِئَتْ رَجُلًا فِيْ سَيْرِهَا فرمايي: او که چارپای په خپل تګ [روانتيا] کې يو سړی پايماله کړي [تر پښو يې لاندې کړي] وَقَدْ نَخَسَهَا النَّاخِسُ بِإِذْنِ الرَّاكِبِ حال دا چې ناخس هغه چارپای د راکب په اجازت سره چوخولی وي فَالدِّيَةُ عَلَيْهِمَا نِصْفَيْنِ جَمِيْعًا نو ديت پر دوی [راکب او ناخس] دواړو نيم په نيمه [واجب] دی إِذَا كَانَتْ فِيْ فَوْرِهَا الَّذِيْ نَخَسَهَا [په دې شرط] کله چې پايماله کول فوراً د هغه کس په وجه وي کوم چې چارپای چوخولی وي [يعني کله چې پايماله کول تر چوخولو فوراً وروسته وي] لِأَنَّ سَيْرَهَا فِيْ تِلْكَ الْحَالَةِ مُضَافٌ إِلَيْهِمَا ځکه په دې حالت کې د چارپای تګ [چال] د راکب او ناخس دواړو وطرف ته مضاف [منسوب] دی وَالْإِذْنُ يَتَنَاوَلُ فِعْلَهُ السَّوْقَ او اجازت د ناخس د شړلو [پارولو] فعل لره شامل دی [يعني راکب و ناخس ته صرف د چارپای د چوخولو او شړلو اجازت ورکړی دی چې چارپای تګ وکړي] وَلَا يَتَنَاوَلُهُ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ إِتْلَافٌ او [اجازت] د ناخس فعل لره شامل نه دی د اتلاف [هلاکولو] په حيثيت سره [يعني راکب وناخس ته د هلاکولو اجازت نه دی ورکړی چې د هغه د چوخولو په وجه چارپای يو څوک پايماله کړي او هلاک يې کړي] فَمِنْ هٰذَا الْوَجْهِ يَقْتَصِرُ عَلَيْهِ نو په دغه اعتبار سره هلاکول پر ناخس منحصر دي وَالرُّكُوْبُ وَإِنْ كَانَ عِلَّةً لِلْوَطْءِ او سپرېدل که څه هم د پايماله کولو علت دي فَالنَّخْسُ لَيْسَ بِشَرْطٍ لِهٰذِهِ الْعِلَّةِ لېکن نخس [[illegible] د دغه علت لپاره شرط نه دي بَلْ هُوَ شَرْطٌ أَوْ عِلَّةٌ لِلسَّيْرِ بلکې هغه [د چارپای] د تګ لپاره شرط يا علت دي وَالسَّيْرُ عِلَّةٌ لِلْوَطْءِ او تګ [د چارپای ښول] د پايماله کولو علت دي وَبِهٰذَا لَا يَتَرَجَّحُ صَاحِبُ الْعِلَّةِ او په دې سره د علت خاوند نه راجح کيږي كَمَنْ جَرَحَ إِنْسَانًا لکه څوک چې يو انسان زخمي کړي فَوَقَعَ فِيْ بِئْرٍ حَفَرَهَا غَيْرُهُ عَلٰى قَارِعَةِ الطَّرِيْقِ بيا هغه انسان [مجروح] په داسې څاه کې ولوېږي کوم چې له جارح څخه بغير بل چا د لارې پر مېنځ کيندلې وي وَمَاتَ او هغه [مجروح] مړ سي فَالدِّيَةُ عَلَيْهِمَا نو

دیت پر دوی اجارح او حافرا دواړو باندې واجب دی لِمَا أَنَّ الْحَفْرَ شَرْطُ عِلَّةٍ أُخْرَىٰ دُوْنَ عِلَّةِ الْجَرْحِ ځکه څاه کیندل د دویم علت [لوېدلو] شرط دی، نه د زخمي کولو د علت كَذَا هٰذَا همداسې دا [مذکوره مسئله] هم ده.

**اللغات:** ﴿سَيْر﴾ د ضرب د باب مصدر دی: تلل، روانېدل. ﴿فور﴾ فوراً، سمدستي. ﴿سَوْق﴾ د تېر عبارت په لغاتو کې د دې وضاحت وسو. ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، هلاکول. ﴿يقتصر﴾ د افتعال د باب مضارع ده: منحصر کېدل. په یو شي اکتفا کول او له هغه څخه تېری نه کول. ﴿قارعة الطريق﴾ د لارې مېنځ، د لارې رک سر. (معجم لغة الفقهاء)

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که راکب یو چا ته د خپل چارپای د چوخولو اجازت ورکړي او هغه یې و چوخوي چې په دې وجه چارپای یو څوک تر پښو لاندې کړي او قتل یې کړي، نو په دې صورت کې راکب او ناخس دواړه د مقتول د دیت ضامن کیږي. لېکن شرط دا دی چې د چوخولو سره سمدستي چارپای هغه تر پښو لاندې کړی وي؛ ځکه په دې صورت کې د چارپای فعل د دواړو طرف ته مضاف کیږي.

او که تر چوخولو څه وروسته چارپای یو څوک تر پښو لاندې کړي او قتل یې کړي، نو په دې صورت کې فقط پر راکب ضمان واجبیږي، نه پر ناخس؛ ځکه اوس د ناخس د فعل (چوخولو) اثر ختم سوی دی، لهذا د مقتول په قتل کې د هغه عمل لره هیڅ دخل پاته نه سو، نو ځکه هغه به ضامن هم نه وي.

والإذن إلخ: په دې عبارت سره د یو مقدّر سوال جواب ورکول سوی دی. سوال دا دی چې کله ناخس د راکب په حکم او اجازت سره چارپای چوخولی وي، نو پر ناخس خو ضمان نه واجبېدل پکار دي، که څه هم د هغه په وجه چارپای یو څوک تر پښو لاندې کړی او قتل کړی یې وي.

د دې په جواب کې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې راکب ناخس ته صرف د نخس (چوخولو) اجازت ورکړی دی. نه د إتلاف (هلاکولو)، او په مذکوره مسئله کې د ناخس فعل إتلاف ګرځېدلی دی. نو په دې حواله سره خو صرف پر ناخس ضمان واجبېدل پکار دي، خو څرنګه چې په دې کې د راکب اجازت هم شامل دی. نو ځکه موږ پر دواړو نیم په نیمه ضمان واجب کړی دی.

والركوب وإن كان إلخ: په دې سره هم د مقدّر سوال جواب ورکول سوی دی. سوال دا دی چې په مذکوره مسئله کې د راکب فعل یعني سپر تیا د پایماله کولو (تر پښو لاندې کولو) علت دی او د ناخس فعل

(چوخول) د هغه لپاره شرط دي؛ ځکه که راکب پر چارپای سپور سوي نه وای، نو چارپای به یو څوک تر پښو لاندي کړی او هلاک کړي نه وای، نو دا داسي سوه. ګواکي خپله راکب مقتول تر خپلو پښو لاندي کړی او هلاک کړی دی. او د ناخس فعل شرط دی او قاعده دا ده چي کله چيري د علت وطرف ته د حکم اضافت ممکن وي، نو د شرط وطرف ته هغه نه منسوبول کيږي، بلکي صرف د علت وطرف ته منسوبول کيږي. نو ځکه په دې حواله سره فقط پر راکب ضمان واجبېدل پکار دي.

د دې جواب دا دی چي د ناخس فعل (چوخول) د راکب د فعل (درکوب) يعني د علت لپاره شرط نه دی: ځکه شرط له فعل څخه مخکي وي او دلته چي کوم شرط دی يعني نخس (چوخول) هغه له علت يعني له رکوب څخه مخکي نه دی، بلکي تر هغه وروسته دی، لهذا هغه به د علت شرط نه وي. بلکي د چارپای د سَير (تللو او پاړېدلو) شرط يا علت به وي، نو دلته د مقتول په هلاکت کي دوه علتونه جمع سول، نو ځکه پر دواړو به ضمان واجبيږي او صاحب علت (راکب) به د ضمان په واجبېدلو کي راجح و منفرد نه وي (يعني يوازي پر هغه به ضمان نه واجبيږي).

د دې مثال داسي دی لکه زيد چي مثلاً نقيب زخمي کړي، بيا مجروح (نقيب) د زخم له اثر څخه په يو ځاه کي ولوېږي کوم چي له جارح (زيد) څخه بغير بل چا په عامه لاره کي کيندلی وي او په هغه کي د لوېدلو په وجه مجروح (نقيب) مړ سي، نو په دې صورت جارح او حافر دواړه ضامن کيږي: ځکه دلته د هغه د مرګ دوه علتونه دي: ① جرح، ② حفر، لهذا پر جارح او حافر دواړو ضمان واجبيږي، همداسي په مذکوره مسئله کي هم د مقتول کس د قتل دوه علتونه دي: ① رکوب، ② نخس، نو ځکه دلته به هم پر راکب او ناخس دواړو ضمان واجبيږي. (احسن الهدايه)

## ناخس اداء کړی سوی ضمان له راکب څخه اخيستلای سي، که نه؟

ثُمَّ قِيلَ: يَرْجِعُ النَّاخِسُ عَلَى الرَّاكِبِ بِمَا ضَمِنَ فِي الْإِيطَاءِ بيا ويل سوي دي: چي د پايماله کولو په صورت کي به ناخس [چوخونکی] په هغه مقدار سره د کوم چي ناخس ضامن سوی دی پر راکب رجوع کوي لِأَنَّهُ فَعَلَ بِأَمْرِهِ ځکه ناخس د راکب په حکم سره [چوخول] کړي دي وَقِيلَ: لَا يَرْجِعُ او ويل سوي دي: چي ناخس به [پر راکب] رجوع نه کوي وَهُوَ الْأَصَحُّ فِيمَا أَرَاهُ او همدا زياته صحيح ده زما د رايي مطابق لِأَنَّهُ لَمْ يَأْمُرْهُ بِالْإِيطَاءِ ځکه راکب هغه ته د پايماله کولو حکم نه دی کړی وَالنَّخْسُ يَنْفَصِلُ عَنْهُ او نخس [چوخول] له پايماله کولو څخه جلا دي وَصَارَ كَمَا إِذَا أَمَرَ صَبِيًّا يَسْتَمْسِكُ عَلَى الدَّابَّةِ بِتَسْيِيرِهَا او دا داسي سو لکه څوک چي يو داسي بچي ته کوم چي پر چارپای تينګېدلای [کېښېستلای] سي د چارپای د بېولو حکم وکړي فَوَطِئَتْ إِنْسَانًا وَمَاتَ بيا دا

چارپای یو انسان پایماله کړي [تر پښو یې لاندي کړي] او انسان مړ سي حَتّٰی ضَمِنَ عَاقِلَةُ الصَّبِيِّ چي د هغه په وجه د بچي عاقله ضامنان سي [ضمان پرې واجب سي. او اداء یې کړي] فَإِنَّهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ عَلَى الْآمِرِ نو دوی پر حکم کونکي رجوع نه سي کولای [کوم چي بچي ته دَ چارپای د بېولو حکم کړی دی] لِأَنَّهٗ أَمَرَهٗ بِالتَّسْيِيْرِ ځکه هغه بچي ته [فقط] د بېولو [روانولو] حکم کړی دی وَالْإِيْطَاءُ يَنْفَصِلُ عَنْهُ او پایماله کول له بېولو څخه جلا دي وَكَذَا إِذَا نَاوَلَهٗ سِلَاحًا او همدارنګه کله چي بچي ته یو وسله ورکړي فَقَتَلَ بِهٖ آخَرَ نو بچي په هغه سره بل څوک قتل کړي حَتّٰی ضَمِنَ چي د هغه په وجه بچي ضامن سي لَا يَرْجِعُ عَلَى الْآمِرِ نو هغه پر حکم کونکي [وسله ورکونکي] رجوع نه سي کولای.

**اللغات**: ﴿إيطاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پایماله کول، تر پښو لاندي کول. ﴿ينفصل﴾ د انفعال د باب مضارع ده: جلا کېدل (بېلېدل)، علیحده کېدل. ﴿ناوله﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: ورکول (إعطاء)، په اصل کي هغه ورکولو ته چي لاس ور اوږد کړی او شی ورکړي.

**تشريح**: مسئله دا ده چي مخکي د راکب سره چي پر ناخس هم ضمان واجب سوی دی (چي نیم ضمان پر ناخس واجب دی)، آیا ناخس په هغه سره پر راکب رجوع کولای سي، یعني هغه له راکب څخه واپس اخیستلای سي، که نه؟، فرمایي چي په دې سلسله د مشایخو دوه قوله دي: ① اول قول دا دی چي ناخس له راکب څخه هغه واپس اخیستلای سي؛ ځکه چي هغه د همدې راکب په حکم سره دا کار (چوخول) کړي دي، ② دویم قول دا دی چي واپس یې نه سي اخیستلای؛ ځکه چي راکب و ناخس ته فقط د چارپای د چوخولو او تېزولو حکم کړی وو، نه د پایماله کولو او چغتاړولو. او بل دا چي چوخول پایماله کولو لره مستلزم هم نه دي بلکي له هغه څخه جلا شی دي، نو ځکه ناخس به مستقل ضامن کیږي او هغه ته به پر راکب د رجوع حق نه وي.

د دې مثال داسي دی لکه زید چي یو داسي بچي ته د چارپای بېولو (روانولو) حکم وکړي کوم چي پر چارپای کېنښستلای سي، نو بچي هغه روان کړي بیا چارپای یو څوک پایماله کړي او هلاک یې کړي، نو د هغه ضمان د بچي پر عاقله وو دی، او دوی دا ضمان له آمر یعني له حکم کونکي (زید) څخه واپس نه سي اخیستلای، ځکه آمر و بچي ته فقط د چارپای د بېولو حکم کړی وو. نه د پایماله کولو. او پایماله کول (ایطاء) له بېولو او روانولو (تسییر) څخه جلا شی دي، نه یو شی. نو ځکه عاقله وو ته پر آمر د رجوع حق نسته.

د دې بل مثال دا دی چې که زيد بچي ته يو وسله ورکړي او بچی په هغه سره يو څوک قتل کړي، نو دلته چې پر بچي کوم ضمان واجبيږي. هغه له آمر (زيد) څخه نه سي اخيستلای. لنډه دا چې څرنګه په دې دوو صورتونو کي مأمور ته د رجوع حق نسته چې اداء کړی سوی ضمان له آمر څخه واپس واخلي، نو همداسي په مذکوره مسئله کي چې کوم مأمور دی يعني ناخس هغه ته هم د رجوع حق نسته.

## ناخس کله ضامن کيږي؟

ثُمَّ النَّاخِسُ إِنَّمَا يَضْمَنُ إِذَا كَانَ الْإِيطَاءُ فِي فَوْرِ النَّخْسِ بيا ناخس همغه وخت ضامن کيږي کله چې پايماله کول تر نخس وروسته فوراً [سمدستي] وي حَتّٰى يَكُوْنَ السَّوْقُ مُضَافًا إِلَيْهِ د دې لپاره چې د چارپای شړل [او پارول] د ناخس وطرف ته مضاف [منسوب] سي وَإِذَا لَمْ يَكُنْ فِي فَوْرِ ذٰلِكَ او کله چې پايماله کول فوراً تر نخس وروسته نه وي فَالضَّمَانُ عَلَى الرَّاكِبِ نو ضمان پر راکب [واجب] دی لِانْقِطَاعِ أَثَرِ النَّخْسِ ځکه د نخس اثر منقطوع سوی دی فَبَقِيَ السَّوْقُ مُضَافًا إِلَى الرَّاكِبِ عَلَى الْكَمَالِ نو د چارپای شړل [بېول] په پوره توګه د راکب وطرف ته مضاف پاته سوه.

**اللغات:** ﴿سَوْق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: چارپای د شا لخوا شړل (هشه کول) چې ولاړ سي، د شا لخوا پر تللو پارول او بېول.

**تشريح:** فرمايي چې پر ناخس هغه وخت ضمان واجبيږي، کله چې تر نخس (چوخولو) وروسته سمدستي چارپای يو څوک تر پښو لاندي کړي او هلاک يې کړي (لکه مخکي چې هم د دې وضاحت وسو)، لېکن که تر نخس څه وخت وروسته چارپای يو څوک تر پښو لاندي او هلاک کړي، نو ټوله ضمان پر راکب واجبيږي؛ ځکه د نخس د اثر ختمېدلو په وجه اوس ټوله سَوق (د چارپای شړل او بېول) صرف د راکب وطرف ته منسوب کيږي. نو ځکه کامل ضمان به هم صرف پر هغه واجب وي. (احسن الهدايه)

## د چوخولو په وجه د قائد يا سائق د لاس څخه د چارپای د ايله کېدلو او نقصان رسولو حکم

وَمَنْ قَادَ دَابَّةً او څوک چې يو چارپای کش کړي [يعني د مخ لخوا يې روان کړي] فَنَخَسَهَا رَجُلٌ بيا يو سړی هغه وچوخوی فَانْفَلَتَتْ مِنْ يَدِ الْقَائِدِ نو چارپای د قائد [کشونکي] د لاس څخه ايله سو فَأَصَابَتْ فِي فَوْرِهَا او فوراً [سمدستي] يې حمله وکړه فَهُوَ عَلَى النَّاخِسِ نو د هغه ضمان پر ناخس دی وَكَذَا إِذَا كَانَ لَهَا سَائِقٌ او همدارنګه کله چې هغه د چارپای سائق [د شا لخوا شړونکي] وي فَنَخَسَهَا

غَيْرُهُ بيا يو بل څوک هغه وچوخوي لِأَنَّهُ مُضَافٌ إِلَيْهِ ځکه چې دا [د چارپاى فعل] د ناخس وطرف ته مضاف [منسوب] دى وَالنَّاخِسُ إِذَا كَانَ عَبْدًا او ناخس [چوخونكى] چې كله غلام وي فَالضَّمَانُ فِي رَقَبَتِهِ نو ضمان د هغه په رقبه كې [واجب] دى وَإِنْ كَانَ صَبِيًّا او كه بچى وي فَفِي مَالِهِ نو د هغه په مال كې [واجب] دى لِأَنَّهُمَا مُؤَاخَذَانِ بِأَفْعَالِهِمَا ځكه غلام او بچى دواړه په خپلو افعالو سره ماخوذ كيږي.

**اللغات:** ﴿قاد﴾ د نصر له بابه د ماضي صيغه ده: د مخ لخوا چارپاى كشول او بيول. ﴿دابة﴾ چارپاى، سپارلي، څاروى. ﴿انفلتت﴾ د انفعال له بابه د واحد مؤنث ماضي صيغه ده: ايله كېدل، خوشې كېدل، په تېزه خلاصېدل او ځغستل. ﴿الصبي﴾ بچى، ماشوم.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه نقيب خپل چارپاى (مثلاً آس) د مخ لخوا كشوي او مخ ته يې روان وي او په دې دوران كې زيد هغه چارپاى (آس) وچوخوي او د چوخولو سره سمدستي چارپاى پر يو چا حمله وكړي او قتل يې كړي، نو مقتول ضمان پر ناخس يعني پر زيد واجب دى، نه پر قائد (نقيب). همدا حكم د سائق په صورت كې هم دى؛ ځكه دلته د چارپاى فعل د ناخس وطرف ته مضاف دى او ناخس دلته تعدى كونكى مسبب دى، نو ځكه ضمان به هم هاغه اداء كوي.

او كه په مذكوره صورت كې ناخس غلام وي، نو ضمان د هغه د رقبې (ذات) سره متعلق كيږي. لهذا د ضمان اداء كولو لپاره به هغه خرڅول كيږي، او كه ناخس بچى وي نو د هغه په مال كې ضمان واجبيږي: ځكه بچى او غلام دواړه په خپلو افعالو كې مأخوذ كيږي. لهذا د دوى جنايت به هم د دوى په خپل مال كې واجبيږي.

## په لاره كې د يو شي د جګېدلو په وجه د چارپاى د پارېدلو او نقصان رسولو حكم

وَلَوْ نَخَسَهَا شَيْءٌ مَنْصُوبٌ فِي الطَّرِيقِ او كه په لاره كې يو درول سوى شى چارپاى وچوخوي [وپاروي] فَنَفَحَتْ إِنْسَانًا فَقَتَلَتْهُ نو هغه يو انسان په لغته ووهي او قتل يې كړي فَالضَّمَانُ عَلَى مَنْ نَصَبَ ذَلِكَ الشَّيْءَ نو ضمان پر هغه كس [واجب] دى كوم چې دا شى درولى دى لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ بِشَغْلِ الطَّرِيقِ ځكه هغه د لارې د مشغولولو په وجه تعدى كونكى دى فَأُضِيفَ إِلَيْهِ نو ځكه دا [نخس] به د هغه وطرف ته مضاف وي كَأَنَّهُ نَخَسَهَا بِفِعْلِهِ ګواكې هغه په خپل فعل سره دا چارپاى چوخولى [پارولى] دى.

**اللغات:** ﴿نَخَسَ﴾ د فتح او نصر له باب څخه د ماضي صيغه ده. مخكې يې وضاحت وسو چې د چارپاى په اړخ وغيره كې يو شى جګول (چنول) د دې لپاره چې په تېزه وځغلي، چوخول او پارول. ﴿منصوب﴾ د ضرب له بابه د مفعول صيغه ده: درول سوى، جګ كړى سوى.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که یو سړي خپل چارپای روان کړی وي او په لاره کي یو چا لرګي یا داسي بل شی درولی وي چي هغه په چارپای جګ سي او د چوخولو کار وکړي، نو د هغه په وجه چارپای وترهیږي او یو څوک په لغته ووهي او قتل یې کړي، نو په دې صورت کي پر ناصب (درونکي) ضمان واجبیږي، نه پر قائد وغیره؛ ځکه په لرګي او داسي نورو سره د لاري مشغولولو په وجه ناصب متعدي دی او دا داسي ده لکه هغه چي خپله دا چارپای چوخولی وي. نو ځکه پر هغه به ضمان واجب وي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم.

# بَابُ جِنَايَةِ الْمَمْلُوكِ وَالْجِنَايَةِ عَلَيْهِ

دا باب د مملوک د جنایت کولو او پر هغه د جنایت کولو (په بیان کي) دی

**تشریح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله چي کله د حُرّ (آزاد) له بیان څخه فارغ سو، نو اوس د مملوک (غلام او مینځي) د جنایت احکام او مسائل بیانوي، څرنګه چي حُرّ لره پر مملوک فوقیت او فضیلت حاصل دی، نو ځکه په بیان کي هم حُرّ پر مملوک مخکي کړی سوی دی. (احسن الهدایه)

**الجناية**: بکسر الجیم، د ضرب له باب څخه اسم مصدر دی: جرم، ګناه، داسي جرم چي د هغه په وجه ضمان (تاوان) واجب سي، داسي جرم چي قانوناً پر هغه یو سزا مرتبه وي.

**المملوك**: د ضرب له باب څخه اسم مفعول دی: هغه څوک چي د بل چا تر ملکیت لاندي وي یعني غلام، پر مذکر او مؤنث دواړو د مملوک اطلاق کیږي، لکه څرنګه چي صاحب د معجم ویلي دي: المملوك: الرقيق من ذكر أو أنثى.

### که غلام خطاءً یو جنایت وکړي؟ (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا جَنَى الْعَبْدُ جِنَايَةً خَطَأً فرمایي: او کله چي غلام خطاءً یو جنایت وکړي قِيلَ لِمَوْلَاهُ نو د هغه مالک ته دي وویل سي إِمَّا أَنْ تَدْفَعَهُ بِهَا یا ته دا غلام د جنایت په عوض کي ورکړه! أَوْ تَفْدِيَهُ یا د ده فدیه اداء کړه! وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: جِنَايَتُهُ فِي رَقَبَتِهِ يُبَاعُ فِيهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي: چي د غلام جنایت د ده په رقبه کي (واجب) دی چي په هغه کي به خرڅول کیږي إِلَّا أَنْ

بَقِيَ الْمَوْلَى الْأَرْشَ مګر دا چې مالک ارش [د جنايت ديت] اداء کړي وَفَائِدَةُ الِاخْتِلَافِ فِي اتِّبَاعِ الْجَانِي بَعْدَ الْعِتْقِ او د اختلاف فايده [د غلام] تر آزادۍ وروسته په مجرم د پسې کېدلو [مطالبه کولو] په صورت کې ده وَالْمَسْأَلَةُ مُخْتَلِفَةٌ بَيْنَ الصَّحَابَةِ رِضْوَانُ اللهِ عَلَيْهِمْ او د صحابه وو (رض) تر مينځ په دې مسئله کې اختلاف وو لَهُ: أَنَّ الْأَصْلَ فِي مُوجَبِ الْجِنَايَةِ أَنْ يَجِبَ عَلَى الْمُتْلِفِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د جنايت په مُوجَب [ديت] کې اصل دا دی چې هغه [مُوجَب] پر تلفونکي [جنايت کونکي] واجب سي لِأَنَّهُ هُوَ الْجَانِي ځکه چې هم هغه جنايتکاره [مجرم] دی إِلَّا أَنَّ الْعَاقِلَةَ تَتَحَمَّلُ عَنْهُ لېکن هغه [مُوجَب] عاقله د ده له طرفه زغمي [اداء کوي] وَلَا عَاقِلَةَ لِلْعَبْدِ او غلام لره عاقله نه وي لِأَنَّ الْعَقْلَ عِنْدِي بِالْقَرَابَةِ ځکه چې عاقله کېدل [يا ديت اداء کول] زما [يعني د امام شافعي] په نېز د قرابت په وجه وي وَلَا قَرَابَةَ بَيْنَ الْعَبْدِ وَمَوْلَاهُ او د غلام او د هغه د مالک تر مينځ هيڅ قرابت نه وي فَتَجِبُ فِي ذِمَّتِهِ نو ځکه ديت به د غلام پر ذمه واجب وي كَمَا فِي الذِّمِّي لکه د ذمي په صورت کې وَيَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ يُبَاعُ فِيهِ او دا وجوب د غلام د رقبې [ذات] سره متعلق کيږي چې په هغه کې به خرڅول کيږي كَمَا فِي الْجِنَايَةِ عَلَى الْمَالِ لکه پر مال د جنايت کولو په صورت کې.

**اللغات:** ﴿جنی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جنايت کول، جرم کول. ﴿أرش﴾ تاوان، جرمانه، هغه ديت کوم چې د ما دون النفس جنايت په عوض کې واجب سي، ﴿عقل﴾ د ضرب د باب مصدر دی، د دې باب يو معنیٰ ده: ديت اداء کول، عاقله کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو غلام خطاءً يو جنايت وکړي، مثلاً زيد خطاءً قتل کړي، يا خطاءً د زيد سترګه وباسي، نو زموږ په نېز د دغه جنايت اصل ضمان (تاوان) د هغه پر مالک (مولیٰ) دی او مالک ته به ويل کيږي چې يا د جنايت په عوض کې غلام ورکړه! يا غلام د ځان سره را وګرځوه او د هغه فديه اداء کړه!.

د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې د غلام د جنايت اصل ضمان د هغه د رقبې (ذات) سره متعلق کيږي او که مالک د هغه ضمان اداء نه کړي نو په دې جنايت کې به غلام خرڅول کيږي.

**وفائدة الإختلاف إلخ:** صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف په هغه صورت کې ښکاره کيږي چې که تر جنايت وروسته مالک دا غلام آزاد کړي، نو زموږ په نېز

مجني عليه (زيد) يا د هغه وارثان له دې غلام څخه د ضمان مطالبه نه سي کولای؛ ځکه اصل وجوب پر هغه نه دی. بلکي د هغه پر مالک دي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز له دې غلام څخه د ضمان مطالبه کولای سي؛ ځکه د هغه په نيز اصل وجوب پر غلام دی.

والمسألة إلخ: فرمايي چي دا مسئله صرف زموږ او د شوافعو تر مينځ مختلف فيه نه ده. بلکي د صحابه وو له دور څخه اختلاف پکښي جاري دی. له حضرت ابن عباس او معاذ بن جبل رضي الله عنهم څخه زموږ د مسلک په څېر اقوال نقل سوي دي، او له حضرت عمر او حضرت علي رضي الله عنهم څخه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مسلک په څېر اقوال نقل سوي دي.

له أن الأصل إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي اصل قانون همدا دی چي ضمان او ديت صرف مجرم (جنايتکاره) اداء کړي، لېکن د خطاءً جنايت کولو په صورت کي د مجرم ضمان او ديت عاقله اداء کوي، نو هلته مجرم له ضمان او ديت څخه بچ کيږي، خو که د مجرم عاقله نه وي، نو د هغه ضمان او ديت خپله پر هغه واجبيږي. او د غلام همدغه حال دی چي د هغه عاقله نه وي؛ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اصل مطابق د عاقله وو مدار پر قرابت دی او د غلام او مالک تر مينځ هيڅ قرابت نسته. نو ځکه د غلام د جنايت ضمان خپله د غلام د رقبې سره متعلق کيږي، لهذا د هغه د أداء کولو لپاره به غلام خرڅول کيږي.

مثال يې دا دی لکه ذمي که چيري خطاءً يو جنايت وکړي، نو د هغه ضمان هم پر ذمي واجبيږي؛ ځکه د ذمي لپاره هم عاقله نه وي. يا لکه غلام که چيري يو مال ضايع او هلاک کړي، نو د هغه ضمان هم صرف پر غلام واجبيږي. نو همدغسي په مذکوره مسئله کي د غلام د جنايت ضمان خپله د هغه پر ذات واجبيږي او غلام به د هغه په اداء کولو مکلف کيږي. (احسن الهدايه)

## د احنافو دليل

| |
|---|
| وَلَنَا: أَنَّ الْأَصْلَ فِي الْجِنَايَةِ عَلَى الْآدَمِيِّ حَالَةَ الْخَطَإِ زموږ دليل دا دی: چي د خطاء په حالت کي پر انسان د جنايت کولو په هکله اصل دا دی أَنْ تَتَبَاعَدَ عَنِ الْجَانِيْ چي ديت له مجرم څخه ليري سي تَحَرُّزًا عَنْ اسْتِئْصَالِهِ وَالْإِجْحَافِ بِهِ د دې لپاره چي دده وکړل سي له بېخه د مجرم د کښل کېدلو [دېوالي کېدلو] او هغه ته د سخت تاوان رسېدلو څخه إِذْ هُوَ مَعْذُوْرٌ فِيْهِ حَيْثُ لَمْ يَتَعَمَّدِ الْجِنَايَةَ ځکه هغه په خطاء [جنايتِ خطاء] کي معذوره دی په دې حيثيت سره چي هغه عمدا [قصدا] جنايت نه |

دی کړی وَتَجِبُ عَلٰى عَاقِلَةِ الْجَانِيْ إِذَا كَانَ لَهُ عَاقِلَةٌ او دیت د مجرم پر عاقله وو واجب دی کله چي د هغه عاقله وي وَالْمَوْلٰى عَاقِلَتُهُ او د غلام عاقله مالک [بادار] دی لِأَنَّ الْعَبْدَ يَسْتَنْصِرُ بِهِ ځکه غلام په مالک سره نصرت [مدد] ترلاسه کوي [يعني هغه له خپل مالک څخه مرسته غواړي] وَالْأَصْلُ فِي الْعَاقِلَةِ عِنْدَنَا النُّصْرَةُ او زموږ په نيز په عاقله کي نصرت اصل دی حَتّٰى تَجِبَ عَلٰى أَهْلِ الدِّيْوَانِ همدا وجه ده چي [دعسکر وغيره] ديت پر اهلِ دفتر واجبيږي بِخِلَافِ الذِّمِّيِّ په خلاف د ذمي لِأَنَّهُمْ لَا يَتَعَاقَلُوْنَ فِيْمَا بَيْنَهُمْ ځکه دوی په خپل مينځ کي [يو دبل] ديت نه اداء کوي فَلَا عَاقِلَةَ نو [د دوی] هيڅ عاقله نسته فَتَجِبُ فِيْ ذِمَّتِهِ نو ځکه ديت به د ذمي پر ذمه واجب وي صِيَانَةً لِلدَّمِ عَنِ الْهَدَرِ د دې لپاره چي وينه [خون] له ضايع کېدو څخه وساتل سي وَبِخِلَافِ الْجِنَايَةِ عَلَى الْمَالِ او په خلاف پر مال د جنايت کولو لِأَنَّ الْعَوَاقِلَ لَا تَعْقِلُ الْمَالَ ځکه چي عاقلې د مال ديت نه اداء کوي إِلَّا أَنَّهُ يُخَيَّرُ بَيْنَ الدَّفْعِ وَالْفِدَاءِ خو مالک ته به اختيار ورکول کيږي [د غلام] د ورکولو او [د غلام] د فديه ورکولو تر مينځ لِأَنَّهُ وَاحِدٌ ځکه چي مالک يو دی وَفِيْ إِثْبَاتِ الْخِيَرَةِ نَوْعُ تَخْفِيْفٍ فِيْ حَقِّهِ او د اختيار په ثابتولو کي د هغه په حق کي يو قسم تخفيف [او نرمي] ده كَيْ لَا يُسْتَأْصَلَ [په دې معنی] چي مالک ويجاړ نه کړی سي.

**اللغات:** ﴿تتباعد﴾ د تفاعل له بابه د مضارع صيغه ده: ليري کېدل. ﴿تحرز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل. ډډه کول. ځان ساتل. احتياط کول. ﴿استئصال﴾ او استيصال: له بېخه کښل. ويجاړول. له منځه وړل. ﴿إجحاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: د دې باب شو معناوي دي: په تاوان ور رسولو کي سختي کول. ختمول او ويجاړول. په داسي شي سره مکلف کول کوم چي د انسان په وس کي نه وي. ﴿يستنصر﴾ د استفعال د باب مضارع ده: د نصرت طلب کول (مدد غوښتل). مرسته حاصلول. ﴿الديوان﴾ په اصل کي هغه ريجسټر او دفتر ته وايي چي په هغه کي حسابونه ليکل کيږي. همدارنګه هغه ريجسټر چي په هغه کي د عسکرو، پوليسو او داسي نورو مهتمو کسانو نومونه، پته او کوائف ليکل کيږي. (مصباح منير معجم وسيط)

**تشريح:** زموږ د دليل حاصل دا دی چي که په خطاء صادرېدونکي جنايت کي پر مجرم (جنايتکار) ديت واجب کړی سي، نه پر عاقله وو. نو په دې سره به مجرم بالکل نېستمن او ډېوالي سي. لهذا له هغه څخه د بچ کېدو په خاطر موږ د هغه پر عاقله وو ديت واجب کړی دی. او بل په جنايت خطاء

کي مجرم معذوره هم وي: ځکه هغه عمداً جنايت نه وي کړی، نو په دې حيثيت سره هم د هغه پر عاقله وو د ديت وجوب مناسب معلوميږي. او څرنګه چې د غلام لپاره خپل عاقله نسته، نو ځکه د هغه عاقله خپله د هغه مالک دی: ځکه زموږ په نيز د عاقله کېدلو مدار پر نصرت او مرسته دی، او غلام نصرت او مرسته له خپل مالک څخه غواړي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي موږ پر مالک ضمان واجب کړی دی.

او د همدې نصرت په وجه د عسکر ديت پر اهل دفتر واجبيږي، يعني کوم پوليس او پوځي چي په يو اداره کي کار کوي او د ادارې په دفتر (ريجسټر) کي د هغه نوم درج وي، د هغه پوليس او پوځي د جنايت ديت پر هغه ادارې والا واجب دی په دې شرط چي جنايت خطاءً وي: ځکه د عسکر او خدمتګاره نصرت د هغه ادارې والا کوي، له دې څخه معلومه سوه چي د عاقله کېدلو مدار پر نصرت او مرسته دی.

بخلاف الذمي الخ: په دې عبارت سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکوي چي هغه د غلام مسئله د ذمي پر مسئلې قياس کړې ده، حاصل يې دا دی چي دا قياس صحيح نه دی: ځکه په ذميانو کي يو د بل د نصرت او تعاون هيڅ رواج نه وي، نو ځکه دوی لره عاقله هم نه وي. لهذا د ذمي د وينې او خون د بچ کېدلو په خاطر شريعت خپله پر مجرم ذمي ديت واجب کړی دی.

همدارنګه پر جنايت علی المال د امام شافعي رَحِمَهُ الله قياس هم صحيح نه دی: ځکه عاقله د مال ديت نه اداء کوي، نو پر هغه قياس کول به څنګه صحيح وي؟!.

د دې په خلاف په مذکوره مسئله کي د غلام عاقله موجود دي يعني د هغه مالک (مولیٰ)، نو ځکه موږ پر مالک ضمان واجب کړی دی، خو له ستونزي او تنګی څخه د مالک د بچ کېدلو په خاطر موږ مالک ته دا اختيار ورکړی دی چي که خوښه يې وي نو د جنايت په بدله کي دي غلام ورکړي، کنې د هغه فديه دي اداء کړي. (احسن الهدايه)

## په مذکوره مسئله کي زموږ د مسلک وضاحت

غَيْرَ أَنَّ الْوَاجِبَ الْأَصْلِيَّ هُوَ الدَّفْعُ فِي الصَّحِيحِ خو د صحيح روايت مطابق اصلي واجب [موجب اصلي] غلام ورکول دي وَلِهٰذَا يَسْقُطُ الْمُوجَبُ بِمَوْتِ الْعَبْدِ په همدې وجه د غلام په مرګ سره موجب فوتيږي لِفَوَاتِ مَحَلِّ الْوَاجِبِ د واجب محل د فوتېدلو په وجه وَإِنْ كَانَ لَهُ حَقُّ النَّقْلِ إِلَى الْفِدَاءِ که څه هم مالک لره د فديې اداء کولو وطرف ته د منتقل کېدلو حق سته كَمَا فِي مَالِ الزَّكَاةِ لکه د زکاة په مال کي [چي د انتقال حق سته] بِخِلَافِ مَوْتِ الْجَانِي الْحُرِّ په خلاف د آزاد جنايتکاره لِأَنَّ الْوَاجِبَ لَا

يَتَعَلَّقُ بِالْحُرِّ اِسْتِيْفَاءً ځکه داستيفاء [اخيستلو] په اعتبار سره واجب دآزاد سره نه متعلق کيږي [يعني د هغه په بدله کې آزاد نه سي اخيستل کېدای. بلکې صرف غلام ورکول او اخيستل کېدای سي] فَصَارَ كَالْعَبْدِ فِي صَدَقَةِ الْفِطْرِ نو دا داسي سو لکه په صدقه فطر کې غلام.

**اللغات**: ﴿الدفع﴾ د فتح د باب مصدر دی، د دې باب يوه معنیٰ ده: ورکول، اداء کول. ﴿موجب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی، حکم، مقتضا، مطلوب. ﴿فداء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: فديه ورکول. ﴿اسْتِيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل، ترلاسه کول، حاصلول.

**تشريح**: د مذکوره عبارت حاصل دا دی چې د غلام ورکولو او فديه اداء کولو تر مينځ چې مالک ته اختيار ورکول سوی دی، هغه د مالک د آسانۍ لپاره دی، کنې اصل واجب غلام ورکول دي (يا په بله وينا دا چې موجَبِ اصلي دفع العبد ده)، او همدا صحيح ده.

او د دې دليل چې اصل واجب غلام ورکول دي، دا دی چې که له ورکولو څخه مخکې غلام مړ سي، نو د واجب محل د فوتېدلو په وجه ګردسره موجَب ساقطيږي، حال دا چې که موجَبِ اصلي فديه ورکول وای، نو د غلام په مرګ سره به موجَب نه ساقطېدلای، معلومه سوه چې موجب اصلي غلام ورکول دي، خو مالک ته د فديه ورکولو اختيار سته. لکه څرنګه چې په زکاة کې اصل دا دی چې د کوم مال نصاب پوره وي، له هغه څخه به زکاة اداء کول کيږي او له مال نصاب څخه بغير مالک ته له بل مال څخه هم د زکاة اداء کولو حق سته. نو همداسي دلته هم موجَبِ اصلي غلام ورکول دي، خو د آسانۍ په خاطر مالک ته د فديه ورکولو حق هم سته.

بخلاف موت الجاني إلخ: د دې حاصل دا دی چې د واجب محل په فوتېدلو سره په همغه صورت کې موجب ساقطيږي کله چې محلِ واجب يعني جاني (مجرم) غلام وي، لېکن که جاني آزاد وي، نو د هغه په مرګ سره موجَب نه ساقطيږي؛ ځکه د موجب اداينه د آزاد کس د رقبې (ذات) سره نه متعلق کيږي، بلکې د هغه د مال سره متعلق کيږي او مال د سړي تر مرګ وروسته هم پر خپل حال پاتيږي. مثال يې دا دی لکه پر مالک د خپل غلام صدقة فطر (سرسايه) واجب ده. لېکن د دې وجوب تعلق د مالک د مال سره دی، د غلام د ذات سره نه دی، همدا وجه ده که دا ختر د ورځې له سپېده چاود څخه وروسته د يو مالک غلام مړ سي، نو له مالک څخه د غلام صدقة فطر نه ساقطيږي؛ ځکه د غلام په مرګ سره محلِ واجب فوت نه سو، بلکې محلِ واجب "يعني د مالک مال" پر خپل حال باقي دی. (احسن الهدايه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

قَالَ: فَإِنْ دَفَعَهُ فرمايي: نو كه مالک جنايتکاره غلام ورکړي مَلَكَهُ وَلِيُّ الْجِنَايَةِ نو ولي د جنايت د هغه مالک کيږي وَإِنْ فَدَاهُ او که مالک د هغه فديه ورکوي فَدَاهُ بِأَرْشِهَا نو د جنايت د ارش [تاوان] په اندازه دي فديه ورکړي وَكُلُّ ذٰلِكَ يَلْزَمُ حَالًا او دا هر يو [پر مالک] فی الحاله لازميږي أَمَّا الدَّفْعُ کوم چي غلام ورکول دي فَلِأَنَّ التَّأْجِيلَ فِي الْأَعْيَانِ بَاطِلٌ نو ځکه چي په اعيانو کي تأجيل [مياد ټاکل] باطل دي وَعِنْدَ اخْتِيَارِهِ الْوَاجِبُ عَيْنٌ او د دفع د اختيارولو په وخت کي [يعني چي مالک د غلام ورکول اختيار کړي په دې وخت کي] چي کوم شی واجب دی هغه [د غلام] عين دی وَأَمَّا الْفِدَاءُ او کوم چي فديه ورکول دي فَلِأَنَّهُ جُعِلَ بَدَلًا عَنِ الْعَبْدِ فِي الشَّرْعِ نو هغه ځکه [فی الحاله واجب دی] چي هغه په شريعت کي د غلام بدل ګرځول سوی دی وَإِنْ كَانَ مُقَدَّرًا بِالْمُتْلَفِ که څه هم هغه [فديه] په تلف کړل سوي سره اندازه کړی سوی دی[چي هغه به د جنايت د ارش په اندازه وي] وَلِهٰذَا سُمِّيَ فِدَاءً په همدې وجه هغه ته فديه ويل کيږي فَيَقُومُ مَقَامَهُ وَيَأْخُذُ حُكْمَهُ نو ځکه فديه به د غلام قائم مقام او د غلام حکم به اخلي فَلِهٰذَا وَجَبَ حَالًا كَالْمُبْدَلِ نو په دې وجه به د مبدل په څېر بدل [فديه] هم فی الحاله واجب وي.

**اللغات:** ﴿تأجيل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مياد ټاکل (وخت ټاکل)، مهلت ورکول. ﴿مقدّر﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: اندازه کړی سوی، ټاکل سوی، متعيّن. ﴿حالًا﴾ فی الحاله، فوراً(سمدستي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که په مخکنۍ مسئله کي مالک غلام ورکول (دفع العبد) اختيار کړي او ولي د جنايت ته غلام ورکړي، نو ولي د جنايت د هغه غلام مالک کيږي. او که مالک فديه ورکول اختيار کړي، نو دومره فديه به ورکوي کوم چي د جنايت د تاوان په اندازه وي. او له دې دواړو څخه چي مالک کوم صورت هم اختيار کړي، هغه به فوراً ترسره کوي؛ ځکه د غلام ورکولو په صورت کي واجب د غلام عين (ذات) دی او په اعيانو کي تأجيل باطل دی؛ ځکه تأجيل يعني مياد ټاکل يا مهلت ورکول د نا موجود او نا حاصله شي د تحصيل لپاره کيږي او دلته عين له مخکي څخه موجود دی، نو ځکه په هغه کي تأجيل صحيح نه دی او د هغه ادائه فی الفور واجب ده (چي فوراً به يې اداء کوي).

او د فديه ورکولو په صورت کې هم تأجيل صحيح نه دی؛ ځکه فديه ورکول د غلام ورکولو (دفع العبد) قائم مقام دي. په همدې وجه هغه ته فديه ويل کيږي چې هغه د غلام ورکولو (دفع العبد) نيابت کوي، لهذا کله چې هغه د دفع العبد نائب دی. نو کوم حکم چې د دفع (غلام ورکولو) دی هغه حکم به د فداء (فديه ورکولو) وي. او دفع فی الفور واجب ده. نو ځکه فداء به هم فی الفور واجب وي؛ ځکه چې شريعت هغه د غلام بدل ګرځولی دی او مبدل او بدل دواړه متحد الاحکام وي. پاتې سوه دا مسئله چې فديه به د جنايت د تاوان په اندازه وي، نو دا د فديې له بدليت (بدل والي) څخه مانع نه دي: ځکه په دې سره بدل نور کامل کيږي او دا د بدليت لپاره نقصان من نه دي. (احسن الهدايه)

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَأَيُّهُمَا اخْتَارَهُ وَفَعَلَهُ او له دې دواړو څخه چې مالک هر يو اختيار کړي او هغه وکړي لَا شَيْءَ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ غَيْرُهُ نو له هغه څخه بغير ولي د جنايت لره بل شی نسته أَمَّا الدَّفْعُ فَلِأَنَّ حَقَّهُ مُتَعَلِّقٌ بِهِ کوم چې [غلام] ورکول دي نو ځکه چې د ولي حق د غلام سره متعلق دی فَإِذَا خَلَّى بَيْنَهُ وَبَيْنَ الرَّقَبَةِ نو کله چې مالک د ولي او رقبه [غلام] تر مينځ تخليه وکړه [يعني کله چې يې غلام ولي ته وسپاری] سَقَطَ نو د مطالبې حق ساقط سو وَأَمَّا الْفِدَاءُ او کوم چې فديه ورکول دي فَلِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا الْأَرْشُ نو ځکه چې له ارش څخه بغير د ولي بل هيڅ حق نسته فَإِذَا أَوْفَاهُ حَقَّهُ او کله چې مالک د ولي حق پوره اداء کړی سَلِمَ الْعَبْدُ لَهُ نو غلام د مالک لپاره سالم پاته سو فَإِنْ لَمْ يَخْتَرْ شَيْئًا حَتَّى مَاتَ الْعَبْدُ لېکن که مالک هيڅ شی اختيار نه کړی تر دې چې غلام مړ سي بَطَلَ حَقُّ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ نو د مجني عليه حق باطليږي لِفَوَاتِ مَحَلِّ حَقِّهِ ځکه چې د هغه د حق محل فوت سو عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې [مخکې] موږ د دې بيان کړی دی وَإِنْ مَاتَ بَعْدَمَا اخْتَارَ الْفِدَاءَ او که غلام مړ سي وروسته تر دې چې مالک فديه ورکول اختيار کړي لَمْ يَبْرَأْ نو مالک نه بري کيږي لِتَحَوُّلِ الْحَقِّ مِنْ رَقَبَةِ الْعَبْدِ إِلَى ذِمَّةِ الْمَوْلَى ځکه [د ولي] حق د غلام له غاړې څخه د مالک و ذمې ته نقل سو.

**اللغات**: ﴿خلّی﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره يې معنیٰ هم بدليږي: دوه شيان يا دوه کسان په خپل مينځ کې سره پرېښوول او داسي نور، کله چې د مبيع او داسي نورو سره ذکر سي، نو د "ورسپارلو" معنیٰ ورکوي، يعني له مبيع څخه خپل قبضه

ختمول او د مشتري په قبضه کي ورکول. ﴿مجني عليه﴾ مَجنِيّ د ضرب د باب مفعول دی: پر چا چي جنايت سوی وي. ﴿تحوّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: اوښتل. بدلېدل. نقل کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي په مخکني مسئله کي مالک ته د غلام ورکولو يا فديه اداء کولو کوم دوه اختيار ورکول سوي دي. له هغوی څخه چي هر يو مالک متعين او اختيار کړي. نو په بل يوه کي د ولي (وارث) حق ختمېږي. لهذا که مالک د جنايتکاره غلام ورکول اختيار کړي او غلام ولي د جنايت (وارث) ته حواله کړي نو په ارش کي د ولي حق ختمېږي. او که مالک فديه اداء کړي نو په غلام کي د ولي حق ختمېږي چي تر دې وروسته ولي له مالک څخه د هغه مطالبه نه سي کولای؛ ځکه د غلام ورکولو په صورت کي د ولي حق د غلام د ذات سره متعلق دی او د ارش په صورت کي د مال سره متعلق دی. لهذا کله چي ولي ته خپل حق حاصل سو. برابره ده غلام ورته حاصل سو يا مال، نو اوس ولي (وارث) لره د هيڅ شي د مطالبې حق نه پاتېږي.

فإن لم يختر إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک تر اوسه يو شی هم اختيار کړی نه وي يعني نه يې غلام ورکړی وي او نه فديه، او په دې وخت کي جنايتکاره غلام مړ سي، نو د ولي (وارث) حق بالکل ساقطېږي؛ ځکه اصل واجب غلام ورکول دي او د غلام مړ کېدلو په وجه محلِ واجب فوت سو. نو ځکه د ولي حق به هم ساقطېږي، لکه مخکي چي دا مسئله د دليل سره بيان سوه.

وإن مات بعد ما اختار إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک فديه ورکول اختيار کړي، تر دې وروسته جنايتکاره غلام مړ سي، نو د ولي حق نه ساقطېږي، بلکي د مالک پر ذمه باقي پاتېږي؛ ځکه اوس دا حق له جنايتکاره غلام څخه د مالک وطرف ته منتقل سو او مالک ژوندی دی، نو ځکه ولي به اوس له هغه څخه خپل حق ترلاسه کوي. (احسن الهدايه)

## تر فديه ورکولو وروسته دويم وار جنايت کول

قَالَ: فَإِنْ عَادَ فَجَنٰى فرمايي: او که مجرم راوګرځي بيا جنايت وکړي [يعني دوباره جنايت وکړي] كَانَ حُكْمُ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ كَحُكْمِ الْجِنَايَةِ الْأُولٰى نو د دويم جنايت حکم د اول جنايت د حکم په څېر دی مَعْنَاهُ بَعْدَ الْفِدَاءِ د دې مطلب دی چي تر فديه اداء کولو وروسته [دوباره جنايت وکړي] لِأَنَّهُ لَمَّا طَهُرَ عَنِ الْجِنَايَةِ بِالْفِدَاءِ ځکه کله چي غلام پاک سو په فديه اداء کولو سره جُعِلَ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ نو داسي به ګڼل کېږي لکه جنايت چي سوی نه وي [يعني لکه غلام چي بالکل جنايت کړی نه وي] وَهٰذَا ابْتِدَاءُ جِنَايَةٍ او دا ابتداءً [نوی] جنايت سو.

**اللغات**: ﴿جنٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جنايت کول، جرم کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام يو جنايت وکړي او مالک د هغه فديه ورکړي، بيا دا غلام دوباره جنايت وکړي، نو د دې دويم جنايت هاغه حکم دی کوم دي چې د مکخني جنايت دی، يعني مالک ته اختيار دی چې که د دې جنايت په عوض کې غلام ورکوي او که د هغه فديه اداء کوي؛ ځکه د اول جنايت د فديه اداء کولو په وجه غلام له جنايت څخه پاک صفا سو، او داسي سو لکه هغه چې بالکل جنايت کړی نه وي، لهذا دا دويم جنايت د هغه له طرفه نوی جنايت سو، نو ځکه د هغه حکم به هم نوی وي. (احسن الهدايه)

### که غلام دوه جنايتونه وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِنْ جَنٰى جِنَايَتَيْنِ فرمايي: او که غلام دوه جنايتونه وکړي قِيْلَ لِلْمَوْلٰى نو مالک ته به وويل سي إِمَّا أَنْ تَدْفَعَهُ إِلٰى وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ يا ته دا غلام ورکړه! د دواړو جنايتونو وليانو ته يَقْتَسِمَانِهِ عَلٰى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا چې دوی دواړه هغه د خپلو حقونو د مقدار مطابق تقسيم کړي وَإِمَّا أَنْ تَفْدِيَهُ بِأَرْشِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يا ته د غلام فديه ورکړه! له دوی دواړو څخه د هر يوه د ارش په اندازه لِأَنَّ تَعَلُّقَ الْأَوَّلِ بِرَقَبَتِهِ لَا يَمْنَعُ تَعَلُّقَ الثَّانِيَةِ بِهَا ځکه د غلام د غاړي [ذات] سره د اول جنايت متعلق کېدل د هغه د غاړي سره د دويم جنايت متعلق کېدل نه منع کوي كَالدُّيُوْنِ الْمُتَلَاحِقَةِ لکه پرلپسې قرضونه أَلَا تَرٰى أَنَّ مِلْكَ الْمَوْلٰى لَمْ يَمْنَعْ تَعَلُّقَ الْجِنَايَةِ آيا ته نه ګورې! چې د مالک [بادار] ملکيت د جنايت تعلق نه منع کوي فَحَقُّ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ الْأَوَّلِ أَوْلٰى أَنْ لَا يَمْنَعَ نو د اول مجنى عليه حق به په درجه اولىٰ منع کونکی وي وَمَعْنٰى قَوْلِهِ عَلٰى قَدْرِ حَقَّيْهِمَا: عَلٰى قَدْرِ أَرْشِ جِنَايَتِهِمَا او د امام قدوري رَحِمَهُ الله د دې قول "[يقتسمانه] على قدرِ حقيهما" معنىٰ ده: د دوی دواړو د جنايت د ارش په اندازه.

**اللغات**: ﴿أرش﴾ تاوان، جرمانه، هغه ديت کوم چې د ما دون النفس جنايت په بدله کې واجب سي.

﴿متلاحقة﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث اسم فاعل صيغه ده: يو د بل سره متصل، يو په بل پسې (پرلپسې).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو غلام دوه جنايتونه وکړي، مثلاً يو سړی خطاءً قتل کړي او بيا تر دې وروسته بل سړی خطاءً قتل کړي، نو په دې صورت کې هم د ده مالک ته هاغه مخکيني دوه اختياره حاصليږي چې ① يا مالک به دا غلام د دواړو مقتولانو وليانو (وارثانو) ته ورکوي او دوی به

هغه خرڅوي او د هر مقتول وليان به د خپل مقتول ديت څني اخلي. ⓶ يا مالک به د مقتولانو دارش (ديت) په اندازه وليانو ته فديه ورکوي؛ ځکه څرنګه چې د غلام اول جنايت د غلام د غاړې (ذات) سره متعلق کيږي، همداسې د هغه دويم او دريم جنايت هم د هغه د غاړې سره متعلق کيږي؛ لکه څرنګه چې قرضونه د غلام د رقبې سره متعلق کيږي. يعنې که غلام له يو چا څخه قرض واخلي او بيا تر دې وروسته له بل چا څخه قرض واخلي، نو ټوله قرضونه د هغه د غاړې سره متعلق کيږي، همدغسې په مذکوره مسئله کې هم ټوله جنايتونه د غلام د رقبې سره متعلق کيږي او د يوه جنايت تعلق د بل جنايت له تعلق څخه نه مانع کيږي (بلکې دواړه د رقبې سره متعلق کيږي).

**که غلام پر ډيرو خلکو جنايت وکړي نو څه حکم دی؟ او د دوو جنايتونو نور تفصيل**

وَإِنْ كَانُوا جَمَاعَةً او که وليان [د جنايت] يو جماعت وي يَقْتَسِمُونَ الْعَبْدَ الْمَدْفُوعَ عَلَى قَدْرِ حِصَصِهِمْ نو دوی به ورکول سوی غلام د خپلو حصو د مقدار مطابق سره تقسيموي وَإِنْ فَدَاهُ او که مالک د غلام فديه ورکوي فَدَاهُ بِجَمِيعِ أُرُوشِهِمْ نو د دوی ټولو د ارشونو [ديتونو] په اندازه به فديه ورکوي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې مو ړ ذکر کړی وَلَوْ قَتَلَ وَاحِدًا وَفَقَأَ عَيْنَ آخَرَ او که غلام يو کس قتل کړی او د بل کس سترګه وباسي يَقْتَسِمَانِهِ أَثْلَاثًا نو هغوی دواړه به دا غلام په دريو حصو سره تقسيموي [دوې حصې به د مقتول ولي اخلي او يوه حصه به سترګې والا اخلي] لِأَنَّ أَرْشَ الْعَيْنِ عَلَى النِّصْفِ مِنْ أَرْشِ النَّفْسِ ځکه د سترګې ارش د نفس د ارش نصف دی وَعَلَى هَذَا حُكْمُ الشِّجَاتِ او پر همدغه تفصيل د سر او مخ د زخمونو حکم دی وَلِلْمَوْلَى أَنْ يَفْدِيَ مِنْ بَعْضِهِمْ او مالک لره حق سته چې له دوی څخه د بعضې فديه ورکړي وَيَدْفَعَ إِلَى بَعْضِهِمْ مِقْدَارَ مَا تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّهُ مِنَ الْعَبْدِ او بعضو ته غلام ورکړي په دومره مقدار سره چې د هغو حق د غلام سره متعلق وي [يعنې مالک لره دا حق هم سته چې بعضو ته فديه ورکړي او بعضو ته غلام دومره مقدار ورکړي څومره چې د غلام سره د هغوی حق متعلق وي] لِأَنَّ الْحُقُوقَ مُخْتَلِفَةٌ بِاخْتِلَافِ أَسْبَابِهَا ځکه د سببونو د مختلف کېدلو په وجه حقونه هم مختلف دي وَهِيَ الْجِنَايَاتُ الْمُخْتَلِفَةُ او هغه [سببونه] مختلفه [بېلا بېل] جنايتونه دي بِخِلَافِ مَقْتُولِ الْعَبْدِ إِذَا كَانَ لَهُ وَلِيَّانِ په خلاف د غلام د مقتول [يعنې هغه کس کوم چې غلام قتل کړی وي] کله چې هغه لره دوه وليان وي لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَفْدِيَ مِنْ أَحَدِهِمَا وَيَدْفَعَ إِلَى الْآخَرِ نو مالک ته دا حق

نسته چي يوه ولي ته فديه ورکړي او بل ولي ته غلام ورکړي لِأَنَّ الْحَقَّ مُتَّحِدٌ ځکه چي حق يو دی لِاتِّحَادِ سَبَبِهِ وَهِيَ الْجِنَايَةُ الْمُتَّحِدَةُ ځکه چي د هغه سبب يو دی او هغه يو جنايت دی وَالْحَقُّ يَجِبُ لِلْمَقْتُولِ او حق [اول] [ د مقتول لپاره واجبيږي ثُمَّ لِلْوَارِثِ خِلَافَةً عَنْهُ بيا له مقتول څخه د خلافت [نيابت] په توګه د وارث لپاره واجبيږي فَلَا يَمْلِكُ التَّفْرِيْقَ فِيْ مُوجَبِهَا نو ځکه مالک به د جنايت په موجب کي د تفريق کولو ملکيت [او اختيار] نه لري.

**اللغات**: ﴿يقتسمون﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: سره تقسيمول. وېشل.
﴿فداه﴾ د ضرب د باب ماضي ده: فديه ورکول. فديه اداء کول. ﴿أُروش﴾ جمع د أَرْشٌ ده: تاوان. جرمانه. دما دون النفس جنايت ديت. ﴿شجّات﴾ جمع د شَجَّةٌ ده: د سر زخم او د مخ زخم. د دې دوو ځايو زخم ته شَجَة ويل کيږي. ﴿تفريق﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: يو شی سره جلا کول (جدا. جدا کول). جدايي پکښې راوستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که غلام پر څو کسانو جنايت وکړي مثلاً شپږ نفره زخمي کړي او د غلام مالک د دې جنايت په عوض کي دوی ته غلام ورکړي، نو دوی به دا غلام خرڅوي او په خپل مينځ کي به يې د خپلو حصو په اندازه تقسيموي (يعني هر يوه ته به د هغه د زخم او ديت په اندازه د غلام له قيمت څخه تاوان ورکول کيږي). او که مالک د غلام فديه ورکول وغواړي، نو د دوی هر يوه د ارش (ديت) چي کومه فديه کيږي، د هغه مطابق به مالک ټوله فديه اداء کوي.

ولوقتل واحدا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که غلام دوه جنايتونه په دې ډول وکړي چي يو سړی قتل کړي او د بل سترګه وباسي، نو اوس به د غلام قيمت دري حصې کول کيږي، دوې حصې به د مقتول ولي ته او يوه حصه چي د چا سترګه يې ايستلې ده هغه ته ورکول کيږي؛ ځکه د سترګي ارش د نفس د ارش نصف کيږي (يعني د سترګي ديت دومره دی لکه د نفس نيم ديت)، نو ځکه په مذکوره صورت کي به د غلام د قيمت دوې حصې د نفس بدل وي او يوه حصه به يې د سترګي بدل وي.

وهٰذا حکم الشجات إلخ: يعني پورتنی حکم د سر او مخ د زخمونو هم دی. يعني که غلام د يو چا په سر کي موضحه زخم جوړ کړي او په بل کس کي هاشمه زخم جوړ کړي او په بل کي مُنقله زخم جوړ کړي (چي د دې زخمونو وضاحت په فصل فی الشجاج کي تېر سو)، او د غلام مالک د دې زخمونو په عوض کي دوی ته غلام ورکړي، نو دوی به دا غلام خرڅوي او په خپل مينځ کي به يې د خپلو حصو مطابق تقسيموي، نو که دا غلام مثلاً په درې زره درهمه خرڅ سي، نو د موضحه زخم والا ته به د

دربو زرو سُدس يعني پنځه سوه درهمه ورکول کيږي، او هاشمه زخم والا ته به دهغه ثلث يعني زر درهمه ورکول کيږي، او منقله زخم والا ته به دهغه نصف يعني پنځلس سوه درهمه ورکول کيږي: ځکه د دوی حصې په همدې مقدار سره متعيني دي.

وللمولى أن يفدى إلخ: د دې حاصل دا دی چې د مختلفه زخمونو په صورت کې چې څرنګه مالک ته د غلام ورکولو حق سته (چې مجروحينو ته غلام ورکړي)، همداسې دا حق هم ورته سته چې بعضو ته د غلام فديه ورکړي او بعضو ته دهغو د حق ارش په اندازه غلام ورکړي، يعنې پر مالک صرف غلام ورکول واجب او ضروري نه دي؛ ځکه کله چې جنايتونه مختلف وي، نو ښکاره ده چې پر چا جنايت سوی دی (يعني مجنی عليهم) دهغو حقونه به هم مختلف وي او د هر حق خاوند ته يو ډول ضمان ورکول ضروري نه دي: نو ځکه مالک لره به بعضو ته د فديه ورکولو او بعضو ته د غلام ورکولو اختيار وي.

د دې په خلاف که غلام يو سړی قتل کړی وي او دهغه دوه وليان وي، نو مالک ته دا حق نسته چې يوه ولي ته غلام ورکړي او بل ته فديه ورکړي؛ ځکه چې دلته د دواړو حق يو دی، ځکه د کوم شي په وجه چې حق ثابت سوی دی يعني جنايت هغه يو دی او بيا د اصل په اعتبار سره د حق خاوند هم يو دی؛ ځکه ابتداءً دا حق د مقتول لپاره ثابتيږي او بيا د خلافت (نائب والي) په توګه له هغه څخه منتقل کيږي او د وليانو (وارثانو) لپاره ثابتيږي، لهذا کله چې حق هم يو دی، د حق خاوند او د حق سبب هم يو دی، نو مالک ته به په هغه کې د تفريق او تقسيم اجازه نه وي، بلکې هغه به دواړو ته يا غلام ورکوي يا به فديه ورکوي. (احسن الهدايه)

## که مالک جنايتکاره غلام په نا خبري کې آزاد کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ أَعْتَقَهُ الْمَوْلَى وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِالْجِنَايَةِ فرمايي: او که مالک جنايتکاره غلام آزاد کړي حال دا چې هغه [د غلام] په جنايت خبر نه وي ضَمِنَ الْأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ أَرْشِهَا نو مالک د غلام له قيمت او د جنايت له ارش څخه د کم يوه ضامن کيږي [يعني له قيمت او ارش څخه چې کوم يو کم وي، هغه به ورکوي] وَإِنْ أَعْتَقَهُ بَعْدَ الْعِلْمِ بِالْجِنَايَةِ او که په جنايت تر خبرېدلو وروسته مالک هغه آزاد کړي وَجَبَ عَلَيْهِ الْأَرْشُ نو پر هغه ارش واجبيږي لِأَنَّ فِي الْأَوَّلِ فَوَّتَ حَقَّهُ ځکه په اول صورت کې [يعني کله چې مالک په جنايت خبر نه وي او غلام آزاد کړي] مالک د هغه [مجني عليه] حق فوت کړی دی فَيَضْمَنُهُ نو ځکه دئ به د هغه ضامن وي وَحَقُّهُ فِي أَقَلِّهِمَا او د هغه [مجني عليه] حق له قيمت او

ارش څخه په کم يوه کي دی وَلَا يَصِيرُ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ او [په اول صورت کي] مالک د فديې اختيارونکی نه ګرځي لِأَنَّهُ لَا اخْتِيَارَ بِدُونِ الْعِلْمِ ځکه له علم [خبرېدلو] څخه بغير اختيارول نا ممکن دي وَفِي الثَّانِي صَارَ مُخْتَارًا او په دويم صورت کي مالک د فديې اختيارونکی ګرځي لِأَنَّ الْإِعْتَاقَ يَمْنَعُهُ مِنَ الدَّفْعِ ځکه [د غلام] آزادول [د غلام] له ورکولو څخه مانع دي فَالْإِقْدَامُ عَلَيْهِ اخْتِيَارٌ مِنْهُ لِلْآخَرِ نو پر آزادولو [د مالک] اقدام کول د مالک له طرفه د بل [يعني د فديې] اختيارول دي وَعَلَى هٰذَيْنِ الْوَجْهَيْنِ الْبَيْعُ وَالْهِبَةُ وَالتَّدْبِيرُ وَالِاسْتِيلَادُ او پر همدغه دوو صورتونو بيع او هبه او تدبير او استيلاد [هم] دي لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مِمَّا يَمْنَعُ الدَّفْعَ ځکه له دې کارونو څخه هر يو [د غلام] ورکول منع کوي لِزَوَالِ الْمِلْكِ بِهِ ځکه د دوی په وجه [له غلام څخه د مالک] ملکيت زائليږي بِخِلَافِ الْإِقْرَارِ عَلَى رِوَايَةِ الْأَصْلِ په خلاف د اقرار د مبسوط د روايت مطابق لِأَنَّهُ لَا يَسْقُطُ بِهِ حَقُّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ ځکه د اقرار په وجه د جنايت د ولي حق نه ، اقطيږي فَإِنَّ الْمُقَرَّ لَهُ يُخَاطَبُ بِالدَّفْعِ إِلَيْهِ ځکه مقرلهٔ هغه [ولي] ته په غلام ورکولو سره مخاطب کيږي وَلَيْسَ فِيهِ نَقْلُ الْمِلْكِ او په دې کي د ملکيت نقل کول نسته لِجَوَازِ أَنْ يَكُونَ الْأَمْرُ كَمَا قَالَهُ الْمُقِرُّ ځکه د دې جواز [امکان] سته چي خبره به همداسي وي لکه څرنګه چي مُقِر ويلي دي وَأَلْحَقَهُ الْكَرْخِيُّ بِالْبَيْعِ وَأَخَوَاتِهِ او امام کرخي رَحِمَهُ الله دا اقرار د بيع او د هغه د نظيرونو سره لاحق کړی دی لِأَنَّهُ مِلْكُهُ فِي الظَّاهِرِ ځکه غلام په ښکاره د مُقِر ملکيت دی [يعني ظاهراً هغه د غلام مالک دی] فَيَسْتَحِقُّهُ الْمُقَرُّ لَهُ بِإِقْرَارِهِ نو ځکه د مُقِر د اقرار په وجه مقرلهٔ د هغه [غلام] مستحق کيږي فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو دا [اقرار] د بيع مشابه سو [چي د بيع په وجه مشتري د مبيع مستحق کيږي] وَإِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْكِتَابِ يَنْتَظِمُ النَّفْسَ وَمَا دُونَهَا او په قدوري [متن] کي د حکم مطلق کېدل نفس او مادون النفس دواړو لره شامليږي وَكَذَا الْمَعْنَى لَا يَخْتَلِفُ او همداسي وجه [سبب] هم مختلف نه دی وَإِطْلَاقُ الْبَيْعِ يَنْتَظِمُ الْبَيْعَ بِشَرْطِ الْخِيَارِ لِلْمُشْتَرِي او د بيع مطلق کېدل هغه بيع لره هم شامليږي کوم چي د مشتري لپاره د خيار په شرط سره وي [يعني چي په هغه کي د مشتري لپاره خيار شرط وي] لِأَنَّهُ يُزِيلُ الْمِلْكَ ځکه دا بيع [هم] ملکيت

زائلوي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْخِيَارُ لِلْبَائِعِ وَنَقَضَهُ په خلاف د هغه صورت كله چي خيار د بائع لپاره وي او بائع بيع ماته كړي وَبِخِلَافِ الْعَرْضِ عَلَى الْبَيْعِ او په خلاف پر بيع [د غلام] پېشولو لِأَنَّ الْمِلْكَ مَا زَالَ ځکه [په دې دوو صورتونو کي] ملکيت زائل نه سو.

**اللغات**: ﴿فوّت﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: فوتول. ضايع كول. ﴿ينتظم﴾ د افتعال د باب مضارع ده: شامليدل. مشتمل كېدل. ﴿عَرْض﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پېشول. وړاندي كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه غلام جنايت وكړي خو د غلام مالک د هغه په جنايت خبر نه سي او بيا مالک دا جنايتكاره غلام آزاد كړي. وروسته هغه په خبر سي چي زما غلام خو جنايت كړی وو. نو په دې صورت كي حكم دا دی چي د غلام په قيمت او د جنايت په ارش كي چي كوم يو كم (أقل) وي. هاغه پر مالک واجب دی (يعني د غلام قيمت او د جنايت ارش (تاوان) به سره اندازه كول كيږي چي هر يو كم او لږ وي. هغه به د جنايت ولي ته وركوي). او كه مالک د غلام په جنايت خبر وي او بيا هغه آزاد كړي. نو په دې صورت كي پر مالک د جنايت ارش واجبيږي برابره ده هغه غلام له قيمت ځخه كم وي او كه زيات وي. يعني په دې صورت كي پر مالک صرف ارش (يا په بله وينا فديه) واجبيږي. او هغه ته د أقل من القيمة و من الأرش اختيار نسته؛ دليل او په دواړو صورتونو كي د فرق وجه دا ده چي په اول صورت كي (يعني كله چي مالک د غلام په جنايت خبر نه وي او هغه آزاد كړي) مالک د مجني عليه حق فوت كړی دی. او د مجني عليه حق له قيمت او ارش ځخه په اقل يوه كي متعيّن دی؛ ځكه هغه ته د اكثر د مطالبې حق نسته. لهذا د هغه حق په اقل كي متعيّن دی او د غلام په آزادولو سره مالک دا اقل يو زائل كړی دی. نو ځكه پر مالک به هاغه واجب وي او په دې صورت كي به مالک د فديه اختيارونكی نه وي (يا په بله وينا پر مالک به د جنايت ارش يعني فديه واجب نه وي).

هاں! كه په جنايت تر خبرېدلو وروسته مالک غلام آزاد كړي، نو په دې صورت كي پر مالک ارش واجبيږي او مالک به د ارش يعني د فديه اختيارونكی وي؛ ځكه كله چي هغه غلام آزاد كړی، نو د غلام وركول (دفع العبد) متعذر او ناممكن سوه او د هغه له طرفه فديه اختيارول او فديه وركول متعيّن سوه. ځكه چي غلام آزادول (إعتاق العبد) د غلام له وركولو ځخه مانع دي (ځكه ښكاره ده خبره ده چي كله غلام آزاد كړی سي نو بيا هغه د جنايت په بدله كي نه سي وركول كېدای. فوجب الأرش متيقنًا).

وعلى هٰذين الوجهين إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د غلام په جنايت د خبرېدلو او نه خبرېدلو په صورت كي چي د غلام د آزادولو كوم دوه جلا صورتونه او جلا حكمونه دي. پر هغوی دا مسائل هم مرتّب دي: ① كه مالک جنايتكاره غلام خرڅ كړي، ② يا هغه مدبر جوړ كړي (يعني

هغه ته ووايي چي زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې)، (۳) يا مينځه جنايت وکړي او مالک هغه اُمِ ولده جوړه کړي (يعني مالک وطي ور سره وکړي چي د هغه په نتيجه کي بچی پيدا سي)، (۴) يا جنايتکاره غلام يو چا ته په هبه کي ورکړي، نو که چيري په دې صورتونو کي هم مالک د غلام په جنايت خبر نه وي او مالک له دې مذکوره کارونو څخه يو کار وکړي، نو هغه ته د أقل من القيمة ومن الأرش اختيار سته. او که په جنايت تر خبرېدلو وروسته مالک داسي وکړي، نو هغه ته دا اختيار نسته. بلکي فديه متعيّن کيږي؛ ځکه له دې کارونو څخه هر کار له غلام ورکولو (دفع العبد) څخه مانع دي؛ ځکه په دې هر يوه سره د مالک ملکيت له غلام څخه زائليږي او د ملکيت زوال له غلام ورکولو (دفع العبد) څخه مانع دي، لهذا د غلام پر ځای به اوس فديه متعيّن کيږي.

بخلاف الإقرار إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک داسي ووايي چي دا جنايتکاره غلام زما نه دی، بلکي د بل چا مثلاً د زيد غلام دی (لهذا له زيد څخه دې د غلام مطالبه وسي)، نو په دې صورت کي فديه نه متعيّن کيږي؛ ځکه په دې اقرار سره "چي غلام د بل چا (زيد) دی" د ولي حق نه ساقطيږي بلکي مقر لهٗ (زيد) په دې خبره سره مخاطب کيږي او مطالبه به ځني کيږي چي هغه دا مذکوره غلام ولي د جنايت ته ورکړي. او که دلته دا سوال وسي چي غلام خو د يو چا په قبضه کي دی او د هغه ضمان پر بل چا (مقرلهٗ) واجب دی، دا څنګه خبره ده؟، نو جواب دا دی چي په داسي صورت کي ملکيت نه منتقل کيږي بلکي دا غلام له مخکي څخه د مقرلهٗ (زيد) په ملکيت کي شمېرل کيږي ځکه کېدای سي چي خبره همداسي وي لکه څرنګه چي مُقِر وايي (يعني غلام به رښتيا هم د مقرلهٗ ملکيت وي).

وألحق الكرخي إلخ: د دې حاصل دا دی چي امام کرخي رَحِمَهُ الله مذکوره اقرار ته د بيع او د هبې او داسي نورو درجه ورکړې ده او دلته يې هم فديه متعيّنه کړې ده چي مالک به ولي د جنايت ته د غلام فديه ورکوي؛ ځکه دا مُقِر (چي د هغه په قبضه کي غلام جنايت کړی دی) ظاهراً د دې غلام مالک دی او د ده په اقرار سره مقرلهٗ (زيد) ته د دې غلام ملکيت حاصل سوی دی، لهذا د مُقِر اقرار د بيع سره مشابه سو او د بيع په صورت کي د مالک په حق کي فديه متعيّنه ده، نو ځکه د اقرار په صورت کي به هم د هغه په حق کي فديه متعيّنه وي.

وإطلاق الجواب إلخ: يعني امام قدوري رَحِمَهُ الله چي په متن کي د مطلق جنايت يادونه کړې ده او مطلقاً يې داسي ويلي دي "ضمن الأقلّ من قيمته ومن أرشها"، دا اطلاق جنايت بالنفس يعني قتل لره هم شامل دی او جنايت بما دون النفس يعني د اندام وغيره هلاکولو او زخمي کولو لره هم شامل دی او

په دواړو صورتونو کي حکم هاغه دی کوم چي اوس بیان سو. یعني که مالک د غلام په جنایت خبر وي او بیا هغه آزاد کړي نو په دې صورت کي فدیه متعینه ده او که په خبر نه وي او هغه آزاد کړي نو مالک ته اختیار دی.

**وإطلاق البیع إلخ**: یعني صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله چي د مطلق بیع یادونه کړې ده. په دې اطلاق کي هغه بیع هم داخله ده چي په هغه کي د مشتري لپاره خیار شرط وي؛ ځکه داسي بیع هم (چي په هغه کي د مشتري لپاره خیار شرط وي) د مالک ملکیت زائلوي، لهذا څرنګه چي د مطلق بیع په صورت کي د مالک په حق کي فدیه ورکول متعیّن دي، همداسي د بیع بشرط الخیار للمشتري په صورت کي هم د مالک په حق کي فدیه ورکول متعیّن دي چي هغه به د غلام فدیه اداء کوي. ها! که چیري د بائع (مالک) لپاره خیار شرط وي. نو څرنګه چي په دې صورت کي له مبیع (غلام) څخه د بائع نه ملکیت نه زائلیږي، نو ځکه په دې صورت کي پر هغه د مطلق بیع والا حکم نه نافذیږي او که بائع دا بیع ماته کړي نو بیا خو په یقیني.توګه پر هغه د بیع حکم نه نافذیږي او د مالک په حق کي فدیه ورکول نه متعیّن کیږي، بلکي هغه ته د أقل من القیمة ومن الأرش اختیار حاصلیږي (چي د دې وضاحت څه مخکي وسو).

همدارنګه که مالک خپل غلام خرڅ نه کړي بلکي د خرڅلاو لپاره یې بازار او منډۍ ته بوځي، نو په دې سره هم د مالک ملکیت له غلام څخه نه زائلیږي او د هغه په حق کي فدیه نه متعیّنه کیږي، بلکي په دې صورت کي هم هغه ته اختیار حاصلیږي. (احسن الهدایه)

## که مالک جنایتکار غلام په بیع فاسد سره خرڅ کړي نو څه حکم دی؟

| |
|---|
| وَلَوْ بَاعَهُ بَيْعًا فَاسِدًا او که مالک هغه [جنایتکاره غلام] د بیع فاسد په توګه خرڅ کړي لَمْ يَصِرْ مُخْتَارًا حَتَّى يُسَلِّمَهُ نو مالک د فدیې اختیارونکی نه ګرځي تر دې چي هغه غلام مشتري ته وسپاري لِأَنَّ الزَّوَالَ بِهِ ځکه [د ملکیت] زائلېدل په همدې ورسپارلو سره وي بِخِلَافِ الْكِتَابَةِ الْفَاسِدَةِ په خلاف د فاسد کتابت لِأَنَّ مُوجَبَهُ يَثْبُتُ قَبْلَ قَبْضِ الْبَدَلِ ځکه د هغه موجب پر بدل [بدل کتابت] له قبضې څخه مخکي ثابتیږي فَيَصِيرُ بِنَفْسِهِ مُخْتَارًا نو مالک به په نفس کتابت کولو سره مالک د فدیې اختیارونکی وګرځي. |

**اللغات**: ﴿مختار﴾ د افتعال د باب فاعل دی: اختیارونکی.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مالک جنایتکاره غلام په بیع فاسد سره خرڅ کړي، نو په دې سره هغه د فدیې اختیارونکی نه ګرځي یا په بله وینا دا چي په دې سره د هغه په حق کي فدیه ورکول

نه متعين کيږي، هاا کله چي هغه مشتري ته غلام وسپاري، نو بيا د هغه په حق کي فديه ورکول متعيّن کيږي يعني ولي د جنايت ته به د غلام فديه ورکوي؛ ځکه په بيع فاسد کي د مبيع په ورسپارلو سره ملکيت زائليږي، لهذا د غلام په ورسپارلو سره به مالک د فديې اختيارونکی وګرځي.

د دې په خلاف که مالک د جنايتکاره غلام سره کتابت فاسده وکړي مثلاً د شرابو يا خنزير په عوض کي عقد کتابت ور سره وکړي، نو په دې صورت کې د بدل (شراب يا خنزير) تر اخيستلو مخکي هم مالک د فديې اختيارونکی ګرځي؛ ځکه په عقد کتابت کي په نفس عقد سره د مالک ملکيت زائليږي او د دې عقد په کولو سره هغه سمدستي د فديې اختيارونکی ګرځي. (احسن الهدايه)

## که مالک جنايتکاره غلام پر مجني عليه خرڅ يا هبه کړي يا د آزادولو حکم ورته وکړي؟

وَلَوْ بَاعَهُ مَوْلَاهُ مِنَ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ او که د هغه [جنايتکاره غلام] مالک هغه پر مجني عليه خرڅ کړي فَهُوَ مُخْتَارٌ نو مالک د فديې اختيارونکی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا وَهَبَهُ مِنْهُ په خلاف د هغه صورت کله چي مالک هغه غلام مجني عليه ته هبه کړي لِأَنَّ الْمُسْتَحَقَّ لَهُ أَخْذُهُ بِغَيْرِ عِوَضٍ ځکه مستحق مجني عليه لره بغير له عوض اخيستل دي [يعني هغه لره بلا عوضه د اخيستلو استحقاق سته] وَهُوَ مُتَحَقِّقٌ فِي الْهِبَةِ دُونَ الْبَيْعِ او دا په هبه کي ثابت دي، نه په بيع کي وَإِعْتَاقُ الْمَجْنِيِّ عَلَيْهِ بِأَمْرِ الْمَوْلَى بِمَنْزِلَةِ إِعْتَاقِ الْمَوْلَى او د مالک په حکم سره د مجني عليه آزادول د مالک د آزادولو په درجه کي دي فِيمَا ذَكَرْنَاهُ په هغه صورت کي کوم چي موږ ذکر کړی لِأَنَّ فِعْلَ الْمَأْمُورِ مُضَافٌ إِلَيْهِ ځکه د مأمور فعل د آمر وطرف ته مضاف [منسوب] دی.

**اللغات**: ﴿مجنيّ﴾ د ضرب د باب مفعول دی، مجنی عليه: پر چا چي جنايت سوی وي، ﴿مأمور﴾ د نصر د باب مفعول دی: چا ته چي حکم سوی وي، حکم کړی سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که غلام مثلاً پر زيد جنايت وکړي او هغه زخمي کړي، بيا مالک دا جنايتکاره غلام پر همدې زيد (مجني عليه) باندي خرڅ کړي، نو په دې سره مالک د فديې اختيارونکی ګرځي او د هغه په حق کي فديه ورکول متعيّن کيږي چي ولي د جنايت ته به د غلام فديه ورکوي، او څرنګه چي مالک دا جنايتکاره غلام پر مجني عليه خرڅ کړی دی، نو ځکه په دې بيع سره د مجني عليه حق نه ساقطيږي بلکي د هغه حق باقي پاتيږي چي له مالک څخه د جنايت تاوان او فديه واخلي.

د دې په خلاف که مالک دا غلام مجني عليه ته هبه کړي، نو په دې سره د مجني عليه حق اداء کيږي او تر دې وروسته هغه ته له مالک څخه د تاوان اخيستلو حق نشته؛ ځکه د مجني عليه حق دا وو چې جنايتکاره غلام هغه ته بلا عوضه ورکول شي، او دلته هم د مالک په هبه کولو سره هغه ته جنايتکاره غلام بلا عوضه حاصل شو، لهذا په دې هبه سره د مجني عليه حق تام شو، نو ځکه اوس هغه ته له مالک څخه د تاوان وغيره د اخيستلو حق نشته.

وإعتاق المجني عليه إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مالک مجني عليه ته حکم وکړي چې جنايتکاره غلام آزاد کړه! او مجني عليه هغه آزاد کړي، نو دا د مالک له طرفه هم اعتاق شمېرل کيږي؛ ځکه مالک آمر (حکم کونکی) دی او مجني عليه مأمور دی، او د مأمور فعل د آمر وطرف ته مضاف کيږي، نو ځکه په مذکوره صورت کې واقع سوی اعتاق به د آمر له طرفه هم اعتاق وي، او که دا اعتاق په جنايت تر خبرېدلو وروسته واقع سوی وي (يعني مالک د غلام په جنايت خبر وي او بيا هغه مجني عليه ته د غلام د آزادولو حکم کړی وي...)، نو د مخکې په څېر دلته هم د مالک لپاره فديه متعيّن کيږي.

## په جنايتکاره غلام کې د نقص پيدا کولو حکم او تفصيل

وَلَوْضَرَبَهُ فَنَقَصَهُ او که مالک جنايتکاره غلام ووهي نو هغه ته نقصان ورسوي [نقص پکښې پيدا کړي] فَهُوَمُخْتَارٌ إِذَا كَانَ عَالِمًا بِالْجِنَايَةِ نو مالک د فديې اختيارونکی دی [په دې شرط] کله چې هغه [د غلام] په جنايت خبر وي لِأَنَّهُ حَبَسَ جُزْءًا مِنْهُ ځکه مالک له دې غلام څخه يو جزء را گرځولی دی وَكَذَا إِذَا كَانَتْ بِكْرًا فَوَطِئَهَا او همدارنگه کله چې جنايتکاره مينځه باکره وي نو مالک د هغې سره وطي وکړي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُعْلِقًا که څه هم دا وطي حامله کونکي [د حمل سبب] نه وي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې مونږ ذکر کړی بِخِلَافِ التَّزْوِيجِ په خلاف د نکاح کولو لِأَنَّهُ عَيْبٌ مِنْ حَيْثُ الْحُكْمِ ځکه دا [نکاح ورکول] د حکم په اعتبار سره عيب دی [نه د حقيقت په اعتبار سره] وَبِخِلَافِ وَطْءِ الثَّيِّبِ عَلَى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او په خلاف د ثيبه مينځې سره د وطي کولو د ظاهر روايت مطابق لِأَنَّهُ لَايَنْقُصُ مِنْ غَيْرِ إِعْلَاقٍ ځکه چې دا وطي له حامله کولو څخه بغير نقصان نه رسوي [يعني هغه وخت د نقص باعث گرځي کله چې مينځه حامله کړي]، وَبِخِلَافِ الِاسْتِخْدَامِ او په خلاف د خدمت اخيستلو لِأَنَّهُ لَايَخْتَصُّ بِالْمِلْكِ ځکه خدمت اخيستل د ملکيت سره مختص نه دي

وَلِهٰذَا لَا يَسْقُطُ بِهِ خِيَارُ الشَّرْطِ په همدې وجه په خدمت اخيستلو سره خيار شرط نه ساقطيږي وَلَا يَصِيرُ مُخْتَارًا بِالْإِجَارَةِ وَالرَّهْنِ فِي الْأَظْهَرِ مِنَ الرِّوَايَاتِ او داجارې او رهن په وجه مالک دفديې اختيارونکی نه ګرځي په ظاهر روايت کې وَكَذَا بِالْإِذْنِ فِي التِّجَارَةِ وَإِنْ رَكِبَهُ دَيْنٌ او همدارنګه د تجارت په اجازه ورکولو سره که څه هم پر غلام قرض باندي سي لِأَنَّ الْإِذْنَ لَا يُفَوِّتُ الدَّفْعَ ځکه د تجارت اجازه نه د غلام ورکول فوتوي وَلَا يَنْقُصُ الرَّقَبَةَ او نه په رقبه [غلام] کې نقص پيدا کوي إِلَّا أَنَّ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ أَنْ يَمْتَنِعَ مِنْ قَبُولِهِ خو ولي د جنايت لره دا حق سته چې د هغه له قبلولو څخه منع سي لِأَنَّ الدَّيْنَ لَحِقَهُ مِنْ جِهَةِ الْمَوْلَى ځکه قرض غلام ته د مالک له طرفه لاحق سوی دی فَلَزِمَ الْمَوْلَى قِيمَتُهُ نو ځکه پر مالک به د هغه قيمت لازم وي.

**اللغات:** ﴿نقصه﴾ د نصر د باب ماضي ده: کم کول، ناقص ګرځول، نقصان پکښې راوستل. ﴿حبس﴾ د ضرب د باب ماضي ده: منع کول، راګرځول، ﴿مُعلِق﴾ د افعال د باب فاعل دی: حامله کونکی، بلاربونکی، د حمل سبب. ﴿لا يفوت﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده: فوت کول، ضايع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل جنايتکاره غلام سخت ووهي او په هغه کې نقص پيدا کړي مثلاً د هغه يو اندام مات کړي يا يې سخت زخمي کړي او مالک د هغه په جنايت خبر هم وي، نو د نقص پيدا کولو په وجه مالک د فديې اختيارونکی شمېرل کيږي او د هغه په حق کې فديه متعيّنه کيږي؛ ځکه مالک د غلام د معيوبه حصې راګرځونکی سو چې ګواکي هغه دا معيوب اندام د ځان سره محبوس کړی، او د دې عيب په وجه د غلام په قيمت کې ډېره کمي راغلې ده. لهذا دفع (غلام ورکول) متعذر دي، نو ځکه اوس د مالک لپاره فديه ورکول متعيّن سوه.

وكذا إلخ: فرمايي که يوه باکره مينځه جنايت وکړي، بيا مالک د هغې سره وطي وکړي حال دا چې مالک د هغې په جنايت خبر وي، نو په دې صورت کې هم هغه د فديې اختيارونکی ګرځي که څه هم په دې وطي سره دا مينځه حامله سوې نه وي؛ ځکه په باکره مينځه کې په نفسِ وطي سره عيب او نقص پيدا کيږي. د دې په خلاف که جنايتکاره مينځه ثيّبه وي، بيا مالک د هغې سره وطي وکړي او هغه د مينځې په جنايت خبر هم وي، نو که په دې وطي سره مينځه حامله سوې وي نو مالک د فديې اختيارونکی ګرځي، او که مينځه حامله سوې نه وي نو مالک د فديې اختيارونکی نه ګرځي؛ ځکه په ثيّبه مينځه کې نفسِ وطي عيب نه دي. بلکې علوق يعني حامله کېدل (بلاربېدل) عيب دي. صاحب

د کتاب رَحِمَهُ الله دا مسئله جلا ذکر کړې ده، لېکن موږ ستاسي دآسانی لپاره هغه دباکره مېنځي د مسئلې سره متصلاً بیان کړې ده.

بخلاف التزویج إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک جنایتکاره مینځه یو چا ته په نکاح ورکړي، نو په دې سره مالک د فدیې اختیاونکی نه ګرځي؛ ځکه نکاح کول که څه هم عیب دي، لېکن حقیقتاً عیب نه دی، او مانع له دفع (غلام ورکولو) څخه حقیقي عیب دی، نه حکمي عیب.

وبخلاف الاستخدام إلخ: فرمايي که مالک له جنایتکاره غلام څخه کار او خدمت اخلي، نو په دې سره هم مالک د فدیې اختیارونکی نه ګرځي؛ ځکه خدمت اخیستل د ملکیت سره مختص نه دي، بلکي له ملکیت څخه بغیر هم له یو غلام څخه خدمت اخیستل کېدلای سي، همدا وجه ده که یو څوک په خیار شرط سره یو غلام رانیسي او له هغه څخه خدمت اخلي، نو په دې سره خیار نه ساقطیږي، معلومه سوه چي استخدام د فدیې اختیارولو دلیل نه دی، او استخدام له دفع العبد څخه مانع هم نه دی.

ولا یصیر مختارًا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مالک جنایتکاره غلام په اجاره ورکړي، یا یې په رهن ورکړي، یا هغه ته د تجارت اجازه ورکړي او هغه مقروض سي، نو په دې صورتونو کي هم مالک د فدیې اختیارونکی نه شمېرل کیږي؛ ځکه په اجاره او په رهن ورکولو سره نه په دفع العبد کي څه ستونزه سته او نه په اجاره او رهن سره په غلام کي څه عیب رائحي، نو ځکه په دې امورو سره به مالک د فدیې اختیارونکی نه ګرځي. ها! د تجارت د اجازې په صورت کي که چیرې غلام مقروض سي، نو د جنایت ولي ته دا حق سته چي د دې جنایتکاره مقروض غلام له اخیستلو څخه انکار وکړي او له مالک څخه د هغه قیمت واخلي؛ ځکه غلام د همدې مالک د اجازې په وجه مقروض سوی دی، لهذا د هغه تاوان به هم مالک پوره ته کوي.

## د غلام آزادي په یو جنایت سره مشروط کول

قَالَ: وَمَنْ قَالَ لِعَبْدِهِ فرمايي: او څوک چي خپل غلام ته ووايي إِنْ قَتَلْتَ فُلَانًا که چیرې تا فلانکی کس قتل کړی أَوْ رَمَيْتَهُ یا تا هغه په غشي [یا بل شي] سره وویشتی أَوْ شَجَجْتَهُ یا تا د هغه سر ورمات کړی فَأَنْتَ حُرٌّ نو ته آزاد یې! فَهُوَ مُخْتَارٌ لِلْفِدَاءِ إِنْ فَعَلَ ذٰلِكَ نو مالک د فدیې اختیارونکی دی که چیرې غلام دا کار [قتل وغیره] وکړي وَقَالَ زُفَرُ ۞: لَا يَصِيرُ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه د فدیې اختیارونکی نه ګرځي لِأَنَّ وَقْتَ تَكَلُّمِهِ لَا جِنَايَةَ وَلَا

---

۞ القول الراجح: قول جمهور الأحناف، حيث اخّر قولهم ببيان التعليل، وذلک أمارة الترجيح، انظر للتفصيل [القول الـراجح ج:۲، ص:۳۵۸]

عِلْمَ لَهُ بِوُجُوْدِهِ ځکه چي د مالک د وينا په وخت کي خو نه څه جنايت وو او نه مالک ته د جنايت موجودېدلو څه علم [خبر] وو وَبَعْدَ الْجِنَايَةِ لَمْ يُوْجَدْ مِنْهُ فِعْلٌ يَصِيرُ بِهِ مُخْتَارًا او تر جنايت وروسته د مالک له طرفه څه داسي فعل نه دی موجود سوی چي د هغه په وجه مالک د فديې اختيارونکی وګرځي أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ لَوْ عَلَّقَ الطَّلَاقَ أَوِ الْعَتَاقَ بِالشَّرْطِ آيا ته نه ګورې! چي که چا طلاق يا آزادي پر شرط مُعلق کړل ثُمَّ حَلَفَ أَنْ لَا يُطَلِّقَ أَوْ لَا يُعْتِقَ بيا يې قسم واخيستی چي طلاق به نه ورکوي يا نه به يې آزادوي ثُمَّ وُجِدَ الشَّرْطُ وَثَبَتَ الْعِتْقُ وَالطَّلَاقُ بيا شرط موجود سو او آزادي او طلاق ثابت سول لَا يَحْنَثُ فِي يَمِيْنِهِ تِلْكَ نو هغه په خپل دې قسم کي نه حانث کيږي كَذَا هٰذَا همداسي دا هم دي.

**اللغات:** ﴿شجته﴾ د واحد مذکر مخاطب صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو بابو څخه راځي: زخمي کول، ماتول (د سر او مخ د زخم او ماتېدلو لپاره استعماليږي). ﴿لا يحنث﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده: حانث کېدل، قسم ماتول (قسم خوړل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل غلام ته ووايي چي که تا فلانکی کس قتل کړی، يا دي مثلاً په غشي وويشتی، يا دي د هغه سر ور مات کړی، نو ته آزاد يې!، اوس که غلام له دې جناياتو څخه يو جنايت وکړي، نو زموږ (دائمه ثلاثه وو) په نېز مالک د فديې اختيارونکی ګرځي يعني د دې جنايت په وجه پر مالک د غلام فديه ورکول واجبيږي او د دفع العبد (غلام ورکولو) اختيار يې ختميږي، لېکن د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي مالک د فديې اختيارونکی نه ګرځي، بلکي پر هغه د غلام قيمت واجبيږي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي په کوم وخت کي چي مالک خپل غلام ته دا خبره کړې ده، په هغه کي وخت کي خو نه د غلام له طرفه دا جنايت صادر سوی وو، او نه د هغه د جنايت په هکله مالک ته څه علم او خبر وو، او له جنايت او علم بالجنايت څخه مخکي فديه اختيارول ناممکن دي، او پاته سو تر جنايت وروسته يعني کله چي غلام دا جنايت وکړی نو تر هغه وروسته د مالک له طرفه څه داسي فعل نه دی صادر سوی دی چي د هغه په وجه مالک د فديې اختيارونکی وشمېرل سي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي به مالک د فديې اختيارونکی نه وي، بلکي پر هغه به د غلام قيمت واجب وي.

د دې مثال داسې دی لکه زید چې خپلې ښځې ته ووايي "إن دخلتِ الدار فأنتِ طالق" (که چيرې ته کور ته داخله سوې نو [پرما] طلاقه يې!). يا خپل غلام ته ووايي "إن دخلتَ الدار فأنتَ حُرٌّ" (که ته کور ته داخل سوې نو ته آزاد يې). بيا د ښځې او غلام له داخلېدلو څخه مخکې هغه (زيد) دا قسم واخيستی چې والله که خپلې ښځې ته طلاق ورکړم يا والله که خپل غلام آزاد کړم. تر دې وروسته ښځه کور ته داخله سوه يا غلام داخل سو نو طلاق او عتاق چې پر کوم شرط مُعلق ول هغه شرط موجود سو او طلاق او عتاق ثابت سول. نو په دې صورت کې هغه (زيد) په خپل قسم (چې والله که ښځې ته طلاق ورکړم يا غلام آزاد کړم) کې نه حانث کيږي او هغه قسم ماتونکی نه ګرځي: ځکه په کوم وخت کې چې زيد طلاق يا عتاق مُعلق کړی وو. نو په هغه وخت کې د ده له طرفه د تطليق او اعتاق فعل صادر سوی نه وو او کله چې طلاق او عتاق ثابت سول. نو بيا هم د ده له طرفه د تطليق او اعتاق فعل نه دی صادر سوی. بلکې دا دواړه د مخکينې تعليق په وجه ثابت سوي دي. لهذا د زيد له طرفه د فعل نه صادرېدلو په وجه هغه په خپل قسم کې نه حانث کيږي. نو همداسې په مذکوره مسئله کې هم د مالک د وينا "إن قتلت فلانًا إلخ" په وخت کې جنايت معدوم دی. او کله چې جنايت ثابت سو. نو د مالک له طرفه فعل يا قول معدوم دی. نو مالک موږ شرنګه د فديې اختيارونکی وشمېرو. (احسن الهدايه)

## د ائمه ثلاثه وو دليل او د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل جواب

وَلَنَا: أَنَّهُ عَلَّقَ الْإِعْتَاقَ بِالْجِنَايَةِ او زموږ دليل دا دی: چې مالک [د غلام] آزادي پر جنايت مُعلقه کړې ده وَالْمُعَلَّقُ بِالشَّرْطِ يَنْزِلُ عِنْدَ وُجُودِ الشَّرْطِ كَالْمُنَجَّزِ او کوم څه چې پر يو شرط مُعلق وي هغه د شرط موجودېدلو په وخت کې د مُنجز په څېر ګرځي. فَصَارَ كَمَا إِذَا أَعْتَقَهُ بَعْدَ الْجِنَايَةِ نو داسې سو لکه تر جنايت وروسته چې مالک غلام آزاد کړی وي أَلَا يَرَىٰ أَنَّ مَنْ قَالَ لِامْرَأَتِهِ آيا نه ګورې چې که څوک خپلې ښځې ته ووايي إِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَوَاللهِ لَا أَقْرَبُكِ که چيرې ته کور ته داخله سوې نو په الله قسم! تا ته به نه نژدې کېږم يَصِيرُ ابْتِدَاءُ الْإِيلَاءِ مِنْ وَقْتِ الدُّخُولِ نو د ايلاء ابتداء د داخلېدلو له وخت څخه کيږي وَكَذَا إِذَا قَالَ لَهَا او همدارنګه کله چې ښځې ته ووايي إِذَا مَرِضْتِ فَأَنْتِ طَالِقٌ ثَلَاثًا کله چې زه مريض سم نو ته ثلاثا طلاقه يې فَمَرِضَ حَتَّى طَلُقَتْ وَمَاتَ مِنْ ذٰلِكَ الْمَرَضِ بيا خاوند مريض سو چې د هغه په وجه ښځه طلاقه سوه او بيا له هغه مرض

ځخه مړ سو يَصِيرُ فَارًّا نو خاوند فرار کونکی ګرځي لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُطَلِّقًا بَعْدَ وُجُودِ الْمَرَضِ ځکه خاوند د مرض تر موجودېدلو وروسته طلاقونکی ګرځي بِخِلَافِ مَا أَوْرَدَ په خلاف د هغه مسئلې کوم چي امام زفر رَحِمَهُ الله راوړې ده لِأَنَّ غَرَضَهُ طَلَاقٌ أَوْ عِتْقٌ يُمْكِنُهُ الِامْتِنَاعُ عَنْهُ ځکه د ده [حالف] مقصد داسي طلاق يا آزادي ده چي له هغه ځخه منع کېدل ده لره ممکن وي [يعني چي د هغه نه کول د ده په وس کي وي] إِذِ الْيَمِينُ لِلْمَنْعِ ځکه قسم د منع کېدلو لپاره دی [چي سړی له هغه فعل ځخه منع سي] فَلَا يَدْخُلُ تَحْتَهُ مَا لَا يُمْكِنُهُ الِامْتِنَاعُ عَنْهُ نو ځکه تر قسم لاندي به هغه ځه نه داخلیږي چي له هغه ځخه منع کېدل ممکن نه وي وَلِأَنَّهُ حَرَّضَهُ عَلَى مُبَاشَرَةِ الشَّرْطِ بِتَعْلِيقِ أَقْوَى الدَّوَاعِي إِلَيْهِ او ځکه چي مالک غلام د شرط په پوره کولو باندي پارولی دی په داسي [شي باندي د آزادی په] مُعلق کولو سره کوم چي د شرط وطرف ته له مضبوطه بلونکو [اسبابو] ځخه دي وَالظَّاهِرُ أَنَّهُ يَفْعَلُهُ او ښکاره همدا ده چي غلام به دا کار وکړي فَهٰذَا دَلَالَةُ الِاخْتِيَارِ نو دا د فديې اختيارولو دليل دی.

**اللغات**: ﴿ينزّل﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: کښته کول، قائم مقام کول. ﴿منجز﴾ د تفعيل د باب مفعو دی: فوراً واقع کېدونکی (هغه شی کوم چي سمدستي واقع کړی سي). غيرِ معلق، غيرِ مشروط. ﴿لا أقربك﴾ د سمع له بابه د واحد متکلم نفي صيغه ده: نژدې کېدل. نژدې راتلل (مراد ځني وطي کول دي).
﴿ايلاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ښځي ته د نه نژدې کېدلو قسم اخيستل، مخکي يې تعريف تېر سو چي که خاوند قسم وکړي چي زه به خپلي ښځي ته ځلور مياشتي (يا تر دې زيات) نه ور نژدې کېږم (وطي به نه ور سره کوم)، نو دې ته ايلاء ويي، که خاوند خپل دا قسم پوره کړی او ښځي ته ځلور مياشتي نژدې نه سي، نو ځلور مياشتي وروسته ښځه بائنه ګرځي. ﴿فارّ﴾ د ضرب د باب فاعل دی: تېښتېدونکی، ځان خلاصونکی (هغه خاوند چي د ښځي له ميراث ځخه ځان خلاصوي). ﴿حرّضه﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: پارول، هڅول، لمسول.

**تشريح**: په دې عبارت کي زموږ دليل او د هغه ځو مثالونه بيان سوي دي او د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکول سوی دی.

زموږ د دليل حاصل دا دی چي په مذکوره مسئله کي مالک د غلام آزادي پر جنايت معلقه کړې ده چي هغه جنايت قتلول يا په غشي ويشتل يا سر ورماتول دي. او د تعليق (معلق کولو) په هکله زموږ قاعده دا ده چي کوم شی پر يو شرط مُعلق وي، هغه د شرط موجودېدلو په وخت کي مُنجز او

سمدستي واقع کيږي. نو دغه قاعدې ته په کتلو سره د مالک دا وينا "فأنت حرٌّ" به د شرط يعني د جنايت موجودېدلو وروسته سمدستي ثابتيږي او دا به ګڼل کيږي چې مالک د غلام تر جنايت وروسته "فأنتِ حرٌّ" ويلي دي او هغه يې آزاد کړی دی. او دا ښکاره خبره ده چې که مالک تر جنايت وروسته غلام آزاد کړي نو مالک د فديې اختيارونکی شمېرل کيږي (لکه مخکې چې هم ذکر سوه). نو ځکه په مذکوره مسئله کي به هم مالک د فديې اختيارونکی شمېرل کيږي.

صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د دې دوه مثالونه بيان کړي دي: ① ... که يو سړی خپلي ښځې ته ووايي "که ته کور ته داخله سوې، نو په الله قسم زه به تا ته نژدې نه سم (ستا سره به جماع [کوروالی] پرېږدم)"، نو د خاوند دا قول د تکلّم له وخت څخه معتبر نه دی بلکي د ښځې د دخول (داخلېدلو) له وخت څخه معتبر دی يعني د دخول له وخت څخه د ايلاء (جماع پرېښوولو) ابتداء کيږي (يا په بله وينا دا چې هغه د دخول له وخت څخه د جماع پرېښوونکی شمېرل کيږي).

② ... که يو سړی خپلي ښځې ته ووايي "که زه مريض سوم، نو ته ثلاثاً طلاقه يې"، بيا څو ورځې وروسته هغه مريض سو او د هغه ښځه ثلاثاً طلاقه سوه، اوس که دا خاوند په همدې مرض کي مړ سي نو هغه فارّ شمېرل کيږي او د هغه دا ښځه د وراثت مستحقه کيږي چې د خاوند په ميراث کي به خپله حصه ورکول کيږي، ځکه د مرګ په وجه دا خبره ښکاره سوه چې خاوند د مرض په حالت کي طلاق ورکړی دی. لهذا دلته د هغه تر مرض مخکي طلاق ورکول داسي شمېرل کيږي لکه تر مرض وروسته (د مرض په دوران کي) کي طلاق ورکول او هغه فارّ شمېرل کيږي.

لنډه دا چې څرنګه چې په دې دوو مثالونو کي د ايلاء او طلاق ثبوت د تکلّم له وخت څخه نه بلکي له شرط موجودېدلو څخه وروسته دی، نو همداسي په مخکني مذکوره مسئله کي به هم د مالک دا وينا "أنت حرٌّ" يعني د آزادۍ ثبوت له شرط موجودېدلو يعني د غلام له جنايت کولو څخه وروسته وي او مالک به د فديې اختيارونکی شمېرل کيږي.

بخلاف ما أورد إلخ: له دې ځايه د امام زُفر رَحِمَهُ الله د دليل او قياس جواب ورکول سوی دی. د قياس جواب يې دا دی چې مذکوره مسئله د يمين پر مسئله قياسول صحيح نه دي؛ ځکه يمين يعني قسم د دې لپاره وي چې انسان له فعل څخه منع سي او ځان ځني وساتي، او د مذکوره قسم اخيستلو په صورت کي د حالف مقصد دا وي چې زه د داسي طلاق او عتاق قسم اخلم چې له هغه څخه منع کېدل زما په وس کي دي، او په خپل قسم کي د حانث کېدلو له بيري څخه به دئ له دې فعل څخه ځان ساتي، او ښکاره خبره ده چې که دئ طلاق يا عتاق پر شرط مُعلّق کړي، نو بيا له هغه څخه منع

کېدل د ده په وس کې نه دي. بلکې اوس د طلاق او عتاق واک د ښځې او غلام لاس ته راغلی او دا معامله نا ممکن الامتناع سوه. لهذا يو ممکنُ الامتناع شی يعني طلاق مُعلق بالحلف به په يو نا ممکن الامتناع شي يعني په طلاق مُعلق بالشرط کې نه داخليږي.

او د امام زفر رَحِمَهُ الله د دليل (لأن وقت تكلمه لا جناية إلخ) جواب دا دی چې په مذکوره مسئله کې مالک د غلام آزادي پر جنايت معلقه کړې ده، او غلام خپلې آزادۍ ته زيات لېواله وي او هغه يې د ژوند مهم مقصد وي، نو د دغه تعليق په وجه د دې خبرې قوي اُميد سته چې غلام به دا جنايت خامخا تر سره کړي او بل دا چې مالک هغه پر دې جنايت پارولی هم دی. نو په دې سره د جنايت ترسره کولو اړخ ته نوره تقويه حاصليږي. لهذا په دې حواله سره به هم مالک د فديې اختيارونکی شمېرل کيږي. (احسن الهدايه)

## که غلام قصداً د يو چا لاس پرېکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا قَطَعَ الْعَبْدُ يَدَ رَجُلٍ عَمَدًا فرمايي: او کله چې غلام د يو سړي لاس قصداً پرېکړي فَدُفِعَ إِلَيْهِ بيا دا غلام مجني عليه ته ورکول سي بِقَضَاءٍ أَوْ بِغَيْرِ قَضَاءٍ [د قاضي] په قضاء سره يا بغير له قضاء څخه فَأَعْتَقَهُ بيا مجني عليه دا غلام آزاد کړي ثُمَّ مَاتَ مِنَ الْيَدِ بيا مجني عليه د لاس [له زخم] څخه مړ سي فَالْعَبْدُ صُلْحٌ بِالْجِنَايَةِ نو غلام د جنايت په بدله کې صلح [بدل صلح] دی وَإِنْ لَمْ يُعْتِقْهُ او که مالک هغه آزاد کړی نه وي رُدَّ عَلَى الْمَوْلَى نو غلام به مالک ته واپس کول کيږي وَقِيلَ لِلْأَوْلِيَاءِ او [د مقتول] وليانو ته به دا ويل کيږي اُقْتُلُوهُ أَوِ اعْفُوا عَنْهُ چې تاسي غلام قتل کړئ! يا هغه ته معافي [بخښنه] وکړئ! وَوَجْهُ ذَلِكَ وَهُوَ أَنَّهُ إِذَا لَمْ يُعْتِقْهُ وَسَرَى او د دې وجه دا ده چې کله مجني عليه غلام آزاد نه کړی او قطع اليد سرايت وکړی تَبَيَّنَ أَنَّ الصُّلْحَ وَقَعَ بَاطِلًا نو دا څرګنده سوه چې صلح باطله واقع سوه لِأَنَّ الصُّلْحَ كَانَ عَنِ الْمَالِ ځکه چې صلح له مال څخه وه [يعني صلح پر مال (غلام) سوې وه] لِأَنَّ أَطْرَافَ الْعَبْدِ لَا يَجْرِي الْقِصَاصُ بَيْنَهَا وَبَيْنَ أَطْرَافِ الْحُرِّ ځکه د غلام او د آزاد کس د اطرافو تر مينځ قصاص نه جاري کيږي فَإِذَا سَرَى تَبَيَّنَ أَنَّ الْمَالَ غَيْرُ وَاجِبٍ نو کله چې قطع اليد سرايت وکړی نو دا څرګنده سوه چې مال واجب نه وو وَإِنَّمَا الْوَاجِبُ هُوَ الْقَوَدُ بلکې واجب خو قصاص وو فَكَانَ الصُّلْحُ وَاقِعًا بِغَيْرِ بَدَلٍ نو صلح بغير له بدل څخه واقع سوه

فَبَطَلَ نو ځکه صلح باطله سوه وَالْبَاطِلُ لَايُوْرِثُ الشُّبْهَةَ او باطل شبهه نه پيدا کوي كَمَا إِذَا وَطِئَ الْمُطَلَّقَةَ الثَّلَاثَ فِيْ عِدَّتِهَا لکه څوک چي ثلاثًا طلاقه سوې ښځه په خپل عدت [عده] کي وطي کړي مَعَ الْعِلْمِ بِحُرْمَتِهَا عَلَيْهِ سره د خبرېدلو د هغې په حرمت پر خپل ځان [يعني هغه په دې خبر هم وي چي اوس ښځه پر ما حرامه ده] فَوَجَبَ الْقِصَاصُ نو قصاص واجبيږي.

**اللغات:** ﴿دفع﴾ د فتح له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده. د دې باب يوه معنٰی ده: ورکول. (ورسپارل). ﴿سرئ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: سرايت کول. نوتل او غوړېدل (منتشر کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو غلام عمداً د يو چا مثلاً د زيد لاس يې پرېکړی او د غلام مالک د دغه جنايت په بدله کي مجني عليه يعني مقطوع اليد (زيد) ته دا غلام ورکړی. د قاضي په قضاء (فيصله) سره، يا بغير له قضاء يې ورکړی. او مقطوع اليد کس دا غلام آزاد کړی. تر دې وروسته د قطع اليد د زخم په وجه مقطوع اليد کس (زيد) مړ سو. نو په دې صورت کي غلام هم بري دی او د هغه مالک هم بري دی يعني د زخم د سرايت کولو او د مجني عليه (زيد) د مړ کېدلو په وجه پر غلام او مالک باندي ضمان (تاوان) نه واجبيږي، بلکي غلام له دې جنايت څخه بدل صلح ګرځي او له هر هغه شي څخه بدل صلح ګرځي کوم چي له دې جنايت څخه پېښ سي (يعني مرګ وغيره). او که صورت داسي وي چي مقطوع اليد (زيد) هغه غلام آزاد نه کړی او بيا د زخم د سرايت کولو په وجه هغه مړ سو، نو غلام به د هغه مالک ته سپارل کيږي او د مقتول (زيد) وارثانو ته اختيار حاصليږي چي که وغواړي نو غلام دي قصاصاً قتل کړي او که وغواړي نو هغه دي معاف کړي.

د دې مسئلې دليل دا دی چي دلته قاطعُ اليد غلام دی او مقطوعُ اليد آزاد دی. او قاعده دا ده چي د غلام او آزاد کس د اندامونو او اطرافو تر مينځ قصاص نه جاري کيږي، ليکن کله چي د غلام مالک دا غلام مقطوع اليد (زيد) ته ورکړی، نو د دغه ورکړي د صحيح کولو لپاره موږ غلام بدل صلح وګرځوی، د دې لپاره چي که مقطوع اليد هغه آزاد کړي نو د بدل صلح کېدلو په وجه مقطوع اليد د هغه مالک وګرځول سي او د هغه اعتاق نافذ کړی سي. او ښکاره ده چي د اعتاق د صحيح کېدلو او نافذېدلو په صورت کي پر غلام او د هغه پر مالک هيڅ ضمان نه لازميږي: ځکه مالک خو غلام مقطوع اليد (زيد) ته ورکړی وو. ليکن هغه خپله غلام آزاد کړی او خپل حق يې ساقط کړی. نو ځکه اوس به د مقطوع اليد د مرګ په وجه پر مالک يا د هغه پر غلام هيڅ ضمان نه واجبيږي.

ها! که مجني عليه يعني مقطوع اليد (زيد) دا غلام آزاد نه کړي او بيا د زخم د سرايت کولو په وجه مجني عليه مړ سي. نو په دې صورت کي پر غلام قصاص واجبيږي (چي د هغه لاس به هم قصاصا

پرېکول کيږي) او هغه به خپل مالک ته سپارل کيږي او د مقتول (زيد) وليانو ته دا اختيار حاصليږي چې که دا غلام قتل کوي او که يې معاف کوي؛ ځکه د زخم د سرايت کولو په وجه دا څرګنده سوه چې د غلام د مالک او مقطوع اليد تر مينځ چې کومه صلح پر مال (يعني پر غلام) سوې وه هغه باطله وه؛ ځکه دلته د مقطوع اليد د مړ کېدلو په وجه قصاص واجب دی، نه مال. لهذا کله چې صلح باطله سوه. نو اوس پر غلام قصاص واجب سو او د مقتول وليانو ته د هغه د قتلولو يا معاف کولو اختيار حاصل سو.

او بل دا چې څرنګه دا صلح باطله واقع سوې ده نو ځکه په دې سره په قصاص کي هيڅ شبهه نه پيدا کيږي او قصاص واجبيږي، د دې مثال داسې دی لکه يو څوک چې خپلي ښځي ته درې طلاقه ورکړي او بيا د عدت (عدې) په دوران کي د هغې سره جماع وکړي حال دا چې هغه په دې ښه خبر وي چې دا ښځه پر ما حرامه ده، نو څرنګه چې دلته د دې مطلقه ښځي سره وطي کول باطل دي. خو بيا هم دا له قصاص څخه مانع نه دي بلکي پر واطي قصاص يعني حدّ واجبيږي، نو په مذکوره مسئله کي هم څرنګه چې دا صلح باطله ده. نو ځکه هغه قصاص نه ساقطوي. (احسن الهدايه)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

بِخِلَافِ مَا إِذَا أَعْتَقَهُ په خلاف د هغه صورت کله چې مجني عليه دا غلام آزاد کړي لِأَنَّ إِقْدَامَهُ عَلَى الْإِعْتَاقِ يَدُلُّ عَلَى قَصْدِهِ تَصْحِيحَ الصُّلْحِ ځکه پر آزادولو د مجني عليه اقدام کول دلالت کوي د هغه د صلح د صحيح کولو پر اراده لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ مَنْ أَقْدَمَ عَلَى تَصَرُّفٍ ځکه ښکاره همدا ده چې څوک پر يو تصرّف اقدام وکړي يَقْصِدُ تَصْحِيحَهُ هغه د تصرف صحيح کولو اراده کوي وَلَا صِحَّةَ لَهُ او [دلته] د تصرّف [عقدِ صلح] د صحيح کېدلو هيڅ صورت نسته إِلَّا وَأَنْ يُجْعَلَ صُلْحًا عَنِ الْجِنَايَةِ وَمَا يَحْدُثُ مِنْهَا بغير له دې څخه چې غلام د جنايت له طرفه او له جنايت څخه د پېښېدونکي شي له طرفه بدلِ صلح وګرځول سي وَلِهَذَا لَوْ نَصَّ عَلَيْهِ وَرَضِيَ الْمَوْلَى بِهِ همدا وجه ده که مجني عليه د دې صراحت وکړي او مالک په دې راضي سي يَصِحُّ نو عقدِ صلح صحيح کيږي وَقَدْ رَضِيَ الْمَوْلَى بِهِ او مالک په هغه راضي دی لِأَنَّهُ لَمَّا رَضِيَ بِكَوْنِ الْعَبْدِ عِوَضًا عَنِ الْقَلِيلِ ځکه کله چې هغه د غلام د قليل په عوض کېدلو راضي دی يَكُونُ أَرْضَى بِكَوْنِهِ عِوَضًا عَنِ الْكَثِيرِ نو د کثير په عوض کېدلو به زيات راضي وي فَإِذَا أَعْتَقَ بيا کله چې مجني عليه غلام آزاد کړي يَصِحُّ الصُّلْحُ فِي

ضِمْنِ الْإِعْتَاقِ اِبْتِدَاءً نو د آزادولو په ضمن کي صلح ابتداءً صحيح سوه وَإِذَا لَمْ يُعْتِقْ او کله چي هغه آزاد نه کړی لَمْ يُوجَدِ الصُّلْحُ اِبْتِدَاءً نو ابتداءً صلح موجوده نه سوه وَالصُّلْحُ الْأَوَّلُ وَقَعَ بَاطِلًا او اوله صلح باطله واقع سوه فَيُرَدُّ الْعَبْدُ إِلَى الْمَوْلٰى نو ځکه غلام به مالک ته واپس کول کیږي وَالْأَوْلِيَاءُ عَلٰى خِيَرَتِهِمْ فِي الْعَفْوِ وَالْقَتْلِ او [د غلام] د معاف کولو او قتلولو په هکله به ولیان پر خپل اختیار وي.

**اللغات:** ﴿إقدام﴾ د افعال د باب مصدر دی: وړاندېتوب کول، په يو کار لاس پوري کول. ﴿نص﴾ د نصر د باب ماضي ده: صراحت کول، په صراحت سره (په ښکاره الفاظو) بيانول. ﴿خِيَرَة﴾ او خِيْرَة: اختيار. ﴿عفو﴾ معافي. بخښنه.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي که مجني عليه (زيد) جنايتکاره غلام آزاد نه کړي نو په دې صورت کي خو صلح باطله ده (لکه مخکي چي ذکر سوه)، ليکن که مجني عليه دا غلام آزاد کړي او بيا د زخم د سرايت کولو په وجه مجني عليه مړ سي، نو صلح نه باطلېږي او پر غلام قصاص نه واجبيږي؛ ځکه پر اعتاق د مجني عليه اقدام کول د دې خبري څرګند دليل دی چي هغه د اعتاق صحيح کول او نافذول غواړي، ځکه کوم کس چي يو تصرّف کوي، ښکاره ده چي هغه يې د همدې لپاره کوي چي تصرّف صحيح او نافذ سي، او په مذکوره مسئله کي د مجني عليه د تصرّف صحيح کېدلو صرف يوه لاره ده او هغه دا چي غلام د جنايت له طرفه او له دې جنايت څخه د پېښېدونکی شي (مرګ وغيره) له طرفه بدلِ صلح وګرځول سي. همدا وجه ده که مجني عليه دا خبره صراحتاً کړې وای چي دا غلام بدلِ صلح دی او مالک په دې راضي وای نو هم به عقدِ صلح صحيح وای، نو ځکه دلته به هم عقدِ صلح صحيح وي؛ ځکه دلته خو بالکل مالک راضي دی، ځکه کله چي هغه د غلام د قليل يعني د لاس په بدل کېدلو راضي دی، نو د هغه د کثير يعني د نفس په بدل کېدلو به په درجه اولیٰ راضي وي. لهذا کله چي مجني عليه غلام آزاد کړی، نو د اعتاق په ضمن کي به ابتداءً صلح صحيح کيږي.

او که مجني عليه غلام آزاد نه کړی، نو ابتداءً صلح موجوده نه سوه او کوم اوله صلح چي وه هغه د زخم د سرايت کولو په وجه باطله سوه، نو ځکه غلام به خپل مالک ته سپارل کيږي او د مقتول وليانو ته به دوه اختيارات حاصليږي: ① د غلام قتلول، ② او هغه معاف کول (بخښل). (احسن الهدايه)

## د مقطوع اليد سره پر غلام د صلح کولو بيان

وَذُكِرَ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ او [د جامع صغير] په بعضي نسخو کي ذکر سوي دي رَجُلٌ قَطَعَ يَدَ رَجُلٍ عَمَدًا [که] يو سړي قصداً د يو سړي لاس پرې کړی فَصَالَحَ الْقَاطِعُ الْمَقْطُوْعَةَ يَدُهُ عَلٰى عَبْدٍ بيا لاس پرې کونکي د لاس پرې کړل سوي سره پر يو غلام صلح وکړه وَدَفَعَهُ اِلَيْهِ او غلام يې هغه [مقطوع اليد] ته ورکړی فَأَعْتَقَهُ الْمَقْطُوْعَةُ يَدُهُ نو لاس پرې کړل سوي [مقطوع اليد] هغه غلام آزاد کړی ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذٰلِكَ بيا لاس پرې کړل سوی [مقطوع اليد] له هغه زخم مړ سو فَالْعَبْدُ صُلْحٌ بِالْجِنَايَةِ نو [امام محمد رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي چي] غلام د جنايت په بدله کي صلح دی اِلٰى آخِرِ مَا ذَكَرْنَا مِنَ الرِّوَايَةِ د هغه روايت تر آخره پوري کوم چي موږ ذکر کړی وَهٰذَا الْوَضْعُ يَرِدُ إِشْكَالًا فِيْمَا او پر دغه وضع په هغه صورت کي اشکال وارديږي إِذَا عَفَا عَنِ الْيَدِ ثُمَّ سَرٰى إِلَى النَّفْسِ وَمَاتَ کله چي هغه [مقطوع اليد] د لاس زخم معاف کړي بيا زخم نفس ته سرايت وکړي او هغه مړ سي حَيْثُ لَا يَجِبُ الْقِصَاصُ هُنَالِكَ نو هلته قصاص نه واجبيږي وَهٰهُنَا قَالَ: يَجِبُ او دلته [د صلح په مسئله کي] امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايلي دي: چي قصاص واجبيږي قِيْلَ: مَا ذُكِرَ هٰهُنَا جَوَابُ الْقِيَاسِ ويل سوي دي: کوم چي دلته [د صلح په مسئله کي] ذکر سوي دی دا د قياس جواب دی فَيَكُوْنُ الْوَضْعَانِ جَمِيْعًا عَلَى الْقِيَاسِ وَالْاِسْتِحْسَانِ نو دواړه وضعي به پر قياس او استحسان وي وَقِيْلَ: بَيْنَهُمَا فَرْقٌ او ويل سوي دي: چي د دواړو وضعو تر مينځ فرق دی.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د جامع صغير په بعضي نسخو کي مخکنۍ مسئله داسي ذکر سوې ده چي که يو آزاد کس د بل آزاد کس مثلاً د زيد لاس عمداً پرې کړي او بيا مقطوع اليد (زيد) ته خپل يو غلام ورکړي او پر هغه صلح ور سره وکړي او مقطوع اليد هغه غلام آزاد کړي. نو د دې هم داغه حکم دی چي د قطع اليد په بدله کي پر غلام صلح کول جائز او صحيح دي. يعني د حکم په اعتبار د دواړو نسخو مسئلې سره يو دي.

**وهذا الوضع إلخ**: فرمايي چي د دويمي نسخې مطابق په دې صورت کي اشکال وارديږي کله چي مقطوع اليد (زيد) قاطع معاف کړي او بيا د زخم د سرايت کولو په وجه مقطوع اليد مړ سي نو پر قاطع قصاص نه واجبيږي، لېکن په هدايه کي چي کوم عبارت درج دئ د هغه مطابق حکم دا دی چي که تر

صلح وروسته د زخم د سرايت کولو په وجه مقطوع اليد مړ سي نو پر قاطع قصاص واجبيږي. او څرنګه چي صلح معافي لره متضمنه ده يعني صلح کول داسي دي لکه معاف کول. نو ګواکي دلته حکم دا دی چي که قاطع مقطوع اليد معاف کړي او د بيا زخم د سرايت کولو په وجه مقطوع اليد مړ سي نو قصاص واجبيږي. لهذا په دواړو وضعو او نسخو کي تعارض راغلی.

نو زموږ مشايخو د دې دوه جوابه ورکړي دي: ① په اوله وضع يعني د صلح په مسئله کي کوم چي په هدايه کي مذکوره ده چي په هغې کي د قصاص واجبېدلو حکم سوی دی. هغه د قياس مطابق دی. او په دويمه وضع يعني دعفو په مسئله کي چي د قصاص نه واجبېدلو حکم سوی دی. هغه پر استحسان مبني دی. لهذا کله چي هر حکم پر جلا شي مبني دی. نو ښکاره ده چي اوس هيڅ تعارض پاته نه سو. ② د ځيني مشايخو رايه دا ده چي په دې دواړو وضعو او نسخو کي واقعي فرق سته. يعني دعفو په صورت کي قصاص واجب نه دی او د صلح په صورت کي واجب دی. چي د هغه دليل او وجه د فرق به په را روان عبارت کي ذکر سي.

**د صلح او عفو تر مينځ د فرق بيان**

وَوَجْهُهُ أَنَّ الْعَفْوَ عَنِ الْيَدِ صَحَّ ظَاهِرًا او د دې [فرق] وجه دا ده چي د لاس معافي ظاهراً صحيح ده لِأَنَّ الْحَقَّ كَانَ لَهُ فِي الْيَدِ مِنْ حَيْثُ الظَّاهِرُ ځکه د ظاهر په اعتبار سره په لاس کي صرف د هغه حق دی فَيَصِحُّ الْعَفْوُ ظَاهِرًا نو ځکه ظاهراً معاف کول صحيح دي فَبَعْدَ ذٰلِكَ وَإِنْ بَطَلَ حُكْمًا او تر دې وروسته که څه هم معافي د حکم په اعتبار سره باطله سوه يَبْقَى مَوْجُوْدًا حَقِيقَةً [لېکن] د حقيقت په اعتبار سره باقي ده فَكَفَى ذٰلِكَ لِمَنْعِ وُجُوْبِ الْقِصَاصِ نو دا معافي د قصاص د وجوب منع کولو لپاره کافي ده أَمَّا هٰهُنَا الصُّلْحُ لَا يُبْطِلُ الْجِنَايَةَ لېکن دلته صلح جنايت نه باطلوي بَلْ يُقَرِّرُهَا بلکي هغه نور ثابتوي حَيْثُ صَالَحَ عَنْهَا عَلَىٰ مَالٍ په دې حيثيت سره چي هغه د جنايت په بدله کي صلح پر مال کړې ده فَإِذَا لَمْ يُبْطِلِ الْجِنَايَةَ لهذا کله چي صلحي جنايت باطل نه کړی لَمْ تَمْتَنِعِ الْعُقُوبَةُ نو عقوبت [قصاص] ممتنع نه سو هٰذَا إِذَا لَمْ يُعْتِقْهُ دا [دعقوبت نه ممتنع کېدل] هغه وخت دي کله چي هغه [مجني عليه] غلام آزاد کړی نه وي أَمَّا إِذَا أَعْتَقَهُ لېکن که هغه غلام آزاد کړی وي فَالتَّخْرِيجُ مَا ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ نو بيا د مسئلې تخريج پر همغه طريقه ده کوم چي موږ مخکي ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿ظاهراً﴾ د ظاهر په اعتبار سره. په ظاهره (په ښکاره)، ﴿عقوبة﴾ سزا.

**تشريح**: مخکې چې ځينې مشايخو د دوو وضعو يعني د صلح او عفو د صورتونو په مينځ کې کوم فرق بيان کړی دی. دلته د هغه وجه بيانوي فرمايي د عفو په صورت کې چې کله مقطوع اليد قاطع معاف کړي. نو معافي په ظاهره صحيح سوه: ځکه عفو طاهرا د صاحب اليد (مقطوع اليد) حق وه او هغه معافي وکړه نو ځکه دا معافي صحيح ده. لېکن تر معافي. وروسته د زخم د سرايت کولو په وجه چې کله عفو باطله سوه. نو دا صرف د حکم په اعتبار سره باطله سوه او د حقيقت په اعتبار سره عفو موجوده ده. او د حقيقيت په اعتبار سره د عفو موجودېدل د جنايت باطلېدلو شبهه پيدا کوي او شبهه د قصاص له وجوب څخه مانع ده. نو په دې وجه د عفو په صورت کې قصاص نه واجبيږي.

د دې په خلاف د صلح په صورت کې هيڅ شبهه نسته. نو ځکه په هغه کې قصاص واجبيږي: ځکه په صلح سره جنايت نه باطليږي بلکې نور مستحکم او مضبوط کيږي: ځکه د جنايت په بدله کې پر مال صلح سوې ده او مال د جنايت باطلونکی نه دی لهذا د صلح په صورت کې جنايت باقي دی او کله چې جنايت باقي دی نو ښکاره ده چې قصاص به هم واجب وي. لېکن دا خبره په ياد لرئ! چې دغه حکم په همغه صورت کې دی کله چې مجني عليه (مقطوع اليد) دا جنايتکاره غلام آزاد کړی نه وي. لېکن که هغه دا غلام آزاد کړی وي. نو د محل قصاص د معدوم کېدلو په وجه قصاص نه واجبيږي او دا اعتاق نوې صلح شمېرل کيږي. (احسن الهدايه. اشرف الهدايه)

## د مأذون لهٔ مقروض غلام د جنايت کولو بيان

قَالَ: وَإِذَا جَنَى الْعَبْدُ الْمَأْذُونُ لَهُ جِنَايَةً فرمايي: او کله چې هغه غلام چې هغه ته [د تجارت] اجازه ورکول سوې وي يو جنايت وکړي وَعَلَيْهِ أَلْفُ دِرْهَمٍ حال دا چې پر هغه زر درهمه قرض [هم] باندې وي فَأَعْتَقَهُ الْمَوْلَى وَلَمْ يَعْلَمْ بِالْجِنَايَةِ بيا مالک هغه آزاد کړي او مالک [د هغه] په جنايت خبر نه وي فَعَلَيْهِ قِيمَتَانِ نو پر مالک دوه قيمتونه واجب دي قِيمَةٌ لِصَاحِبِ الدَّيْنِ يو قيمت د قرض د خاوند [قرضخواه] لپاره وَقِيمَةٌ لِأَوْلِيَاءِ الْجِنَايَةِ او يو قيمت د جنايت د وليانو لپاره لِأَنَّهُ أَتْلَفَ حَقَّيْنِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَضْمُونٌ بِكُلِّ الْقِيمَةِ عَلَى الِانْفِرَادِ ځکه مالک دوه داسې حقونه ضايع کړي دي چې له هغوی څخه هر يو جلا، جلا په ټوله قيمت سره مضمون دی الدَّفْعُ لِلْأَوْلِيَاءِ وَالْبَيْعُ لِلْغُرَمَاءِ يعني د جنايت د وليانو لپاره غلام ورکول او د قرضخواهانو لپاره هغه خرڅول فَكَذَا عِنْدَ الِاجْتِمَاعِ نو همداسې به [د دواړو حقونو] د جمع کېدلو په وخت کې هم کيږي وَيُمْكِنُ الْجَمْعُ بَيْنَ الْحَقَّيْنِ إِيفَاءً

مِنَ الرَّقَبَةِ الْوَاحِدَةِ او له يوه رقبه [غلام] څخه د پوره کولو په اعتبار سره د دواړو حقونو تر مينځ جمع کول ممکن دي [يعني په يوه غلام سره د دې دواړو حقونو پوره اداء کول ممکن دي] بِأَنْ يُدْفَعَ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ په دې توګه چې غلام [اول] د جنايت ولي ته ورکول سي ثُمَّ يُبَاعُ لِلْغُرَمَاءِ بيا د قرضخوهانو لپاره خرڅ کړی سي فَيَضْمَنُهُمَا بِالْإِتْلَافِ نو څکه مالک به د دواړو حقونو ضامن وي [د مغنوی] د ضايع کولو په وجه بِخِلَافِ مَا إِذَا أَتْلَفَهُ أَجْنَبِيٌّ په خلاف د هغه صورت کله چې يو اجنبي کس غلام ضايع کړي [قتل يې کړي] حَيْثُ تَجِبُ قِيمَةٌ وَاحِدَةٌ لِلْمَوْلَى نو [پر اجنبي کس] د مالک لپاره صرف يو قيمت واجبيږي وَيَدْفَعُهَا الْمَوْلَى إِلَى الْغُرَمَاءِ او مالک به هغه قيمت قرضخواهانو ته ورکوي لِأَنَّ الْأَجْنَبِيَّ إِنَّمَا يَضْمَنُ لِلْمَوْلَى بِحُكْمِ الْمِلْكِ څکه اجنبي کس د مالک لپاره د ملکيت په حکم سره ضامن کيږي فَلَا يَظْهَرُ فِي مُقَابَلَتِهِ الْحَقُّ نو د ملکيت په مقابله کې به اد قرضخواهانوا حق نه ښکاره کيږي لِأَنَّهُ دُونَهُ څکه چې حق له ملکيت څخه کم [ادنیٰ] دی وَهٰهُنَا يَجِبُ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِإِتْلَافِ الْحَقِّ او دلته د حق ضايع کولو په وجه له دوی دواړو څخه د هر يوه لپاره ضمان واجب سوی دی فَلَا تَرْجِيحَ نو هيڅ ترجيح نسته فَيَظْهَرَانِ لهذا دواړه حقونه به ښکاره کيږي فَيَضْمَنُهُمَا نو څکه مالک به د دواړو ضامن کيږي.

**اللغات:** ﴿مأذون له﴾ مأذون: د سمع له بابه د مفعول صيغه ده: هغه غلام چې د مالک له طرفه د تصرف او کاروبار کولو اجازه ورکول سوې وي، ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: تلفول، ضايع کول، هلاکول، ﴿انفراد﴾ د انفعال د باب ماضي ده: يوازي او جلاکېدل، على الانفراد: په انفرادي توګه، جلا جلا، ﴿غرماء﴾ جمع د غريمٌ ده: د قرض مالک، قرضخواه (قرض غوښتونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مأذون فی التجاره غلام يو جنايت وکړي مثلاً يو سړی قتل کړي او پر هغه غلام زر درهمه قرض هم باندي وي، بيا مالک (مولیٰ) هغه آزاد کړي او مالک د هغه په جنايت خبر نه وي، نو په دې صورت کې پر مالک دوه قيمتونه واجبيږي: ① يو قيمت د غرماؤ (يعني پر غلام چې د چا قرض باندي وي، د مغنوی) لپاره واجبيږي، ② او بل قيمت د مقتول د ليانو لپاره؛ څکه مالک د غلام په آزادولو سره دوه حقونه ضايع کړي دي، او له هغه دواړو څخه هر حق يوازي

(انفرادا) هم په ټوله قیمت سره مضمون کیږي یعني که غلام فقط جنایت کړي وای یا صرف پر هغه قرض باندي وای او مالک هغه آزاد کړي وای. نو په دې صورت کي هم پر هغه د غلام ټوله قیمت واجبېدی. لهذا کله چي د دې غلام سره دوه حقونه تړلي دي. نو د هغه د آزادولو په وجه به پر مالک د دواړو حقونو قیمت واجب وي.

ویمکن الجمع إلخ: فرمایي دلته په دې یوه غلام سره د دواړو حقونو اداء کول ممکن هم دي. هغه په دې توګه چي غلام دي اول د جنایت (قتل) ولیانو ته ورکول سي. نو د هغوی حق به اداء سي. او بیا دي غلام خرڅ کړی سي، نو د غرماؤ حق به اداء سي. لهذا کله چي د دواړو تر مینځ جمع ممکن ده نو ځکه پر مالک به د دوی دواړو حقونه واجب وي چي هر یوه ته به د هغه ضمان (تاوان) یعني قیمت ورکوي.

او که مالک د غلام په جنایت خبر وي او بیا هغه آزاد کړي. نو په دې صورت کي پر مالک د مقتول د ولیانو لپاره دیت واجبیږي، نه قیمت. خو د غرماؤ لپاره د مخکي په څېر قیمت واجبیږي. (بنایه ج: ۲. ص: ۳۶۳)

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که غلام یو جنایت وکړي او پر هغه زر درهمه قرض هم باندي وي. بیا یو اجنبي کس دا غلام قتل کړي، نو پر اجنبي صرف یو قیمت واجبیږي. نه دوه قیمتونه؛ ځکه دلته پر اجنبي کس صرف په دې وجه ضمان واجب دی چي مقتول غلام د مالک ملکیت دی او اجنبي د هغه ملکیت هلاک کړی دی. او د غرماؤ د حق (قرض) په وجه پر هغه ضمان واجب نه دی. او څرنګه چي ملکیت له حق څخه قوي دی، نو ځکه د ملکیت په مقابله کي به (د غرماؤ) حق نه ښکاره کیږي بلکي ملکیت به پر حق راجح او غالب وي. او په یوه غلام کي د ملکیت ملکیت هم واحد یعني یو وي. نو ځکه پر جنایتکاره یعني پر اجنبي کس به صرف یو قیمت واجب وي.

د دې په خلاف د مالک د آزادولو په صورتونو کي پر مالک د دوو قیمتونو ضمان ځکه واجبیږي چي مالک دوه حقونه ضایع کړي دي او دواړه حقونه له جلا. جلا جنس څخه دي او یوه ته پر بل ترجیح هم نسته. نو ځکه دواړه حقونه به ښکاره کیږي او پر مالک به د دواړو حقونو جلا. جلا قیمت واجب وي. (احسن الهدایه)

### که مأذون لها مینځه تر خپل قیمت زیاته مقروضه سي بیا بچی وزېږوي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا اسْتَدَانَتِ الْأَمَةُ الْمَأْذُوْنُ لَهَا أَكْثَرَ مِنْ قِيْمَتِهَا فرمایي: او کله چي قرض واخلي هغه مینځه چي هغې ته [د تجارت] اجازه ورکول سوې وي له خپل قیمت څخه زیات قرض ثُمَّ وَلَدَتْ بیا دا مینځه بچی وزېږوي فَإِنَّهُ يُبَاعُ الْوَلَدُ مَعَهَا فِي الدَّيْنِ نو د هغې سره به بچی هم په قرض کي خرڅول کیږي وَإِنْ جَنَتْ جِنَايَةً او که دا مینځه یو جنایت وکړي لَمْ يُدْفَعِ الْوَلَدُ مَعَهَا نو د هغې سره

به بچی نه ورکول کیږي وَالْفَرْقُ أَنَّ الدَّيْنَ وَصْفٌ حُكْمِيٌّ فِيهَا او [په دې دواړو کې] فرق دا دی چې قرض په مینځه کې يو حکمي وصف دی وَاجِبٌ فِي ذِمَّتِهَا مُتَعَلِّقٌ بِرَقَبَتِهَا اسْتِيفَاءً کوم چې د مینځې پر ذمه واجب دی او د هغې د غاړې [ذات] سره متعلق دی د ترلاسه کولو [اخيستلو] په اعتبار سره فَيَسْرِيْ إِلَى الْوَلَدِ نو ځکه وصف حکمي به د بچي وطرف ته [هم] سرايت وکړي كَوَلَدِ الْمَرْهُونَةِ لکه د مرهونه مینځې بچی بِخِلَافِ الْجِنَايَةِ په خلاف د جنايت لِأَنَّ وُجُوْبَ الدَّفْعِ فِيْ ذِمَّةِ الْمَوْلٰى ځکه چې [د جنايت په وجه] د غلام ورکولو وجوب د مالک پر ذمه دی لَا فِيْ ذِمَّتِهَا نه د مینځې پرذمه وَإِنَّمَا يُلَاقِيْهَا أَثَرُ الْفِعْلِ الْحَقِيْقِيِّ او د مینځې سره [فقط] د فعلِ حقيقي اثر ملاقي کیږي وَهُوَ الدَّفْعُ او هغه [فعلِ حقيقي] ورکول دي وَالسِّرَايَةُ فِي الْأَوْصَافِ الشَّرْعِيَّةِ دُوْنَ الْأَوْصَافِ الْحَقِيْقِيَّةِ او سرايت په اوصاف شرعيه وو کې کيږي، نه په اوصاف حقيقيه وو کې.

**اللغات**: ﴿استدانت﴾ د استفعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: قرض غوښتل. پور اخيستل. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول. اخيستل. حاصلول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو مالک (مولیٰ) خپلې مینځې ته د تجارت اجازه ورکړې وي بيا په تجارت کې هغه مینځه له خپل قيمت څخه زيات ته قرضداره سي او په دې دوران کې بچی وزيږوي. نو د قرض په ادائه کې بچی د مینځې تابع کيږي لهذا د مینځې سره به بچی هم په قرض کې ورکول کيږي يعني د قرض اداء کولو لپاره به دواړه خرڅول کيږي. د دې په خلاف که همدا قرضداره مینځه يو جنايت وکړي. نو د هغه حکم د بچي وطرف ته سرايت نه کوي يعني د جنايت په بدله کې به د مینځې سره بچی نه ورکول کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دواړو صورتونو کې فرق دا دی چې وصف حکمي څو سرايت کوي لېکن وصف حقيقي سرايت نه کوي، او څرنګه چې قرض وصف حکمي دی: ځکه هغه د مینځې پر ذمه واجب وي او د مینځې د رقبې (ذات) سره متعلق کيږي. نو ځکه دا وصف به د بچي وطرف ته سرايت کوي او د مینځې سره به بچی هم په قرض کې ورکول کيږي. لکه څرنګه چې د مرهونه مینځې بچي ته د رهن حکم سرايت کوي (لکه مخکې چې د دې وضاحت تېر سو).

د دې په خلاف جنايت وصف حقيقي دی: ځکه د جنايت کولو په صورت کې جنايتکاره رقبه د مجني عليه اولياؤ ته ورکول پر مالک (مولیٰ) واجبيږي. او د مالک ورکړه فعلِ حقيقي او وصف

حقيقي دى او په وصف حقيقي کي سرايت نه کيږي، نو ځکه د جنايت والا په صورت کي به د مينځي سره د هغې بچی نه ورکول کيږي. (احسن الهدايه)

**که غلام د يو سړي ولي قتل کړي او سړي پر هغه د آزاد ګومان کړی وي (حکم او تفصيل)**

قَالَ: وَإِذَا كَانَ الْعَبْدُ لِرَجُلٍ زَعَمَ رَجُلٌ آخَرُ فرمايي: او کله چي د يو سړي غلام وي چي د هغه په باره کي بل سړي دا ګومان کړی وي أَنَّ مَوْلَاهُ أَعْتَقَهُ چي د هغه مالک هغه آزاد کړی دی فَقَتَلَ الْعَبْدُ وَلِيًّا لِذَلِكَ الرَّجُلِ خَطَأً بيا دا غلام د هغه سړي [يعني د زاعم] يو ولي خطاءً قتل کړي فَلَا شَيْءَ لَهُ نو د هغه سړي لپاره هيڅ شی نسته لِأَنَّهُ لَمَّا زَعَمَ أَنَّ مَوْلَاهُ أَعْتَقَهُ ځکه کله چي هغه دا ګومان وکړی چي مالک دا غلام آزاد کړی دی فَقَدِ ادَّعَى الدِّيَةَ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو هغه پر عاقله وو د ديت دعویٰ وکړه وَأَبْرَأَ الْعَبْدَ وَالْمَوْلَى او غلام او مالک يې بري کړل إِلَّا أَنَّهُ لَا يُصَدَّقُ عَلَى الْعَاقِلَةِ مِنْ غَيْرِ حُجَّةٍ خو د هغه تصديق به د عاقله وو په خلاف له حجت څخه بغير نه کيږي.

**اللغات:** ﴿زعم﴾ د ماضي صيغه ده، له فتح او نصر دواړو بابو څخه راځي: ګومان کول. زياتره د مشکوک امر په باره کي استعماليږي (معجم الوسيط). ﴿أبرأ﴾ د افعال د باب فاعل دی: بري کول. معاف کول. ﴿عاقلة﴾ د قاتل او جنايتکاره متعلقين، نژدې قوميان (خاندان والا).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د نقيب يو غلام دی او د هغه په هکله د خالد ګومان دا دی چي دا غلام خپل مالک (نقيب) آزاد کړی دی، بيا دغه غلام د خالد يو ولي خطاءً قتل کړی، نو اوس د مقتول ولي په عوض کي خالد ته ديت وغيره هيڅ شی نه حاصليږي؛ ځکه کله چي خالد دا جنايتکاره غلام آزاد وګڼلی، نو ګواکي هغه د غلام پر عاقله وو د ديت دعویٰ وکړه او قاتل غلام او د هغه مالک يې له ديت څخه بري کړی (ځکه په قتلِ خطاء کي صرف پر عاقله وو ديت واجبيږي). خو څرنګه چي دلته پر عاقله وو د ديت واجبېدلو په هکله د ده (خالد) سره هيڅ ثبوت او دليل نسته. نو ځکه پر عاقله وو د ديت واجبېدلو په هکله به د ده تصديق نه کيږي، او غلام او د هغه مالک خو ده (خالد) له مخکي څخه بري کړي دي، لهذا په مذکوره مسئله کي نه پر دوی ديت واجبيږي او نه پر عاقله وو (نو ځکه خالد ته ديت وغيره هيڅ شی نه حاصليږي). (احسن الهدايه)

## د جاني (قاتل) او مجني عليه د ولي تر مينځ د جاني
## په غلامتوب او آزادوالي کي د اختلاف بيان

قَالَ: وَإِذَا أُعْتِقَ الْعَبْدُ فَقَالَ لِرَجُلٍ فرمايي. او کله چي غلام آزاد کړی شي نو هغه يو کس ته وويل قَتَلْتُ أَخَاكَ خَطَأً وَأَنَا عَبْدٌ ما ستا ورور خطاءً قتل کړی وو په داسي حال کي چي زه غلام وم وَقَالَ الْآخَرُ: قَتَلْتَهُ وَأَنْتَ حُرٌّ او هغه بل کس وويل: چي تا په داسي حال کي هغه قتل کړی وو چي ته آزاد وې فَالْقَوْلُ قَوْلُ الْعَبْدِ نو قول د غلام معتبر دی لِأَنَّهُ مُنْكِرٌ لِلضَّمَانِ ځکه دئ [غلام] د ضمان انکار کونکی دی لِمَا أَنَّهُ أَسْنَدَهُ إِلَى حَالَةٍ مَعْهُودَةٍ مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ ځکه ده [غلام] د هغه معهود حالت وطرف ته قتل منسوب کړی دی کوم چي د ضمان منافي دی إِذِ الْكَلَامُ فِيمَا إِذَا عُرِفَ رِقُّهُ ځکه خبره په هغه صورت کي ده کله چي د غلام رقيت [غلامتوب] پېژندل سوی وي وَالْوُجُوبُ فِي جِنَايَةِ الْعَبْدِ عَلَى الْمَوْلَى دَفْعًا أَوْ فِدَاءً او د غلام په جنايت کي وجوب پر مالک وي د غلام ورکولو يا فديه ورکولو په اعتبار سره وَصَارَ كَمَا إِذَا قَالَ الْبَالِغُ الْعَاقِلُ او دا داسي سوه لکه کله چي يو عاقل بالغ کس وويل طَلَّقْتُ امْرَأَتِي وَأَنَا صَبِيٌّ ما په داسي حال کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړی وو چي زه بچی وم أَوْ بِعْتُ دَارِي وَأَنَا صَبِيٌّ يا ما په داسي حال کي خپل کور خرڅ کړی وو چي زه بچی وم أَوْ قَالَ: طَلَّقْتُ امْرَأَتِي وَأَنَا مَجْنُونٌ يا هغه وويل: ما په داسي حال کي خپلي ښځي ته طلاق ورکړی وو چي زه لېونی وم وَقَدْ كَانَ جُنُونُهُ مَعْرُوفًا. او د هغه لېونتوب پېژندل سوی [مشهوره] وو كَانَ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو قول د هغه معتبر دی لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿اسند﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب يو معنیٰ ده: د يو شي نسبت بل شي ته کول، منسوب کول. ﴿فداء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: فديه اداء کول، فديه ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زيد مثلاً د نقيب غلام دی او نقيب هغه آزاد کړی، بيا څو وخت وروسته زيد يو سړي مثلاً خالد ته وويل چي کله زه غلام وم، نو ما ستا ورور خطاءً قتل کړی وو لهذا ته ولاړ سه! او زما له مالک (نقيب) څخه ضمان ترلاسه کړه!. نو خالد ورته وويل چي نه! تا زما ورور په هغه وخت کي قتل کړی دی کله چي ته آزاد سوی وې لهذا د هغه ضمان پر تا واجب دی،

نه ستا پر مالک. نو د دې اختلاف په صورت کې صرف د غلام قول معتبر دی او د مقتول د ورور (خالد) قول لره اعتبار نسته: ځکه دا کس يعني خالد پر آزاد سوي غلام (زيد) باندې د ضمان واجبېدلو دعوىٰ کوي او غلام له دې څخه انکار کوي. ځکه غلام (زيد) د ضمان سبب يعني قتل د داسې حالت وطرف ته منسوب کوي کوم چې پر هغه د ضمان واجبېدلو منافي دی. يعني د خپل غلامتوب په حالت کې د قتل اقرار کول د دې خبرې څرګند دليل دی چې ضمان زما پر مالک واجب دی. ځکه له غلام څخه خطاءً صادرېدونکې جنايت پر مالک واجبېږي چې د هغه په بدله کې به مالک يا غلام ورکوي يا به د هغه فديه اداء کوي. لنډه دا چې دلته غلام (زيد) پر خپل ځان له ضمان واجبېدلو څخه منکر دی، او د مدعي (خالد) سره بينه نسته. نو ځکه د القول قول المنکر والا قاعدې پر بناء به د منکر يعني د غلام (زيد) قول معتبر وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دغه مسئلې په تائيد کې درې نورې مسئلې د مثال په توګه پېش کړې دي: ① يو عاقل او بالغ کس مثلاً زيد وويل چې کله ما خپلې ښځې ته طلاق ورکړی وو. په هغه وخت کې زه بچی (کوچنی) وم. ② يو سړي مثلاً زيد وويل چې کله ما خپل کور خرڅ کړی وو. نو زه بچی وم. ③ زيد وويل چې کله ما خپلې ښځې ته طلاق ورکړی وو. په هغه وخت کې زه لېونی وم، او د هغه لېونتوب مشهوره وو. نو په دې درېو سره مسئلو کې د سړي (زيد) قول معتبر دی: ځکه هغه پر خپل ځان له ضمان واجبېدلو څخه منکر دی. مثلاً د طلاق په صورت کې د مهر يا د عدې د مصارفو وغيره له وجوب څخه منکر دی، او د کور د بيع په صورت کې هغه د ثمن له وجوب څخه منکر دی: ځکه په دې مسئلو کې هغه (زيد) د داسې حالت وطرف ته د فعل نسبت کوي کوم چې د ضمان واجبېدلو منافي دی يعني د کوچنيوالي او لېونتوب حالت ته. لهذا څرنګه چې په دې مسئلو کې ضمان نه واجبېږي، نو همګاسې به په مذکوره مسئله کې هم پر غلام ضمان نه واجبېږي او د ضمان نه واجبېدلو په هکله به د هغه قول معتبر وي. (احسن الهدايه)

## د مجني عليه په حريت او غلامتوب کې د اختلاف بيان

قَالَ: وَمَنْ أَعْتَقَ جَارِيَةً ثُمَّ قَالَ لَهَا فرمايي: او څوک چې يو مينځه آزاده کړي بيا هغې ته ووايي قَطَعْتُ يَدَكِ وَأَنْتِ أَمَتِيْ ما په داسې حال کې ستا لاس پرېکړی وو چې ته زما مينځه وې وَقَالَتْ: قَطَعْتَهَا وَأَنَا حُرَّةٌ او مينځې وويل: تا په داسې حال کې هغه پرېکړی وو چې زه آزاده وم فَالْقَوْلُ قَوْلُهَا نو قول د مينځې معتبر دی وَكَذٰلِكَ كُلُّ مَا أُخِذَ مِنْهَا او همدارنګه د هر هغه شي دغه حکم

دی کوم چي له مينځي څخه اخيستل سوی وي إِلَّا الْجِمَاعَ وَالْغَلَّةَ اِسْتِحْسَانًا مګر جماع او [د مينځي] ګټه استحساناً وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞ : لَا يَضْمَنُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا مالک د هيڅ شي نه ضامن کيږي إِلَّا شَيْئًا قَائِمًا بِعَيْنِهٖ مګر د هغه شي [ضامن کيږي] کوم چي بعينه [د مالک سره] موجود وي يُؤْمَرُ بِرَدِّهٖ عَلَيْهَا نو مالک به پر مينځي د هغه شي په واپس کولو سره امر کول کيږي [چي دا موجود شی مينځي ته واپس کړه!] لِأَنَّهٗ مُنْكِرٌ وُجُوْبَ الضَّمَانِ ځکه دا مالک د ضمان واجبېدلو منکر دی لِإِسْنَادِهِ الْفِعْلَ إِلٰى حَالَةٍ مَعْهُوْدَةٍ مُنَافِيَةٍ لَهٗ ځکه چي مالک د فعل اسناد [نسبت کول] د داسي معروفه حالت وطرف ته کړی دی کوم چي د ضمان منافي دی كَمَا فِي الْمَسْأَلَةِ الْأُوْلٰى لکه په اوله مسئله کي وَكَمَا فِي الْوَطْءِ وَالْغَلَّةِ او لکه په وطي او ګټه کي وَفِي الشَّيْءِ الْقَائِمِ أَقَرَّ بِيَدِهَا او په موجود شي کي هغه [مالک] د مينځي د قبضې اقرار کړی دی حَيْثُ اعْتَرَفَ بِالْأَخْذِ مِنْهَا په دې حيثيت سره چي هغه له مينځي څخه [د دې شي] د اخيستلو اعتراف کړ دی ثُمَّ ادَّعَى التَّمَلُّكَ عَلَيْهَا بيا يې د مينځي په خلاف د مالک کېدلو دعویٰ کړې ده وَهِيَ مُنْكِرَةٌ حال دا چي مينځه منکره ده وَالْقَوْلُ قَوْلُ الْمُنْكِرِ او قول د منکر معتبر وي فَلِهٰذَا يُؤْمَرُ بِالرَّدِّ إِلَيْهَا نو ځکه مالک به مينځي ته [دشي] په واپس کولو سره امر کول کيږي.

**اللغات**: ﴿غلة﴾ د دې لفظ څلور معناوي نقل سوي دي چي له هغوی څخه يوه دا ده: د غلام يا مينځي ګټه (ګټل سوی مال)، يعني غلام يا مينځه چي په خپل محنت سره کوم مال ګټلی وي. أجرت او محاصل. ﴿إسناد﴾ د افعال د باب مصدر دی، د دې يوه معنیٰ ده: منسوب کول. ﴿التملك﴾ د تفعل د باب مصدر دی: مالک کېدل. مالک جوړېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي زينب مثلاً د نقيب مينځه وه او نقيب هغه آزاده کړه. بيا څو ورځي وروسته نقيب (مالک) هغې ته وويل: چي کله تا زما مينځه وې په هغه وخت کي ما ستا لاس پرېکړی وو، او مينځي وويل: چي نه! تا تر آزادولو وروسته زما لاس پرېکړی وو. نو په دې صورت کي د مينځي قول معتبر دی، همدارنګه له دې څخه بغير په هغه ټولو صورتونو کي چي له مينځي څخه د هغې مالک (مولیٰ) يو شی اخيستی وي او بيا د قبل العتق او بعد العتق والا اختلاف

۞ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كذا في الدر المختار (ج:٥، ص:٤٣٦). [القول الراجح ج:٢، ص:٧٠٣]

پېښ سي. نو د مينځي قول معتبر دی. خو دوې مسئلې داسي دي چي هلته استحساناً د مالک قول معتبر دی: ① يوه دا چي مالک مينځي ته وويل: ما په داسي حالت کي ستا سره وطي کړي دي چي ته مينځه وې او هغې وويل: چي تا زما تر آزادولو وروسته زما سره وطي کړي دي. ② دويمه مسئله دا ده چي مالک مينځي ته وويل: ما تر آزادولو مخکي ستا ګټه (ګټل سوی مال) اخيستی دی او مينځي وويل: چي تا تر آزادولو وروسته اخيستی دی. نو استحساناً په دې دواړو صورتونو کي د مالک قول معتبر دی. دا ټوله تفصيل د شيخينو رَحِمَهُمَا الله د قول او مسلک مطابق دي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي د هر شي په هکله د مينځي قول معتبر نه دی. خو له مينځي څخه اخيستل سوي شی که د هغې د مالک سره بعينه موجود وي، صرف د هغه په هکله د مينځي قول معتبر دی او مالک ته به دا حکم کيږي چي موجود شی مينځي ته واپس کړي؛ ځکه مالک د دې شي وجود او کړنه د داسي حالت وطرف ته منسوب کوي چي په هغه حالت کي پر ده ضمان نسته ځکه د مينځي د مينځيتوب په حالت کي پر مالک ضمان نسته او مالک د همدې حالت وطرف ته قطعُ اليد او آخذ الشئ منسوب کوي، لهذا څرنګه چي په مخکنۍ مسئله يعني د غلام په مسئله کي د منکر قول لره اعتبار دی او د وطي او ګټي (ګټل سوي مال) په هکله د منکر قول معتبر سوی دی، نو همداسي په مذکوره مسئله کي به هم له موجود شَي څخه بغير په نورو کي د منکر يعني د مالک قول معتبر وي.

د دې په خلاف کوم شی چي موجود وي، د هغه په هکله د مينځي قول په دې وجه معتبر دی. ځکه کله چي مالک له مينځي څخه د هغه شي د اخيستلو اقرار وکړی نو ګواکي پر هغه شي يې د مينځي د قابض کېدلو اقرار هم وکړی (چي دا شی د مينځي په قبضه کي وو). او بيا مالک د مينځي په خلاف د هغه شي د ملکيت دعویٰ هم کوي (چي د دې شي مالک زه يم) او مينځه د دې دعوې منکره ده او قول د منکر معتبر وي، نو ځکه په دې صورت کي د مينځي قول معتبر دی او مالک ته به دا حکم کيږي چي هغه موجوده شی مينځي ته وسپاري. (احسن الهدايه)

**د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل**

وَلَهُمَا: أَنَّهُ أَقَرَّ بِسَبَبِ الضَّمَانِ د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي مالک د ضمان د سبب اقرار کړی دی ثُمَّ ادَّعٰى مَا يُبْرِئُهُ بيا يې د داسي شي دعویٰ کړې ده کوم چي هغه له ضمان څخه بري کړي فَلَا يَكُوْنُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو ځکه قول د هغه به معتبر نه وي كَمَا إِذَا قَالَ لِغَيْرِهِ لکه يو څوک چي بل چا ته ووايي فَقَأْتُ عَيْنَكَ الْيُمْنٰى وَعَيْنِي الْيُمْنٰى صَحِيْحَةٌ ثُمَّ فُقِئَتْ ما په داسي حال کي ستا راسته

ستر ګه ایستلې [باسلې] وه چې زما راسته ستر ګه روغه وه بیا هغه [زما راسته ستر ګه] وېستل سوه وَقَالَ الْمُقَرُّلَهُ او مقر لهٔ [یعني د چاپاره چې هغه د دې خبر اقرار کړی دی. هغه] وویل لَا بَلْ فَقَأْتَهَا وَعَيْنُكَ الْيُمْنٰى مَفْقُوْءَةٌ نه! تا په داسې حال کې هغه ایستلې وه چې ستا راسته ستر ګه ایستلی سوې وه فَإِنَّ الْقَوْلَ قَوْلُ الْمُقَرِّلَهُ نو قول د مقر لهٔ معتبر دی وَهٰذَا لِأَنَّهُ مَا أَسْنَدَهُ إِلٰى حَالَةٍ مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ او دا [حکم] ځکه دی چې مالک فعل د داسې حالت وطرف ته نه دی منسوب کړی کوم چې د ضمان منافي دی لِأَنَّهُ يَضْمَنُ يَدَهَا لَوْ قَطَعَهَا وَهِيَ مَدْيُوْنَةٌ ځکه مالک د مینځې د لاس ضامن کیږي که چیري هغه په داسې حال کې د مینځې لاس پرېکړی وي چې مینځه مقروضه وي وَكَذَا يَضْمَنُ مَالَ الْحَرْبِيِّ إِذَا أَخَذَهُ وَهُوَ مُسْتَأْمِنٌ او همدارنګه مسلمان د حربي د مال ضامن کیږي کله چې مسلمان هغه په داسې حال کې اخیستی وي چې مسلمان امان اخیستونکی وي بِخِلَافِ الْوَطْءِ وَالْغَلَّةِ په خلاف [د مینځې] د وطي او ګټې لِأَنَّ وَطْءَ الْمَوْلٰى أَمَتَهُ الْمَدْيُوْنَةَ لَا يُوْجِبُ الْعُقْرَ ځکه د خپلې مینځې سره د مالک وطي کول عقر نه واجبوي وَكَذَا أَخْذُهُ مِنْ غَلَّتِهَا وَإِنْ كَانَتْ مَدْيُوْنَةً لَا يُوْجِبُ الضَّمَانَ عَلَيْهِ او همدارنګه د مینځې له ګټې څخه اخیستل که څه هم هغه مقروضه وي پر مالک ضمان نه واجبوي فَحَصَلَ الْإِسْنَادُ إِلٰى حَالَةٍ مَعْهُوْدَةٍ مُنَافِيَةٍ لِلضَّمَانِ نو د فعل اسناد [نسبت کول] د داسې معروف حالت وطرف ته واقع سو کوم چې د ضمان منافي دی.

**اللغات:** ﴿عُقْر﴾ مهر، د وطي جرمانه، هغه مال (مهر) کوم چې د وطي په عوض کې پر وطي کونکي لازم سي، ﴿معهودة﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: معروف، معلوم، مشهور.

**تشریح:** په دې عبارت کې د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل بیان سوی دی، حاصل یې دا دی چې کله مالک دا خبره تسلیم کړه چې هغه دا مذکوره شی له مینځې څخه اخیستی دی، نو ګواکې هغه د ضمان د سبب اقرار وکړی او تر دې وروسته د هغه دا وینا چې ما ستا د مینځې والې په حالت کې دا شی اخیستی وو، په دې قول سره مالک له ضمان څخه د بري کېدلو دعویٰ کوي، نو ځکه د مالک دا دعویٰ به معتبره نه وي او د مقر لها یعني د مینځې خبره به معتبره وي او پر مالک به ضمان واجب وي.

د دې مثال داسې دی لکه یو سړی چې بل چا مثلاً حامد ته ووایي چې ما په هغه حالت کې ستا راسته ستر ګه ایستلې وه چې زما راسته ستر ګه روغه وه او وروسته یو چا هغه را ویستله. لهذا اوس

پر ما ستا د سترګي ضمان نسته. او مُقر له (حامد) وويل چي نه! بلکي کله چي تا زما راسته سترګه ايستلې وه نو ستا راسته سترګه هم ايستلى سوې وه. نو دلته هم د مُقرلهٔ (زيد) قول معتبر دى او پر مُقر ضمان واجبېږي چي هغه به مُقر لهٔ ته نصف ديت ورکوي. خلاصه دا چي څرنګه د سترګي په مسئله کي د مُقرلهٔ قول معتبر سوى دى، نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم د مُقر لها يعني د مينځي قول معتبر وي.

وهذا لأنه إلخ: فرمايي چي په مذکوره مسئله کي په دې وجه هم پر مالک ضمان واجب دى چي مالک د ضمان سبب د ضمان د منافي حالت وطرف ته نه دى منسوب کړى؛ ځکه د مملوک کېدلو او د مملوک په وجه پر مالک د ضمان واجبېدلو تر مينځ هيڅ منافات نسته. همدا وجه ده که يو مالک د خپلي مقروضه مينځي لاس پرېکړي، نو پر مالک د قطع اليد ضمان واجبېږي. حال دا چي مقطوعة اليد د هغه مينځه ده.

همدارنګه که يو مسلمان دار الحرب ته ولاړ سي او په دار الحرب کي امان واخلي او هلته له يو حربي کافر څخه مال واخلي او بيا دا مسلمان دار الاسلام ته واپس راسي او هغه حربي کافر هم مسلمان سي او دار الإسلام ته راسي، اوس که مال اخيستونکى مسلمان دا ووايي چي ما په هغه وخت کي ستا مال اخيستى وو کله چي ته کافر وې او مأخوذ منهٔ (حربي) ووايي چي کله تا زما مال اخيستى وو. زه مسلمان سوى وم. نو په دې صورت کي هم د مقرلهٔ يعني د مأخوذ منهٔ قول معتبر دى او پر آخذ (مسلمان) ضمان واجبېږي؛ ځکه که څه هم دلته آخذ د مال اخيستل د مأخوذ منهٔ د کفر وحالت ته منسوب کړي دي، خو څرنګه چي په دې حالت کي هم د هغه مال اخيستل د ضمان موجب دي، نو ځکه پر آخذ ضمان واجب دى، نو همدغسي په مذکوره مسئله کي مالک که څه هم د مينځي د شي اخيستل د هغې د مينځيتوب وحالت ته منسوب کړي دي، خو څرنګه چي دا حالت هم د ضمان موجب دى، نو ځکه پر مالک به ضمان واجب وي.

د دې په خلاف که مالک د خپلي مقروضه مينځي سره وطي وکړي يا د هغې ګټه (ګټل سوى مال) واخلي او بيا دا فعال د هغې د مينځيتوب وحالت ته منسوب کړي. نو پر مالک ضمان وغيره نه واجبېږي. ځکه د مينځيتوب په حالت کي د خپلي مقروضه مينځي سره وطي کول يا د هغې ګټه اخيستل د ضمان موجب نه دي. ځکه په دې صورتونو کي د داسي حالت وطرف ته نسبت سوى دى کوم چي د ضمان منافي او مخالف دى. لېکن په مذکوره مسئله کي د داسي حالت وطرف ته نسبت نه دى سوى. نو ځکه دلته ضمان واجب دى. (احسن الهدايه)

## كه يو آزاد بچي د محجور غلام ياد بچي په حكم سره يو څوک قتل كړي (حكم او تفصيل)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَإِذَا أَمَرَ الْعَبْدُ الْمَحْجُوْرُ عَلَيْهِ صَبِيًّا حُرًّا بِقَتْلِ رَجُلٍ او كله چي محجور غلام يو آزاد بچي ته د يو سړي د قتلولو حكم وكړي فَقَتَلَهُ او بچي هغه سړى قتل كړي فَعَلَى عَاقِلَةِ الصَّبِيِّ الدِّيَةُ نو د بچي پر عاقله وو ديت [واجب] دى لِأَنَّهُ هُوَ الْقَاتِلُ حَقِيقَةً ځكه په حقيقيت كي همدا بچى قتل كونكى دى وَعَمْدُهُ وَخَطَؤُهُ سَوَاءٌ او د بچي عمد او خطاء دواړه سره برابر دي عَلَى مَا بَيَّنَّا مِنْ قَبْلُ لكه مخكي چي موږ بيان كړه وَلَا شَيْءَ عَلَى الْآمِرِ او پر حكم كونكي هيڅ شى نسته وَكَذَا إِذَا كَانَ الْآمِرُ صَبِيًّا او همدارنګه كله چي حكم كونكى بچى وي لِأَنَّهُمَا لَا يُؤَاخَذَانِ بِأَقْوَالِهِمَا ځكه دا دواړه [غلام او بچى] په خپلو اقوالو كي نه مأخوذ كيږي لِأَنَّ الْمُؤَاخَذَةَ فِيهَا بِاعْتِبَارِ الشَّرْعِ ځكه په اقوالو كي مؤاخذه د شريعت په اعتبار كولو سره وي وَمَا اعْتَبَرَ قَوْلَهُمَا او شريعت د دوى دواړو د قول اعتبار نه دى كړى وَلَا رُجُوعَ لِعَاقِلَةِ الصَّبِيِّ عَلَى الصَّبِيِّ الْآمِرِ أَبَدًا او د بچي عاقله وو لره پر حكم كونكي بچي هيڅكله هم د رجوع حق نسته وَيَرْجِعُوْنَ عَلَى الْعَبْدِ الْآمِرِ بَعْدَ الْإِعْتَاقِ او عاقله به پر آمر غلام [د هغه] تر آزادېدلو وروسته رجوع كوي لِأَنَّ عَدَمَ الِاعْتِبَارِ لِحَقِّ الْمَوْلَى ځكه [د غلام د قول] نه معتبر كېدل د مالک د حق په وجه وه وَقَدْ زَالَ او [آزادېدلو په وجه] د مالک حق زائل سو لَا لِنُقْصَانِ أَهْلِيَّةِ الْعَبْدِ نه د غلام په اهليت كي د كمى په وجه [يعني د غلام د قول نه معتبر كېدل د هغه د اهليت د ناقص والي په وجه نه وه] بِخِلَافِ الصَّبِيِّ په خلاف د بچي لِأَنَّهُ قَاصِرُ الْأَهْلِيَّةِ ځكه چي هغه كم اهليت والا دى.

**اللغات:** ﴿لا يؤاخذان﴾ د انفعال له بابه د تثنيه غائب نفي مجهول صيغه ده: مواخذة كول، رټل او غندل، سزا وركول. ﴿قاصر الأهلية﴾ كم اهليت والا.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى كه يو محجور غلام يا بچي يو آزاد بچي ته ووايي چي ته فلانكى سړى قتل كړه! او بچى هغه قتل كړي، نو په دې صورت كي د قاتل بچي پر عاقله وو ديت واجبيږي چي هغه به د مقتول سړي وليانو ته وركوي؛ ځكه محجور غلام يا هغه بل بچى قاتل نه دى بلكي دوى صرف آمر (حكم كونكي) دي، نو ځكه د دوى سره ضمان نه متعلق كيږي. بلكي كوم بچي چي د قتل

کار کړی دی د هغه د عاقله وو سره ضمان متعلق کیږي، او څرنګه چې د قاتل بچي قتل خطا او قتل عمد دواړه په یوه حکم سره دي یعني دواړه د خطاء په درجه کې دي، نو ځکه دغه قتل برابره ده عمداً وي او که خطاءً وي، په هر صورت کې د هغه پر عاقله وو دیت واجبیږي. او کوم چې آمر (حکم کونکي) دی پر هغه یا د هغه پر عاقله وو ضمان یا دیت نه واجبیږي؛ ځکه بچی او محجور غلام په خپلو اقوالو سره نه مأخوذ کیږي؛ ځکه د مؤاخذې مدار پر دې خبره دی چې په شریعت کې د دوی قول ته اعتبار ورکول سي. او شریعت د دوی دواړو قول ته اعتبار نه دی ورکړی، نو ځکه د دوی مؤاخذه به هم نه کول کیږي او صرف د قاتل پر عاقله وو به دیت واجبیږي.

ولا رجوع إلخ: فرمايي چې که آمر (حکم کونکی) بچی وي، نو د قاتل عاقله پر هغه رجوع نه سي کولای، یعني د قاتل عاقله وو چې د مقتول ولیانو ته په دیت کې څومره مال ورکړی وي، هغه مال د قاتل عاقله له آمر بچي یا د هغه له عاقله وو څخه واپس نه سي اخیستلای؛ ځکه د آمر بچي اهلیت قاصر او ناقص دی، او څوک چې ناقصُ الاهلیة وي د هغه قول لره اعتبار نه وي، نو ځکه د قاتل عاقله وو لره پر دغه بچي هیڅکله هم د رجوع حق نسته.

او که آمر محجور غلام وي، نو د هغه تر آزادېدو وروسته د قاتل عاقله وو لره پر هغه د رجوع حق سته؛ ځکه په ابتداء کې د محجور غلام د قول نه معتبر کېدل د مالک د حق په وجه وه، ځکه که په هغه وخت کې د غلام قول معتبر منل سوي وای، نو ضمان به پر مالک واجب وای. لېکن تر عتق (آزادېدو) وروسته دا ستونزه ختم سوه. نو ځکه بعد العتق د قاتل عاقله وو لره پر هغه د رجوع حق سته. د مذکوره عبارت د فوائد قیود او نور وضاحت لپاره د هدایې حاشیه وګورئ!. (احسن الهدایه)

## که یو محجور غلام د بل محجور غلام په حکم سره یو څوک قتل کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَكَذٰلِكَ إِنْ أَمَرَ عَبْدًا او همدارنګه که غلام ته [د یو سړي د قتلولو] حکم وکړي مَعْنَاهُ أَنْ يَكُوْنَ الْآمِرُ عَبْدًا وَالْمَأْمُوْرُ عَبْدًا مَحْجُوْرًا عَلَيْهِمَا د دې مطلب دا دی چې حکم کونکی [هم] غلام وي او چا ته چې حکم سوی وي هغه [هم] غلام وي [او] دواړه محجور وي يُخَاطَبُ مَوْلَى الْقَاتِلِ بِالدَّفْعِ أَوِ الْفِدَاءِ نو د قاتل غلام مالک به په غلام ورکولو یا په فدیه ورکولو سره مخاطب کول کیږي وَلَا رُجُوْعَ لَهُ عَلَى الْأَوَّلِ فِي الْحَالِ او مالک لره فی الحاله پر اول [آمر غلام] د رجوع حق نسته وَيَجِبُ أَنْ يَرْجِعَ بَعْدَ الْعِتْقِ بِأَقَلِّ مِنَ الْفِدَاءِ وَقِيْمَةِ الْعَبْدِ او واجب دي چې دا مالک [د غلام] تر آزادېدلو وروسته په فدیې او د غلام په قیمت کې په کم یوه سره رجوع وکړي [یعني چې کوم یو کم (لږ) وي، فقط په هغه سره پر آمر غلام رجوع کولای سي] لِأَنَّهُ غَيْرُ مُضْطَرٍّ فِي دَفْعِ الزِّيَادَةِ ځکه

چي [د قاتل غلام مالک] د زائد يوه په ورکولو کي مجبوره نه وو وَهٰذَا إِذَا كَانَ الْقَتْلُ خَطَأً او دا [حکم] هغه وخت دی کله چي قتل په خطاء سره سوی وي وَكَذَا إِذَا كَانَ عَمْدًا او همدارنګه کله چي قصداً سوی وي وَالْعَبْدُ الْقَاتِلُ صَغِيرًا او قاتل غلام کوچنی وي لِأَنَّ عَمْدَهُ خَطَأٌ ځکه د کوچني عمد هم خطاء دی أَمَّا إِذَا كَانَ كَبِيرًا لېکن که قاتل لوی وي يَجِبُ الْقِصَاصُ نو قصاص واجبیږي لِجَرَيَانِهِ بَيْنَ الْحُرِّ وَالْعَبْدِ ځکه د آزاد او غلام تر مینځ قصاص جاري دی.

**اللغات:** ﴿آمِر﴾ د نصر د باب فاعل دی: امر کونکی، حکم کونکی. ﴿مأمور﴾ د نصر د باب مفعول دی: چا ته چي امر (حکم) سوی وي. ﴿مضطر﴾ د افتعال د باب مفعول دی: مجبور.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که یو محجور غلام بل محجور غلام ته د یو سړي د قتلولو حکم وکړي او مأمور هغه سړی قتل کړي، نو د مأمور یعني د قاتل غلام پر مالک ضمان (تاوان) واجب دی چي په ضمان کي به د مقتول سړي ولي ته دا قاتل غلام ورکوي یا به فدیه ورکوي. او دا مالک فی الحاله پر آمر (حکم کونکي) غلام رجوع نه سي کولای، ها! کله چي آمر غلام آزاد سي، نو بیا دا مالک پر هغه رجوع کولای سي یعني د قاتل غلام مالک چي کوم مال (غلام یا فدیه) د مقتول ولي ته په ضمان کي ورکړی وي، هغه مال له آمر غلام څخه واپس اخیستلای سي، لېکن یاد ساتئ! چي دا مال د غلام له قیمت او فدیه څخه چي کوم یو کم (لږ) وي، په هغه سره متعین کیږي یعني د هغه په اندازه مال واپس ځني اخیستلای سي، مثلاً که د غلام قیمت له فدیې څخه کم وي، نو مالک ته فقط د قیمت اخیستلو حق سته. ځکه چي مالک ته د غلام ورکولو او فدیې ورکولو تر مینځ اختیار وو، او په فدیه ورکولو کي هغه مجبوره نه وو.

**وهذا إلخ:** فرمایي چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي قتل خطاءً وي او که قتل عمداً وي او قاتل بچی وي، نو هم دغه پورتنی حکم دی؛ ځکه د صغیر عمد هم خطاء وي (لکه مخکي چي ذکر سوه). ها! که قاتل لوی او بالغ وي او قتل عمداً وي، نو پر قاتل قصاص واجبیږي؛ ځکه د آزاد او غلام تر مینځ زموږ په نیز قصاص جاري دی. (احسن الهدایه)

## که یو غلام دوه کسان عمداً قتل کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمایي وَإِذَا قَتَلَ الْعَبْدُ رَجُلَيْنِ عَمْدًا او کله چي غلام قصداً دوه سړیان قتل کړي وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَلِيَّانِ او له دوی [دواړو مقتولانو] څخه هر یوه لره دوه ولیان وي فَعَفَا أَحَدُ وَلِيَّيْ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او د دوی هر یوه له دواړو ولیانو څخه یو ولي معافي وکړي فَإِنَّ الْمَوْلَى يَدْفَعُ

نِصْفَهُ إِلَى الْآخَرَيْنِ نو مالک به د غلام نصف [نیمه حصه] نورو دوو ولیانو ته ورکوي أَوْ يَفْدِيهِ بِعَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ او یا به د غلام لس زره درهمه فدیه ورکوي لِأَنَّهُ لَمَّا عَفَا أَحَدُ وَلِيَّي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا ځکه کله چې له دواړو مقتولانو څخه د هر یوه ولي معافي وکړه سَقَطَ الْقِصَاصُ نو قصاص ساقط سو وَانْقَلَبَ مَالًا او قصاص په مال سره بدل سو فَصَارَ كَمَا لَوْ وَجَبَ الْمَالُ مِنَ الِابْتِدَاءِ نو داسي لکه له شروع څخه چې مال واجب سوی وي وَهٰذَا لِأَنَّ حَقَّهُمْ فِي الرَّقَبَةِ او دا ځکه چې د ولیانو حق د غلام په رقبه [ذات] کې دی أَوْ فِي عِشْرِينَ أَلْفًا یا په زرو درهمو کې دی وَقَدْ سَقَطَ نَصِيبُ الْعَافِيَيْنِ او د دوو معافي کونکو ولیانو حصه ساقطه سهوه وَهُوَ النِّصْفُ او هغه نصف [نیمه حصه] ده وَبَقِيَ النِّصْفُ نو نصف باقي پاته سو.

**اللغات:** ﴿ولیان﴾ تثنیه د وَلِيٌّ ده: مشر او ذمه وار، وارث. ﴿انقلب﴾ د انفعال د باب ماضي ده: اوښتل، بدلېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د زید غلام عمداً دوه سړیان قتل کړي، نو ښکاره خبره چې د قتل عمد په صورت کې قصاص واجب دی، لیکن که د هر مقتول سړي له ولیانو څخه یو ولي خپل حق معاف کړي، نو بیا د قصاص معامله ختمیږي او قصاص په مال سره بدلیږي، لهذا اوس د مالک (زید) کار دا دی چې معافي نه کونکو نورو ولیانو ته به یا نصف غلام ورکوي، یا که فدیه ورکول اختیاروي، نو لس زره درهمه فدیه به ورکوي؛ ځکه له معاف کولو څخه مخکې دلته په یوه غلام کې د دواړو مقتولانو څلور ولیان شریکان ول او هر یو د رُبع (څلورمي حصې) مستحق وو یا د فدیې په صورت کې دوی د شل زره درهمو حقداره ول. لیکن کله چې له دوی څخه دوو ولیانو معافي او بخښنه وکړه، نو له غلام او فدیې څخه نصف (نیمه حصه) ساقطه سوه. نو ځکه اوس به معافي نه کونکو دوو ولیانو ته نصف غلام یا لس زره درهمه ورکول کیږي (احسن الهدایه)

### که یو عمداً او بل خطاءً قتل کړي نو څه حکم دی؟

فَإِنْ كَانَ قَتَلَ أَحَدَهُمَا عَمْدًا وَالْآخَرَ خَطَأً او که غلام له دوی دواړو څخه یو سړی عمداً او بل سړی خطاءً قتل کړي فَعَفَا أَحَدُ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ بیا د عمد له دواړو ولیانو څخه یو ولي معافي وکړي فَإِنْ فَدَاهُ الْمَوْلَىٰ نو که مالک د هغه [قاتل غلام] فدیه ورکوي فَدَاهُ بِخَمْسَةَ عَشَرَ أَلْفًا نو پنځلس زره

درهمه فدیه به یې ورکوي خَمْسَةُ آلَافٍ لِلَّذِي لَمْ يَعْفُ مِنْ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ پنځه زره به د عمد هغه ولي ته ورکوي کوم چې معافي نه ده کړې وَعَشَرَةُ آلَافٍ لِوَلِيَّيِ الْخَطَأِ او لس زره به د خطاء دواړو ولیانو ته ورکوي لِأَنَّهُ لَمَّا انْقَلَبَ الْعَمْدُ مَالًا ځکه کله چې عمد په مال سره بدل سو كَانَ حَقُّ وَلِيَّيِ الْخَطَأِ فِي كُلِّ الدِّيَةِ عَشَرَةَ آلَافٍ نو د خطاء د دواړو ولیانو حق به په ټوله دیت کې لس زره درهمه وي وَحَقُّ أَحَدِ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ فِي نِصْفِهَا خَمْسَةَ آلَافٍ او د عمد له دواړو ولیانو څخه د یوه حق به په نیم دیت کې پنځه زره درهمه وي وَلَا تَضَايُقَ فِي الْفِدَاءِ او په فدیه ورکولو کې هیڅ تنګي نشته فَيَجِبُ خَمْسَةَ عَشَرَ أَلْفًا نو ځکه پنځلس زره درهمه دیت به واجب وي.

**اللغات**: ﴿تضایق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: تنګي، تنګېدل او ګنجایش نه لرل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که غلام دوه سړیان قتل کړي چې له هغو څخه یو عمداً او بل خطاءً قتل کړي او د عمداً مقتول یو ولي خپل حق معاف کړي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې که مالک د غلام فدیه ورکول اختیار کړي، نو هغه به پنځلس زره درهمه فدیه اداء کوي چې له هغه څخه پنځه زره به د عمداً مقتول هغه ولي ته ورکوي کوم چې خپل حق نه دی معاف کړی: ځکه د عمداً مقتول د دواړو ولیانو حق لس زره درهمه دی، لهذا کله چې یوه ولي خپل حق معاف کړی نو د هغه د حصې پنځه زره ساقط سوه، نو ځکه نه معاف کونکي ولي ته به اوس پنځه زره درهمه ورکول کیږي. همدارنګه د عمداً مقتول یوه ولي چې کله خپل حق معاف وکړی، نو له جنایتکاره غلام څخه قصاص ساقط سو او مال واجب سو. او د خطاءً مقتول له دواړو ولیانو څخه یوه هم خپل حق نه دی معاف کړی. نو ځکه هغو ته به خپل لس زر درهمه ورکول کیږي کوم چې د یوه مقتول مجموعي دیت دی. (احسن الهدایه)

## د فدیې پر ځای د غلام ورکولو بیان

وَإِنْ دَفَعَهُ او که مالک ولیانو ته غلام ورکوي دَفَعَهُ إِلَيْهِمْ أَثْلَاثًا نو غلام به دوی ته په دریو حصو سره ورکوي ثُلُثَاهُ لِوَلِيَّيِ الْخَطَأِ [یعنې] د هغه دوه ثلثه د خطاء د دواړو ولیانو ته وَثُلُثُهُ لِغَيْرِ الْعَافِي مِنْ وَلِيَّيِ الْعَمْدِ او د هغه یو ثلث د عمد له دواړو ولیانو څخه نه معاف کونکي ولي ته عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز وَقَالَا: يَدْفَعُهُ أَرْبَاعًا او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې مالک به

غلام په څلورو حصو سره ورکوي ثَلَاثَةُ أَرْبَاعِهِ لِوَلِيَّيِ الْخَطَإِ د هغه درې رُبعې د خطاء دوارو ولیانو ته وَرُبُعُهُ لِوَلِيِّ الْعَمَدِ او د هغه یوه رُبع د عمد ولي ته فَالْقِسْمَةُ عِنْدَهُمَا بِطَرِيقِ الْمُنَازَعَةِ لهذا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز تقسیم د منازعت په طریقه سره دی فَيُسَلِّمُ النِّصْفَ لِوَلِيَّيِ الْخَطَإِ بِلَا مُنَازَعَةٍ نو بغیر له منازعت څخه به د خطاء دوارو ولیانو ته نصف ور وسپاري وَاسْتَوَتْ مُنَازَعَةُ الْفَرِيقَيْنِ فِي النِّصْفِ الْآخَرِ او په بل نصف کې د دوارو فریقو منازعت برابر سو فَيَتَنَصَّفُ نو ځکه دا بل نصف به اد دوارو فریقو تر مینځ انیم په نیمه کیږي فَلِهَذَا يُقَسَّمُ أَرْبَاعًا نو ځکه په څلورو حصو به سره غلام تقسیمول کیږي.

**اللغات:** ﴿أثلاثـًا﴾ په درېو حصو سره (چې شی درې حصې کړل سي)، ﴿أرباعًا﴾ په څلورو حصو سره.

﴿ثُلُث﴾ او ثُلْث: درېیمه حصه، یو شی چې درې حصې کړل سي نو د هغه هري یوې حصې ته ثُلث وایي، تثنیه: ثُلثان، جمع: أثلاث. ﴿رُبع﴾ څلورمه حصه، یو شی چې څلور حصې کړل سي نو د هغه هري یوې حصې ته رُبع وایي. تثنیه: رُبعان، جمع: أرباع. ﴿منازعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ و جګړه، دعوی.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی که په مخکنې مسئله کې مالک د فدیې ورکولو پر ځای د جنایتکاره غلام ورکول اختیار کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به غلام درې حصې کول کیږي چې له هغوی څخه دوې حصې به د خطاءً مقتول دوارو ولیانو ته ورکول کیږي او یوه حصه به د عمداً مقتول هغه ولي ته ورکول کیږي کوم چې معافي نه ده کړې. د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به غلام څلور حصې کول کیږي چې له هغوی څخه درې حصې به د خطاءً مقتول ولیانو ته ورکول کیږي او یوه حصهٔ به د عمداً مقتول ولي ته ورکول کیږي، نو ګواکي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د منازعت او تقابل په توګه تقسیم کیږي چې د خطاءً مقتول دوارو ولیانو ته نصف (نیمه حصه) بلا منازعته حاصلیږي ځکه دِ هغو خپل حق نصف کیږي او پاته سو بل نصف نو د هغه سره درې کسان متعلق کیږي: دوه د مقتول خطاء ولیان او یو د مقتول عمد ولي او له دوی څخه د مقتول خطاء ولیانو ته نصف مخکې حاصل سوی دی او د مقتول عمد ولي ته هیڅ شی نه دی حاصل سوی، نو د دې بل نصف په هکله د دوی تر مینځ منازعت او تقابل واقع سو او هر فریق دا غوښتنه کوي چې دا نصف هغه ته حاصلېدل پکار دي. نو ځکه دا نصف د دوی تر مینځ نیم په نیمه تقسیم کړی سو. لهذا د مقتول خطاء ولیانو ته درې حصې (یا په بله وینا درې رُبعې) ورسیدې او د مقتول عمد ولي ته یوه حصه (یوه رُبع) ورسېده.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَعِنْدَهٗ يُقَسَّمُ بِطَرِيْقِ الْعَوْلِ وَالْمُضَارَبَةِ أَثْلَاثًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به غلام د عول او مضاربة په طريقه سره پر دريو حصو تقسيمول کيږي لِأَنَّ الْحَقَّ تَعَلَّقَ بِالرَّقَبَةِ ځکه چي [د مقتول دوليانو] حق د غلام د غاړې [ذات] سره متعلق دی أَصْلُهُ التَّرِكَةُ الْمُسْتَغْرَقَةُ بِالدُّيُوْنِ د دې اصل هغه ميراث دی کوم چي په قرضونو سره مستغرق وي فَيُضْرَبُ هٰذَا بِالْكُلِّ نو ځکه دا [د مقتول خطاء دوه وليان] به د کُل په حساب سره شريکول کيږي وَذٰلِكَ بِالنِّصْفِ او هغه [د مقتول عمد ولیٔ] به د نصف په حساب سره شريکول کيږي وَلِهٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ نَظَائِرُ وَأَضْدَادٌ ذَكَرْنَاهَا فِي الزِّيَادَاتِ او د دغه مسئلې [نور هم] څو مثالونه او اضداد سته کوم چي موږ په زيادات کي ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿العول﴾ زيادةٌ في عدد السهام ونقصٌ في مقاديره، وأصل هو زيادة سهام الورثة إذا كثرت الفروض على مخرج سهام المفروضة الذي يقال له أصل المسئله. ﴿فيضرب﴾ د ضرب له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده. په عربي ژبه کي ځيني الفاظ او بابونه لسګونه معناوي لري لکه لفظ د "عَيْن" چي په سلهاؤ معناوو سره مستعمل دی. نو د ضرب د باب هم ډېري معناوي نقل سوي دي، چي له هغوی څخه يې ځيني دا دي: يو څوک په يو څه کي شريکول (شريک ګرځول)، ټاکل او مقررول، اخيستل (معجم الوسيط، منرب)، ﴿نظائر﴾ جمع د نَظِيْرٌ ده: مثال، مشابه، ﴿اضداد﴾ جمع د ضِدٌّ ده: مخالف.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا مذکوره تقسيم د عول په طريقه سره کيږي يعني څرنګه چي په عول کي ټوله وارثان په کمي کي شريکان کيږي، نو همداسي به دلته هم د مقتول خطاء دوه وليان او د مقتول عمد يو ولي په کمي کي شريک ګرځول کيږي (يا په بله وينا دا چي کوم ولي خپله حصه معاف کړې ده. په هغه کي به ټوله شريک ګرځول کيږي). او د دې صورت دا دی چي د دوی په حق کي همدا تناسب دی چي د مقتول خطاء د وليانو حق د مقتول عمد له ولي څخه دوچنده دی او د مقتول عمد حق د دوی له حق څخه نيم دی (يعني دومره دی لکه د دوی نيم حق). لهذا د دې نسبت په اندازه د تقسيم لپاره پر دريو (۳) تقسيم ضروري دی. لهذا کله چي پر (۳) تقسيم وسو، نو غلام درې حصې کړل سو چي له هغه څخه يوه حصه د مقتول عمد يوه ولي ته او دوې حصې د مقتول خطاء دوو وليانو ته ورکول سوې؛ ځکه چي له دوی څخه د هر فريق حق د ټوله رقبې (غلام) سره متعلق دی او د اثلاثًا تقسيم له اختيارولو څخه بغير مسئله نه حل کيږي. لهذا ټوله به په کمي شاملول کيږي چي د هغه طريقه همدا ده چي غلام پر دريو حصو تقسيم کړی سي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې اصل او مثال هغه قرض دی کوم چې د مړي ټوله میراث لره محیط وي. یعني پر کوم مړي چې د خلګو دومره قرضونه باندي وي چې د میراث په ټوله مال سره هم هغه نه سي اداء کېدلای. نو په دې صورت کي هم دا د عول او ضرب طریقه کار ول کیږي او د عول پر طریقه میراث تقسیمول کیږي د دې لپاره چې په میراث کي هر د قرض مالک ته حصه حاصله سي. نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم د امام په صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د غلام تقسیم د عول په طریقه سره کیږي.

په آخر کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د دې مسئلې څو مثالونه او اضداد سته چې هغوی مونږ په خپل کتاب "زیادات" کي بیان کړي دي.

## که یو مشترک غلام د شریکانو یو قریب قتل کړي (حکم او تفصیل)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي] فرمایي وَإِذَا كَانَ عَبْدٌ بَيْنَ رَجُلَيْنِ او کله چې یو غلام د دوو خلګو تر مینځ مشترک وي فَقَتَلَ مَوْلًى لَهُمَا بیا هغه غلام د دوی دواړو مولیٰ [نژدې کس] قتل کړي أَيْ قَرِيبًا لَهُمَا یعني د دوی قریب [قتل کړي] فَعَفَا أَحَدُهُمَا بیا له دوی څخه یو شریک معافي وکړي بَطَلَ الْجَمِيعُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ټوله [قصاص او مال] باطلیږي [یعني د نه معاف کونکي شریک حق په قصاص او فدیه دواړو کي باطلیږي] وَقَالَا ❁: يَدْفَعُ الَّذِي عَفَا نِصْفَ نَصِيبِهِ إِلَى الْآخَرِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې معافي کونکي به د خپلي حصې نصف [نیمه حصه] هغه بل [نه معاف کونکي شریک] ته ورکوي أَوْ يَفْدِيهِ بِرُبُعِ الدِّيَةِ یا به د دیت یوه رُبع [څلورمه حصه] په فدیه کي ورکوي وَذَكَرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ: قَتَلَ وَلِيًّا لَهُمَا او [د جامع صغیر] په بعضي نسخو کي دي: "وقتل وليا لهما"، وَالْمُرَادُ الْقَرِيبُ أَيْضًا او مراد [له ولي څخه] هم قریب دی وَذُكِرَ فِي بَعْضِ النُّسَخِ قَوْلُ مُحَمَّدٍ مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ او [د جامع صغیر] په بعضي نسخو کي د امام محمد رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر سوی دی وَذَكَرَ فِي الزِّيَادَاتِ او په زیادات کي ذکر سوي دي. عَبْدٌ قَتَلَ مَوْلَاهُ وَلَهُ ابْنَانِ یو غلام خپل مالک قتل کړی او مالک لره دوه ځامن وه فَعَفَا أَحَدُ الِابْنَيْنِ او له هغه

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، لأن العلامة إبراهيم الحلبي رَحِمَهُ الله ذكره أولًا في كتابه (وهذا دأبه في مختار عنده) فقال: وإن قتل عبد لاثنين قريبًا لهما فعفا أحدهما بطل الكل...(ملتقى الأبحر ج:۴، ص:۳۸۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۶۰]

دوو ځامنو شخه يوه معافي وکړه بَطَلَ ذٰلِكَ كُلُّهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه ټوله [قصاص او مال] باطليږي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ الْجَوَابُ فِيهِ كَالْجَوَابِ فِي مَسْأَلَةِ الْكِتَابِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز په دې صورت کي هم هغه حکم دی کوم حکم چي د کتاب [جامع صغير] په مسئله کي دی [يعني په زيادات کي د دغه مسئلې په هکله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ په نيز هم هاغه حکم دی کوم چي د جامع صغير (متن) په مسئله کي د صاحبينو مسلک بيان سوی دی] وَلَمْ يُذْكَرْ اخْتِلَافُ الرِّوَايَةِ او د روايت اختلاف نه دی ذکر سوی [بلکي په زيادات کي دا صراحتاً ليکل سوي دي چي د امام ابو يوسف مسلک دا دی او د طرفينو مسلک دا دی].

**اللغات**: ﴿عفا﴾ د ضرب د باب ماضي ده: معافي کول (معاف کول). بخښل. ﴿رُبع﴾ څلورمه حصه. يو شی چي څلور حصې کړل سي نو د هغه هري يوې حصې ته رُبع وايي.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که د دوو کسانو تر مينځ يو غلام مشترک وي او بيا هغه غلام د دوی دواړو يو قريب مثل د دواړو پلرونه قتل کړي، نو ښکاره ده چي پر هغه غلام د دواړو لپاره قصاص واجب دی. ليکن که له دواړو شريکانو څخه يو شريک قصاص معاف، نو د هغه د معاف کولو په وجه قصاص هم ساقطيږي او فديه هم ساقطيږي، يعني معافي نه کونکي شريک (غير عافي) ته نه د قصاص حق حاصليږي او نه فديه. دا حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی.

صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د يوه شريک په معاف کولو سره د بل شريک حصه نه معاف کيږي او د يوه شريک معافي په ټوله غلام کي نه مؤثره کيږي، بلکي کوم شريک چي معافي نه ده کړې ځرنګه چي هغه د نصف غلام مالک دی، نو ځکه معاف کونکي شريک دي د خپلي حصې د نصف نصف غلام (يعني د خپل نيم غلام نيمايي) معافي نه کونکي شريک ته ورکړي چي په دې سره د معافي نه کونکي شريک ملکيت په دې غلام کي درې حصې (درې رُبع سي) او معاف کونکي شريک د يوې حصې (يوې رُبع) مالک پاته سي، يا معاف کونکي شريک دي د خپلي حصې يعني د نصف نصف (د نيمي نيمايي) فديه اداء کړي او د نصف نصف يوه رُبع کيږي يعني د ديت څلورمه حصه دي په فديه کي ورکړي. همدا صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په أو يَفديه بربع الدية سره بيان کړي دي.

وذکر في بعض إلخ: فرمايي چي د جامع صغير په بعضي نسخو کي د "قتل مولیٰ لهما" پر ځای "قتل وليًا لهما" ذکر سوي دي او له ولي څخه هم قريب مراد دی. لهذا د دواړو مطلب يو دی.

وذکر في بعض النسخ إلخ: د دې حاصل دا دی چې په بعضې نسخو کې د امام محمد رَحِمَهُ الله قول د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره ذکر سوی دی. لېکن زیاته مشهوره دا ده چې امام محمد رَحِمَهُ الله د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله سره دی.

وذکر في الزیادات إلخ: فرمایي چې په زیادات کې یوه مسئله داسې ذکر سوې ده چې که یو غلام خپل مالک (بادار) قتل کړي او د هغه دوه ځامن وي او له هغو څخه یو قصاص معاف کړي او بل یې معاف نه کړي، نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ټوله قصاص مع الفدیه معاف کیږي. لېکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د مخکنۍ مسئلې په څېر دلته هم د دویم شریک (ورور) حصه په مال سره بدلیږي او معاف کونکي ورور به نه معاف کونکي ورور ته د خپلې حصې نصف ورکوي یا به رُبع فدیه ورکوي.

فرمایي چې په زیادات کې د روایت اختلاف مذکوره نه دی بلکې په واضحه توګه د طرفینو رَحِمَهُمَا الله او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مسلک بیان کړی سوی دی. (احسن الهدایه)

## د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل

لِأَبِي يُوسُفَ: أَنَّ حَقَّ الْقِصَاصِ ثَبَتَ فِي الْعَبْدِ عَلَى سَبِيلِ الشُّيُوعِ د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې په مذکوره غلام کې د قصاص حق د شیوع په توګه ثابت سوی دی لِأَنَّ مِلْكَ الْمَوْلَى لَا يَمْنَعُ اسْتِحْقَاقَ الْقِصَاصِ لَهُ ځکه د مالک ملکیت د هغه لپاره د قصاص استحقاق نه منع کوي [یعني د مالک د قصاص له مستحق کېدلو څخه مانع نه دی] فَإِذَا عَفَا أَحَدُهُمَا نو کله چې له دوی څخه یوه معافي وکړه اِنْقَلَبَ نَصِيبُ الْآخَرِ وَهُوَ النِّصْفُ مَالًا نو د بل یوه حصه (کوم چې نصف ده) په مال سره بدل سوه غَيْرَ أَنَّهُ شَائِعٌ فِي الْكُلِّ خو دا نصف په کُل [ټوله غلام] کې شائع دی فَيَكُونُ نِصْفُهُ فِي نَصِيبِهِ نو د هغه نصف [یعني د نصف نصف] به د ده په حصه کې وي وَالنِّصْفُ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ او نصف به د ده د ملګري [معافي کونکي] په حصه کې وي فَمَا يَكُونُ فِي نَصِيبِهِ نو کوم نصف چې د ده په حصه کې وي سَقَطَ ضَرُورَةَ أَنَّ الْمَوْلَى لَا يَسْتَوْجِبُ عَلَى عَبْدِهِ مَالًا هغه به د دې ضرورت په وجه ساقط سي چې مالک پر خپل غلام د مال [قرض..] نه مستحق کیږي وَمَا كَانَ فِي نَصِيبِ صَاحِبِهِ او کوم نصف چې د ده د ملګري په حصه کې وي بَقِيَ هغه به باقي پاته سي وَنِصْفُ النِّصْفِ هُوَ الرُّبُعُ او د نصف نصف

[یعني د نیمي نیمایي] یوه رُبع کیږي فَلِهٰذَا يُقَالُ نو په دې وجه به [معافي کونکي وورور ته] ویل کیږي اِدْفَعْ نِصْفَ نَصِيْبِكَ چي یا د خپلې حصې نصف غلام ورکړه! أَوِ افْتَدَاهُ بِرُبْعِ الدِّيَةِ یا د دیت رُبع [څلورمه حصه] په فدیه کې ورکړه!.

**اللغات**: ﴿شیوع﴾ د ضرب د باب مصدر دی: شائع او منتشر کېدل (خپرېدل)، شرکت (اشتراک).
﴿استحقاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مستحق کېدل، حق لرل. ﴿لا یستوجب﴾ د استفعال له بابه د نفي صیغه ده: مستحق کیدل. (معجم الوسیط)

**تشریح**: له دې ځایه د زیادات د روایت مطابق د امام ابو یوسف رحمه الله دلیل بیان سوی دی. حاصل یې دا دی چي دلته د مقتول دوه ځامن دي او همدوی د هغه د قصاص وارثان دي او څرنګه چي د دوی د پلار قاتل د دوی د پلار غلام دی، لهذا تر پلار وروسته غلام د دوی مملوک او غلام سو، نو دوی دواړو ته چي کوم د قصاص حق حاصل دی، هغه په ټوله غلام کي شائع دی، لېکن کله چي له دوی څخه یوه وورور د خپلې حصې قصاص معاف کړی، نو ټوله قصاص ساقط سو ځکه چي قصاص نه متجزي کیږي، او د غیرِ عافي (معافي نه کونکي وورور) حصه په مال سره بدله سوه یعني هغه ته به مال ورکول کیږي. لېکن څرنګه چي د غیرِ عافي شریک حصه په ټوله غلام کي شائع ده نو کوم نصف (نیمه حصه) چي معاف کړل سوې ده په هغه کي به د ده حصه هم وي، نو ځکه موږ غیرِ عافي د عافي په حصه کي د نصف مستحق وګرځوی او دا حکم مو وکړی چي عافي به غیرِ عافي ته د خپلې حصې نصف (یعني رُبع) ورکوي، او څرنګه چي غیرِ عافي له مخکي څخه د خپل نصف مالک دی، نو ځکه د هغه د حصې مجموعه به درې رُبعي سې (ځکه دوې رُبعي د هغه خپل نصف کیږي او یوه رُبع هغه ته د عافي وورور په حصه کي ورکول سوې ده. نو په بله وینا دا چي دلته غیرِ عافي وورور پاو کم د ټوله غلام مالک کیږي)، خو له دې دریو رُبعو څخه نصف (دوې رُبعي) کوم چي د غیرِ عافي ذاتي حق دی هغه ساقطیږي یعني د غیرِ عافي لپاره پر غلام د هغه نصف (دوو رُبعو) ضمان او فدیه نه واجبیږي؛ ځکه غیرِ عافي هم د دې غلام مالک دی او مالک پر خپل غلام د دَین وغیره استحقاق نه لري، لهذا دا نصف خو معاف کیږي، ها! هغه (غیرِ عافي ورو) چي د عافي وورور د حصې د نصف (یعني د رُبع) مستحق سوی دی. هغه (رُبع) باقي پاتیږي؛ ځکه غیرِ عافي د دې مقدار مالک نه دی. نو ځکه عافي وورور ته به ویل کیږي چي یا ته د خپل نصف حصې نصف (رُبع) غیرِ عافي ته ورکړه! یا رُبع دیت د هغه فدیه ورکړه!. (احسن الهدایه)

## د طرفينو دليل

وَلَهُمَا: أَنَّ مَا يَجِبُ مِنَ الْمَالِ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى: چي [دلته] کوم مال چي واجبيږي يَكُونُ حَقَّ الْمَقْتُولِ هغه د مقتول حق کيږي لِأَنَّهُ بَدَلُ دَمِهِ ځکه چي هغه د مقتول دويني بدل وي وَلِهَذَا تُقْضَى مِنْهُ دُيُونُهُ په همدې وجه له هغه مال څخه [اول] د مقتول قرضونه اداء کول کيږي وَتُنَفَّذُ بِهِ وَصَايَاهُ او په هغه مال سره د مقتول وصيتونه نافذول کيږي ثُمَّ الْوَرَثَةُ يَخْلُفُونَهُ فِيهِ عِنْدَ الْفَرَاغِ مِنْ حَاجَتِهِ بيا د مقتول له حاجت څخه د مال فارغېدلو په وخت کي [د مقتول] وارثان په دې مال کي د هغه خليفه [نائبان] کيږي وَالْمَوْلَى لَا يَسْتَوْجِبُ عَلَى عَبْدِهِ دَيْنًا او مالک پر خپل غلام د قرض نه مستحق کيږي فَلَا تَخْلُفُهُ الْوَرَثَةُ فِيهِ نو ځکه [د مقتول مالک] وارثان به [هم] په دې مال کي د هغه نه خليفه کيږي.

**اللغات:** ﴿يخلفون﴾ د نصر له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صيغه ده: خليفه کېدل، نائب او قائم مقام کېدل. ﴿انفراغ﴾ د انفعال د باب مصدر دى: فارغېدل، خالي کېدل.

**تشريح:** د زيادات د روايت مطابق د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چي د قتل په بدله کي پر قاتل واجبېدونکى مال په حقيقيت کي د مقتول حق وي، ځکه هغه د مقتول د ويني (خون) بدل وي. همدا وجه ده چي له هغه مال څخه اول د مقتول حقونه اداء کول کيږي، مثلاً د هغه قرض، وصيت وغيره. تر دې وروسته که هغه مال پاته سي، نو د مقتول وارثان په دې مال کي د هغه نائبان کيږي. لنډ دا چي د دې مال اصلي مستحق مقتول دى او په مذکوره مسئله کي چي کوم قاتل دى هغه د مقتول مملوک دى او مالک پر خپل مملوک (غلام) د قرض وغيره نه مستحق کيږي. لهذا کله چي خپله مقتول مالک له قاتل غلام څخه د ضمان او فديې اخيستلو مستحق نه دى، نو د هغه وارثان به له کومه ځايه د دې مستحق وي!، حال دا چي د وارثانو نوبت خو تر قرض اداء کولو او وصيت نافذولو وروسته راځي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز قصاص مع الفديه ټوله ساقط کړل سوي دي.

**يادونه:** دا دليلونه د زيادات د مسئلې مطابق دى، او د جامع صغير پر مسئله هم دا برابرېدلاى سي، لېکن څرنګه چي د جامع صغير په مسئله کي صاحبين رَحِمَهُمَا الله سره يو ځاى دي او امام صاحب رَحِمَهُ الله جلا دى. نو ځکه د "لأبي يوسف" څخه وروسته به "ومحمد" هم اضافه کيږي او د "لهما" پر ځاى به "له" راوړل کيږي. (احسن الهدايه).

# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ أَحْكَامِ الْجِنَايَةِ عَلَى الْعَبْدِ)

## (دا) فصل (پر غلام د جنايت کولو د احکامو په بيان کي) دی

**تشريح**: مخکي تر دې د غلام د جنايت کولو احکام بيان سول يعني چي غلام پر يو چا جنايت وکړي، اوس په دې فصل کي پر غلام د جنايت کولو احکام بيانول کيږي، او دا ښکاره خبره ده چي فاعل له مفعول څخه مقدّم وي، نو ځکه د جاني غلام احکام د مجني عليه غلام له احکامو څخه مخکي بيان سوي دي. (بنايه ۱۲ / ۳۷)

### د غلام د قتلولو احکام او د امامانو اختلاف

وَمَنْ قَتَلَ عَبْدًا خَطَأً او څوک چي خطاءً يو غلام قتل کړي فَعَلَيْهِ قِيْمَتُهُ نو پر قتل کونکي د هغه قيمت واجب دی لَا تُزَادُ عَلَى عَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ چي هغه به پر لسو زرو درهمو نه اضافه کول کيږي فَإِنْ كَانَتْ قِيْمَتُهُ عَشَرَةَ آلَافِ دِرْهَمٍ أَوْ أَكْثَرَ نو که د غلام قيمت لس زره درهمه وي يا [تر دې] زيات وي قُضِيَ لَهُ بِعَشَرَةِ آلَافٍ إِلَّا عَشَرَةً نو د هغه لپاره به لس درهمه کم د لسو زرو درهمو فيصله کول کيږي وَفِي الْأَمَةِ إِذَا زَادَتْ قِيْمَتُهَا عَلَى الدِّيَةِ خَمْسَةَ آلَافٍ إِلَّا عَشَرَةً او په مينځه کي به (کله چي د هغې قيمت د آزادي ښځي له ديت څخه زيات وي) لس درهمه کم د پنځو زرو درهمو فيصله کول کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ ❁ او دا [حکم] د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ وَالشَّافِعِيُّ: تَجِبُ قِيْمَتُهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ او امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د غلام [ټوله] قيمت واجبيږي هغه که هر څو ته ورسيږي وَلَوْ غَصَبَ عَبْدًا قِيْمَتُهُ عِشْرُوْنَ أَلْفًا او که څوک داسي غلام غصب کړي چي د هغه قيمت شل زره درهمه وي فَهَلَكَ فِيْ يَدِهِ بيا هغه غلام د غاصب په قبضه کي هلاک سي تَجِبُ قِيْمَتُهُ بَالِغَةً مَا بَلَغَتْ بِالْإِجْمَاعِ نو بالاجماع د هغه [ټوله] قيمت واجبيږي هغه که هر څو ته ورسيږي.

---

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة ومحمد رَحِمَهُمَاالله: قال العلامة جلال الدين الخوارزمي رَحِمَهُالله: قوله إذا زادت قيمتها على الدية خمسة آلاف إلا عشرة، هذا أظهر الروايتين (الكفاية ج:۹، ص:۲۸۶)، كذا في (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۳۹۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۶۱]

**اللغات**: ﴿لا تُزاد﴾ د ضرب له بابه د نفي صيغه ده: زياتول، اضافه کول. ﴿بالغة ما بلغت﴾ تر کومه چي ورسيږي، يعني هر څو چي وي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى که يو څوک خطاءً ديو چا غلام قتل کړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حکم دا دى چي پر قاتل د دې غلام قيمت واجبيږي، لېکن دا قيمت به د آزاد کس له ديت يعني له لسو زرو درهمو څخه نه زياتول کيږي، لهذا که ديو مقتول غلام قيمت لس زر درهمه يا تر دې زيات وي، نو د دوى په نيز به پر قاتل (۹۹۹۰) درهمه واجبيږي يعني له ديت څخه به لس درهمه کمول کيږي، همداسي که مينځه قتل کړل سي او د هغې قيمت د آزادي ښځي له ديت يعني له پنځو زرو درهمو څخه زيات وي، نو پر قاتل به (۴۹۹۰) درهمه واجبيږي.

د دې په خلاف د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز پر قاتل د مقتول غلام ټوله قيمت واجبيږي هغه که هر څومره وي، که څه هم هغه د آزاد کس له ديت څخه زيات وي.

ولوغصب عبدًا إلخ: د دې حاصل دا دى چي که يو څوک داسي غلام غصب کړي چي د هغه قيمت مثلاً شل زره درهمه وي بيا هغه غلام د غاصب سره هلاک سي، نو پر غاصب بالاتفاق د هغه ټوله قيمت واجبيږي که څه هم هغه د آزاد کس له ديت څخه زيات وي.

## د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل

لَهُمَا: أَنَّ الضَّمَانَ بَدَلُ الْمَالِيَّةِ د دوى دواړو دليل دا دى: چي ضمانُ د ماليت بدل دى وَلِهٰذَا يَجِبُ لِلْمَوْلٰى په همدې وجه هغه [ضمان] د مالک لپاره واجبيږي وَهُوَلَا يَمْلِكُ الْعَبْدَ إِلَّا مِنْ حَيْثُ الْمَالِيَّةُ او مالک د همدې ماليت په اعتبار سره د غلام مالک کيږي وَلَوْقَتَلَ الْعَبْدُ الْمَبِيْعَ قَبْلَ الْقَبْضِ [همدا وجه ده] که تر قبضې مخکې مبيع غلام قتل کړى سي يَبْقَى الْعَقْدُ نو عقد باقي پاتيږي وَبَقَاؤُهُ بِبَقَاءِ الْمَالِيَّةِ او د عقد باقي والى د ماليت د باقي والي په وجه دى أَصْلًا أَوْ بَدَلًا [برابره ده] د اصل په اعتبار سره يا د بدل په اعتبار سره وَصَارَ كَقَلِيْلِ الْقِيمَةِ وَكَالْغَصَبِ او دا داسي سو لکه کم قيمت [والا غلام] او لکه غصب [والا غلام].

**اللغات**: ﴿ضمان﴾ د سمع له بابه اسمِ مصدر دى: تاوان، جرمان، ضمانت. ﴿مالية﴾ مال ته منسوب دى: مال کېدل، مالي حيثيت، قيمت. ﴿مبيع﴾ د ضرب د باب مفعول دى: خرڅ کړى سوى شى.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي که يو څوک خطاءً غلام قتل کړي، نو د امام شافعي او امام ابويوسف رَحِمَهُمَا الله په نيز پر هغه د غلام ټوله قيمت واجبيږي که څه هم هغه د آزاد کس له ديت څخه زيات وي، نو په دې هکله د امام شافعي او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د مقتول غلام په بدله کي چي کوم ضمان (تاوان) واجبيږي هغه د مقتول غلام د ماليت بدل وي (نه د هغه د وینې)، همدا وجه ده چي دا ضمان مالک ته حاصليږي؛ ځکه مالک د همدې ماليت په اعتبار سره د غلام مالک کيږي، لنډه دا چي کله دا ضمان د ماليت بدل دی، نو د قتل کړي سوي غلام د ټوله ماليت ضمان واجبيدل پکار دي که څه هم هغه د آزاد کس له ديت څخه زيات وي.

او پاته سو دا سوال چي د مقتول غلام ضمان څنګه د ماليت بدل دی؟، نو د دې يو جواب خو همدا دی چي دا ضمان مالک ته حاصليږي او مالک من حيث الماليت د غلام مالک کيږي، او دويم جواب يې دا دی چي که يو څوک غلام خرڅ کړي او مشتري تر اوسه پر هغه مبيع غلام قبضه نه وي کړې چي په دې دوران کي يو څوک هغه قتل کړي، نو هم عقدِ بيع باقي پاتيږي؛ ځکه د عقد تعلق د مال سره وي برابره ده اصلاً وي لکه په هغه صورت کي کله چي مبيع غلام موجود وي او که د بدل او نائب په حيثيت سره وي لکه په دې صورت کي کله چي مبيع غلام قتل کړی سي، نو په دې صورت کي د هغه قيمت د ماليت نائب کيږي او عقد باقي پاتيږي، او د عقد بقاء د دې خبري څرګند دليل دی چي د مقتول غلام په بدله کي واجبيدونکی ضمان د ماليت بدل دی، نو ځکه پر قاتل به د هغه ټوله ماليت واجبيږي.

د دې مثال داسي دی لکه کم قيمت والا غلام يعني که د مقتول غلام قيمت له ديت (لس زره درهمو) څخه کم وي، نو پر قاتل ټوله قيمت واجبيږي، همدارنګه د غصب کړی سوي غلام د هلاکيدلو په صورت کي هم پر غاصب د هغه ټوله قيمت واجبيږي، نو کله چي په دې مثالو کي د مقتول غلام ټوله قيمت واجبيږي، نو په مذکوره مسئله کي به هم د هغه ټوله قيمت واجبيږي که څه هم هغه د آزاد له ديت څخه زيات وي.

### د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل

| |
|---|
| وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ قَوْلُهُ تَعَالَى او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل د الله تعالیٰ دا فرمان دی ﴿وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ﴾ [النساء: ۹۲] او [پر خطاءً قتلونکي واجب دي] ديت ورسپارل سوی د مقتول کورنی ته أَوْجَبَهَا مُطْلَقًا الله تعالیٰ مطلق ديت واجب کړی دی وَهِيَ اسْمٌ لِلْوَاجِبِ بِمُقَابَلَةِ الْآدَمِيَّةِ او ديت د هغه واجب نوم دی کوم چي د آدميت [انسان] په مقابله کي دی وَلِأَنَّ فِيهِ مَعْنَى الْآدَمِيَّةِ او ځکه |

چي په غلام کي [هم] د آدميت معنىٰ شته حَتّٰى كَانَ مُكَلَّفًا همدا وجه ده چي هغه [په شرعي احکامو] مکلف دی وَفِيْهِ مَعْنَى الْمَالِيَّةِ او په هغه کي د ماليت معنىٰ [هم] شته وَالْآدَمِيَّةُ أَعْلَاهُمَا او په دې دواړو معناوو کي آدميت اعلىٰ [او اقوىٰ] دی فَيَجِبُ اعْتِبَارُهَا بِإِهْدَارِ الْأَدْنٰى نو د ادنىٰ [ماليت] په هدر کولو سره به د هغه اعتبار واجب وي عِنْدَ تَعَذُّرِ الْجَمْعِ بَيْنَهُمَا د دې دواړو تر مينځ د جمع د متعذر کېدلو په وخت کي [يعني د دواړو معناوو تر مينځ د جمع د نا ممکن کېدلو په وخت کي به اعلىٰ (آدمية) معتبر کول کيږي او د هغه په وجه به ادنىٰ (ماليت) هدر کول کيږي].

**اللغات**: ﴿آدمية﴾ انسان کېدل. انسان والی. ﴿اهدار﴾ د أفعال د باب مصدر دی: لغو گرځول. ضايع کول. باطلول.

**تشريح**: د طرفينو مسلک مخکي ذکر سو چي د غلام د خطاءً قتلولو په صورت کي د هغه قيمت واجبيږي لېکن شرط دا دی چي هغه به د آزاد کس له ديت (لسو زرو درهمو) څخه نه زياتول کيږي. په دې هکله طرفينو رَحِمَهُمَا الله دوه دليلونه ذکر کړي دي:

(۱)... اول دليل د آيت دا حصه ده ﴿وَدِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ﴾، په دې حصه سره دوی په دې توګه دليل نيسي چي الله تعالىٰ په قتلِ خطاء کي پر قاتل ديت واجب کړی دی او دغه ايجاب مطلقاً دی يعني مقتول برابره ده آزاد وي او که غلام وي په هر صورت کي پر خطاءً قاتل ديت واجب دی او له ديت څخه بغير بل شی واجب نه دی. نو ځکه موږ دا شرط لګولی دی چي د مقتول غلام د قتل په بدله کي ورکول سوی قيمت به له ديت څخه نه زياتول کيږي.

(۲)... د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دويم دليل دا دی چي د غلام دوه حيثيته دي: ① يو دا چي په هغه کي د آدميت (انسانيت) معنىٰ شته يعني هغه هم انسان دی. په همدې وجه هغه د شريعت په احکامو مثلاً په لمانځه وغيره مکلف دی. ② د غلام دويم حيثيت دا دی چي په هغه کي د ماليت معنىٰ هم شته. په همدې وجه هغه خرڅول کيږي رانيول کيږي او ديل انسان په ملکيت کي داخليږي. لنډه دا چي په هغه کي دا دواړه معناوي موجوده دي او له دې دواړو څخه د آدميت والا معنىٰ د ماليت له معنىٰ څخه مضبوطه ده. اوس چيري چي د ماليت او د آدميت (دواړو معناوو) اجتماع ناممکنه وي. نو هلته به قوي يعني د آدميت والا معنىٰ راجحه وي او د هغه په اعتبار کولو سره به د غلام پر قاتل ديت واجب وي. او دلته د دواړو معناوو اجتماع په دې وجه متعذره ده چي د آدميت د معنىٰ تقاضا دا ده چي د

غلام پر قاتل دیت واجب سي او د مالیت د معنیٰ تقاضا دا ده چي د هغه پر قاتل قیمت واجب سي او د دواړو وجوب متعذر دی. نو ځکه د آدمیت د معنیٰ په راجح ګرځولو سره پر قاتل دیت واجب کړی سوی دی. (احسن الهدایه)

## د فریقِ مخالف د دلائلو جواب

وَضَمَانُ الْغَصْبِ بِمُقَابَلَةِ الْمَالِيَّةِ او د غصب ضمان د مالیت په مقابله کي دی إِذِ الْغَصْبُ لَا يَرِدُ إِلَّا عَلَى الْمَالِ ځکه غصب نه واردیږي مګر پر مال وَبَقَاءُ الْعَقْدِ يَتْبَعُ الْفَائِدَةَ او د عقد باقي والی د فایدې تابع دی [یعني په مخکیني صورت کي عقد د یو فایدې په وجه باقي پاتیږي] حَتَّى يَبْقَى بَعْدَ قَتْلِهِ عَمْدًا همدا وجه ده چي د غلام له عمداً قتلېدلو څخه وروسته [هم] عقد باقي پاتیږي وَإِنْ لَمْ يَكُنِ الْقِصَاصُ بَدَلًا عَنِ الْمَالِيَّةِ که څه هم قصاص د مالیت بدل نه دی فَكَذَلِكَ أَمْرُ الدِّيَةِ نو همدغه معامله د دیت هم ده وَفِي قَلِيلِ الْقِيمَةِ الْوَاجِبُ بِمُقَابَلَةِ الْآدَمِيَّةِ او په کم قیمت [والا غلام کي] چي کوم څه واجب دي هغه د آدمیت په مقابله کي دي إِلَّا أَنَّهُ لَا سَمْعَ فِيهِ خو [څرنګه چي] په دې هکله هیڅ نصّ نسته فَقَدَّرْنَاهُ بِقِيمَتِهِ رَأْيًا نو ځکه مونږ د رایې په ذریعه د هغه په قیمت سره مقدر کړی بِخِلَافِ كَثِيرِ الْقِيمَةِ په خلاف د زیات قیمت [والا غلام] لِأَنَّ قِيمَةَ الْحُرِّ مُقَدَّرَةٌ بِعَشَرَةِ آلَافِ دِرْهَمٍ ځکه د آزاد کس قیمت په لسو زرو درهمو سره ټاکل سوی دی وَنَقَصْنَا مِنْهَا فِي الْعَبْدِ او مونږ په غلام کي له هغه [لسو زرو درهمو څخه] قیمت کم کړی دی إِظْهَارًا لِانْحِطَاطِ رُتْبَتِهِ د هغه د مرتبې د ټیټوالي [کموالي] د ښکاره کولو لپاره وَتَعَيُّنُ الْعَشَرَةِ بِأَثَرِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او د لسو درهمو [د کمولو] تعیّن د حضرت ابن عباس (رض) د اثر په وجه دی.

**اللغات:** ﴿لا یرد﴾ د ضرب له بابه د نفي صیغه ده: واردېدل، واقع کېدل. ﴿قدّرنا﴾ د تفعیل له بابه د جمع متکلم ماضي صیغه ده: اندازه کول، متعیّن ګڼل او ټاکل. ﴿نقصنا﴾ د نصر له بابه مخکیني صیغهٔ ده: کمول. ﴿انحطاط﴾ د انفعال د باب مصدر دی: ټیټوالی او کښته والی، کموالی.

**تشریح:** په دې عبارت کي صاحب د هدایې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله له طرفه د امام شافعي او امام ابو یوسف رَحِمَهُمَا الله د دلیل او قیاس جواب ورکړی دی، حاصل یې دا دی چي مذکوره مسئله پر غصب

قیاسول صحیح نه دي: ځکه چي غصب پر مال وارديږي او د غصب ضمان د ماليت بدل وي. نو ځکه د غصب په صورت کي به د مغصوب غلام ټوله قیمت واجبیږي لیکن د قتل په صورت کي به د مقتول غلام ټوله قیمت نه واجبیږي.

وبقاء العقد إلخ: د دې حاصل دا دی چي امام شافعي او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله چي د ماليت په وجه عقد باقي ګرځولی دی، دا هم صحیح نه دي: ځکه عقد د ماليت په وجه باقي نه پاتیږي. بلکي د يو مصلحت او فايدې په وجه باقي پاتیږي او هغه فايده دا ده چي د عقد د بقاء په وجه مشتري ته اختيار حاصل سي چي که هغه وغواړي نو له قاتل څخه قصاص واخلي او که وغواړي نو عقد فسخ کړي. لهذا د عقد بقاء د همدې فايدې په وجه ده. نه د ماليت په وجه. همدا وجه ده که تر عقد بیع وروسته مشتري پر مبيع غلام د مشتري له قبضه کولو څخه مخکي يو څوک دا غلام عمداً قتل کړي. نو هم عقد باقي پاتیږي، حال دا چي په قتلِ عمد کي پر قاتل قصاص واجب دی. نه مال. نو له دې څخه هم معلومه سوه چي عقد بقاء د ماليت په وجه نه ده.

وفي قليل القيمة إلخ: فرمايي امام شافعي او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله چي کثير القيمة يعني له لسو زرو درهمو څخه زيات قيمت والا غلام له لسو زرو درهمو څخه پر کم قيمت والا غلام قياس کړی دی. دا هم صحیح نه دي: ځکه په قليل القيمة غلام کي هم ضمان د ماليت بدل نه دی. بلکي د آدميت د معنىٰ راجح کېدلو په وجه دا ضمان صرف د آميت بدل دی، خو څرنګه چي په دې سلسله کي هيڅ نص نسته او نه د يو صحابي يا تابعي سماع سته. نو ځکه موږ په رايه او قياس سره د هغه د قيمت په اندازه ديت واجب کړی.

پاته سوه دا مسئله چي د کثير القيمت غلام ديت موږ ولي (۹۹۹۰) درهم ټاکلی دی؛ دا ځکه چي د آزاد کس ديت لس زره (۱۰۰۰۰) درهمه دی او د غلام رتبه له آزاد څخه کمه ده. نو د غلام د کم رتبه والي د ښکاره کولو لپاره موږ له لسو زرو څخه لس درهمه کم کړل چي په دواړو کي فرق ثابت سي. او پاته سو دا سوال چي فقط لس درهمه ولي کم کړل سوه؟، نو جواب يې دا دی چي دغه کمي عقلي او خيالي نه ده، بلکي د ابن عباس يا ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُم له فرمان څخه مأخوذ ده. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دلته ابن عباس (رض) يادونه کړې ده خو د هدايې عربي شارحينو دا کمي ابن مسعود (رض) ته منسوب کړې ده. لنډه دا چي د لسو درهمو د کمولو په هکله دليل د مذکوره صحابي اثر دی.

## د غلام د لاس د ديت مقدار او تفصيل

قَالَ: وَفِي يَدِ الْعَبْدِ نِصْفُ قِيْمَتِهِ فرمايي: او د غلام په لاس کي د هغه نيم قيمت واجب دی لَا يُزَادُ عَلَى خَمْسَةِ آلَافٍ إِلَّا خَمْسَةً چي هغه به له پنځو کم پنځو زرو درهمو څخه نه زياتول کيږي لِأَنَّ الْيَدَ مِنَ الْآدَمِيِّ نِصْفُهُ ځکه د انسان لاس د هغه نصف دی فَتُعْتَبَرُ بِكُلِّهِ نو هغه به پر کُل قياسول کيږي

وَيُنْتَقَصُ هٰذَا الْمِقْدَارُ إِظْهَارًا لِانْحِطَاطِ رُتْبَتِهِ لو دغه مقدار [پنځه درهمه] د غلام د رتبې د ټيټوالي ښکاره کولو لپاره کمول کيږي وَكُلُّ مَا يُقَدَّرُ مِنْ دِيَةِ الْحُرِّ او هر هغه جرم کوم چي د آزاد له ديت څخه مُقدّر وي فَهُوَ مُقَدَّرٌ مِنْ قِيمَةِ الْعَبْدِ نو هغه د غلام له قيمت څخه مُقدر دی [په بله وينا دا چي هر هغه جرم چي په هغه کي د آزاد کس تو له ديت مقدر (ټاکل سوی) وي، هلته به د غلام توله قيمت مقدر کيږي] لِأَنَّ الْقِيمَةَ فِي الْعَبْدِ كَالدِّيَةِ فِي الْحُرِّ ځکه په غلام کي قيمت داسي دی لکه په آزاد کي ديت إِذْ هُوَ بَدَلُ الدَّمِ ځکه دا [ديت او قيمت دواړه] د ويني بدل دي عَلَى مَا قَرَّرْنَاهُ لکه څرنګه چي [مخکي] موږ دا بيان کړه وَإِنْ غَصَبَ أَمَةً قِيمَتُهَا عِشْرُونَ أَلْفًا او که څوک داسي مينځه غصب کړي چي د هغې قيمت شل زره درهمه وي فَمَاتَتْ فِي يَدِهِ بيا هغه مينځه د غاصب په قبضه کي مړه سي فَعَلَيْهِ تَمَامُ قِيمَتِهَا نو پر غاصب د هغې توله قيمت [واجب] دی لِمَا بَيَّنَّا أَنَّ ضَمَانَ الْغَصْبِ ضَمَانُ الْمَالِيَّةِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي د غصب ضمان د ماليت ضمان دی.

**اللغات:** ﴿لا يـزاد﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول ضيغه ده: اضافه كول، زياتوب كول (زياتول).

﴿انحطاط﴾ مخکي يې وضاحت وسو چي انفعال د باب مصدر دی: ټيټوالی، کموالی.

**تشريح:** مخکي تېرسوه چي د انسان په لاس کي نيم ديت واجبيږي، لهذا د غلام په لاس کي به نيم قيمت واجبيږي، او که د غلام د لاس نيم قيمت له پنځه زره درهمو څخه زيات وي، نو پنځه درهمه کم پنځه زره درهمه به واجبيږي، چي د دې دليل په مخکنۍ مسئله کي تېر سو، يعني د کُل په صورت کي چي کومه طريقه اختيار سوې ده، د نصف په صورت کي به هم هاغه طريقه اختيارول کيږي.

**وكل مايقدر الخ:** د دې حاصل دا دی چي د غلام قيمت او د آزاد کس ديت دواړه د ويني (خون) بدل دي، نو ځکه په کوم قتل او جنايت کي چي د آزاد کس توله ديت واجبيږي، په هغه کي به د غلام توله قيمت واجبيږي، او چيري چي د آزاد کس نيم ديت واجبيږي، هلته نه د غلام نيم قيمت واجبيږي، په "على ما قررنا" سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د "دِيَةٌ مُسَلَّمَةٌ إِلَىٰ أَهْلِهِ" وطرف ته اشاره کړې ده.

**وإن غصب الخ:** مخکي تېرسوه چي د غصب ضمان د ماليت ضمان دی، لهذا که څوک يوه داسي مينځه غصب کړي چي د هغې قيمت مثلاً شل زره درهمه وي، بيا هغه مينځه د غاصب سره مړه سي. نو پر غاصب د هغې توله قيمت واجبيږي. (اشرف الهدايه)

## د غلام د لاس پرېکېدلو او آزادېدلو شخه وروسته د مخکنی قطع په وجه د مړ کېدلو بیان

قَالَ: وَمَنْ قَطَعَ يَدَ عَبْدٍ فرمايي: او څوک چي د يو غلام لاس پرېکړي فَأَعْتَقَهُ الْمَوْلَى بيا مالک هغه آزادکړي ثُمَّ مَاتَ مِنْ ذٰلِكَ بيا غلام د هاغه قطع په وجه مړ سي فَإِنْ كَانَ لَهُ وَرَثَةٌ غَيْرُ الْمَوْلَى نو که له مالک څخه بغير د غلام نور وارثان وي فَلَا قِصَاصَ فِيْهِ نو په دې کي قصاص نسته وَإِلَّا اُقْتُصَّ مِنْهُ کنې له هغه [قاطع اليد] څخه به قصاص اخيستل کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ او دا حکم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❁: لَا قِصَاصَ فِيْ ذٰلِكَ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په دې کي قصاص نسته وَعَلَى الْقَاطِعِ أَرْشُ الْيَدِ وَمَا نَقَصَهُ ذٰلِكَ إِلَى أَنْ أَعْتَقَهُ [خو] پر لاس پرېکونکي د لاس ارش [ديت] او د مالک د آزادولو تر وخته چي په هغه کي کوم نقصان سوی دی هغه واجب دی وَيَبْطُلُ الْفَضْلُ او زياتوب [زائد مقدار] باطل دی وَإِنَّمَا لَمْ يَجِبِ الْقِصَاصُ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ لِاشْتِبَاهِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ او په اول صورت کي د مَن لهُ الحق د مشتبه کېدلو په وجه قصاص نه واجبيږي لِأَنَّ الْقِصَاصَ يَجِبُ عِنْدَ الْمَوْتِ مُسْتَنِدًا إِلَى وَقْتِ الْجَرْحِ ځکه قصاص د مرګ په وخت کي د زخمي کېدلو وطرف ته منسوب کېدونکی واجبيږي فَعَلَى اعْتِبَارِ حَالَةِ الْجَرْحِ يَكُوْنُ الْحَقُّ لِلْمَوْلَى نو د جرح د حالت په اعتبار کولو سره حق د مالک کيږي وَعَلَى اعْتِبَارِ الْحَالَةِ الثَّانِيَةِ يَكُوْنُ لِلْوَرَثَةِ او د دويم حالت په اعتبار کولو سره حق د وارثانو کيږي فَتَحَقَّقَ الْاِشْتِبَاهُ نو اشتباه ثابته سوه وَتَعَذَّرَ الْاِسْتِيْفَاءُ او د قصاص اخيستل متعذر سوه فَلَا يَجِبُ عَلَى وَجْهٍ يُسْتَوْفَى نو پر داسي طريقه قصاص واجب نه سو چي هغه واخيستلی سي وَفِيْهِ الْكَلَامُ او [زموږ] خبره په همدې [قصاص اخيستلو] کي ده وَاجْتِمَاعُهُمَا لَا يُزِيْلُ الْاِشْتِبَاهَ او د دوی دواړو [مالک او وارث] جمع کېدل اشتباه نه زايلوي لِأَنَّ الْمِلْكَيْنِ فِي الْحَالَيْنِ ځکه دواړه ملکيتونه په دوو [جلا] حالتونو کي دي بِخِلَافِ الْعَبْدِ الْمُوْصٰى بِخِدْمَتِهِ لِرَجُلٍ په خلاف د هغه غلام چي د يوه سړي لپاره د هغه د خدمت وصيت

---

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله في آخر المسئلة: وقولهما أصح (الـدر المنتقى ج:۴، ص:۳۹۱). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۶۲]

سوی وي وَبِرَقَبَتِهِ لِآخَرَ او د بل سړي لپاره د هغه د رقبې [ذات] وصيت سوی وي إِذَا قُتِلَ کله چې هغه قتل کړی سي لِأَنَّ مَا لِكُلٍّ مِنْهُمَا مِنَ الْحَقِّ ثَابِتٌ مِنْ وَقْتِ الْجَرْحِ إِلَى وَقْتِ الْمَوْتِ ځکه له دې دواړو څخه چې هر کس ته کوم حق حاصل دی هغه د جرح له وخت څخه د مرګ تر وخته پوري ثابت دی فَإِذَا اجْتَمَعَا او کله چې دوی دواړه جمع سول زَالَ الِاشْتِبَاهُ نو اشتباه زايله سوه.

**اللغات:** ﴿اقتص﴾ د افتعال له بابه د واحد غائب ماضي مجهولي صيغه ده: قصاص اخيستل. ﴿قاطع﴾ د فتح د باب فاعل دی: پرېکونکی. غوڅونکی. ﴿أرش﴾ تاوان. جرمانه. هغه ديت کوم چې د ما دون النفس جنايت په بدله کي واجب سي. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اخيستل. تر لاسه کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زيد مثلاً د خالد غلام دی او نقيب د زيد لاس پرېکړی او تر لاس پرېکېدلو وروسته خالد خپل غلام زيد آزاد کړی او بيا تر آزادۍ وروسته د هاغه لاس پرېکېدلو د سرايت په وجه زيد مړ سو، نو پر نقيب (قاطع اليد) څه حکم دی؟، په دې باره کي دوه صورتونه دي:

① ... يو دا چې د غلام (زيد) لپاره له مالک څخه بغير بل هيڅ وارث نه وي، نه يې څوک له اصحابُ الفرائضو څخه وي او نه له عصبياتِ نسبيه وو څخه، فقط عصبهٔ سببي يعني مُعتِق (آزادونکی مالک) موجود وي.

② ... او دويم صورت دا دی چې له مالک څخه بغير څخه د هغه بل وارث هم وي، په دې دويم صورت کي بالاتفاق پر قاطع اليد (نقيب) باندي قصاص نه واجبيږي بلکي پر هغه د لاس ارش (ديت) واجبيږي او تر آزادېدلو مخکي چې د قطع اليد په وجه په غلام کي کوم نقصان راغلی دی (يا په بله وينا دا چې څومره قيمت يې کم سوی دی) هغه هم پر قاطع اليد واجبيږي. او پاته سو اول صورت نو په هغه کي اختلاف دی، د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هلته قصاص نه واجبيږي، بلکي هاغه ارش او نقصان واجبيږي، او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورت کي قصاص واجبيږي.

په لنډه وينا داسي هم ويل کېدای سي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز دلته په هيڅ صورت کي هم قصاص نسته او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په اول صورت کي قصاص سته او په دويم کي قصاص نسته (يعني په دويم صورت کي د ټولو په اتفاق قصاص واجب نه دی).

وانما لم يجب الخ: دا په دويم (اتفاقي) صورت کي د قصاص نه واجبېدلو دليل دی يعني کله چې له مالک څخه بغير د غلام بل وارث هم وي، نو په دې صورت کي قصاص ځکه واجب نه دی چې مَن

لَهُ الحق مشتبه دی یعني په دې کې شک او شبه ده چې د قصاص اخیستلو حق چا ته حاصل دی؟، ځکه که چیري د جرح (زخمي کولو) د وخت اعتبار وسي نو دا حق مالک ته حاصل دی، او که د مرګ د وخت اعتبار وسي نو دا حق وارث ته حاصل دی (ځکه د مرګ په وخت کې غلام آزاد دی)، لهذا کله چې په مَن له الحق کې شبهه راغله. نو د شبهې په وجه قصاص ساقط کړی سو.

فلا یجب علیٰ وجه إلخ: یعني که څه هم دلته د قاطع الید فعل خو بذات خود د قصاص مُوجب دی او د قصاص نفسِ وجوب خو ثابت دی، لېکن د اشتباه (یعني د من له الحق د مشتبه کېدلو) په وجه د قصاص اداء کول (قصاص اخیستل) متعذر سوه، او په مسائلو کې دا بحث او تفصیل په کثرت سره موجود دی چې نفسِ وجوب یوازې مفید نه دی، بلکې چیري چې د اداء مقصد حاصل نه کړی سي، هلته نفسِ وجوب هم کالعدم ګرځول کیږي، نو همداسې دلته هم سوي دي.

وفیه الکلام إلخ: یعني زموږ خبره د همدې اداء (قصاص اخیستلو) د متعذر کېدلو په هکله ده، نه د نفسِ وجوب په هکله، او دلته اداء متعذره ده، نو ځکه قصاص ساقط کړی سوی دی.

واجتماعهما إلخ: دا د یو مُقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چې دلته که څه هم مَن لهُ الحق مشتبه دی لېکن دا خبره خو متیقنه ده چې حق صرف له همدوی دوو څخه د یوه دی یا د مالک دی یا د غلام وارث دی، لهذا کله چې حق په همدوی دوو کې د یوه دی، نو که مالک او وارث دواړه جمع سي یعني دواړه یو ځای د قصاص مطالبه وکړي، نو بیا خو اشتباه زایله سوه، او کله چې اشتباه زایله سوه نو قصاص واجبېدل پکار دي؟.

د دې جواب دا دی چې اوس هم اشتباه باقي ده؛ ځکه د مالک او وارث ملکیتونه په جلا، جلا وخت کې ثابت سوي دي، لهذا د دوی په اجتماع سره هم اشتباه نه زایلیږي، او کله چې اشتباه نه زایلیږي نو ښکاره ده چې قصاص به هم نه واجبیږي.

بخلاف العبد المُوصیٰ إلخ: دا هم د یو مقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چې که یو سړي مثلاً خالد دا وصیت کړی وي چې زما دا غلام به د حامد خدمت کوي او د دې غلام مالک به نقیب وي یعني د غلام ملکیت به د نقیب وي او خدمت به د حامد وي، بیا دغه غلام عمداً یو څوک قتل کړي، نو دلته خو هم مَن لهُ الحق مشتبه دی چې هغه یا حامد دی یا نقیب دی (ځکه د قصاص حق په همدوی دوو کې یوه ته حاصل دی)، لهذا که دوی دواړه اتفاق وکړي او دواړه یو ځای د قصاص مطالبه وکړي، نو قصاص نه واجبېدل پکار دي ځکه اشتباه اوس هم بالکل باقي ده، حال دا چې په دې صورت کې قصاص واجب کړی سوی دی، آخر د دې څه وجه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چي دلته د اجتماع په صورت کي ځکه قصاص واجب کړی سوی دی چي د دوی دواړو حق یو ځای د جرح له وخت څخه د مرګ تروختنه پوري برابر ثابت دی. حال دا چي په مذکوره مسئله کي د دواړو (مالک او وارث) ملکیت په جلا، جلا وخت کي ثابت دی، نو ځکه مذکوره پورتنی مسئله د عَبد مُوصٰی پر دې مسئله قیاسول صحیح نه دي. (اشرف الهدایه، احسن الهدایه)

## د امام محمد رَحِمَهُ الله دلائل

وَلِمُحَمَّدٍ فِي الْخِلَافِيَّةِ او په اختلافي مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دی وَهُوَ مَا إِذَا لَمْ يَكُنْ لِلْعَبْدِ وَرَثَةٌ سِوَى الْمَوْلٰى او دا اختلافي مسئله هغه وه کله چي له مالک څخه بغیر [د غلام] نور وارثان نه وي [نو په دې کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دلیل دا دی] أَنَّ سَبَبَ الْوِلَايَةِ قَدِ اخْتَلَفَ چي د ولایت [او استحقاق] سبب مختلف دی لِأَنَّهُ الْمِلْكُ عَلٰى اعْتِبَارِ إِحْدَى الْحَالَتَيْنِ ځکه د ولایت سبب د اول حالت [حالة الجرح] په اعتبار سره ملکیت دی [ځکه په دې حالت کي غلام د مالک په ملکیت کي دی] وَالْوِرَاثَةُ بِالْوَلَاءِ عَلٰى اعْتِبَارِ الْأُخْرٰى او د دویم حالت [حالة الموت] په اعتبار سره د ولاء وارث کېدل دي [ځکه د مرګ په وخت کي غلام آزاد دی او له آزاد کړی سوي غلام څخه د مالک مُلکیت ختمیږي او مالک صرف د هغه د ولاء (میراث) وارث کیږي] فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ اخْتِلَافِ الْمُسْتَحَقِّ فِيمَا يُحْتَاطُ فِيهِ لهذا دا به د مستحق د اختلاف په درجه کي ګرځول کیږي په هغه اُمورو کي چي احتیاط پکښي کول کیږي [یعني کوم اُمور چي په شبهاتو سر ساقطیږي] كَمَا إِذَا قَالَ لِآخَرَ لکه [په هغه صورت کي] کله چي څوک بل چا ته ووایي بِعْتَنِيهَا هٰذِهِ الْجَارِيَةَ بِكَذَا تا دا مینځه پر ما په دومره خرڅه کړې ده فَقَالَ الْمَوْلٰى: زَوَّجْتُهَا مِنْكَ او مالک ووایي: چي هغه ما تا ته په نکاح درکړې ده لَا يَحِلُّ لَهُ وَطْؤُهَا نو [د سبب د اختلاف په وجه] د ده لپاره د هغې وطي کول حلال نه دي وَلِأَنَّ الْإِعْتَاقَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ او ځکه چي [د غلام] آزادول د سرایت منقطع کونکی [ختمونکی] دي وَبِانْقِطَاعِهَا يَبْقَى الْجَرْحُ بِلَا سِرَايَةٍ او د سرایت د منقطع کېدلو په وجه زخم بغیر له سرایته پاتیږي وَالسِّرَايَةُ بِلَا قَطْعٍ او سرایت بغیر له قطع پاتیږي [یعني چي د زخم سرایت منقطع سو، نو تر دې وروسته سرایت د قطع الید سرایت نه شمېرل کیږي] فَيَمْتَنِعُ الْقِصَاصُ نو ځکه قصاص به ممتنع سي.

**اللغات**: ﴿ولاء﴾ د آزاد کړی سوي غلام ميراث. يعني هغه ميراث کوم چي له آزاد کړی سوي (مُعْتَق) غلام څخه انسان ته حاصليږي. يا په عقد موالات سره انسان ته حاصليږي. ﴿نُزِّل﴾ د تَفعيل له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده؛ کښېنته کول (يو شی د بل شي په درجه ګرځول). قائم مقام کول. ﴿منزلة﴾ مرتبه، درجه. ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: پرېکېدل، شکېدل. د يو شي اثر وغيره ختمېدل (درېدل).

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي کله له مالک (مولیٰ) څخه بغير د غلام بل وارث نه وي. نو په دې صورت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز قصاص سته او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز قصاص نسته.

نو په دې صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د سبب اختلاف هم د مستحق د اختلاف په څېر دی او دلته د سبب اختلاف موجود دی په دې توګه چي مستحق که څه هم مالک دی لېکن د جرح د وخت په اعتبار سره د هغه استحقاق د ملکيت په سبب دی او د مرګ د وخت په اعتبار کولو سره د هغه استحقاق د ولاء په سبب دی. او په قابلِ احتياط اُمورو کي د سبب اختلاف د مستحق د اختلاف په څېر ګرځول کيږي. او څرنګه قصاص هم له قابلِ احتياط اُمورو څخه چي د هغه په ثابتولو کي له احتياط څخه کار اخيستل کيږي (ځکه قصاص هم د شبهاتو په وجه ساقطيږي)، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به احتياطاً قصاص ساقطول کيږي.

د دې مثال داسي دی لکه زيد چي خالد ته ووايي: تا خپله مينځه پر ما مثلاً په سل درهمه خرڅه کړې ده او خالد ووايي؛ چي نه! ما خو هغه تا ته په نکاح درکړې ده، نو په دې صورت کي د زيد لپاره د مذکوره مينځي سره وطي کول حلال نه دي؛ ځکه دلته د حلت (وطي حلال کېدلو) په سبب کي اختلاف دی، نو د سبب د اختلاف په وجه دا د مستحق د اختلاف په څېر دی. او څرنګه چي د وطي حلت له قابلِ احتياط اُمورو څخه دی چي د هغه په ثابتولو کي احتياط کيږي. نو ځکه احتياطاً دلته وطي نه دي حلال کړل سوي. نو همدغسي په مذکوره مسئله کي هم احتياطاً قصاص نه ثابتيږي (ځکه قصاص هم له هغه اُمورو څخه دی چي په ثابتولو کي يې احتياط کيږي).

ولأن الإعتاق إلخ: دا د امام محمد رَحِمَهُ الله دويم دليل دی. حاصل يې دا دی چي اعتاق (غلام آزادول) د زخم سرايت منقطع کوي؛ ځکه د زخمي کېدلو په حالت کي هغه غلام (مملوک) دی او د قتل کېدلو په حالت کي آزاد دی. او د سرايت د منقطع کېدلو په وجه جرح بلا سرايته ګرځي او سرايت بلا قطعُ اليد ګرځي (يا په بله وينا دا چي د سرايت د منقطع کېدلو په وجه مذکوره غلام د قطع اليد د سرايت په وجه مړ نه شمېرل کيږي بلکي د هغه له سرايت څخه بغير مړ شمېرل کيږي)، نو کله چي د قطع اليد او سرايت اتصال

ختم سو، نو قصاص به هم ساقطيږي. لهذا په دې حواله سره هم په مذکوره مسئله کي قصاص ساقط دی. (اشرف الهدایه، احسن الهدایه)

## د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل

وَلَهُمَا: أَنَّا تَيَقَّنَّا بِثُبُوتِ الْوِلَايَةِ لِلْمَوْلٰى او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چي د مالک لپاره د ملکيت په ثابتېدلو زموږ يقين دی [يعني دا يقيني ده چي ولايت د مالک لپاره ثابت دی] فَيَسْتَوْفِيهِ نو ځکه مالک به قصاص اخلي وَهٰذَا لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ لَهُ مَعْلُومٌ او دا ځکه چي مقضي لهٔ معلوم دی وَالْحُكْمُ مُتَّحِدٌ او حکم يو دی فَوَجَبَ الْقَوْلُ بِالِاسْتِيفَاءِ نو ځکه د قصاص اخيستلو قائل کېدل ضروري سوه بِخِلَافِ الْفَصْلِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّ الْمَقْضِيَّ لَهُ مَجْهُولٌ ځکه چي [هلته] مقضي لهٔ مجهول دی وَلَا مُعْتَبَرَ بِاخْتِلَافِ السَّبَبِ هٰهُنَا او د اختلاف سبب لره هيڅ اعتبار نسته لِأَنَّ الْحُكْمَ لَا يَخْتَلِفُ ځکه چي حکم مختلف نه دی بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ په خلاف د هغه مسئلې لِأَنَّ مِلْكَ الْيَمِينِ يُغَايِرُ مِلْكَ النِّكَاحِ حُكْمًا ځکه ملکِ يمين د حکم په اعتبار له ملکِ نکاح څخه مغاير [او جلا] دی.

**اللغات:** ﴿تيقنا﴾ د تفعّل له بابه د جمع متکلم صيغه ده: په يو شي يقين کول، په خبرېدل. ﴿يستوفيه﴾ د استفعال د باب مضارع ده: اخيستل، ترلاسه کول. ﴿مقضي﴾ د ضرب د باب مفعول دی، مقضيّ لهٔ: د چا لپاره چي د يو شي فيصله کېدونکې وي، د چا لپاره چي د يو شي فيصله سوې وي. ﴿ملک يمين﴾ د رقبې ملکيت. يعني د مينځې يا غلام مالک کېدل (پر مينځه يا غلام چا ته ملکيت حاصلېدل).

**تشريح:** په دې عبارت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چي کله له مالک څخه بغير د مقتول غلام بل هيڅ وارث نه وي نو د مالک (مولیٰ) لپاره په يقيني توګه د قصاص ولايت ثابت دی او مقضي لهٔ يعني د چا لپاره چي د قصاص فيصله کيږي هغه معلوم دی چي هغه مالک (مولیٰ) دی او حکم د يعني قصاص اخيستل هم متحد دي، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به قصاص واجب وي. د دې په خلاف په اول فصل کي يعني کله چي له مالک څخه بغير د غلام بل وارث هم وي، نو څرنګه چي په دې صورت کي مقضي لهٔ مجهول دی، ځکه مقضي لهٔ په يوه اعتبار

سره مالک دی او په یوه اعتبار سره هغه وارث دی (لکه مخکي چي ددې وضاحت وسو)، او د مقضي لهٗ جهالت له قصاص څخه مانع دی، نو ځکه په دې صورت کي قصاص نه ثابتیږي.

ولا معتبر باختلاف السبب إلخ: فرمایي چي په مذکوره مسئله کي (یعني کله چي مالک څخه بغیر د غلام بل وارث نه وي) د سبب اختلاف لره اعتبار نسته؛ ځکه د سبب په داسي اختلاف سره په حکم کي اختلاف نه راځي، لهذا دغه اختلاف لره به هیڅ اعتبار نه وي او دلته به د سبب اختلاف د مستحق اختلاف لره مستلزم گرځول صحیح نه وي (لکه څرنګه چي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي).

بخلاف تلك المسئلة إلخ: د دې حاصل دا دی چي کومه مسئله امام محمد رَحِمَهُ الله په قیاس کي پېښه کړې ده (یعني: بعتنى الجارية إلخ)، دا قیاس صحیح نه دی؛ ځکه په دې مسئله کي د سبب په اختلاف سره په حکم کي اختلاف راځي (یعني دلته د سبب اختلاف د حکم اختلاف لره مستلزم دی)، ځکه ملک نکاح او ملک یمین یو له بل څخه مغایر دي او احکام يې سره جلا دي؛ ځکه په ملک نکاح سره مقصود د وطي حلت دی او د ملک یمین اصلي مقصد ملکیت (پر مینځه مالک کېدل) دي او حلت تابع دی، نو ځکه دلته د سبب په اختلاف سره حکم مختلف سوی دی، حال دا چي په مذکوره مسئله کي د سبب اختلاف د حکم اختلاف لره مستلزم نه دی، نو ځکه مذکوره مسئله پر دغه د ملک یمین او ملک نکاح پر مسئله قیاسول صحیح نه دي.

## د شیخینو رَحِمَهُمَا الله له طرفه د امام محمد رَحِمَهُ الله د دلائلو جواب

وَالإِعْتَاقُ لَا يَقْطَعُ السِّرَايَةَ لِذَاتِهِ او آزادول بذاتِ خود د سرایت منقطع کونکي نه دي بَلْ لِاشْتِبَاهِ مَنْ لَهُ الْحَقُّ بلکي د مَن لهُ الحق د مشتبه کېدلو په وجه [د سرایت قاطع دي] وَذٰلِكَ فِي الْخَطَإِ دُوْنَ الْعَمَدِ او دا اشتباه په خطاء کي ده، نه په عمد کي لِأَنَّ الْعَبْدَ لَا يَصْلُحُ مَالِكًا لِلْمَالِ ځکه غلام د مال د مالک جوړېدلو صلاحیت نه لري فَعَلَى اعْتِبَارِ حَالَةِ الْجَرْحِ يَكُوْنُ الْحَقُّ لِلْمَوْلَى نو د جرح د حالت په اعتبار کولو سره حق د مالک کیږي وَعَلَى اعْتِبَارِ حَالَةِ الْمَوْتِ يَكُوْنُ لِلْمَيِّتِ او د مرګ د حالت په اعتبار کولو سره حق د مړي کیږي لِحُرِّيَّتِهِ ځکه [د مرګ په حالت کي] هغه آزاد دی فَيُقْضٰى مِنْهُ دُيُوْنُهُ وَيُنَفَّذُ وَصَايَاهُ نو له هغه څخه به د ده قرضونه اداء کول کیږي او د ده وصیتونه [پکښي] نافذول کیږي فَجَاءَ الإِشْتِبَاهُ نو اشتباه راغله أَمَّا الْعَمَدُ فَمُوْجَبُهُ الْقِصَاصُ پاته سو عمد نو د هغه حکم [او مقتضا] قصاص دی وَالْعَبْدُ مُبْقًى عَلٰى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِيْهِ او غلام په قصاص کي پر خپل اصل آزاد

والي باقي شمېرل سوی دی وَعَلَى اعْتِبَارِ أَنْ يَكُوْنَ الْحَقُّ لَهُ فَالْمَوْلَى هُوَ الَّذِي يَتَوَلَّاهُ او په دې اعتبار سره چې حق د غلام دی نو هم مالک [د خلافت په توګه] د هغه ولي کيږي إِذْ لَا وَارِثَ لَهُ سِوَاهُ ځکه له مالک څخه بغير د هغه هيڅ وارث نشته فَلَا اشْتِبَاهَ فِيمَنْ لَهُ الْحَقُّ لهذا په من لهُ الحق کي هيڅ اشتباه نشته.

**اللغات:** ﴿حرية﴾ آزادي، آزادوالی، ﴿مبقى﴾ د افعال د باب مفعول دی: پاته کړل سوی، باقي ساتل سوی، ﴿موجب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی (هغه څه چې د بل شي په وجه واجب سي). حکم، مقتضا او مطلوب، اثر مرتب.

**تشريح:** په دې عبارت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب ورکول سوی دی، حاصل يې دا دی چې اعتاق (د غلام آزادول) د سرايت قاطع خو دی لېکن په قتلِ عمد کي د سرايت قاطع (منقطع کونکی) دی، نه په قتلِ خطاء کي، او زموږ خبره په قتلِ خطاء کي ده چې هلته اعتاق د سرايت قاطع نه دی، نو په دې حواله سره ستاسي دا دليل صحيح نه دی.

دويمه خبره دا ده چې اعتاق بذاتِ خود قاطع نه دی بلکي د مَن لهُ الحق د مشتبه کېدلو په وجه قاطع دی او د مَن لهُ الحق اشتباه په خطاء کي ده، نه په عمد کي؛ ځکه غلام د مال نه سي مالک کېدلای، لهذا د جرح د حالت په اعتبار کولو سره د قصاص حق مالک (مولیٰ) لره حاصليږي او د مرګ د حالت په اعتبار کولو سره دا حق ميّت (غلام) لره حاصليږي ځکه په هغه وخت کي ميّت آزاد دی، په همدې وجه د ميّت له مال څخه د هغه قرضونه اداء کول کيږي او د هغه وصيتونه پکښي نافذول کيږي، لهذا په دې کي اشتباه پيدا سوه او د اشتباه په وجه اعتاق د سرايت قاطع کيږي.

د دې په خلاف په قطعِ عمد کي اعتاق د سرايت قاطع ځکه نه دی چې د عمد موجب قصاص دی، لهذا څرنګه چې د جرح د حالت په اعتبار سره د قصاص مستحق (من له الحق) مالک دی (ځکه چې په هغه حالت کي غلام د ده په ملکيت کي دی)، همداسي د مرګ د حالت په اعتبار سره هم مالک د هغه مستحق دی؛ ځکه له مالک څخه بغير د غلام بل هيڅ وارث نشته چې د هغه قصاص واخلي، لهذا په اول صورت کي به مالک اصالةً مستحق وي او په دويم صورت کي به نيابةً مستحق وي او فقط مالک به مَن لهُ الحق وي، او څرنګه چې په دې کي هيڅ اشتباه نشته، نو ځکه قصاص به واجب وي. (احسن الهدايه)

## د امام محمد رَحِمَهُ الله د مسلک وضاحت

وَإِذَا امْتَنَعَ الْقِصَاصُ فِيْ الْفَصْلَيْنِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او کله چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صوْرتونو کې قصاص ممتنع سو يَجِبُ أَرْشُ الْيَدِ وَمَا نَقَصَهُ مِنْ وَقْتِ الْجَرْحِ إِلَى وَقْتِ الْإِعْتَاقِ نو د لاس ارش او د [غلام] زخمي کېدلو له وخت څخه د آزادولو تر وخته پوري چې کوم نقصان سوی دی هغه به واجبيږي كَمَا ذَكَرْنَا لکه [مخکي] چې موږ ذکر کړه لِأَنَّهُ حَصَلَ عَلَى مِلْكِهِ ځکه دا نقصان د مالک [مولیٰ] پر ملکيت حاصل سوی دی [يعني د هغه په ملکيت کي واقع سوی دی] وَيَبْطُلُ الْفَضْلُ او زياتوب به باطليږي وَعِنْدَهُمَا الْجَوَابُ فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ كَالْجَوَابِ عِنْدَ مُحَمَّدٍ فِي الثَّانِيْ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په اول صورت کي هاغه حکم دی کوم حکم چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دويم صورت کي دی.

**اللغات**: ﴿امتنع﴾ د افتعال د باب ماضي ده: منع کېدل، ناممکن کېدل. ﴿فصلين﴾ تثنيه د فصلٌ چي د هغه يوه معنیٰ ده: صورت. ﴿أرش﴾ تاوان او جرمانه، د مادون النفس جنايت په بدله کي واجبېدونکې ديت. ﴿نقصه﴾ د نصر د باب ماضي ده: کم کول، ناقص ګرځول، نقصان او کمي پکښې راوستل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي کله د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دواړو صورتونو کي قصاص نسته (لکه څرنګه چي د مسئلې په شروع کي ذکر سوه)، نو ځکه د هغه په نېز په دواړو صورتونو کي پر قاطعُ اليد کس د غلام د لاس ارش (ديت) واجبيږي او د غلام د زخمي کېدلو له وخت څخه د هغه د آزادېدلو تر وخته پوري چي په غلام کي کوم نقصان سوی دی (يا په بله وينا دا چي څومره قيمت يې کم سوی دی) هغه هم پرې واجبيږي؛ ځکه نقصان د مالک (مولیٰ) په ملکيت کي واقع سوی دی. لهذا د لاس ارش او نقصان خو به پر قاطعُ اليد واجب وي او کوم مقدار چي د هغه له قيمت څخه زائد وي هغه به باطليږي. او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په اول صورت کي يعني کله چي له مالک څخه بغير د غلام بل وارث هم وي (نو په دې صورت کي د دوی په نېز) هاغه حکم دی کوم چي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دويم صورت کي دی يعني په دې صورت کي هم د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز هم د لاس ارش او نقصان واجبيږي (لکه د مسئلې په شروع کي چي هم د دې وضاحت وسو). (احسن الهدايه)

## په نا معينه توګه د آزادېدونکي غلام د زخمونو تاوان

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَمَنْ قَالَ لِعَبْدَيْهِ: أَحَدُكُمَا حُرٌّ او څوک چي خپلو دوو غلامانو ته ووايي: په تاسي دواړو کي يو آزاد دی ثُمَّ شُجَّا بيا د هغوی دواړو سرونه زخمي کړل سوه امات کړل سوه! فَأَوْقَعَ الْعِتْقَ عَلٰى أَحَدِهِمَا بيا مالک په هغوی کي پر يوه آزادي واقع کړه [چي ته آزاد يې] فَأَرْشُهُمَا لِلْمَوْلٰى نو د هغوی دواړو ارش د مالک لپاره دی لِأَنَّ الْعِتْقَ غَيْرُ نَازِلٍ فِي الْمُعَيَّنِ ځکه [دلته] عتق په معيّن غلام کي نه دی واقع سوی وَالشَّجَّةُ تُصَادِفُ الْمُعَيَّنَ او شجه [د سر زخم] معيّن ته لاحق سوی دی [يعني د سر زخم په دواړو غلامانو کي واقع سوی دی کوم چي معيّن دي] فَبَقِيَا مَمْلُوكَيْنِ فِيْ حَقِّ الشَّجَّةِ نو د شجه په حق کي دوی دواړه مملوک [غلامان] پاته سول.

**اللغات:** ﴿شجّا﴾ د تثنيه غائب ماضي صيغه ده، له نصر او ضرب دواړو بابونو څخه راځي: سر يا مخ ور زخمي کول، ور ماتول. ﴿أرش﴾ تاوان، جرمانه، د ما دون النفس د جنايت په بدله کي واجبېدونکی مال (ديت). ﴿تصادف﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: لاحق کېدل او متصل کېدل، واقع کېدل، يو شی د بل شي سره مخامخ کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د زيد دوه غلامان دي او مالک (زيد) هغو دواړو ته ووېل "أَحَدُكُمَا حُرٌّ" چي په تاسي دواړو کي يو زما له طرفه آزاد دی او تر اوسه مالک د دې وضاحت نه وو کړی چي زما مراد کوم يو دی له هغه څخه مخکي يو چا مثلاً خالد د دواړو سرونه ورمات کړل چي د هغه په وجه پر خالد ارش (تاوان) لازم سو چي خالد به د هغه تاوان ورکوي، اوس سوال دا دی چي دغه ارش (تاوان) به څوک اخلي، نو فرمايي چي د دواړو غلامانو ارش مالک ته حاصلېږي او مالک به يې اخلي؛ ځکه که څه هم له دوی څخه يو غلام آزاد سوی دی چي په دې وجه د هغه ارش خپله هغه ته حاصلېدل پکار دي، لېکن دلته عتق مبهم دی او شجّه معيّن ده، نو د شجّه د معيّن کېدلو په وجه په دې صورت کي دوی دواړه د شجّه په حق کي مملوک او غلامان وګرځول سول او کله چي دوی دواړه تر اوسه مملوک او غلامان دي، نو د دواړو ارش به هم مالک ته حاصلېږي، خو دا حکم فقط د شجّه په صورت کي دی، کنې د قتل په صورت کي حکم جلا دی چي هغه به په را روان عبارت کي ذکر سي.

## په پورتنی مسئله کي د غلام د قتل حکم او تفصیل

وَلَوْقَتَلَهُمَا رَجُلٌ او که یو سړی دا دواړه غلامان قتل کړي تَجِبُ دِيَةُ حُرٍّ وَقِيمَةُ عَبْدٍ نو دیوه آزاد کس دیت او دیوه غلام قیمت واجبیږي وَالْفَرْقُ أَنَّ الْبَيَانَ إِنْشَاءٌ مِنْ وَجْهٍ او فرق دا دی چي [د مالک] بیان په یوه اعتبار سره [د عتق] انشاء ده وَإِظْهَارٌ مِنْ وَجْهٍ او په یوه اعتبار سره [د عتق] اظهار دی عَلَى مَا عُرِفَ لکه څرنګه دا پیژندل سوې ده وَبَعْدَ الشَّجَّةِ بَقِيَ مَحَلًّا لِلْبَيَانِ او تر شجه [سر زخمي کولو] وروسته هغه د بیان محل پاته سو فَاعْتُبِرَ إِنْشَاءً فِي حَقِّهِمَا نو ځکه د دوی دواړو په حق کي [د مالک] بیان انشاء وشمېرل سو وَبَعْدَ الْمَوْتِ لَمْ يَبْقَ مَحَلًّا لِلْبَيَانِ او تر مرګ وروسته هغه د بیان محل پاته نه سو فَاعْتَبَرْنَاهُ إِظْهَارًا مَحْضًا نو ځکه موږ هغه اظهار محض وشمېری وَأَحَدُهُمَا حُرٌّ بِيَقِينٍ او له دوی دواړو څخه یو په یقیني توګه آزاد دی فَتَجِبُ قِيمَةُ عَبْدٍ وَدِيَةُ حُرٍّ نو ځکه دیوه غلام قیمت او دیوه آزاد کس دیت به واجبیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَتَلَ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا رَجُلٌ په خلاف د هغه صورت کله چي له دوی څخه هر یو جلا سړي قتل کړی وي [یعني د هر غلام قاتل جلا سړی وي. یا په بله وینا دا چي قاتلان هم دوه وي] حَيْثُ تَجِبُ قِيمَةُ الْمَمْلُوكَيْنِ نو په دې صورت کي د دوو مملوکو [غلامانو] قیمت واجبیږي لِأَنَّا لَمْ نَتَيَقَّنْ بِقَتْلِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حُرًّا ځکه [په دې صورت کي] د دوی هر یوه د آزادوالي په حالت کي د قتل کېدلو یقین موږ ته نسته [یعني د آزادوالي په حالت کي د هر یوه قتل کېدل یقیني نه دي] وَكُلٌّ مِنْهُمَا يُنْكِرُ ذَلِكَ او له دوی دواړو [قاتلانو] څخه هر یو د دې انکار کوي وَلِأَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَى ثُبُوتَ الْعِتْقِ فِي الْمَجْهُولِ او ځکه چي قیاس په مجهول کي له عتق ثابتېدلو څخه انکار کوي لِأَنَّهُ لَا يُفِيدُ فَائِدَةً ځکه دا عتق هیڅ فایده نه کوي وَإِنَّمَا صَحَّحْنَاهُ ضَرُورَةَ صِحَّةِ التَّصَرُّفِ خو موږ د تصرف صحیح کېدلو د ضرورت په خاطر دا عتق صحیح ګرځولی دی وَأَثْبَتْنَاهُ وِلَايَةَ النَّقْلِ مِنَ الْمَجْهُولِ إِلَى الْمَعْلُومِ او د مالک لپاره مو له مجهول څخه د معلوم وطرف ته د نقل کېدلو ولایت ثابت کړی دی فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الضَّرُورَةِ نو هغه [ضرورت] به د ضرورت په اندازه مقدر کېږي وَهِيَ فِي النَّفْسِ دُونَ الْأَطْرَافِ او ضرورت په نفس کي دی نه په اطرافو [اندامو] کي فَبَقِيَ

مَمْلُوكًا فِي حَقِّهَا نو د اطرافو په حق کي هغه مملوک [غلام] پاته سو.

**اللغات**: ﴿يأبى﴾ د فتح د باب مضارع ده: انکار کول. مخالفت کول. ﴿أطراف﴾ د بدن غړي. اندامونه.

**تشريح**: مخکي ذکره سوه چي که يو څوک د مذکوره دوو غلامانو (يعني چي مالک هغو ته "أحدكما حر" ويلي وي) سرونه زخمي کړي. نو د دواړو ارش مالک ته حاصلېږي ځکه دواړه غلامان شمېرل سوي دي (لکه په تېر عبارت کي چي د دې وضاحت وسو). خو که چېري يو څوک دا دوه غلامان قتل کړي. نو په دې صورت کي هر يو غلام نه شمېرل کيږي. بلکي يو غلام او بل آزاد شمېرل کيږي او د يوه ديت او د بل قيمت واجبيږي. د دې فرق وجه څه ده؟.

والفرق إلخ: د شجه او قتل تر مينځ د فرق وجه بيانوي فرمايي چي د مالک بيان يعني د مالک تر دې وينا (أحدكما حر) وروسته چي مالک يو غلام متعين کړي نو د هغه دا بيان من وجه انشاء عتق (له نوي سره آزدول) دي او من وجه اظهار عتق (واقع سوي آزادي ښکاره کول) دي. نو موږ د دواړو اعتبار کوو او داسي وايو چي تر شجه (سر زخمي کولو) وروسته بيان انشاء عتق دی يعني ګواکي تر دې مخکي بالکل عتق واقع سوی نه دی او تر قتل کولو وروسته بيان اظهار عتق دی يعني تر دې مخکي عتق واقع سوی دی او د دې وجه دا ده چي تر شجه وروسته غلام د عتق محل دی او تر قتل او مرګ وروسته د عتق محل نه دی.

بخلاف ما إذا إلخ: يعني که دواړه غلامان يوه سړي نه بلکي دوو سړيانو قتل کړي وي (يعني قاتلان هم دوه وي). نو په دې صورت کي دواړه پوره غلامان (کامل مملوک) شمېرل کيږي او د دواړو قيمت به واجبول کيږي: ځکه دلته هر قاتل يو معين غلام قتل کړی دی او د يوه غلام په باره کي هم دا يقين نسته چي آزاد سوی غلام به دا وي او هر قاتل خپل مقتول ته غلام وايي او د هغه د حريت انکار کوي. نو ځکه مجبوراً به دواړه غلامان شمېرل کيږي او پر قاتلانو به يې قيمت واجبول کيږي.

ولأن القياس يأبى إلخ: په دې عبارت سره د شجه او قتل تر مينځ د فرق دويمه وجه او دليل بيانوي. حاصل يې دا دی چي د قياس تقاضا خو دا ده چي په مجهول غلام کي بالکل عتق ثابت نه سي: ځکه په مجهول کي دا ثبوت مفيد نه دی؛ ځکه د عتق فايده د قضاء او شهادت اهليت دی او په مجهول کي د دې شيانو نفاذ ممکن نه دی. نو ځکه د قياس له رويه په مجهول کي د عتق ثبوت نه کېدل پکار دي او د نه متعين کېدلو په وجه دلته دواړه غلامان مجهول دي، لهذا يو هم د عتق مستحق نه دی. لېکن موږ د مالک د وينا او تصرف (أحدكما حر) د صحيح ګرځولو لپاره ضرورتاً دا عتق جائز وګرځوی او د مالک لپاره مو بيان او له مجهول څخه د معلوم وطرف ته انتقال ثابت کړی د دې لپاره چي مجهول په

معلوم سره بدل سي، او ضرورت صرف په نفس کي دی، نه په اطرافو (سر وغيره) کي، ځکه د عتق محل اصلاً همدا نفس دی، او په اطرافو کي عتق تبعاً حلول کوي (چي اطراف د نفس تابع دي). لهذا کله چي ضرورت صرف په نفس کي دی نو د فقهي اُصول "الضرورة تتقدر بقدر الضرورة " پر بناء مورد صرف د نفس يعني د قتل په صورت کي له مذکوره دوو غلامانو څخه يو غلام آزادشمېرلی دی، او څرنګه چي په اطرافو يعني د شجّه په صورت کي ضررت نسته، نو ځکه په هغه صورت کي مورد يو هم آزاد نه دی شمېرلی، بلکي دواړه مو غلامان ګرځولي دي. (اشرف الهدايه، احسن الهدايه)

## که څوک د غلام دواړي سترګي يا يوه سترګه وباسي (حکم او تفصيل)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَمَنْ فَقَأَ عَيْنَيْ عَبْدٍ او څوک چي د غلام دواړي سترګي وباسي فَإِنْ شَاءَ الْمَوْلَى دَفَعَ عَبْدَهُ وَأَخَذَ قِيمَتَهُ نو که مالک وغواړي نو هغه [مجرم] ته دي خپل غلام ورکړي او د غلام قيمت دي څني واخلي وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَهُ وَلَا شَيْءَ لَهُ مِنَ النُّقْصَانِ او که وغواړي نو غلام دي راوګرځوي او د هغه لپاره د نقصان په بدله کي هيڅ شی نسته عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ [دا حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز [دی] وَقَالَا: إِنْ شَاءَ أَمْسَكَ الْعَبْدَ وَأَخَذَ مَا نَقَصَهُ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي که مالک وغواړي نو غلام دي راوګرځوي او له مجرم څخه دي د هغه نقصان واخلي وَإِنْ شَاءَ دَفَعَ الْعَبْدَ وَأَخَذَ قِيمَتَهُ او که وغواړي نو غلام دي مجرم ته ورکړي او د هغه قيمت دي څني واخلي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُضَمِّنُهُ كُلَّ الْقِيمَةِ وَيُمْسِكُ الْجُثَّةَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي مالک به له مجرم څخه د ټوله قيمت ضمان اخلي او غلام به [هم] راګرځوي لِأَنَّهُ يَجْعَلُ الضَّمَانَ مُقَابِلًا بِالْفَائِتِ ځکه امام شافعي رَحِمَهُ الله ضمان د فوت سوي حصې مقابل ګرځوي فَبَقِيَ الْبَاقِي عَلَى مِلْكِهِ نو باقي غلام د مالک پر ملکيت پاته سو كَمَا إِذَا قَطَعَ إِحْدَى يَدَيْهِ أَوْ فَقَأَ إِحْدَى عَيْنَيْهِ لکه [په هغه صورت کي] کله چي د غلام يو لاس پرېکړي يا د هغه يوه سترګي وباسي وَنَحْنُ نَقُولُ: إِنَّ الْمَالِيَّةَ قَائِمَةٌ فِي الذَّاتِ او مورد [په جواب کي] وايو: چي ماليت [د غلام] په ذات کي موجود دی وَهِيَ مُعْتَبَرَةٌ فِي حَقِّ الْأَطْرَافِ او ماليت [د غلام] د اطرافو په حق کي معتبر دی لِسُقُوطِ اعْتِبَارِهَا فِي حَقِّ الذَّاتِ قِصَاصًا عَلَيْهِ ځکه د ماليت اعتبار يوازي د ذات په حق کي ساقط سوی دی وَإِذَا كَانَتْ

مُعْتَبَرَةٌ او کله چې [په اطرافو کې] ماليت معتبر دی وَقَدْ وُجِدَ إِتْلَافُ النَّفْسِ مِنْ وَجْهٍ بِتَفْوِيتِ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ او من وجه [په يوه اعتبار] د جنس منفعت د فوت کولو په وجه د نفس تلفول [هلاکول] موجود سوه وَالضَّمَانُ يَتَقَدَّرُ بِقِيمَةِ الْكُلِّ او ضمان په ټوله قيمت سره مقدر [ټاکل] کيږي فَوَجَبَ أَنْ يَتَمَلَّكَ الْجُثَّةَ نو واجب سوه چې مجرم د غلام مالک سي دَفْعًا لِلضَّرَرِ وَرِعَايَةً لِلْمُمَاثَلَةِ د ضرر ليرې کولو او د مماثلت د رعايت کولو په خاطر بِخِلَافِ مَا إِذَا فَقَأَ عَيْنَيْ حُرٍّ په خلاف د هغه صورت کله چې څوک د آزاد کس دواړې سترګې وباسي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيهِ مَعْنَى الْمَالِيَّةِ ځکه په آزاد کس کې د ماليت معنیٰ نسته وَبِخِلَافِ عَيْنَيِ الْمُدَبَّرِ او په خلاف د مدبر د سترګو لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ الِانْتِقَالَ مِنْ الْمِلْكِ إِلَى مِلْكٍ ځکه هغه له يوه ملکيت څخه بل ملکيت ته نقل کېدل نه قبلوي وَفِي قَطْعِ إِحْدَى الْيَدَيْنِ وَفَقْءِ إِحْدَى الْعَيْنَيْنِ لَمْ يُوجَدْ تَفْوِيتُ جِنْسِ الْمَنْفَعَةِ او د يوه لاس په پرې کولو او د يوې سترګې په باسلو کې د جنس منفعت فوت کول نسته.

**اللغات:** ﴿فقأ﴾ د فتح د باب ماضي ده: سترګه باسل، سترګه ايستل. ﴿أمسکه﴾ د افعال د باب ماضي ده: نيول، راګرځول. ﴿يضمّن﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: ضامن ګرځول. ضمان (تاوان) څخې اخيستل، ضمان پرې واجبول. ﴿نقصه﴾ د نصر د باب ماضي ده: ناقصول (کمول). نقصان رسېدل. ﴿أطرف﴾ د بدن غړي، اندامونه. ﴿جثة﴾ ټوله جسم (جسد)، پړی. ﴿تفويت﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فوتول، ضايع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد مثلاً د خالد د غلام دواړې سترګې ور وباسي، نو پر هغه (زيد) باندې د ضمان واجبېدلو په هکله د فقهاؤ مختلفه اقوال نقل سوي دي:

① ... د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مالک (خالد) ته اختيار دی، که وغواړي نو مجرم (زيد) ته دې هغه غلام ورکړي او له هغه څخه دې د غلام ټوله قيمت واخلي، يا غلام دې د خپل ځان سره راوګرځوي او په دې (د غلام راګرځولو) په صورت کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز مالک ته د نقصان ضمان نه حاصليږي (يعني د سترګو په وجه چې د غلام په قيمت کې څومره نقصان [کمي] راغلی ده. هغه به مالک ته نه ورکول کيږي).

(۲)... صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که د مالک خوښه وي نو غلام دې راوګرځوي او له مجرم (زید) څخه دې د نقصان ضمان واخلي. او که وغواړي نو غلام دې مجرم ته ورکړي او له هغه څخه دې د غلام ټوله قیمت واخلي.

(۳)... امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې مالک دې له مجرم څخه د غلام ټوله قیمت واخلي او غلام دې د ځان سره راوګرځوي او مجرم ته دې يې نه ورکوي.

د امام شافعي دليل: دا دی چې پر مجرم واجبېدونکی ضمان (قیمت) د هغه نقصان بدل دی کوم چې مجرم د سترګو باسلو په وجه واقع کړی دی. نو ځکه دا ضمان به صرف د هاغه نقصان مقابل وي او غلام به د مخکې په څېر د مالک په ملکیت کې پاته وي. لهذا مالک ته د غلام ورکولو څه ضرورت نشته. همدا د امام مالک او امام احمد رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

د دې مثال داسې دی لکه يو څوک چې د غلام يو لاس پرې کړي يا يوه سترګه ور وباسي يا د آزاد کس يا مدبر غلام دواړه سترګې ور وباسي نو په دې صورتونو کې هم دغه حکم دی چې پر مجرم ټوله ضمان واجبيږي او د دې په عوض کې مجني عليه و مجرم ته نه ورکول کيږي. نو همداسې په مذکوره مسئله کې به هم دغه حکم وي يعني پر مجرم به ټوله ضمان واجب وي او مجني عليه (غلام) به هغه ته نه ورکول کيږي.

ونحن نقول إلخ: د امام شافعي رَحِمَهُ الله وغيره په خلاف زموږ دليل دا دی چې د ماليت وجود صرف په نفس او ذات کې منحصر نه دی. بلکې څرنګه چې د غلام په ذات کې ماليت موجود دی. همداسې د هغه په اطرافو او اندامو کې هم موجود دی. او شريعت په هر مقام کې د مساوات لحاظ کړی دی او د نقصان مطابق يې ضمان وغيره واجب کړي دي. اوس موږ وينو چې د دواړو سترګو په باسلو سره دانسان جنسِ منفعت فوتيږي او جنسِ منفعت فوتول په يوه اعتبار سره د نفس تلفول (هلاکول) دي او د نفس تلفولو په صورت کې ټوله قيمت واجبيږي. نو ځکه د دواړو سترګو د باسلو په صورت کې به هم پر مجرم د مجني عليه (غلام) ټوله قيمت واجب وي. او له قيمت اخيستلو څخه وروسته به مجني عليه (غلام) مجرم ته ورکول کيږي د دې لپاره چې له مجرم څخه نقصان ليرې سي او مماثلت متحقق سي. کنې د ټوله قيمت په ورکولو سره به مجرم سراسر تاواني سي او مالک به سراسر ګټمن سي چې هغه ته بدل (قيمت) هم حاصليږي او مبدل (غلام) هم. او دا د شريعت د قانون او اُصول خلاف دي. لهذا د انصاف تقاضا همدا ده چې مجني عليه (غلام) مجرم ته وسپارل سي.

بخلاف ما إذا فقأ إلخ: له دې ځايه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د قياس جواب ورکول سوی دی. حاصل يې دا دی چې دا مذکوره مسئله (يعني د دواړو سترګو د باسلو مسئله) د آزاد او مدبر غلام د سترګې باسلو پر مسئله قياسول صحيح نه دي؛ ځکه آزاد خو ګردسره مال نه دی. حال دا چې غلام سر تر پايه مال دی. همدارنګه غلام د يو چا له ملکيت څخه د بل چا ملکيت ته منتقل کېدی سي. حال دا چې مدبر له يوه ملکيت څخه بل ملکيت ته

انتقال نه قبلوي. نو په دې حواله سره د غلام او د آزاد او مدبر تر مينځ فرق دی. لهذا خالص غلام پر دې دواړو قياسول صحيح نه دي.

**وفي قطع إلخ:** يعنې مذكوره مسئله د يوې ستر ګې د باسلو يا د يوه لاس د پرې کولو پر مسئله هم نه سي قياسول کېدای: ځکه د دواړو ستر ګو په ايستلو يا د دواړو لاسو په پرې کولو سره جنس منفعت فوتيږي. حال دا چې د يوې ستر ګې يا د يوه لاس په صورت کې د جنس منفعت تفويت نسته. لهٰذا د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا قياس هم صحيح نه دی.

## د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله دلائل

وَلَهُمَا: أَنَّ مَعْنَى الْمَالِيَّةِ لَمَّا كَانَ مُعْتَبَرًا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې کله [د غلام په اطرافو کې] د ماليت معنیٰ معتبره ده وَجَبَ أَنْ يَتَخَيَّرَ الْمَوْلَى عَلَى الْوَجْهِ الَّذِي قُلْنَاهُ نو ضروري سوه چې مالک پر هاغه طريقه اختيار من سي [اختيار ورکول سي] کوم چې موږ وويل كَمَا فِي سَائِرِ الْأَمْوَالِ لکه څرنګه چې په ټولو مالونو کې کيږي فَإِنَّ مَنْ خَرَقَ ثَوْبَ غَيْرِهِ خَرْقًا فَاحِشًا ځکه که يو څوک د بل چا کپړه ډېر زيات شيري کړي إِنْ شَاءَ الْمَالِكُ دَفَعَ الثَّوْبَ إِلَيْهِ نو مالک [ته اختيار دی چې] که وغواړي نو شيرونکي [خارق] ته دې کپړه ورکړي وَضَمَّنَهُ قِيمَتَهُ او له هغه څخه دې د کپړې د قيمت ضمان [تاوان] واخلي وَإِنْ شَاءَ أَمْسَكَ الثَّوْبَ وَضَمَّنَهُ النُّقْصَانَ او که وغواړي نو کپړه دې راو ګرځوي او د نقصان ضمان دې څني واخلي وَلَهُ: أَنَّ الْمَالِيَّةَ وَإِنْ كَانَتْ مُعْتَبَرَةً فِي الذَّاتِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې ماليت که څه هم [د غلام] په ذات کې معتبر دی فَالْآدَمِيَّةُ غَيْرُ مُهْدَرَةٍ فِيهِ وَفِي الْأَطْرَافِ أَيْضًا لېکن [د غلام] په ذات او اطرافو کې آدميت [انسانيت] هم لغو کړی سوی نه دی أَلَا تَرَى أَنَّ عَبْدًا لَوْ قَطَعَ يَدَ عَبْدٍ آخَرَ آيا ته نه ګورې! چې که يو غلام د بل غلام لاس پرې کړي يُؤْمَرُ الْمَوْلَى بِالدَّفْعِ أَوِ الْفِدَاءِ نو [د قاطع غلام] مالک ته به د غلام ورکولو يا فديه اداء کولو حکم کيږي وَهٰذَا مِنْ أَحْكَامِ الْآدَمِيَّةِ او دا د آدميت له احکامو څخه دي لِأَنَّ مُوجَبَ الْجِنَايَةِ عَلَى الْمَالِ أَنْ تُبَاعَ رَقَبَتُهُ فِيهَا ځکه پر مال د جنايت کولو موجب [او حکم] دا دی چې د جنايت په بدله کې به د غلام رقبه خرڅول کيږي.

**اللغات:** ﴿خرق﴾ د ضرب د باب ماضي ده: شيرل. ﴿فاحش﴾ د کرُم د باب فاعل دی: ډېر زيات. ډېر څرګند. ﴿أمسك﴾ د افعال د باب ماضي ده: راګرځول. نيول. ﴿مهدرة﴾ د افعال له بابه د مؤنث مفعول صيغه ده: لغو

کړی سوی، ضایع او بې ځایه کړی سوی. باطل کړی سوی. ﴿مُوجَب﴾ دافعال دباب مفعول دی: مقتضا. اثر مرتب، حکم.

**تشریح:** په دې عبارت کې د پورتنۍ مذکوره مسئلې په هکله دصاحبینو او د امام صاحب رَحِمَهُمُ الله دلیلونه بیان سوي دي، دصاحبینو د دلیل حاصل دا دی چې کله دغلام په اطرافو کې مالیت معتبر دی، نو ځرنګه چې په نورو مالونو کې دضمان طریقه اختیارول کیږي، همداسي دي دلته هاغه طریقه اختیار کړل سي یعني مالک (مولیٰ) ته دي دوه اختیاره ورکول سي: ① یو دا چې که دمالک خوښه وي نو مجرم (جاني) ته دي غلام ورکړي او له هغه څخه دي دغلام ټوله قیمت واخلي، ② او که خوښه یې وي نو غلام دي دځان سره راوګرځوي او کوم نقصان چې سوی دی دهغه ضمان دي ځني واخلي.

مثال یې دا دی لکه یو څوک چې دبل چا یو کپړه (مثلاً سدری) ډېره زیاته څیري کړي، نو دکپړې مالک ته دوه اختیاره حاصلیږي: ① که دهغه خوښه وي نو دا څیري کپړه (سدری) دي خارق (څیرونکي کس) ته ورکړي او له هغه څخه دي دکپړې (سدری) ټوله قیمت واخلي، ② او که خوښه یې وي نو هغه کپړه دي دځان سره وساتي او له خارق څخه دي دڅیرلو ضمان (تاوان) واخلي، نو همدغسي په مذکوره مسئله کې به هم مالک ته دا دوه اختیاره حاصلیږي.

ولہ أن المالية إلخ: دا دامام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دی چې دهغه په ضمن کې دصاحبینو رَحِمَهُمَا الله د دلیل جواب هم ورکول سوی دی، ددلیل حاصل دا دی چې دغلام په ذات او دهغه په اطرافو کې دمالیت دمعتبر کېدلو مطلب دا نه دی چې غلام له آدمیت (انسان والي) څخه خارج دی، بلکې دمالیت سره. سره په غلام کې آدمیت هم معتبر دی، بلکې آدمیت خو له مالیت څخه زیات پکښې راجح دی لکه مخکې چې ددې وضاحت وسو، لنډه دا چې په غلام کې آدمیت هم ملحوظ او معتبر دی. او دمالیت او آدمیت دواړو احکام سره جلا دي چې دهغه تفصیل به په راروان عبارت کې ذکر سي.

په غلام کې دآدمیت دمعتبر کېدلو دلیل دا دی چې که دیو چا غلام دبل غلام لاس پرې کړي. نو قاضي به دقاطع غلام مالک ته دوه اختیاره ورکوي: ① یو دا چې مالک دي دغه قاطع غلام دمقطوع الید غلام مالک ته ورکړي، ② دویم دا چې دمقطوع الید غلام فدیه دي ورکړي، ښکاره خبره ده چې دا حکم فقط دآدمیت د معنیٰ په اعتبار سره دی. ځکه که په غلام کې دآدمیت معنیٰ ملحوظه نه وای او صرف مالیت پکښې ملحوظ وای، نو دجنایتکاره (قاطع) غلام مالک ته به صرف دغلام دخرڅولو حکم کېدلای. معلومه سوه چې په غلام کې دآدمیت معنیٰ معتبره ده او هغه خالص مال ګرځول او دمال پر صورت قیاسول صحیح نه دي. (اشرف الهدایه)

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل وضاحت

ثُمَّ مِنْ أَحْكَامِ الْأُولَى أَنْ لَا يَنْقَسِمَ عَلَى الْأَجْزَاءِ بيا د اول [آدميت] له احکامو څخه دا دي چې د جنايت موجَب [يعني ضمان] پر اجزاؤ تقسيم نه سي وَلَا يَتَمَلَّكَ الْجُثَّةَ او مجرم د غلام مالک نه سي وَمِنْ أَحْكَامِ الثَّانِيَةِ أَنْ يَنْقَسِمَ او د دويم [ماليت] له احکامو څخه دا دي چې هغه [ضمان] تقسيم سي وَيَتَمَلَّكَ الْجُثَّةَ او مجرم د غلام مالک سي فَوَفَّرْنَا عَلَى الشَّبَهَيْنِ حَظَّهُمَا مِنَ الْحُكْمِ نو ځکه موږ دواړو مشابهتونو ته له حکم څخه خپله حصه په پوره توګه ورکړه [او پر دواړو مشابهتونو مو عمل وکړی].

**اللغات**: ﴿جثة﴾ د انسان ټوله جسم (جسد)، پړی. ﴿وفرنا﴾ د تفعيل له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده، د دې باب څو معناوي نقل سوي دي: پوره کول، خوندي کول، پوره ورکول، پوره اخيستل. (معجم الوسيط، مصباح اللغات)

**تشريح**: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل اهمه حصه ده او دلته د آدميت او ماليت د احکامو تفصيل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چې د آدميت (د ضمان واجبېدلو په حواله سره) دوه احکام دي: ① اول حکم يې دا دی چې د جنايت موجَب يعني ضمان پر اجزاؤ تقسيم نه سي او جاني (مجرم) د مجني عليه د جسد مالک نه سي، ② او دويم حکم يې دا دی چې جاني د مجني عليه د جسد مالک سي، نو په دې وجه موږ د سترګو د باسلو په صورت کې ضمان پر سترګو او پر جسد نه دی تقسيم کړی بلکې ټوله قيمت مو واجب کړی دی. د دې په خلاف د ماليت احکام د آدميت له احکامو څخه بالکل جلا دي، ځکه په ماليت کې ضمان د مجني عليه پر اجزاؤ تقسيمول کيږي او جاني د مجني عليه مالک کيږي، او څرنګه چې په غلام کې د آدميت او ماليت دواړو معنیٰ موجوده ده، نو ځکه موږ د هغه دواړو اعتبار کړی دی چې د آدميت د معنیٰ په اعتبار سره موږ ضمان د مجني عليه پر اجزاؤ تقسيم کړی نه دی بلکې ټوله ضمان (قيمت) مو پر جاني واجب کړی دی، او د ماليت د معنیٰ په اعتبار سره موږ دا حکم کړی دی د مجني عليه غلام مالک چې کله د هغه ټوله قيمت واخلي، نو ده ته بيا دا حق نسته چې غلام د ځان سره راوګرځوي بلکې دئ به هغه غلام جاني ته ورکوي؛ ځکه د ماليت په اعتبار سره جاني د جثې مالک کېدلای سي.

دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل اعدل او امثل دی چې په هغه کې د غلام د دواړو حيثيتونو پوره رعايت سوی دی. کنې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صرف د ماليت والا اړخ لره اعتبار دی او آدمية هدر ګرځول سوی دی، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز صرف د آميت اړخ لره اعتبار ورکول سوی دی (نو ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل اعدل دی). (احسن الهدايه بحواله کفايه)

فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

# فَصْلٌ فِيْ جِنَايَةِ الْمُدَبَّرِ وَأُمِّ الْوَلَدِ

(دا) فصل په (بيان د) جنايت کولو کي د مدبر او أم ولد

**تشريح:** په مدبر او أم ولد کي د غلام په نسبت رقيت (غلامتوب) ناقص وي. نو ځکه د کامل يعني د قنّ (خالص غلام) غلام د جنايت له بيان څخه وروسته په دې فصل کي د ناقص د جنايت احکام او مسائل بيانوي. (احسن الهدايه)

**مُدبّر:** هغه غلام ته وايي چي مالک د هغه آزادي پر خپل مرګ معلقه کړې وي. يعني مالک ورته ويلي وي: زما تر مرګ وروسته ته آزاد يې! (څرنګه چي په مدبر کي د آزادۍ شائبه راغلې ده. نو ځکه د هغه خرڅول جائز نه دي).

**أم الولد** (د هلک مور): هغه مينځي ته وايي چي خپل مالک (مولیٰ) جماع ور سره کړې وي او د هغه په سبب له مينځي څخه بچی پيدا سوی وي. يا په بله وينا هغه مينځه چي له خپل مالک څخه حامله سوې وي او بچی يې پيدا سي، أم ولد هم د مالک تر مرګ وروسته آزاديږي.

### د مدبر يا أم ولد د جنايت جرمانه

قَالَ: وَإِذَا جَنَى الْمُدَبَّرُ أَوْ أُمُّ الْوَلَدِ جِنَايَةً فرمايي: او کله چي مدبر يا أم ولد يو جنايت وکړي ضَمِنَ الْمَوْلَى الْأَقَلَّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ أَرْشِهَا نو مالک د هغه [جنايتکاره مدبر يا أم ولد] له قيمت او د جنايت له ارش څخه د اقل [کم] يوه ضامن کيږي لِمَا رُوِيَ عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ قَضَى بِجِنَايَةِ الْمُدَبَّرِ عَلَى مَوْلَاهُ د هغه په وجه کوم چي له ابو عبيده رضي الله عنه څخه روايت سوی دی چي هغه د مدبر د جنايت فيصله د مدبر پر مالک وکړه وَلِأَنَّهُ صَارَ مَانِعًا عَنْ تَسْلِيمِهِ فِي الْجِنَايَةِ بِالتَّدْبِيرِ أَوْ الِاسْتِيلَادِ مِنْ غَيْرِ اخْتِيَارِهِ الْفِدَاءَ او ځکه چي مالک د تدبير يا استيلاد [يعني د خپل غلام يا مينځي د مدبر يا أم ولد جوړولو] په وجه د فديې له اختيارولو څخه بغير په جنايت کي [د جنايتکاره مدبر او مينځي] له ورسپارلو څخه منع کونکی وګرځېدی فَصَارَ كَمَا إِذَا فَعَلَ ذَلِكَ بَعْدَ الْجِنَايَةِ وَهُوَ لَا يَعْلَمُ نو داسي سو لکه مالک چي تر جنايت وروسته دا کار کړی وي او هغه په جنايت خبر نه وي وَإِنَّمَا يَجِبُ الْأَقَلُّ مِنْ قِيمَتِهِ وَمِنْ

الْأَرْشِ او دلته د هغه [جنايتكاره] له قيمت او ارش څخه كم يو څكه واجبيږي لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ فِيْ أَكْثَرَ مِنَ الْأَرْشِ څكه له ارش څخه په زيات مقدار كي د جنايت د ولي هيڅ حق نسته وَلَا مَنْعَ مِنَ الْمَوْلٰى فِيْ أَكْثَرَ مِنَ الْقِيمَةِ او له قيمت څخه په زيات مقدار كي د مالك له طرفه منع [هم] نسته وَلَا تَخْيِيْرَ بَيْنَ الْأَقَلِّ وَالْأَكْثَرِ او د كم يوه او زيات يوه تر مينځ اختيار وركول نسته لِأَنَّهُ لَا يُفِيْدُ فِيْ جِنْسٍ وَاحِدٍ څكه په جنس واحد كي دا اختيار وركول مفيد نه دي لِاخْتِيَارِهِ الْأَقَلَّ لَا مَحَالَةَ څكه مالك خامخا كم يو اختياروي بِخِلَافِ الْقِنِّ په خلاف د خالص غلام لِأَنَّ الرَّغَبَاتِ صَادِقَةٌ فِيْ الْأَعْيَانِ څكه په اعيانو كي رغبتونه رښتوني وي فَيُفِيْدُ التَّخْيِيْرَ بَيْنَ الدَّفْعِ وَالْفِدَاءِ نو څكه د غلام وركولو او فديه اداء كولو تر مينځ [مالك ته] اختيار وركول به مفيد وي.

**اللغات:** ﴿جنٰى﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جنايت كول. جرم كول. ﴿أرش﴾ تاوان. جرمانه. د ما دون النفس جنايت په بدله كي واجبېدونكى مال (ديت). ﴿قِنّ﴾ خالص غلام (په هر اعتبار سره مملوك. كوم چي نه مدبر وي او نه مكاتب وي).

**تشريح:** مخكي دا مسئله تېره سوه چي كه غلام يو جنايت وكړي لېكن د غلام مالك د هغه په جنايت خبر نه سي او هغه آزاد كړي، نو په دې صورت كي مالك د فديې اختيارونكى نه شمېرل كيږي (يعني پر هغه فديه وركول يا په بله وينا د جنايت ارش وركول نه واجبيږي)، لېكن څرنګه چي د مجني عليه هم هيڅ قصور نسته نو څكه پر مالك واجب دي چي د جنايت په ارش او د غلام په قيمت كي چي كوم يو كم (اقل) وي هغه به وركوي، څكه د غلام تر آزادولو وروسته اوس د جنايت په بدله كي د غلام د وركولو (دفع العبد) امكان ختم سو (لكه څرنګه چي د باب جناية المملوك ... په اوله حصه كي تر دغه عبارت "فَإِنْ أَعْتَقَهُ الْمَوْلٰى وَهُوَ لَا يَعْلَمُ بِالْجِنَايَةِ" لاندي د دې پوره وضاحت تېر سو).

بالكل هغسي د دې عبارت مسئله هم ده چي مدبر او أم ولد د جنايت په بدله كي د وركولو قابل نه دي او مالك په دې هيڅ خبر نه وو چي دوى به وروسته داسي وكړي، نهذا كه مُدبر او اُم ولد يو جنايت وكړي نو هم دغه حكم دى چي د دوى په قيمت او ارش كي چي كوم يو كم (اَقل) وي، هغه به وركول كيږي. اوس پاته سوه دا خبره ده چي د مدبر د جنايت ضمان پر مالك ولي لازم دى. نو په دې باره كي كه څه هم حديث خو نسته، لېكن ابو عبيده ابن الجراح رَحِمَهُ اللهُ چي كله د شام امير وو. نو هغه د مدبر د جنايت ضمان د هغه پر مالك واجب كړى او دا فيصله يې د ډېرو صحابه وو په موجوديت كي وكړه. نو ګواكي پر دې اجماع واقع سوه.

وإنما يجب إلخ: يعني دلته په قيمت او ارش کي کم يو (أقل) ځکه واجبيږي چي د جنايت ولي ته له ارش څخه د زيات ضمان اخيستلو حق نسته او له قيمت څخه زيات ضمان مالک منع کړی نه دی، نو ځکه له قيمت او ارش څخه چي کوم يو اقلّ وي، هغه به ورکوي.

ولا تخيير إلخ: دا د يو مُقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چي څرنګه مالک ته د غلام ورکولو او د غلام د فديه ورکولو تر مينځ اختيار ورکول کيږي، نو همداسي دلته هم د اقلّ او اکثر د ورکولو تر مينځ مالک ته اختيار ورکول پکار دي، د اقلّ د واجبولو څه وجه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چي دلته دا اختيار ورکول هيڅ فايده نه کوي؛ ځکه ښکاره ده چي انسان صرف اقلّ اختياروي او له زيات ضمان ورکولو څخه انکار کوي. او پاته سوه د غلام ورکولو او فديه ورکولو داختيار مسئله، نو هلته په جنس کي اختلاف دی، يو طرف ته غلام دی او بل طرف ته مال دي او د انسان رغبت ډېر ځله عين (غلام وغيره) ته زيات وي چي مال د هغه په مقابله کي هيڅ نه ګڼي، او پاته سو دلته جنس متحد دی، ځکه ارش وي او که قيمت وي دواړه مالونه دي، نو ځکه دلته د اختيار ورکولو هيڅ فايده نسته. (اشرف الهدايه)

## که مدبر پرلپسې څو جنايتونه وکړي (حکم او تفصيل)

وَجِنَايَاتُ الْمُدَبَّرِ وَإِنْ تَوَالَتْ او د مدبر جنايتونه که څه هم پرلپسې وي لَا تُوجِبُ إِلَّا قِيمَةً وَاحِدَةً [بيا هم] هغوی صرف يو قيمت واجبوي لِأَنَّهُ لَا مَنْعَ مِنْهُ إِلَّا فِي رَقَبَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه د مالک له طرفه صرف په يوه رقبه کي منع سته وَلِأَنَّ دَفْعَ الْقِيمَةِ كَدَفْعِ الْعَبْدِ او ځکه چي د قيمت ورکول د غلام ورکولو په څېر دي وَذَلِكَ لَا يَتَكَرَّرُ او دفع العبد [د غلام ورکول] نه مکرر کيږي فَهَذَا كَذَلِكَ نو دا [قيمت ورکول] هم داسي دي [يعني قيمت ورکول به هم نه مکرر کيږي] وَيَتَضَارَبُونَ بِالْحِصَصِ فِيهَا او په قيمت کي د حصو په اعتبار سره دوی ټوله شريکان کيږي وَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ لِكُلِّ وَاحِدٍ فِي حَالِ الْجِنَايَةِ عَلَيْهِ او د هريوه لپاره د مدبر هغه قيمت معتبر کيږي کوم چي پر مدبر د جنايت کولو په وخت کي [د مدبر قيمت] وي لِأَنَّ الْمَنْعَ فِي هَذَا الْوَقْتِ يَتَحَقَّقُ ځکه [د مالک] منع په همدې وخت کي ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿جنايات﴾ جمع د جنايةٌ ده: جرم، خطا، داسي جرم چي د هغه په وجه ضمان واجب سي. ﴿توالت﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: پرلپسې کېدل، يو تر بل وروسته کېدل. ﴿يتحقق﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ثابتېدل، موجودېدل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که يو مدبر پرلپسې جنايات او جرمونه وکړي، نو پر مالک صرف يو قيمت واجبيږي؛ ځکه که هغه د ورکولو قابل وای (يعني د دې صلاحيت يې لرلای چي د خپلو جناياتو په بدله کې مجني عليهم ته ورکول سوي وای)، نو صرف يول ځل ورکول (دفع واحد) به واجب وای. او قيمت ورکول د غلام ورکولو په درجه کې دي، لهذا قيمت به هم صرف يو واجب وي او بيا به مستحقين (مجني عليهم) په دې قيمت کې شريکان کيږي.

او د هر مجني عليه يعني پر کوم، کوم چا چي مدبر جنايت کړی وي د هغه په حق کې د مدبر د جنايت کولو د وخت قيمت معتبر دی؛ ځکه د هغه په حق کې د مالک له طرفه منع له هاغه وخت څخه موجوده سوه، لهذا که مدبر پر دريو کسانو مثلاً پر زيد، خالد او حامد باندې جنايت وکړي، او پر زيد د جنايت کولو په وخت کې د دې مدبر قيمت مثلاً ۱۰۰ درهمه وو، پر خالد د جنايت په وخت کې ۵۰ درهمه وو او پر ساجد د جنايت په وخت کې ۲۵ درهمه وو چي د بازاري نرخ د بدلون په وجه د هغه قيمت دومره متفاوت سو، نو په دې صورت کې چي د قاضي په حکم سره مالک کوم قيمت اداء کوي په هغه قيمت کې مجنی عليهم (زيد، خالد او حامد) د همدې قيمتونو په حساب سره شريکان کيږي، مثلاً که مالک ۱۵۷ درهمه ورکړي، نو د اول کس (زيد) حق ۱۰۰ درهمه کيږي او دويم (خالد) حق ۵۰ درهمه او د دريم (حامد) حق ۲۵ درهمه کيږي. يا په بله وينا دا چي هرڅومره قيمت چي وي، په مذکوره صورت کې به هغه اووه حصې کول کيږي چي له هغه څخه څلور حصې د زيد کيږي، دوې حصې د خالد او يوه حصه د حامد کيږي. (اشرف الهدايه)

## که مدبر دوباره جنايت وکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ جَنَى جِنَايَةً أُخْرَى فرمايي: بيا که مدبر بل جنايت وکړي وَقَدْ دَفَعَ الْمَوْلَى الْقِيمَةَ إِلَى وَلِيِّ الْأُولَى بِقَضَاءٍ حال دا چي مالک د اول جنايت ولي ته د قاضي په فيصله سره قيمت ورکړی وي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر مالک هيڅ شی نسته لِأَنَّهُ مَجْبُورٌ عَلَى الدَّفْعِ ځکه چي مالک پر ورکولو مجبوره دی.

**اللغات**: «قضاء» د قاضي فيصله، قضاوت. «الدفع» د فتح د باب مصدر دی، د دې باب يوه معنیٰ ده: ورکول (ورسپارل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که مدبر يو جنايت وکړی او مالک د قاضي په حکم سره د جنايت ولي ته د مدبر قيمت ورکړی، تر دې وروسته مدبر بيا دويم جنايت وکړی، نو په دې صورت کې پر مالک هيڅ ضمان نه واجبيږي؛ ځکه د ټولو جناياتو په صورت کې مالک صرف د يوه قيمت التزام کړی دی او دلته مالک هغه يو قيمت ټوله د اول جنايت ولي ته ورکړی دی او هغه پر ورکولو مجبوره وو ځکه چي قاضي حکم ورته کړی وو، لهذا اوس پر هغه هيڅ شی پاته نه سو.

قَالَ: وَإِنْ كَانَ الْمَوْلَىٰ دَفَعَ الْقِيمَةَ بِغَيْرِ قَضَاءٍ فرمايي: او كه مالک بغير د قاضي له فيصلې څخه قيمت ورکړی وي فَالْوَلِيُّ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ اتَّبَعَ الْمَوْلَىٰ نو د جنايت ولي ته اختيار دی چي که وغواړي نو په مالک دي پسې سي وَإِنْ شَاءَ اتَّبَعَ وَلِيَّ الْجِنَايَةِ او که وغواړي نو د [اول] جنايت په ولي دي پسې سي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: لَا شَيْءَ عَلَى الْمَوْلَىٰ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي پر مالک هيڅ شی نسته لِأَنَّهُ حِينَ دَفَعَ لَمْ تَكُنِ الْجِنَايَةُ الثَّانِيَةُ مَوْجُودَةً ځکه کله چي هغه قيمت ورکړی دی [په هغه وخت کي] دويم جنايت موجود نه وو فَقَدْ دَفَعَ كُلَّ الْحَقِّ إِلَىٰ مُسْتَحِقِّهِ نو ګواکي مالک ټوله حق د هغه مستحق ته ورکړی دی وَصَارَ كَمَا إِذَا دَفَعَ بِالْقَضَاءِ او دا داسي سو لکه هغه چي د قاضي په فيصله سره ورکړی وي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی أَنَّ الْمَوْلَىٰ جَانٍ بِدَفْعِ حَقِّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ طَوْعًا چي مالک په خپله رضا د دويم جنايت د ولي د حق ورکولو په وجه جنايت کونکی [مجرم] دی وَوَلِيُّ الْأُولَىٰ ضَامِنٌ بِقَبْضِ حَقِّهِ ظُلْمًا او د اول جنايت ولي په ظلم سره د هغه [ولي ثانية] پر حق د قبضه کولو په وجه ضامن دی فَيَتَخَيَّرُ نو ځکه د دويم جنايت ولي [ولي ثانية] به اختيار من وي.

**اللغات:** ﴿اتبع﴾ افتعال د باب ماضي ده: په چا پسې کېدل. له چا څخه د خپل قرض يا حق وغيره مطالبه کول (معجم الوسيط). ﴿جاني﴾ د ضرب د باب فاعل دی: جنايت کونکی (جنايتکاره). مجرم: ﴿طوعاً﴾ په رضا سره: په خوښي او رغبت سره.

**تشريح:** د دې حاصل دا دی چي په پورتني صورت کي که مالک د قاضي له حکم او فيصلې څخه بغير (د جنايت ولي ته) قيمت ورکړی وي، بيا مدبر دويم جنايت وکړي، نو اوس څه حکم دی؟.

فرمايي چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دلته د دويم جنايت ولي ته اختيار دی چي که خوښه يې وي نو خپل حق او تاوان دي د مدبر له مالک څخه وغواړي، يا که خوښه يې وي نو د اول جنايت له ولي څخه دي هغه وغواړي (يعني د دويم جنايت ولي ته له هر يوه څخه د خپل حق د مطالبې او اخيستلو اختيار سته).

او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي په دې صورت کي د مدبر پر مالک هيڅ شی واجب نه دي او د مخکيني صورت په څېر دلته هم هغه بري دی.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي کله دلته مالک د جنايت اولی ولي ته قيمت ورکړی دی په هغه وخت کي دويم جنايت موجود نه وو. او مالک و مستحق (يعني د جنايت اولی ولي) ته خپل ټوله حق يعني د مدبر ټوله قيمت اداء کړی دی. او دا داسي ده لکه مالک چي د قاضي په حکم سره اداء کړی دی. او د قاضي په حکم سره د اداء کولو په صورت کي د جنايت ثانيه د ولي لپاره پرمالک هيڅ شی نه واجبيږي، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به هم پرمالک هيڅ شی واجب نه وي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چي د جنايت ثانيه د ولي د حق په ضايع کولو کي د مالک او د جنايت أولیٰ دواړو لاس سته او هريو په دې باره کي مجرم دی، ځکه د مالک جرم خو دا دی چي په خپله خوښه او په خپل سر يې د قاضي له فيصلې څخه بغير د بل چا حق د جنايت أولیٰ ولي ته ورکړی دی. او د جنايت أولیٰ د ولي جرام دا دی چي د بل چا پر حق يې ناجائزه قبضه کړې ده. لهٰذا کله چي دلته دواړه مجرمان دي او د حق په ضايع کولو کي دواړه شريکان دي. نو په حق ورکولو کي به هم دواړه شريکان کيږي يعني د جنايت ثانيه ولي ته به له هر يوه څخه د خپل حق د مطالبې او تاوان اخيستلو اختيار وي.

**د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل وضاحت**

وَهٰذَا لِأَنَّ الثَّانِيَةَ مُقَارِنَةٌ حُكْمًا مِنْ وَجْهٍ او دا ځکه چي دويم جنايت په يوه اعتبار حکماً [د اول جنايت سره] متصل دی وَلِهٰذَا يُشَارِكُ وَلِيَّ الْجِنَايَةِ الْأُوْلٰى په همدې وجه د دويم جنايت ولي د اول جنايت د ولي سره شريک کيږي وَمُتَأَخِّرَةٌ حُكْمًا او [په يوه اعتبار دويم جنايت له اول جنايت څخه] حکماً وروسته دی مِنْ حَيْثُ إِنَّهُ تُعْتَبَرُ قِيْمَتُهُ يَوْمَ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ فِيْ حَقِّهَا په دې حيثيت سره چي د دويم جنايت په حق کي د مدبر هغه قيمت معتبر کيږي کوم چي د دويم جنايت کولو په ورځ [د مدبر قيمت] وي فَجُعِلَتْ كَالْمُقَارِنَةِ فِيْ حَقِّ التَّضْمِيْنِ نو د تضمين [ضمان واجبولو] په حق کي به دويم جنايت د متصل جنايت په څير ګرځول کيږي لِإِبْطَالِهِ مَا تَعَلَّقَ بِهِ مِنْ حَقِّ وَلِيِّ الثَّانِيَةِ ځکه مالک د دويم جنايت د ولي هغه حق باطل کړی کوم چي د مدبر سره متعلق دی عَمَلًا بِالشَّبَهَيْنِ [او داسي به ځکه کيږي] چي په دواړو مشابهتونو باندي عمل وسي.

**اللغات**: ﴿مقارنة﴾ د مفاعلې له بابه د واحد مؤنث اسم فاعل صيغه ده: متصل (جوخت)، ور سره يو ځای.

**تشریح:** له دې ځایه د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دلیل نور وضاحت کوي فرمایي چې دغه مدبر چې کوم دویم جنایت کړی دی (جنایتِ ثانیه) د هغه دوه حیثیته دي، په یوه حیثیت سره حکماً هغه د جنایتِ اولیٰ (اول جنایت) سره مقارن (متصل) دی او په دویم حیثیت سره حکماً هغه د جنایتِ اولیٰ څخه مؤخر (وروسته) دی، او د همدې مقارنت (متصل کېدل) په وجه د جنایتِ ثانیه ولي په څو صورتونو کې د اول جنایت دولي سره شریک کیږي او په مدبر کې حصه داره ګرځي. او له جنایتِ اولیٰ څخه د جنایتِ ثانیه د مؤخر کېدلو وجه دا ده چې په جنایتِ ثانیه کې د مدبر د هغه ورځې قیمت لره اعتبار ورکول کیږي کوم قیمت چې د دویم جنایت کولو په ورځ د مدبر وي، لنده دا چې د جنایتِ ثانیه دا دوه حیثیته او اړخه دي او موږ دلته پر دواړو عمل کړی دی. په دې توګه چې د مقارنت داړخ په اعتبار کولو سره موږ د مدبر پر مالک ضمان واجب کړی (یعني د تضمین [ضمان واجبولو] په حق کې موږ هغه د مقارن او متصل په شان وګڼی او ضمان مو پرې واجب کړی)، ځکه مالک د قاضي له حکم څخه بغیر په خپله خوښه قیمت ورکړی دی او د جنایتِ ثانیه دولي حق یې ضایع کړی دی کوم چې له مدبر څخه هغه ته حاصلېدل پکار وه ځکه د مدبر سره د هغه (جنایتِ ثاني دولي) حق هم متعلق وو، او څرنګه چې په دې حق ضایع کولو کې د مالک سره د جنایتِ اولیٰ ولي هم شریک دی، نو ځکه موږ د جنایتِ ثانیه ولي ته د دوی دواړو تر ګرېوان نیولو او له دواړو څخه د حق اخیستلو اختیار ورکړی دی.

او د مؤخر کېدلو داړخ په اعتبار کولو سره موږ د مدبر د دویم جنایت کولو د ورځې قیمت واجب کړی دی. (احسن الهدایه)

**یادونه:** په نتائج الافکار کې د مذکوره مضمون په هکله ډېر بحث سوی دی، د نور وضاحت لپاره هغه مطالعه کړئ! (نتائج الافکار ص: ۳۷۲)

## د جنایتکاره مدبر د آزادولو حکم

وَإِذَا أَعْتَقَ الْمَوْلَى الْمُدَبَّرَ وَقَدْ جَنَى جِنَايَاتٍ او کله چې مالک مدبر آزاد کړي حال دا چې هغه څو جنایتونه کړي وي لَمْ تَلْزَمْهُ إِلَّا قِيمَةٌ وَاحِدَةٌ نو پر مالک صرف یو قیمت لازمیږي لِأَنَّ الضَّمَانَ إِنَّمَا وَجَبَ عَلَيْهِ بِالْمَنْعِ ځکه [پر مالک] ضمان د منع په وجه واجبیږي [چې د تدبیر په وجه مالک د جنایتکاره مدبر له ورکولو څخه مانع وګرځېدی] فَصَارَ وُجُودُ الْإِعْتَاقِ مِنْ بَعْدُ وَعَدَمُهُ بِمَنْزِلَةٍ نو [تر منع] وروسته د اعتاق وجود او د هغه عدم [آزادول او نه آزادول] په یوه درجه کې سوه وَأُمُّ الْوَلَدِ بِمَنْزِلَةِ الْمُدَبَّرِ فِي جَمِيعِ مَا وَصَفْنَا او أم ولد د مدبر په درجه کې ده په هغه ټولو احکامو کې کوم چې موږ بیان کړل لِأَنَّ

لِلاسْتِيلَادِ مَانِعٌ مِنَ الدَّفْعِ كَالتَّدْبِيْرِ ځکه [خپله مينځه] اُم ولد جوړول [هم] د مدبر جوړولو په شان [د غلام] له ورکولو څخه مانع دي.

**اللغات:** ﴿استيلاد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: خپله مينځه اُم ولد کول. اُم ولد جوړول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې که مدبر ډېر جرمونه کړي وي او بيا مالک هغه آزاد کړي. نو پر مالک صرف يو قيمت واجبيږي او د هر جرم په بدله کې جلا ضمان نه واجبيږي: ځکه څرنګه چې د اعتاق (آزادولو) په وجه هغه د ورکولو قابل پاته نه سو (چې د جنايت په بدله کې ورکول سي) همداسې د تدبير په وجه هم هغه د ورکولو قابل پاته نه سو. نو د دواړو درجه سره برابره سوه.

او څرنګه چې مدبر نه سي ورکول کېدای. د اُم ولد هم دغه حال دی. لهذا په دې ټولو مسئلو کې اُم ولد هم د مدبر په درجه کې ده.

## که مدبر د خطاءً جنايت کولو اقرار وکړي نو څه حکم دی؟

وَإِذَا أَقَرَّ الْمُدَبَّرُ بِجِنَايَةِ الْخَطَإِ او کله چې مدبر د خطاءً جنايت اقرار وکړي لَمْ يَجُزْ إِقْرَارُهُ نو د هغه اقرار جائز نه دی وَلَا يَلْزَمُهُ بِهِ شَيْءٌ او د دې اقرار په وجه پر مالک هيڅ شی نه لازميږي عُتِقَ أَوْ لَمْ يُعْتَقْ [برابره ده] هغه آزاد کړی سوی وي او که نه وي آزاد کړی سوی لِأَنَّ مُوجَبَ جِنَايَةِ الْخَطَإِ عَلَى سَيِّدِهِ ځکه د خطاءً جنايت مُوجَب [ضمان] د غلام پر مالک دی وَإِقْرَارُهُ بِهِ لَا يَنْفُذُ عَلَى السَّيِّدِ او د ضمان په هکله د مدبر اقرار پر مالک نه نافذيږي.

**اللغات:** ﴿سيِّد﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: بادار، مالک يعني د غلام بادار (مولیٰ).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې که مدبر د خطاءً جنايت اقرار وکړي (مثلاً... د فلانکي لاس ما خطاءً پرېکړی دی)، نو د هغه دا اقرار معتبر او جائز نه دی او د دغه اقرار په وجه د هغه پر مالک ضمان (تاوان) نه واجبيږي، برابره ده هغه پر خپل حال مدبر پاته وي يا مالک هغه آزاد کړی وي. ځکه د مدبر د خطاءً جنايت ضمان د هغه پر مالک واجبيږي، نه پر مدبر، حال دا چې د مدبر اقرار پر مالک نه نافذيږي. لهذا د هغه په دې اقرار سره به پر مالک ضمان هم نه واجبيږي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم



# بَابُ غَصْبِ الْعَبْدِ وَالْمُدَبَّرِ وَالصَّبِيِّ وَالْجِنَايَةِ فِيْ ذٰلِكَ

## (دا) باب د غلام، مدبر او بچي د غصب کولو او په هغه کي د جنايت کولو (په بيان کی) دی

**تشريح:** مخکي تر دې د مدبر د جناياتو مسائل بيان سول، اوس په دې باب کي پر مدبر واقع کېدونکي جنايات بيانول کيږي او کوم کسان چي د مدبر سره لاحق دي (يعني غلام وغيره) د هغو بيان هم کيږي. صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي مخکي د مدبر او غلام د جنايت بيان وو. او په دې باب کي د جنايت او غصب دواړو بيان کيږي، او جنايت مفرد دی او جنايت مع الغصب مرکب دی او مفرد له مرکب څخه مخکي وي. (بنايه ۱۲/ ۳۹۵)

### د لاس پرېکړی سوي غلام د غصب کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ قَطَعَ يَدَ عَبْدِهِ فرمايي: او څوک چي د خپل غلام لاس پرېکړي ثُمَّ غَصَبَهُ رَجُلٌ بيا يو سړی هغه غصب کړي وَمَاتَ فِيْ يَدِهِ مِنَ الْقَطْعِ او هغه [غلام] د لاس پرېکېدلو په وجه د ده [غاصب] په قبضه کي مړ سي فَعَلَيْهِ قِيمَتُهُ أَقْطَعَ نو پر غاصب د هغه د لاس پرېکړی سوي حالت قيمت [واجب] دی. وَإِنْ كَانَ الْمَوْلٰى قَطَعَ يَدَهُ فِيْ يَدِ الْغَاصِبِ او که مالک د غاصب په قبضه کي د هغه لاس پرېکړی وي فَمَاتَ مِنْ ذٰلِكَ فِيْ يَدِ الْغَاصِبِ بيا غلام د هغه قطع په وجه د غاصب په قبضه کي مړ سي لَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر غاصب هيڅ شی نسته وَالْفَرْقُ أَنَّ الْغَصْبَ قَاطِعٌ لِلسِّرَايَةِ او [په دواړو صورتونو کي] فرق دا دی چي غصب د سرايت قطع کونکی [او ختمونکی] دی لِأَنَّهُ سَبَبُ الْمِلْكِ كَالْبَيْعِ ځکه چي غصب د ملکيت [مالک کېدلو] سبب دی لکه بيع فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ هَلَكَ بِآفَةٍ سَمَاوِيَّةٍ نو دا به داسي وي لکه هغه [غلام] چي د يو آسماني آفت په وجه هلاک سوی وی فَتَجِبُ قِيمَتُهُ أَقْطَعَ نو ځکه د هغه د اقطع والي د حالت قيمت به واجب وي وَلَمْ يُوجَدِ الْقَاطِعُ فِي الْفَصْلِ الثَّانِيْ او په دويم صورت کي [د سرايت] قطع کونکی موجود نه سو فَكَانَتِ السِّرَايَةُ مُضَافَةً إِلَى الْبِدَايَةِ نو ځکه

سرايت به د شروع وطرف ته مضاف وي فَصَارَ الْمَوْلٰى مُتْلِفًا لهذا مالک تلفونکی [هلاکونکی] وګرځېدی فَيَصِيْرُ مُسْتَرِدًّا نو مالک به [له غاصب څخه] واپس اخيستونکی وګرځي كَيْفَ وَأَنَّهُ اِسْتَوْلٰى عَلَيْهِ څنګه به نه وي حال دا چي مالک پر هغه قابض سوی دی وَهُوَ اسْتِرْدَادٌ او دا [قابض کېدل] وپس اخيستل دي فَيَبْرَأُ الْغَاصِبُ عَنِ الضَّمَانِ نو ځکه غاصب به له ضمان څخه بري سي.

**اللغات**: ﴿أقطع﴾ په معنیٰ سره د مفعول دی: مقطوع اليد. لاس پرېکړی سوی. من قطعت احدیٰ يديه أو كلتاهما (معجم). ﴿مضافة﴾ د افعال د باب مؤنث مفعول دی: منسوب. نسبت کړی سوی. ﴿متلف﴾ د افعال د باب فاعل دی: تلفونکی. ضايع کونکی. هلاکونکی. ﴿مسترد﴾ د استفعال د باب فاعل دی: واپس اخيستونکی. ﴿استولیٰ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: پر يو شي قابض کېدل (په لاس او قبضه کي اخيستل)، غالب او قادر کېدل. (معجم)

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که يو څوک د خپل غلام لاس پرېکړي، بيا يو بل څوک مثلاً زيد دا مقطوع اليد غلام غصب کړي او غلام د غاصب (زيد) په قبضه کي د هغه مخکنی لاس پرېکېدلو په وجه مړ سي، نو په دې صورت کي پر غاصب (زيد) باندي د مقطوع اليد غلام قيمت واجبيږي او د سالم غلام قيمت نه پرې واجبيږي. ها! که مالک د غاصب په قبضه کي د خپل غلام لاس پرېکړي او بيا غلام د هغه قطع په وجه مړ سي، نو په دې صورت کي پر غاصب هيڅ شی نه واجبيږي.

والفرق إلخ: د دې دواړو صورتونو تر مينځ فرق دا دی چي غصب د زخم سرايت قطع کوي؛ ځکه څرنګه چي بيع د ملکيت سبب ده، همداسي غصب هم د ملکيت سبب دی، لهذا کله چي د غصب په وجه سرايت منقطع سو، نو بيا د غاصب په قبضه کي د غلام مړ کېدل داسي دي لکه په يو آسماني آفت سره مړ کېدل، او په داسي صورت کي پر غاصب بعينه د مغصوب قيمت واجبيږي او څرنګه چي دلته مغصوب مقطوع اليد دی، نو ځکه دلته پر غاصب د مقطوع اليد غلام قيمت واجبيږي.

د دې په خلاف په دويم صورت کي د سرايت قاطع نسته؛ ځکه مالک د غاصب په قبضه کي د غلام لاس پرېکړی دی، نو ځکه د قطع سرايت د بدايت وطرف ته منسوب کيږي او داسي ګرځي لکه مالک چي له غاصب څخه خپل مغصوب غلام اخيستی وي او تر اخيستلو (قبضه کولو) وروسته يې د هغه لاس پرېکړی وي، لهذا همدا مالک د هغه هلاکونکی سو او د هغه په هلاکت کي د غاصب هيڅ لاس نسته. نو ځکه په دې صورت کي پر غاصب هيڅ شی نه واجبيږي او له ضمان (تاوان) څخه بري کيږي. (احسن الهدايه)

## که محجور علیه غلام د غصب په حالت کې جنایت وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا غَصَبَ الْعَبْدُ الْمَحْجُوْرُ عَلَيْهِ عَبْدًا مَحْجُوْرًا عَلَيْهِ فرمايي: او کله چې محجور علیه غلام [يعني چې پر هغه د کاروبار بنديز لګول سوی وي] يو محجور علیه غلام غصب کړي فَمَاتَ فِيْ يَدِهِ بيا هغه د ده په قبضه کې مړ سي فَهُوَ ضَامِنٌ نو غاصب ضامن [ذمه وار] دی لِأَنَّ الْمَحْجُوْرَ عَلَيْهِ مُؤَاخَذٌ بِأَفْعَالِهِ ځکه چې محجور علیه غلام په خپلو فعلونو سره مواخذه کيږي [يعني هغه هم په خپل فعل او عمل سره نيول کيږي او سزا ورکول کيږي].

**اللغات:** ﴿محجور﴾ د نصر د باب مفعول دی. محجور علیه: هغه کس چې له يو کار او تصرف کولو څخه منع کړی سوی وي، العبد المحجور عليه: هغه غلام چې خپل مالک له کاروبار څخه منع کړی وي. يا په بله وينا دا چې د تجارت او تصرف کولو پابندي پرې لګول سوې وي.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې محجور علیه غلام په خپلو افعالو کې مأخوذ کيږي. لهذا که هغه يو محجور علیه غلام غصب کړي او مغصوب غلام د غاصب په قبضه کې مړ سي، نو پر غاصب د مغصوب ضمان واجبيږي. (احسن الهدايه)

## که مغصوب مدبر تر واپسۍ وروسته بيا جنايت وکړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ مُدَبَّرًا او څوک چې يو مدبر غلام غصب کړي فَجَنٰى عِنْدَهُ جِنَايَةً او هغه د ده [غاصب] سره يو جنايت وکړي ثُمَّ رَدَّهُ عَلَى الْمَوْلٰى بيا غاصب هغه مالک ته واپس کړي فَجَنٰى عِنْدَهُ جِنَايَةً أُخْرٰى بيا د مالک سره هغه بل جنايت وکړي فَعَلَى الْمَوْلٰى قِيْمَتُهُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ نو پر مالک د هغه قيمت [واجب] دی چې هغه به د دوی دواړو تر مينځ نيم په نيمه وي [يعني دا قيمت به د دواړو جنايتونو د وليانو تر مينځ نيم په نيمه تقسيمول کيږي] لِأَنَّ الْمَوْلٰى بِالتَّدْبِيْرِ السَّابِقِ أَعْجَزَ نَفْسَهُ عَنِ الدَّفْعِ ځکه مالک د مخکيني تدبير [مدبر جوړولو] په وجه خپل ځان [د جنايتکاره مدبر] له ورکولو څخه عاجزه کړی مِنْ غَيْرِ أَنْ يَصِيْرَ مُخْتَارًا لِلْفِدَاءِ بغير له دې چې هغه د فدیې اختيارونکی وګرځي فَيَصِيْرُ مُبْطِلًا حَقَّ أَوْلِيَاءِ الْجِنَايَةِ نو ځکه هغه به د جنايت د وليانو حق باطلونکی وګرځي إِذْ حَقُّهُمْ فِيْهِ ځکه د هغو حق په ورکولو کې دی [چې د جنايت په بدله کې هغو ته جنايتکاره مدبر ورکول سي] وَلَمْ يَمْنَعْ إِلَّا رَقَبَةً وَاحِدَةً او مالک صرف يوه رقبه [يو مدبر غلام] منع کړی دی فَلَا يُزَادُ عَلٰى قِيْمَتِهَا نو ځکه

د هغه پر قیمت به زیاتوب نه کیږي وَيَكُونُ بَيْنَ وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ نِصْفَيْنِ او دا قیمت به د دواړو جنایتونو د ولیانو تر مینځ نیم په نیمه وي لِاسْتِوَائِهِمَا فِي الْمُوْجِبِ ځکه چي دوی دواړه [د ضمان] په موجب کي سره برابر دي.

**اللغات**: ﴿ردّه﴾ د نصر د باب ماضي ده: واپس کول، واپس ورکول. ﴿تدبیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: مدبر جوړول، د غلام آزادي پر خپل مرګ معلقه کول (چي زما تر مرګ وروسته ته آزادیې).

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که زید مثلاً د خالد مدبر غلام غصب کړي او هغه د غاصب (زید) په قبضه کي یو جنایت وکړي، تر دې وروسته غاصب دا مدبر غلام خپل مالک (خالد) ته واپس وکړي او بیا هغه د خپل مالک په قبضه کي یو جنایت وکړي. نو پر مالک د دې مدبر ټوله قیمت واجبیږي او دا قیمت به د دواړو جنایتونو د ولیانو تر مینځ نیم په نیمه تقسیمول کیږي.

پر مالک ټوله قیمت ځکه واجبیږي چي هغه مخکي خپل دا غلام مدبر جوړ کړی دی او په دې سره یې د غلام ورکولو (دفع العبد) لاره بنده کړې ده، حال دا چي په داسي کولو سره هغه د فدیې اختیارونکی هم نه ګرځي (چي د دفع العبد پر ځای صرف فدیه [د جنایت ارش] پرې واجب سي)، لهذا د تدبیر (مدبر جوړولو) په وجه مالک د جنایت د ولیانو حق باطلونکی سو؛ ځکه د جنایت د ولیانو صرف په دفع العبد کي دی (چي هغو ته دا جنایتکاره مدبر غلام ورکول سي)، او څرنګه چي مالک د تدبیر په وجه صرف یوه رقبه یعني دا یو غلام له دفع (ورکولو) څخه منع کړی دی، نو ځکه پر هغه به صرف د یوه غلام قیمت واجب وي او دا قیمت به د دواړو جنایتونو د ولیانو تر مینځ نیم په نیمه تقسیمیږي؛ ځکه د ضمان په موجب کي دواړه ولیان سره برابر دي. (احسن الهدایه)

## په پورتنۍ مسئله کي پر غاصب د مالک د رجوع کولو حکم

قَالَ: وَيَرْجِعُ الْمَوْلَى بِنِصْفِ قِيْمَتِهِ عَلَى الْغَاصِبِ فرمایي: او مالک به د دې مدبر په نیم قیمت سره پر غاصب رجوع کوي لِأَنَّهُ أُسْتُحِقَّ نِصْفُ الْبَدَلِ بِسَبَبٍ كَانَ فِيْ يَدِ الْغَاصِبِ ځکه د بدل نصف [یعني نیم قیمت] په داسي سبب سره مستحق سوی دی چي هغه سبب د غاصب په قبضه کي [صادر سوی] دی فَصَارَ كَمَا إِذَا اسْتُحِقَّ نِصْفُ الْعَبْدِ بِهٰذَا السَّبَبِ نو داسي سو لکه نیم غلام چي په دې سبب سره مستحق سوی وي.

**اللغات**: ﴿یرجع به﴾ د افعال د باب مضارع ده: په یو شي سره رجوع کول، شی واپس خپل اخیستل.
﴿أُسْتُحِقَّ﴾ د استفعال له بابه د ماضي مجهولي صیغه ده: یو شی د چا مُستحق ختل، مُستحق کېدل.

**تشريح**: دعبارت حاصل دا دی چې کله مالک دمدبر ټوله قیمت د دواړو جنایتونو ولیانو ته ورکړي، نو بیا به مالک له غاصب څخه نیم قیمت واپس اخلي: ځکه دبدل (قیمت) نصف په داسي سبب سره مستحق ختلی دی (یا په بله وینا دا چې نیم قیمت په داسي سبب سره د جنایت دولي مستحق سوی دی او په داسي سبب سره هغه له مالک څخه اخیستی دی) کوم چې دغاصب سره صادر سوی دی یعني په مذکوره مسئله کي مالک نیم قیمت دهغه جنایت په سبب ورکړی دی کوم چې دغاصب په قبضه کي واقع سوی دی، نو دا داسي سوه لکه په همدې سبب سره چې نصف غلام دغاصب په قبضه کي مستحق سوی وي، او ښکاره ده چې که دغاصب په قبضه کي نیم غلام مستحق سي (یعني یو کس په نیم غلام کي خپل استحقاق ثابت کړي)، نو غاصب به دهغه ضمان (تاوان) اداء کوي (یعني مستحق کس ته به په ضمان کي دغلام نیم قیمت ورکوي)، نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم غاصب نیم قیمت اداء کوي.

## مذکوره قیمت د جنایت ولي ته ورکول او د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک

قَالَ: وَيَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى فرمايي: او مالک به دا نصف [نیم قیمت] د اول جنایت ولي ته ورکوي ثُمَّ يَرْجِعُ بِذَلِكَ عَلَى الْغَاصِبِ بیا به په دې نصف سره پر غاصب رجوع کوي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَقَالَ مُحَمَّدٌ: يَرْجِعُ بِنِصْفِ قِيمَتِهِ فَيُسَلِّمُ لَهُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چې مالک به د مدبر په نصف قیمت سره رجوع کوي او هغه نصف د ده لپاره مخصوص کیږي [یعني خپله به یې اخلي او د جنایتِ اُولیٰ ولي ته به یې نه ورکوي] لِأَنَّ الَّذِي يَرْجِعُ بِهِ الْمَوْلَى عَلَى الْغَاصِبِ ځکه هغه مقدار کوم چې مالک په هغه سره پر غاصب رجوع کوي عِوَضُ مَا سَلَّمَ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى دا دهغه شه عوض دی کوم چې مالک د اول جنایت ولي ته ورکړی دی فَلَا يَدْفَعُهُ إِلَيْهِ نو ځکه دا نصف به [بیا] د اول جنایت ته نه ورکوي كَيْلَا يُؤَدِّيَ إِلَى اجْتِمَاعِ الْبَدَلِ وَالْمُبْدَلِ فِي مِلْكِ رَجُلٍ وَاحِدٍ د دې لپاره چې دا رسول ونه کړي د یوه کس په ملکیت کي د بدل او مبدل دواړو د جمع کېدلو. وَكَيْلَا يَتَكَرَّرَ الِاسْتِحْقَاقُ او د دې لپاره چې استحقاق مکرر نه سي.

**اللغات**: ﴿يدفعه﴾ د فتح د باب مضارع ده: ورکول، اداء کول. ﴿فَيُسَلَّم﴾ د سمع د باب مضارع ده، د دې باب خپله معنیٰ خو ده: سالم کېدل، سالم پاتېدل او بري کېدل...، لېکن کله چې د هغه په صله کي "لَهُ" راسي نو معنیٰ یې ده: (مال یا داسي بل شی دیو چا لپاره) مخصوص کېدل، خاص کېدل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې کله مالک له غاصب څخه د مدبر نیم قیمت واخلي، نو مالک به هغه بیا د جنایتِ اُولیٰ ولي ته ورکوي، تر دې وروسته به مالک له غاصب څخه نیم قیمت نور اخلي او هغه د مالک لپاره مخصوص کیږي، دا د شیخینو رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

**وقال محمد إلخ**: د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چې مالک به صرف یو وار له غاصب څخه نیم قیمت اخلي او هاغه د مالک لپاره مخصوص کیږي یعني د ځان سره به یې ساتي او د جنایتِ اُولیٰ ولي ته به یې نه ورکوي؛ ځکه مالک چې له غاصب څخه کوم نصف قیمت اخلي، دا د هغه نصف قیمت عوض او بدل دی کوم چې مالک د جنایتِ اُولیٰ ولي ته ورکړی دی، اوس که مالک دا بل نصف هم ده ته ورکړي، نو د دې ولي په حق کې به د بدل او مبدل اجتماع لازمه سي او د هغه په استحقاق کې به تکرار هم لازم سي او دا دواړه شیان باطل دي، لهذا د جنایتِ اُولیٰ ولي ته به دا نصف ورکول هم باطل وي، نو ځکه هغه به مالک د ځان سره ساتي او د جنایتِ اولیٰ ولي ته به یې نه ورکوي.

**د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل**

وَلَهُمَا: أَنَّ حَقَّ الْأَوَّلِ فِيْ جَمِيْعِ الْقِيْمَةِ او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل: دا دی چې د اول یوه [یعني د جنایتِ اُولیٰ د ولي] حق په ټوله قیمت کې دی لِأَنَّهُ حِيْنَ جَنَىٰ فِيْ حَقِّهِ ځکه کله چې مدبر د ده په حق کې جنایت وکړی لَا يُزَاحِمُهُ أَحَدٌ نو د ده هیڅ مزاحم [مقابل] نه وو وَإِنَّمَا انْتَقَصَ بِاعْتِبَارِ مُزَاحَمَةِ الثَّانِيْ او د ده حق د دویم یوه د مزاحم کېدلو په اعتبار سره کم سوی دی فَإِذَا وَجَدَ شَيْئًا مِنْ بَدَلِ الْعَبْدِ فِيْ يَدِ الْمَالِكِ فَارِغًا لهذا کله چې دئ [یعني اول یو] د مالک په لاس کې د غلام له بدل څخه داسي شی [دومره مقدار] ومومي کوم چې [د بل یوه له حق څخه] فارغ وي يَأْخُذُهُ نو دئ به هغه اخلي لِيَتِمَّ حَقُّهُ د دې لپاره چې د ده حق پوره سي فَإِذَا أَخَذَهُ مِنْهُ نو کله چې دئ هغه له مالک څخه واخلي يَرْجِعُ الْمَوْلَىٰ بِمَا أَخَذَهُ عَلَى الْغَاصِبِ نو مالک به د ده په اخیستل سوي مقدار سره پر غاصب رجوع کوي [یعني له غاصب څخه به یې اخلي] لِأَنَّهُ اسْتُحِقَّ مِنْ يَدِهِ بِسَبَبٍ كَانَ فِيْ يَدِ الْغَاصِبِ ځکه دا مقدار د داسي سبب په وجه د مالک د لاس څخه مستحق سوی [اخیستل سوی] دی چې هغه سبب د غاصب په قبضه کې [صادر سوی] دی.

**اللغات**: ﴿انتقص﴾ د افتعال د باب ماضي ده: کمېدل، ناقص کېدل. ﴿لا يزاحمه﴾ د مفاعلې له بابه د نفي صيغه ده: مقابل کېدل، معارض او ټکر کېدل، تنګې کول.

**تشريح**: په دې عبارت کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چې د جنايت أولىٰ ولي د مدبر د ټوله قيمت مستحق دی؛ ځکه کله چې د ده په حق کې مدبر جنايت کړی وو، په هغه وخت کې د ده هيڅوک مزاحم نه وو، لېکن کله چې مدبر دويم جنايت وکړی نو د ده په حق کې مزاحم موجود سو او د ده حق کم سو او نصف وګرځېدی. حال دا چې دئ د مدبر د ټوله قيمت مستحق سوی دی. لهذا زموږ لپاره د جنايت أولي د ولي حق پوره کول ضروري دي او د پوره کولو يوازينۍ لاره همدا ده چې مالک له غاصب څخه کوم نيم قيمت واخلي، هغه دې بيا د جنايت اولىٰ ولي ته ورکړي چې د هغه حق پوره سي. او کله چې د جنايت أولىٰ ولي دا نصف بيا له مالک څخه واخلي. نو مالک به له غاصب څخه دويم وار بل نيم قيمت اخلي او دا نيم قيمت د مالک لپاره مخصوص کيږي، د دې وجه څه ده؟ ځکه دا نصف کوم چې د جنايت أولىٰ ولي بيا له مالک څخه اخيستی دی دا د هغه جنايت په سبب پر مالک واجب سوی دی کوم چې د غاصب په قبضه کې صادر سوی وو (ځکه ښکاره ده چې اول جنايت د غاصب په قبضه کې صادر سوی دی). نو ځکه مالک ته به له غاصب څخه دويم وار د بل نصف د اخيستلو حق او اختيار وي.

**يادونه**: په پورتنۍ مسئله کې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله قول راجح دی. لکه څرنګه چې څه وروسته به هم موږ د کتاب "القول الراجح" په حواله شره د دې وضاحت وکړو. او پاته سو د امام محمد رَحِمَهُ الله د دليل جواب. نو هغه هم په "القول الراجح" کې نقل سوی دی او ستاسي د آسانۍ لپاره موږ د هغه عبارت رانقل کړو چې د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل نور واضح سي. د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا وو: لأنّ الذى يرجع به المولى على الغاصب عوض ما سلم لولى الجناية الأولى، فلا يدفعه إليه كيلا يؤدى إلى اجتماع المبدل والمبدل فى ملك رجل واحد.

قال تاج الشريعة جوابًا عنه من قبل الإمامين (الشيخين) وهما يقولان: ليس هٰذا عوض ما أخذه ولى الجناية الأولى حتى يجتمع البدل والمبد فى ملك رجل واحد إلى أن قال.....ثم الأظهر فى الجواب.....ما قال قاضيخان رَحِمَهُ الله: أنّ ما أخذه المولى من الغاصب هو بدل عن المدفوع إلى ولى الجناية الأولى من العبد فيما بين المولى والغاصب، وأمّا فى حق ولي الجناية الأولى فلا يعتبر بدلًا عن العبد بل يعتبر بدلًا عن الميت (مجني عليه)، ويكون الشئ الواحد بدلًا عن عين فى حق انسان ويكون بدلًا عن شيء آخر فى حق غيره. االقول الراجح ج: ۲. ص: ۱۳۶۳

## د پورتني مذکوره مسئلې برعکس صورت

قَالَ: وَإِنْ كَانَ جَنٰى عِنْدَ الْمَوْلٰى فرمايي: او که مدبر د مالک سره جنايت وکړي فَغَصَبَهٗ رَجُلٌ بيا يو سړی هغه [مدبر] غصب کړي فَجَنٰى عِنْدَهٗ جِنَايَةً أُخْرٰى او هغه د غاصب سره بل جنايت وکړي فَعَلَى الْمَوْلٰى قِيْمَتُهٗ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ نو پر مالک د هغه قيمت واجب دی چې هغه به د دواړو [جنايتونو د وليانو] ترمينځ نيم په نيمه وي وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ الْقِيْمَةِ عَلَى الْغَاصِبِ او مالک به په نصف قيمت سره پر مالک رجوع کوي لِمَا بَيَّنَّا فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ په اول صورت کې بيان کړی دی غَيْرَ أَنَّ اسْتِحْقَاقَ النِّصْفِ حَصَلَ بِالْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ خو د نصف [نيم قيمت] استحقاق د دويم جنايت په وجه حاصل سوی دی إِذْ كَانَتْ هِيَ فِيْ يَدِ الْغَاصِبِ ځکه دويم جنايت د غاصب په قبضه کې سوی دی فَيَدْفَعُهٗ إِلٰى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُوْلٰى نو ځکه مالک به هغه نصف د اول جنايت ولي ته ورکوي وَلَا يَرْجِعُ بِهٖ عَلَى الْغَاصِبِ او په هغه سره به پر مالک رجوع نه کوي وَهٰذَا بِالْإِجْمَاعِ او دا [حکم] په اجماع سره دی [متفق عليه دی].

**اللغات**: ﴿يد﴾ لاس. قبضه. ﴿يرجع﴾ د ضرب د باب مضارع ده، چې په صله کې يې باء ذکر سي لکه دلته يرجع بالنصف نو معنىٰ يې ده: په هغه (نصف) سره رجوع کول يعني نصف واپس ځني اخيستل.

**تشريح**: صورت د مسئلې هاغه دی دی کوم چې په ما قبل کې بيان سو. خو فرق دومره دی چې په ما قبل کې د مدبر اول جنايت د غاصب په قبضه کې صادر سوی دی او دويم جنايت د مالک په قبضه کې. او دلته اول جنايت د مالک په قبضه صادر سوی دی او دويم د غاصب په قبضه کې. نو په داسې صورت کې پر مالک د مدبر ټوله قيمت واجبيږي چې هغه به د دواړو جنايتونو وليانو ته نيم په نيمه ورکوي او بيا به مالک له غاصب څخه نيم قيمت اخلي او د جنايت اولىٰ ولي ته به يې ورکوي. لېکن په دې صورت کې به مالک له غاصب څخه دوباره بل نصف (نيم قيمت) نه اخلي؛ ځکه چې دلته اول جنايت د مالک په قبضه کې صادر سوی دی او په هغه کې د غاصب هيڅ لاس نسته. نو ځکه غاصب به دوباره بل نصف نه اداء کوي. ها! دويم جنايت د غاصب په قبضه کې صادر سوی دی. نو ځکه غاصب به صرف د هغه نصف اداء کوي.

صاحب د هدايې رحمه الله فرمايي چې دا حکم متفق عليه دی يعني د امام محمد رحمۀ الله په نيز هم حکم دا دی چې له غاصب اخيستل سوی نيم قيمت به مالک د جنايت اولىٰ ولي ته ورکوي: ځکه په دې صورت کې بدل او مبدل د يوه کس په ملکيت کې نه جمع کيږي.

## په مذکوره مسئله کې د مدبر پر ځای د خالص غلام د جنایت حکم

ثُمَّ وَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِي الْعَبْدِ بیا امام محمد رَحِمَهُ الله مسئله د غلام په باره کې وضع کړې ده فَقَالَ: وَمَنْ غَصَبَ عَبْدًا فَجَنَى فِي يَدِهِ نو فرمایلي یې دي: او څوک چې غلام غصب کړي بیا هغه د غاصب په قبضه کې جنایت وکړي ثُمَّ رَدَّهُ بیا غاصب هغه [و مالک ته] واپس کړي فَجَنَى جِنَايَةً أُخْرَى بیا هغه بل جنایت وکړي فَإِنَّ الْمَوْلَى يَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَتَيْنِ نو مالک به هغه غلام د دواړو جنایتونو ته ولي ته ورکوي ثُمَّ يَرْجِعُ عَلَى الْغَاصِبِ بِنِصْفِ الْقِيمَةِ بیا به پر غاصب د هغه په نصف قیمت سره رجوع کوي فَيَدْفَعُهُ إِلَى الْأَوَّلِ او دا نصف قیمت به اول یوه [یعني د اول جنایت ولي] ته ورکوي وَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْغَاصِبِ او په هغه سره به پر مالک [بیا] رجوع کوي [یعني له مالک څخه به بل نصف اخلي] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حکم] د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ۞: يَرْجِعُ بِنِصْفِ الْقِيمَةِ فَيُسَلَّمُ لَهُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: چې مالک به په نصف قیمت سره پر مالک رجوع کوي او هغه [نصف قیمت] د مالک لپاره مخصوص کیږي وَإِنْ جَنَى عِنْدَ الْمَوْلَى ثُمَّ غَصَبَهُ او که غلام د مالک سره جنایت وکړي بیا یو څوک هغه غصب کړي فَجَنَى فِي يَدِهِ بیا هغه د غاصب په قبضه کې جنایت وکړي دَفَعَهُ الْمَوْلَى نِصْفَيْنِ نو مالک به هغه غلام [د دواړو جنایتونو ولیانو ته] نیم په نیمه ورکوي وَيَرْجِعُ بِنِصْفِ قِيمَتِهِ او د هغه په نصف قیمت سره به [پر غاصب] رجوع کوي فَيَدْفَعُهُ إِلَى الْأَوَّلِ او هغه [نصف قیمت] به اول یوه ته ورکوي وَلَا يَرْجِعُ بِهِ او په هغه سره به [پر غاصب بیا] رجوع نه کوي وَالْجَوَابُ فِي الْعَبْدِ كَالْجَوَابِ فِي الْمُدَبَّرِ فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَا او جواب [حکم] د غلام په باره کې د مدبر د جواب په شان دی په هغه ټولو صورتونو کې کوم چې موږ ذکر کړل إِلَّا أَنَّ فِي هٰذَا الْفَصْلِ يَدْفَعُ الْمَوْلَى الْعَبْدَ خو [فرق یې دا دی] چې په دې [د غلام په] صورت کې به مالک غلام ورکوي وَفِي الْأَوَّلِ يَدْفَعُ الْقِيمَةَ او په اول [د مدبر صورت] کې به [د مدبر] قیمت ورکوي.

**تشریح**: د مذکوره عبارت مسئله بعینهٖ د مخکیني عبارت د مسئلې په څېر ده، بس فرق یې دا دی چې په ما قبل کې جنایت کوونکی مدبر دی او دلته جنایت کوونکی خالص غلام دی (کوم چې مدبر نه

۞ القول الراجح: قول الشیخین رَحِمَهُ الله، حیث أجاب عن قول محمد رَحِمَهُ الله أكثر الفقهاء، انظر للتفصیل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۶۳]

وي)، او د دوی دواړو تر مینځ صرف دومره فرق دی چې د مدبر په صورت کې به دهغه قیمت ورکوي (لکه مخکې چې ذکر سوه) او د غلام په صورت کې به خودي غلام ورکوي، باقي صورت او احکام هاغه دي کوم چې د مخکنۍ مسئلې دي چې هغه مخکې په تفصیل سره بیان سول.

## جنایتکاره مدبر غلام دوباره غصب کول او د هغه دوباره جنایت کول (حکم او تفصیل)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَمَنْ غَصَبَ مُدَبَّرًا او څوک چې یو مدبر غصب کړي فَجَنَىٰ عِنْدَهُ جِنَايَةً او هغه د غاصب سره یو جنایت وکړي ثُمَّ رَدَّهُ عَلَى الْمَوْلَىٰ بیا غاصب هغه [مدبر] مالک ته واپس کړي ثُمَّ غَصَبَهُ ثُمَّ جَنَىٰ عِنْدَهُ جِنَايَةً بیا غاصب هغه غصب کړي او مدبر د هغه سره بیا جنایت وکړي فَعَلَى الْمَوْلَىٰ قِيمَتُهُ بَيْنَهُمَا نِصْفَانِ نو پر مالک د هغه [یو] قیمت [واجب] دی چې هغه به د دواړو [جنایتونو د ولیانو] تر مینځ نیم په نیمه وي لِأَنَّهُ مَنَعَ رَقَبَةً وَاحِدَةً بِالتَّدْبِيرِ ځکه د تدبیر [مدبر جوړولو] په وجه مالک یوه رقبه منع کړې ده فَيَجِبُ عَلَيْهِ قِيمَةٌ وَاحِدَةٌ نو ځکه پر مالک به یو قیمت واجب وي ثُمَّ يَرْجِعُ بِقِيمَتِهِ عَلَى الْغَاصِبِ بیا به مالک د هغه په قیمت سره پر مالک رجوع کوي لِأَنَّ الْجِنَايَتَيْنِ كَانَتَا فِي يَدِ الْغَاصِبِ ځکه دواړه جنایتونه د غاصب په قبضه کې [واقع] سوي دي فَيَدْفَعُ نِصْفَهَا إِلَى الْأَوَّلِ بیا مالک به د هغه نصف [نیم قیمت] اول یوه [د جنایت اولیٰ ولي] ته ورکوي لِأَنَّهُ اسْتَحَقَّ كُلَّ الْقِيمَةِ ځکه هغه د ټوله قیمت مستحق سوی دی لِأَنَّ عِنْدَ وُجُودِ الْجِنَايَةِ عَلَيْهِ لَا حَقَّ لِغَيْرِهِ ځکه پر هغه د جنایت د وجود [واقع کېدلو] په وخت کې بل چا لره [یعني د جنایت ثانیه ولي] لره حق نه وو وَإِنَّمَا انْتَقَصَ بِحُكْمِ الْمُزَاحِمَةِ مِنْ بَعْدُ او د اول یوه حق خو وروسته [د جنایت ثانیه دولي] د مزاحم کېدلو په وجه کم سو.

**اللغات:** ﴿رقبة﴾ غاړه، د مملوک ذات، مراد: غلام.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که یو څوک د بل چا مثلاً د خالد مدبر غلام غصب کړي او هغه د غاصب په قبضه کې یو جنایت وکړي، بیا غاصب هغه خپل مالک (خالد) ته واپس کړي. لېکن څو وخت وروسته غاصب بیر ته داغه مدبر غصب کړي او هغه د غاصب په قبضه کې بل جنایت وکړي، نو د دې حکم دا دی چې مالک (خالد) به د دواړو جنایاتو ولیانو ته د دې مدبر نیم، نیم قیمت ورکوي او له غاصب څخه به د مدبر ټوله قیمت اخلي؛ ځکه دواړه جنایتونه د همدې غاصب په قبضه کې واقع سوي دي، لهذا د دواړو لیانو د حق ضمان (تاوان) به پر غاصب واجب وي، نو ځکه هغه به د مدبر

ټوله قیمت مالک ته ورکوي او بیا به مالک له دې (ټوله قیمت) څخه نیم قیمت بیا د اول جنایت ولي ته ورکوي: ځکه چې هغه (د جنایت اُولی ولي) د ټوله قیمت مستحق سوی دی ځکه کله چې مدبر د هغه په حق کې جنایت کړی وو، په دې وخت کې د هغه هیڅ مزاحم نه وو (لکه څرنګه چې مخکې هم د دې وضاحت وسو)، لهذا مالک به له غاصب څخه د اخیستل سوي قیمت نصف هغه ته بیا ورکوي چې حق یې پوره سي. (احسن الهدایه)

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

[قوله: امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمایي وَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْغَاصِبِ او مالک به په دې نصف سره پر مالک رجوع کوي لِأَنَّ الِاسْتِحْقَاقَ بِسَبَبٍ كَانَ فِي يَدِهِ ځکه [د دې نصف] استحقاق په داسي سبب سره دی کوم چې د غاصب په قبضه کي [صادر] سوی دی وَيُسَلِّمُ لَهُ وَلَا يَدْفَعُهُ إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى او دا نصف د مالک لپاره مخصوص کیږي چې هغه به یې د اول جنایت ولي ته نه ورکوي وَلَا إِلَى وَلِيِّ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ او نه به یې د دویم جنایت ولي ته ورکوي لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لَهُ إِلَّا فِي النِّصْفِ ځکه د دویم یوه حق صرف په نصف [نیم قیمت] کي دی لِسَبْقِ حَقِّ الْأَوَّلِ ځکه چې د اول یوه حق [د هغه تر حق] مخکې دی وَقَدْ وَصَلَ ذَلِكَ إِلَيْهِ او هغه نصف هغه [دویم یوه] ته رسیدلی دی ثُمَّ قِيلَ: هَذِهِ الْمَسْأَلَةُ عَلَى الِاخْتِلَافِ كَالْأُولَى بیا ویل سوي دي: چې دا مسئله هم د مخکنۍ مسئلې په څېر پر اختلاف ده وَقِيلَ: عَلَى الِاتِّفَاقِ او ویل سوي دي: [چې دا مسئله] پر اتفاق ده وَالْفَرْقُ لِمُحَمَّدٍ: أَنَّ فِي الْأُولَى الَّذِي يَرْجِعُ بِهِ عِوَضٌ عَمَّا سَلَّمَ لِوَلِيِّ الْجِنَايَةِ الْأُولَى او د امام محمد رَحِمَهُ الله لپاره وجه د فرق دا ده: چې په اول صورت کي هغه مقدار چې مالک په هغه سره [پر غاصب] رجوع کوي هغه [مقدار] عوض دی د هغه [نصف] کوم چې مالک د اول جنایت ولي ته ورکړی دی لِأَنَّ الْجِنَايَةَ الثَّانِيَةَ كَانَتْ فِي يَدِ الْمَالِكِ ځکه دویم جنایت د مالک په قبضه کي [صادر] سوی دی فَلَوْ دَفَعَ إِلَيْهِ ثَانِيًا نو که مالک هغه ته دویم وار [نصف] ورکړي يَتَكَرَّرُ الِاسْتِحْقَاقُ نو استحقاق به مکرر سي فَأَمَّا فِي هَذِهِ الْمَسْأَلَةِ او هر چې په دغه [مذکوره] مسئله کي فَيُمْكِنُ أَنْ يُجْعَلَ عِوَضًا عَنِ الْجِنَايَةِ الثَّانِيَةِ نو [دلته] دا ممکن دي چې هغه مقدار د دویم جنایت عوض وګرځول سي لِحُصُولِهَا فِي يَدِ الْغَاصِبِ ځکه هغه د غاصب په

قبضه کي واقع سوی دی فَلَا يُؤَدِّيْ إِلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ نو دا د هغه خرابي وطرف ته رسول نه کوي کوم چي [اوس] موږ ذکر کړه.

**اللغات:** ﴿عوض﴾ بدل. ﴿لا يؤدي﴾ د تفعيل له بابه د نفي صيغه ده. د دې باب په صله کي چي إلى ذکر سي نو معنیٰ يې ده: (د يو شه طرف ته) رسول. (د يو شه) سبب ګرځېدل.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي مالک د جنايت أولیٰ ولي ته کوم نصف قيمت ورکړی دی، هغه به دا نصف قيمت له غاصب اخلي؛ ځکه د جنايت أولیٰ ولي د داسي سبب په وجه د دې نصف حقدار سوی دی کوم چي د غاصب په قبضه کي صادر سوی دی. لهذا د جنايت اولیٰ ولي ته ورکړل سوی نصف قيمت به مالک له غاصب څخه اخلي او هغه د ده لپاره سالم پاتېږي يعني مالک به دا نيم قيمت خپله اخلي او د جنايت أولیٰ يا جنايت ثانيه ولي ته به يې نه ورکوي: ځکه د جنايت أولیٰ ولي ته هم خپل حق يعني يو قيمت پوره ورکول سوی دی او د جنايت ثانيه ولي ته هم د ده حق يعني نيم قيمت پوره ورکول سوی دی. نو ځکه مالک به دا نيم قيمت خپله اخلي.

ثم قيل إلخ: فرمايي چي بعضې مشايخو دا مذکوره مسئله هم د مخکني مسئلې په څېر د شيخينو او د امام محمد رَحِمَهُمُ الله ترمينځ مختلف فيها منلې ده (چي په دې مسئله کي هم د دوی ترمينځ اختلاف دی). او نورو مشايخو دا مسئله متفق عليها منلې ده او همدا د اتفاق والا قول زيات صحيح دی؛ ځکه په جامع صغير کي امام محمد رَحِمَهُ الله په دې مسئله کي اختلاف نه دی نقل کړی (بنايه). لېکن څرنګه چي په مخکني مسئله کي امام محمد رَحِمَهُ الله له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه جلا دی. نو ځکه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله له "والفرق لمحمد" څخه د دغه جلا والي توجيه بيانوي. حاصل يې دا دی چي په مخکني مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د استحقاق تکرار او د يوه کس په ملکيت کي د بدل او مبدل اجتماع لازميږي؛ ځکه په مخکني صورت کي چي مالک کوم نصف قيمت له غاصب څخه اخلي او د جنايت أولیٰ ولي ته يې ورکوي، دا د هغه حق (نصف قيمت) عوض وي کوم چي مالک مخکي د جنايت اولیٰ ولي ته ورکړی وي؛ ځکه هلته جنايت ثانيه د مالک (مولیٰ) په قبضه کي واقع سوی وي. لهذا د جنايت أولیٰ ولي ته د نصف قيمت په ورکولو سره د هغه استحقاق مکرر کيږي او د استحقاق تکرار صحيح نه دی. نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله په مخکني مسئله کي له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه جلا سوی دی. او په دې مذکوره مسئله کي چي څرنګه دواړه جنايتونه د غاصب په

قبضه کي واقع سوي دي، نو ځکه دلته دا تأويل کېدلای سي چي له غاصب څخه چي مالک کوم پوره قيمت اخيستی دی هغه د جنايت اُولیٰ عوض دی او دويم وار چي يې کوم نيم قيمت ځني اخيستی هغه د جنايتِ ثانيه عوض دی لهذا دلته د استحقاق تکرار نسته. نو ځکه په دې مسئله کي امام محمد او شيخين رَحِمَهُمَا الله سره يو ځای دي. (احسن الهدايه)

## که غصب کړی سوی آزاد بچی د غاصب په قبضه کي مړ سي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ غَصَبَ صَبِيًّا حُرًّا فرمايي: او څوک چي يو آزاد بچی غصب کړي فَمَاتَ فِيْ يَدِهِ فَجْأَةً أَوْ بِحُمَّى بيا هغه بچی د غاصب په قبضه کي په ناڅاپي توګه يا د تبي په وجه مړ سي فَلَيْسَ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو پر غاصب هيڅ شی نسته وَإِنْ مَاتَ مِنْ صَاعِقَةٍ أَوْ نَهْسَةِ حَيَّةٍ او که هغه بچی د تندر [آسماني تکي] يا د مار د چيچلو په وجه مړ سي فَعَلَىٰ عَاقِلَةِ الْغَاصِبِ الدِّيَةُ نو د غاصب پر عاقله وو ديت [واجب] دی وَهٰذَا اسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَضْمَنَ فِي الْوَجْهَيْنِ او قياس دا دی چي غاصب په دواړو صورتونو کي ضامن نه سي وَهُوَ قَوْلُ زُفَرَ وَالشَّافِعِيِّ او همدا د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْغَصْبَ فِي الْحُرِّ لَا يَتَحَقَّقُ ځکه په آزاد کس کي غصب نه متحقق کيږي أَلَا يَرَىٰ أَنَّهُ لَوْ كَانَ مُكَاتَبًا صَغِيرًا آيا نه ګوري چي که هغه کوچنی مکاتب وي لَا يَضْمَنُ نو غاصب نه ضامن کيږي مَعَ أَنَّهُ حُرٌّ يَدًا سره د دې چي هغه [کوچنی مکاتب] صرف د قبضې په اعتبار سره آزاد وي فَإِذَا كَانَ الصَّغِيرُ حُرًّا رَقَبَةً وَيَدًا نو کله چي کوچنی [صبي] د رقبې او قبضې دواړو په اعتبار سره آزاد وي أَوْلَىٰ نو په درجه اولیٰ [به غاصب نه ضامن کيږي].

**اللغات:** ﴿فجأة﴾ ناڅاپه او ناګهانه. ناڅاپه يو شی پېښېدل چي د هغه هيڅ توقع نه وي. ﴿حُمّی﴾ تبه.
﴿صاعقة﴾ آسماني برېښنا او آسماني اُور کوم چي په سخته تنا (تالنده) کي له آسمانه راشوه سي، تندر، تکه.
جمع: صواعق. ﴿نهسة﴾ د فتح او سمع له بابه دی. د دې باب يو معنیٰ ده: د مار چيچيل (د مار چک لګول).
﴿حيّة﴾ مار، جمع: حيّات.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالکل آسانه دی چي که څوک يو آزاد بچی غصب کړي، بيا هغه بچی د غاصب په قبضه کي په ناڅاپي مرګ سره يا د سختي تبي (مليريا وغيره) په وجه مړ سي، نو پر غاصب هيڅ ضمان نسته. هاا که هغه د تندر (تکي) رالوېدلو يا د مار د چک لګولو په وجه مړ سي. نو په دې صورت کي

استحساناً د غاصب پر عاقله وو دیت واجبیږي. لیکن د قیاس تقاضا دا ده چې په دواړو صورتونو کې پر غاصب ضمان یعني دیت واجب نه سي. همدا د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله مسلک دی.

د قیاس یعني د امام شافعي او امام زفر رَحِمَهُمَا الله د مسلک دلیل دا دی چې د آزاد کس غصب نه متحقق کیږي (یا په بله وینا دا چې آزاد کس نه غصب کیږي)، لهذا د هغه غصبونکی او بیونکی جنایتکاره نه دی او کله چې هغه جنایتکاره نه سو نو د بچي د مرګ ضمان پر هغه نه سي واجبول کېدای. همدا وجه ده که یو څوک مکاتب بچی غصب کړي او بیا هغه د تندر (آسماني تکي) را لوېدلو په وجه د غاصب په قبضه کې مړ سي. نو پر غاصب ضمان نه لازمیږي. حال دا چې مکاتب فقط د قبضې په اعتبار سره آزاد وي.

نو کله چې د حُرّ باعتبار الید په مرګ سره هم پر غاصب ضمان نه واجبیږي. نو آزاد بچی کوم چې د رقبې او قبضې هر څه په اعتبار سره آزاد وي د هغه په مرګ سره به په درجه اولیٰ پر غاصب ضمان نه واجبیږي. ګواکې په قیاس کې دا مذکوره مسئله د مکاتب صغیر پر مسئلې قیاس کړل سوې ده.

## د استحسان (زموږ د مذهب) دلیل

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ: أَنَّهُ لَا يَضْمَنُ بِالْغَصْبِ د استحسان دلیل دا دی: چې [دلته] غاصب د غصب په وجه نه ضامن کیږي وَلٰكِنْ يَضْمَنُ بِالْإِتْلَافِ لیکن [د بچي] د تلفولو په وجه ضامن کیږي وَهٰذَا إِتْلَافٌ تَسْبِيْبًا او دا د سبب ګرځېدلو په توګه تلفول [هلاکول] دي [یعني غاصب د بچي د هلاکولو سبب ګرځېدلی دی] لِأَنَّهُ نَقَلَهُ إِلٰى أَرْضٍ مَسْبَعَةٍ ځکه چې غاصب دا بچی نقل کړی دی د درندګانو ځمکې ته أَوْ إِلٰى مَكَانِ الصَّوَاعِقِ یا د آسماني تکو [دلوېدلو] ځای ته وَهٰذَا لِأَنَّ الصَّوَاعِقَ وَالْحَيَّاتِ وَالسِّبَاعَ لَا تَكُوْنُ فِيْ كُلِّ مَكَانٍ او دا ځکه چې آسماني تکې او مارونه او درندګان په هر ځای کې نه وي فَإِذَا نَقَلَهُ إِلَيْهِ نو کله چې غاصب دا بچی هغه ځای ته نقل کړ دی فَهُوَ مُتَعَدٍّ فِيْهِ نو غاصب په دې نقل کولو کې تعدی کونکی دی وَقَدْ أَزَالَ حِفْظَ الْوَلِيِّ او غاصب [په دې سره] د ولي حفاظت زائل کړی فَيُضَافُ إِلَيْهِ نو ځکه تلفول [هلاکول] به د غاصب وطرف ته مضاف کیږي لِأَنَّ شَرْطَ الْعِلَّةِ يُنَزَّلُ مَنْزِلَةَ الْعِلَّةِ إِذَا كَانَ تَعَدِّيًا ځکه د علت شرط چې کله د تعدی په توګه وي نو هغه د علت په منزله ګرځول کیږي [د علت قائم مقام کیږي] كَالْحَفْرِ فِي الطَّرِيْقِ لکه په لاره کې څاه کیندل بِخِلَافِ الْمَوْتِ فَجْأَةً أَوْ بِحُمَّى په خلاف په ناڅاپي مرګ سره یا د تبې په وجه مړ کېدل لِأَنَّ ذٰلِكَ لَا يَخْتَلِفُ بِاخْتِلَافِ الْأَمَاكِنِ ځکه دا د ځایونو په اختلاف سره نه مختلف کیږي حَتّٰى لَوْ نَقَلَهُ إِلٰى مَوْضِعٍ يَغْلِبُ فِيْهِ الْحُمّٰى وَالْأَمْرَاضُ تر دې چې که غاصب هغه بچی داسې ځای ته نقل

کړي چې په هغه کې تبه او مرضونه غالب وي نَقُوْلُ بِاَنَّهُ يَضْمَنُ نو موږ وايو چې غاصب ضامن کيږي فَتَجِبُ الدِّيَةُ عَلَى الْعَاقِلَةِ نو [دغاصب] پر عاقله وو ديت واجبيږي لِكَوْنِهِ قَتْلًا تَسْبِيْبًا ځکه چې دا د سبب ګرځېدلو په توګه قتلول دي [نه مباشرتاً. يعني غاصب د هغه بچي د قتل سبب جوړ سوی دی].

**اللغات**: ﴿إتـلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول. ضايع کول. هلاکول. ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړېدل. مسبب ګرځېدل. ﴿مسبعة﴾ أرض كثيرةُ السِّباع: يعني هغه ځمکه چې ډېر درندګان لري، سِباع جمع د سَبُع ده چې د هغه معنیٰ ده: كُل جارحٍ من الحيوان. يعني هر زخمي کونکی حيوان (ساکښ)، او په دې تعريف کې مار وغيره هم داخليږي. سباع الوحش: ذوات الأنياب منها. سباع الطير: ذوات المخالب منها. ﴿يُنـزّل﴾ د تفعيل د باب مضارع مجهوله ده: شوه کول (صحيح همدا ده چې په دې معنیٰ د تفعيل له بابه مستعمل دی). يُنـزّل منزلةً: يو شی د بل په درجه کې شوه کول (د بل شي په منزله ګرځول). يو څه د بل څه پر ځای اېښوول. د بل شي قائم مقام کول. ﴿المَنْـزِلة﴾ مکان او مرتبه. درجه. ﴿صواعق﴾ جمع د صَاعِقَةٌ ده: تندر، آسماني ټکه او برېښنا کوم چې په سخته تنا کې را ولويږي.

**تشريح**: زموږ مذهب پر استحسان مبني دی، د استحسان د دليل حاصل دا دی چې په مذکوره مسئله کې چې کوم ضمان واجب کړی سوی دی، هغه د غصب په وجه نه دی بلکې په دې وجه دی چې غاصب هغه آزاد بچی هلاک کړی دی؛ ځکه که څه هم غاصب بذات خود بچی نه دی هلاک کړی لېکن هغه د بچي د هلاکېدلو سبب جوړ سوی دی چې بچی يې داسې ځای ته نقل کړی دی چې هلته ماران اوسيږي يا هلته آسماني ټکې لويږي، او دا ښکاره خبره ده چې هر ځای دا بلاوي نه وي او نه هر ځای ټکه لويږي. لهذا مذکوره ځای ته د بچي د بېولو په وجه غاصب تعدی کونکی دی او د بچي د ولي د حفاظت زايلونکی دی. نو ځکه د بچي هلاکت به همدغه وطرف ته منسوب وي او دئ به د هغه ضامن وي؛ ځکه قاعده دا ده چې که په شرط او سبب کې تعدی موجوده سي نو هغه ته د علت درجه ورکول کيږي او دلته په شرط کې تعدی موجوده سوې ده. لهذا دلته به هم هغه ته د علت درجه ورکول کيږي او غاصب به مُسبب ګرځول کيږي نو پر هغه به ضمان واجبول کيږي. لکه څرنګه چې په لاره کې څاه کيندل د لوېدونکي کس د مرګ سبب دی. نو ځکه کيندونکي (حافر) مُسبب شمېرل کيږي او پر هغه ضمان واجبول کيږي. نو همداسې به په مذکوره مسئله کې غاصب هم مُسبب شمېرل کيږي او ضمان به پرې واجب وي.

**بخلاف الموت إلخ**: فرمايي چې د ناڅاپي مرګ يا د تبې په وجه د بچي مړ کېدل د آسماني تندر يا د مار چيچېلو له مرګ څخه جلا دي؛ ځکه دا شيان (تبه وغيره) د يو ځای سره خاص نه دي. بلکې په هر ځای کې کېدلای سي. لهذا په ناڅاپي مرګ يا په تبې سره د مړ کېدلو په صورت کې دا نه سي ويل کېدای چې غاصب

دې ځای ته د بچي د نقل کولو په وجه تعدي کړې ده. نو ځکه په دې صورت کې به غاصب نه ضامن کیږي. هاا! که په یو علاقه کې د تبې مرض او وبا غالبه وي او په عامه توګه خلک نیسي او بیا غاصب هغه علاقې ته بچی نقل کړي او بچی مړ سي، نو په دې صورت کې زموږ په نیز هم غاصب ضامن کیږي او د بچي د مرګ په وجه د هغه پر عاقله وو دیت واجبیږي؛ ځکه دلته غاصب مباشر نه دی بلکې مُسبّب دی او د قتل بالسبب دیت پر عاقله وو واجبیږي. (احسن الهدایه)

## که بچی (کوچنی) د امانت غلام یا د امانت یو شی ضایع کړي (حکم او تفصیل)

قَالَ: وَإِذَا أُودِعَ صَبِيٌّ عَبْدًا فرمايي: او کله چې بچي ته یو غلام په امانت ورکول سي فَقَتَلَهُ او بچی هغه قتل کړي فَعَلَى عَاقِلَتِهِ الدِّيَةُ نو د بچي پر عاقله وو دیت [واجب] دی وَإِنْ أُودِعَ طَعَامًا فَأَكَلَهُ او که بچي ته یو خوراک په امانت کښېښول سي لَمْ يَضْمَنْ نو بچی نه ضامن کیږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او دا [حکم] د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَالشَّافِعِيُّ ❁: يَضْمَنُ فِي الْوَجْهَيْنِ جَمِيعًا امام ابو یوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې بچی په دواړو صورتونو کې ضامن کیږي وَعَلٰى هٰذَا إِذَا أُودِعَ الْعَبْدُ الْمَحْجُورُ عَلَيْهِ مَالًا او پر همدغه [اختلاف] دي کله چې محجور علیه غلام ته یو مال په امانت کښېښول سي فَاسْتَهْلَكَهُ بیا دئ هغه مال هلاک کړي لَا يُؤَاخَذُ بِالضَّمَانِ فِي الْحَالِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز به هغه في الحاله په ضمان [تاوان] سره نه مؤاخذه کیږي [یعني سمدستي به تاوان نه ځني اخیستل کیږي] وَيُؤَاخَذُ بِهِ بَعْدَ الْعِتْقِ او تر آزادېدلو وروسته به په ضمان سره مؤاخذه کیږي وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ وَالشَّافِعِيِّ يُؤَاخَذُ بِهِ فِي الْحَالِ او د امام ابو یوسف او امام شافعي رَحِمَهُ الله په نیز به غلام في الحاله په ضمان سره مؤاخذه کیږي وَعَلٰى هٰذَا الْخِلَافِ الْإِقْرَاضُ وَالْإِعَارَةُ فِي الْعَبْدِ وَالصَّبِيِّ او پر همدغه اختلاف دي غلام او بچي ته قرض ورکول یا عاریت ورکول.

**اللغات:** ﴿أودع﴾ د افعال د باب ماضي ده: یو چا ته شي په امانت ایښول، په امانت ورکول. ﴿صبي﴾ بچی، هغه کوچنی کوم چې د هلکوالي تر وخته رسېدلی نه وي. ﴿عاقلة﴾ متعلقین او نږدې قریبان او قومیان (خاندان والا). ﴿محجور﴾ د نصر د باب مفعول دی. محجور علیه: هغه کس چې له یو کار او تصرّف کولو څخه منع کړی سوی وي. العبد المحجور علیه: هغه غلام چې خپل مالک له کاروبارت څخه منع کړی وي. یا په بله

❁ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، كما ظهر من دأب المصنف رَحِمَهُ الله، وهكذا ذكر قولهما العلامة الحلبي رَحِمَهُ الله أولًا، كما هو دأبه في المختار عنده...[القول الراجح ج:۲، ص:۳۶۴]

وینا دا چي د تجارت او تصرّف کولو پابندي پرې لګول سوې وي، ﴿إعارة﴾ تمليك المنفعة بلا عوض ("بلا عوضه یوشی ورکول" مثلاً که یو سړی د شي له مالک څخه خواست وکړي چي دیو څو وخت لپاره دا شی راکړه! زه به کار (نفع) ځني واخلم، او د شي مالک هغه ورکړي، نو دې ته إعارتاً ورکول وايي).

**تشریح:** په دې عبارت کي دوې مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي که څوک یو بچي (کوچني) ته خپل یو غلام په امانت ورکړي او بچي هغه غلام قتل کړي، نو د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دې بچي پر عاقله وو دیت واجبیږي.

(۲)... دویمه مسئله دا ده چي که څوک بچي ته د خوراک یو شی په امانت کښېږدي او بچي هغه شی وخوري، نو په دې صورت کي د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز بچی نه ضامن کیږي، لېکن د امام ابو یوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز په دواړو صورتونو کي بچی ضامن کیږي.

پر همدغه پورتني اختلاف دا مسئلې هم متفرع دي:

(۱)... که څوک محجور علیه غلام ته یو مال په امانت کښېږدي او غلام هغه مال هلاک کړي، نو له دې غلام څخه به فی الحاله ضمان نه اخیستل کیږي، بلکي تر آزادېدلو وروسته به د هغه مؤاخذه کیږي، لېکن د امام ابو یوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چي له هغه څخه به فی الحاله ضمان اخیستل کیږي.

(۲)... که څوک یو بچي یا محجور علیه غلام ته قرض وکړي یا په عاریت یو شی ورکړي، بیا دوی هغه قرض یا شی هلاک کړي، نو هم دغه حکم دی یعني د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د دوی مؤاخذه نه کیږي، ها! له غلام څخه به تر آزادېدلو وروسته ضمان اخیستل کیږي، لېکن د امام ابو یوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز به له دواړو څخه فی الحاله ضمان اخیستل کیږي.

**مذکوره اختلاف د کوم بچي (کوچني) په باره کي دی؟**

وَقَالَ مُحَمَّدٌ فِيْ أَصْلِ الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ: صَبِيٌّ قَدْ عَقَلَ او امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغیر کي فرمایلي دي: صبيٌّ قد عقل [یعني عاقل بچی]. وَفِي الْجَامِعِ الْكَبِيْرِ وَضَعَ الْمَسْأَلَةَ فِيْ صَبِيٍّ ابْنِ اثْنَتَيْ عَشْرَةَ سَنَةً او په جامع کبیر کي یې د دوولسو کالو د بچي په هکله مسئله وضع کړې ده وَهٰذَا يَدُلُّ عَلٰى أَنَّ غَيْرَ الْعَاقِلِ يَضْمَنُ بِالْاِتِّفَاقِ او دا پر دې خبره دلالت کوي چي غیر عاقل بچی بالاتفاق ضامن کیږي لِأَنَّ التَّسْلِيْطَ غَيْرُ مُعْتَبَرٍ ځکه [په غیرِ عاقل بچي کي] تسليط معتبر نه دی وَفِعْلُهُ مُعْتَبَرٌ او د غیر عاقل بچي فعل معتبر دی.

**اللغات:** ﴿تسليط﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: پر یو شي مسلط کول او ګومارل. د یو شي قدرت او اختیار ورکول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې د طرفينو او د امام ابو يوسف رَحِمَهُم الله وغيره ترمينځ مذکوره اختلاف د عاقل بچي په هکله دی: ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کې "صَبِيٌّ قَدْ عَقَل" ذکر کړي دي او په جامع کبير کې امام محمد رَحِمَهُ الله د دوولسو (۱۲) کالو د بچي په هکله دا مسئله وضع کړې ده. او ښکاره خبره چې د ۱۲/ کالو بچی عاقل وي. لهذا د جامع صغير او جامع کبير دواړو په حواله سره دا ثابته سوه چې مذکوره اختلاف د عاقل بچي په باره کې دی، کنې که بچی غير عاقل [نه پوهېدونکی] وي نو بالاتفاق ضمان واجبيږي؛ ځکه د غير عاقل بچي په صورت کې د اصل مالک له طرفه تسليط موجود نه سو. او د بچي فعل معتبر دی. نو ځکه بالاتفاق د هغه د فعل ضمان واجبيږي.

(۱) **يادونه**: په درمختار وغيره کې مسئله د دې برعکس ده. يعني پر صبي غير عاقل بالاتفاق ضمان نه واجبيږي، معلومه سوه چې په دې باب کې زموږ د مشايخو دوه جماعته دي.

(۲) **يادونه**: د عبارت په شروع کې د جامع صغير سره د "اصل "لفظ ولي اضافه سوی دی يعني في اصل الجامع الصغير؟، نو د دې هيڅ وجه نسته، او دا هم کېدلای سي چې هغه به د ناسخينو غلطي وي. او په "عين الهدايه اُردو شرح هدايه" کې "في الأصل" ليکل سوي دي نو بيا هيڅ اشکال نه پاتېږي، خو په نورو شروحو کې داسې نه دي.

## د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل

لَهُمَا د امام ابو يوسف او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی أَنَّهُ أَتْلَفَ مَالًا مُتَقَوِّمًا مَعْصُوْمًا حَقًّا لِمَالِكِهِ چې دغه بچي داسې متقوم مال تلف کړی دی کوم چې د خپل مالک د حق په وجه معصوم [او ممنوع] دی فَيَجِبُ عَلَيْهِ الضَّمَانُ نو ځکه پر هغه به ضمان واجب وي كَمَا إِذَا كَانَتِ الْوَدِيْعَةُ عَبْدًا لکه کله چې وديعت [امانت] غلام وي أَوْ كَمَا إِذَا أَتْلَفَهُ غَيْرُ الصَّبِيِّ فِيْ يَدِ الصَّبِيِّ الْمُوْدَعِ يا لکه کله چې له بچي څخه بغير بل څوک د مودَع بچي په قبضه کې وديعت تلف کړي.

**اللغات**: ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: تلفول، هلاکول. ﴿معصوم﴾ د ضرب له بابه مفعول دی: محفوظ ساتل سوی، د حفاظت حقدار، ممنوع، چې د هغه اخيستل جائز نه وي. ﴿وديعة﴾ امانت، په امانت ورکول سوی شی (امانتاً ايښوول سوی شی). ﴿مُودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چې امانت ورکول سوی وي (چا ته چې امانت ايښوول سوی وي).

**تشريح**: په دې عبارت کې د امام ابو يوسف او امام شافعي دليل ذکر سوی دی چې پر بچي د مال او طعام وغيره ضمان ولې واجب دی؟، حاصل د دليل دا دی چې دلته بچي متقوّم مال هلاک کړی دی او هغه مال د خپل

مالک د حق په وجه معصوم هم دي، او د متقوم او معصوم مال په هلاکولو سره ضمان واجبيږي. نو ځکه په مذکوره مسئله کي پر بچي ضمان واجب دی. لکه کله چي دا د امانت امال د بچي په قبضه کي بل څوک هلاک کړي نو پر هلاکونکي ضمان واجبيږي، لهذامعلومه سوه چي که بچي يې خپله هلاک کړي نو پر هغه به هم ضمان واجبيږي، يا لکه کله چي بچي اماتناً ورکول سوی غلام هلاک کړي نو پر هغه ضمان واجبيږي.

## د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل

وَلِأَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ او د طرفينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی أَنَّهُ أَتْلَفَ مَالًا غَيْرَ مَعْصُومٍ چي هغه [بچي] يو غيرِ معصوم مال تلف کړی دی فَلَا يَجِبُ الضَّمَانُ نو ځکه ضمان به نه واجبيږي كَمَا إِذَا أَتْلَفَهُ بِإِذْنِهِ وَرِضَاهُ لکه [په هغه صورت کي] کله چي هغه د مالک په اجازه او رضا سره مال تلف کړی وي وَهٰذَا لِأَنَّ الْعِصْمَةَ تَثْبُتُ حَقًّا لَهُ او دا ځکه چي عصمت د مالک د حق پر بناء ثابت سوی دی وَقَدْ فَوَّتَهَا عَلَى نَفْسِهِ حال دا چي مالک پر خپل ځان دا عصمت فوت کړی دی حَيْثُ وَضَعَ الْمَالَ فِي يَدِ مَانِعَةٍ په دې حيثيت سره چي مالک خپل مال په داسي لاس کي ايښی دی کوم چي [له ايداع او عاريت څخه] منع کونکی دی فَلَا يَبْقَى مُسْتَحِقًّا لِلنَّظَرِ نو ځکه مالک د ښېګڼي [او شفقت] مستحق پاته نه سو إِلَّا إِذَا أَقَامَ غَيْرَهُ مَقَامَ نَفْسِهِ فِي الْحِفْظِ مګر دا چي مالک په حفاظت کي بل څوک خپل قائم مقام کړي وَلَا إِقَامَةَ هٰهُنَا او دلته قائم مقام کول نسته لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَى الصَّبِيِّ ځکه چي نه مالک لره پر بچي ولايت سته وَلَا لِلصَّبِيِّ عَلَى نَفْسِهِ او نه بچي لره پر خپل ځان ولايت سته.

**اللغات:** ﴿إِذن﴾ اجازه (اجازت)، ﴿فوّتها﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: فوت کول، ضايع کول.

**تشريح:** د طرفينو رَحِمَهُمَا الله د دليل حاصل دا دی چي د مال او طعام د هلاکولو په صورت کي پر بچي ځکه ضمان نه واجبيږي چي بچي يو غيرِ معصوم مال تلف کړی دی او د غيرِ معصوم مال په تلفولو سره ضمان نه واجبيږي، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به پر بچي هم ضمان نه واجبيږي، لکه کله چي بچي د مالک په اجازه او خوښي سره د هغه مال هلاک کړی وي، نو پر هغه ضمان نه لازميږي نو همداسي به دلته هم نه پرې لازميږي.

پاته سو دا سوال چي مذکوره مال څنګه معصوم نه دی؟، نو د دې جواب دا دی چي دا مال د مالک د حق په وجه معصوم وو لېکن مالک خپله د هغه عصمت ختم کړی چي دا مال يې يو داسي چا ته په وديعت ورکړی کوم چي د وديعت اهل نه دی، نو ځکه نه دا مال د حفاظت مستحق (معصوم) سو او نه مالک د مصلحت او ښېګڼي مستحق سو، لهذا بچي د غيرِ معصوم مال هلاکونکی سو، او غيرِ معصوم مال هلاکول د ضمان موجب نه دي، نو ځکه په مذکوره مسئله کي پر هغه ضمان نه واجبيږي.

إلّاإذا أقام إلخ: د دې حاصل دا دی چې که څوک خپل مال يو کس ته په امانت دېجردي او هغه دس د مال پر حفاظت مامور کړي او په حفاظت کې يې د خپل ځان قائم مقام کړي. او بيا دا کس هغه مال هلاک کړي، نو د تعدی کولو په وجه هغه ضامن کيږي، ليکن دلته په پورتنۍ مسئله کې د مالک له طرفه قائم مقام کول هم نسته؛ ځکه نه مالک ته پر بچي ولايت حاصل دی او نه بچي ته پر خپل ځان ولايت حاصل دی، لهذا کله چې قام مقام کول معدوم دي، نو ښکاره ده چې د دې مال په هلاکولو کې به بچی تعدی کونکی نه وي، نو ځکه په دې حواله سره هم پر هغه ضمان نه واجبيږي.

## که مُودَع بالغ وي يا هغه مأذون لهٗ غلام وي نو څه حکم دی؟

بِخِلَافِ الْبَالِغِ وَالْمَأْذُونِ لَهٗ په خلاف د بالغ او مأذون لهٗ غلام لِأَنَّ لَهُمَا وِلَايَةٌ عَلٰى أَنْفُسِهِمَا ځکه چې دوی دواړو ته پر خپلو ځانو ولايت حاصل دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْوَدِيْعَةُ عَبْدًا او په خلاف د هغه صورت کله چې امانت غلام وي لِأَنَّ عِصْمَتَهٗ لِحَقِّهٖ ځکه د غلام عصمت د هغه د حق په وجه دی إِذْ هُوَ مُبْقًى عَلٰى أَصْلِ الْحُرِّيَّةِ فِيْ حَقِّ الدَّمِ ځکه دويني [خون] په حق کې هغه پر اصل آزادۍ باقي پرېښوول سوی دی وَبِخِلَافِ مَا إِذَا أَتْلَفَهٗ غَيْرُ الصَّبِيِّ فِيْ يَدِ الصَّبِيِّ او په خلاف د هغه صورت کله چې هغه [مال] له بچي څخه بغير بل چا د مودَع بچي په قبضه کې تلف کړی وي لِأَنَّهٗ سَقَطَتِ الْعِصْمَةُ ځکه چې عصمت ساقط سو بِالْإِضَافَةِ إِلَى الصَّبِيِّ الَّذِيْ وَضَعَ فِيْ يَدِهِ الْمَالَ د هغه بچي وطرف ته په اضافت کولو سره چې د هغه په قبضه کې مال دی [يعني مودَع بچی] دُوْنَ غَيْرِهٖ نه له هغه څخه بغير د بل چا په حق کې [يعني د بل چا په حق کې عصمت نه دی ساقط سوی].

**اللغات:** ﴿مأذون لهٗ﴾ مأذون: د سمع له بابه د مفعول صيغه ده: هغه غلام چې د مالک له طرفه د کاروبار او تصرّف اجازه ورکول سوې وي، ﴿عصمة﴾ محفوظيت، د حفاظت حق، معصوم کېدل (محفوظ او ممنوع کېدل، د حفاظت حقدار کېدل)، ﴿مبق﴾ د افعال د باب مفعول دی: پاته کړل سوی، باقي پرېښوول سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کوم چا ته مال په امانت ايښول سوی وي (يعني مودَع) که هغه بالغ وي يا مأذون لهٗ غلام وي، بيا دوی هغه د امانت مال هلاک کړي، نو پر دوی ضمان واجبيږي؛ ځکه دوی هر يوه ته پر خپل نفس ولايت حاصل دی، لهذا دوی ته امانت ايښوول صحيح دي او دا مُسلمه خبره ده چې که مودَع د امانت مال هلاک کړي نو پر هغه ضمان واجبيږي، نو ځکه پر بالغ او مأذون غلام به هم د هلاکولو په صورت کې ضمان واجبيږي.

وبخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مودَع بچی وي او د امانت مال غلام وي او بیا دا بچی هغه غلام هلاک کړي، نو مودَع ضامن کیږي که څه هم هغه بچی دی؛ ځکه چې غلام د خپل حق په وجه معصوم الدَم دی او د دَم (وینې) په حق کې هغه پر اصل حُرِیت باقي دي. او بیا کله چې د غلام مالک (مولیٰ) ته دا حق نسته چې خپل غلام هلاک کړي، نو ښکاره ده چې مالک بل چا ته هم د غلام د هلاکولو حکم نه سي کولای، لهذا د امانت غلام په حق کې تسلیط علی الإتلاف معدم دی. نو ځکه د هغه تلفونکي به ضامن کیږي، برابره ده تلفونکی کس کوچنی وي او که لوی وي. (کفایه. وهکذا فی البنایه ۱۲/ ۲۰۶)

بخلاف ما إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چې که څوک یو بچي ته خپل مال په امانت کښېږدي او بیا د دې مودَع بچي په قبضه کې هغه مال بل څوک هلاک کړي، نو پر هلاکونکي ضمان واجبیږي؛ ځکه دلته د مال عصمت فقط د مودَع بچي په حق کې ساقط سوی دی ځکه بچي ته امانت اینښوول صحیح نه دي. لهذا مودَع بچی خو نه ضامن کیږي لیکن هغه بل کس (هلاکونکی) ضامن کیږي؛ ځکه د هغه په حق کې دا مال معصوم الدم دی او د هغه په حق کې د مال عصمت نه دی ساقط سوی، نو ځکه هغه به د دې مال ضمان (تاوان) اداء کوي.

## که بچی له امانت مال څخه بغیر بل مال هلاک کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايي وَإِنِ اسْتَهْلَكَ مَالًا او که بچی یو مال هلاک کړي ضَمِنَ نو هغه ضامن کیږي [یعني د مال ضمان (تاوان) پرې واجبیږي] يُرِيْدُ بِهِ مِنْ غَيْرِ إِيْدَاعٍ په دې سره د امام محمد رَحِمَهُ الله مراد بغیر له ودیعت څخه هلاکول دي [یعني چې له امانت مال څخه بغیر بل مال هلاک کړي] لِأَنَّ الصَّبِيَّ يُؤَاخَذُ بِأَفْعَالِهِ ځکه بچی په خپلو افعالو سره مؤاخذه کیږي وَصِحَّةُ الْقَصْدِ لَا مُعْتَبَرَ بِهَا فِيْ حُقُوْقِ الْعِبَادِ او د قصد [ارادې] صحیح کېدلو لره په حقوقُ العباد کې اعتبار نسته.

**اللغات:** ﴿استهلك﴾ د استفعال د باب ماضي ده: هلاکول. ﴿إيداع﴾ د افعال د باب مصدر دی: چا ته یو شی په امانت اینښوول، په امانت ورکول. ﴿يواخذ﴾ د افعال له باب څخه د تثنیه غائب نفي مجهول صیغه ده: مؤاخذه کول، رټل او غندل، سزا ورکول. ﴿القصد﴾ د نصر له باب څخه اسم مصدر دی: اراده.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که بچی له امانت مال څخه بغیر د یو چا بل مال هلاک کړي، نو پر بچي ضمان واجبیږي؛ ځکه بچی په خپلو افعالو کې مأخوذ کیږي که څه هم هغه په خپلو اقوالو کې نه مأخوذ کیږي، نو ځکه د مال هلاکولو په وجه به پر هغه ضمان واجبیږي. ها! د امانت (ودیعت) په صورت چې څرنګه د مودَع بچي په حق کې د امانت مال عصمت ساقطیږي (لکه مخکې چې ذکر

سوه). نو ځکه په دې صورت کې خو پرمودَع بچې ضمان (تاوان) نه واجبیږي، لیکن له امانت مال څخه بغیر د بل مال د هلاکولو په صورت کې پر هغه خامخا ضمان واجبیږي.

وصحة القصد إلخ: دا د یو مُقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چې په مذکوره صورت کې پر بچي ضمان نه واجبېدل پکار دي که څه هم له امانت څخه بغیر هغه بل مال هلاک کړي؛ ځکه د ضمان واجبېدلو لپاره قصد (اراده) شرط ده او د بچي له طرفه قصد او د قصد صحت معدوم دی یعنې د بچي قصد بالکل صحیح نه دی. لهذا پر هغه ضمان نه واجبېدل پکار دي، حال دا چې تاسو دلته پر هغه ضمان واجب کړی دی، د دې حکم څه وجه ده؟.

نو د دې په جواب کې فرمایي چې په حقوقُ العباد کې د قصد او ارادې صحت لره هیڅ اعتبار نسته او په حقوق العباد کې هر وخت مؤاخذه سته. او څرنګه چې دلته د ضمان واجبېدلو تعلّق هم د حقوقُ العباد سره دی، نو ځکه دلته پر هلاکونکي بچي له ضمان واجبولو څخه بغیر بله چاره نسته. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم

ربّنا تقبّل منا إنّك أنت السمیع العلیم وتب علینا إنك أنت التواب الرحیم

وصلی الله علی خیر خلقه محمد وأصحابه أجمعین

برحمتك یا أرحم الرّاحمین

احقر حبیب الرحمن

